# خبردارے

مونږ د خپل وسه پورے دا کوشش کړے چه په دے کتاب کښے
څۀ علمي، کتابتي، یا طباعتي غلطي پاتے نشي، خو بیا هم انسان
کمزورے دے، دۀ په هر کار کښے څۀ نا څۀ کوتاهي خامخا راتلے شي،
نو مونږ ټولو مسلمانانو خوېندو وروڼو ته درخواست کوو
چه کله تاسو ددے کتاب لوستلو په وخت په څۀ قسم
غلطئ باندے پوهه شئ نو د خیر خواهئ او اصلاح په بنیاد باندے
مونږ ته خبر راکړئ، ستاسو په دے خبر راکولو سره به یو خو
د نصیحت او خیر خواهئ حق ادا شي، او بل په دے کار سره
به نورو مسلمانانو ته هم فائده ورسي
په آینده ایډیشن کښے به ددے اصلاح وکړے شي۔
او مونږ به ستاسو ډیر شکر ګذار یو۔

ستاسو ورور: ابو زهیر سیف الله "غفرله"

1436ھ 22 ذی الحجه موافق 2015/ 10 /6

مکتبه محمدیه

بسم الله الرحمن الرحيم

| آیاتها (۱۶۵) | (۶) سورة الانعام مكية (۵۵) | رکوعاتها (۲۰) |
| --- | --- | --- |

سورة الانعام مکی دے، پدے کبن یو سل پنځه شپیته آیتونه او شل رکوع دی

## تفسیر سورة الانعام

**نوم** : د انعام معنی ده: چارپایان (څاروی)، او دا نوم ورله کیخودے شو ځکه چه پدے سورت کبن د چارپایانو په باره کبن د مشرکانو د عقیدے تفصیلی رد دے یعنی د مشرکانو د جهالتونو او د بتانو د تقرب حاصلولو دپاره حیوانات د غیر الله په نوم پریخودو مشرکانه عقائد بیان شویدی، او د چارپایانو د حلت او حرمت زیات احکام بیان شویدی۔ یعنی شرك فی التحلیل والتحریم په کبن ذکر کیږی۔

**دویم نوم** : دے ته "سُوْرَةُ مُحَاجَةِ الْمُشْرِكِيْنَ" هم وائی۔ یعنی د مشرکانو سره بحث مباحثه ده۔ امام قرطبیؒ وائی: هٰذِهِ السُّوْرَةُ أَصْلٌ فِیْ مُحَاجَةِ الْمُشْرِكِيْنَ وَغَیْرِهِمْ مِنَ الْمُبْتَدِعِیْنَ وَمَنْ كَذَّبَ بِالْبَعْثِ وَالنُّشُوْرِ۔ دا سورت د مشرکانو او مبتدعینو او د قیامت او د دوباره ژوند منکرینو په رد کبن بنیادی سورت دے۔ (القرطبی ۶/۳۸۳)

یعنی پدے سورت کبن سوال وجواب او مقابله زیاته ده۔ که یو سړے غواړی د مناظرے طریقه زده کړی نو دے سورت ته دے رجوع وکړی۔

**د نزول زمانه او فضیلت:** د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت شویدے فرمائی:

[نَزَلَتْ سُوْرَةُ الْأَنْعَامِ بِمَكَّةَ لَيْلًا جُمْلَةً وَمَعَهَا سَبْعُوْنَ مَلَكًا يُشَيِّعُوْنَهَا]،

سورة الانعام په مکه کبن د شپے په یو ځل نازل شویدے او ددے سره اویا زره ملائك راکوز شو چه دائے رخصتولو او تولو تسبیح او تحمید ونیلو، نبی کریم ﷺ چه کله دا حالت ولیدو نو سبحان ربی العظیم، سبحان ربی العظیم ئے وویل او په سجده باندے پریوتو۔ (الطبرانی فی الکبیر رقم: ۱۲۹۳۰ وفی اسناده مقال)

د ابن عباس رضی الله عنهما یو بل روایت دے چه د شپږ (۶) آیتونو نه سیوئ تول سورت

مکی دي. (چه هغه "وَمَا قَدَرُوا اللهَ" درې آیتونه او بل "قُلْ تَعَالَوْا") (۱۵۱) درې آیتونه دي)، په یو ځل په شپه کښې نازل شوې وه او صحابه کرامو ټول سورت، شپې لیکلے وو.
(الدر المنثور والبغوی وابن کثیر)

سُدیّ د عبد الله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت کړیدې چه کله سورة الانعام نازل شو نو اویا زره ملائک ګیر چاپیره وو. حاکمؒ د جابر رضی الله عنه نه روایت کړیدې چه کله سورة الانعام نازل شو نو رسول الله ﷺ تسبیح ولوستله او وې وئیل چه ددې سورت د نازلیدو په وخت ګیر چاپیره دومره ملائک وو چه د آسمان اُفق (کنارې) ئې ډکې کړې وې. حاکمؒ وئیلی دي چه دا حدیث د امام مسلمؒ د شرط مطابق دې. (وقال الذهبي واظن هذا موضوعا لان جعفر بن عون لم يدرك السدى اسماعيل، قال الالبانى علته الانقطاع - الضعيفة: ٥٦٢٧)

فخر الدین رازیؒ د عقائدو عالمانو دا قول نقل کړیدې چه دې سورت ته دوه فضیلتونه حاصل دي: یو دا چه په یو ځل نازل شویدې، او دویم دا چه دې سره اویا زره ملائک نازل شویدي. او ددې وجه دا ده چه پدې کې توحید، نبوت او د عدل الٰهی او آخرت تذکره ده. او د توحید د منکرینو او د ملحدینو د عقائدو او افکارو رد شویدې او ددې نه د اسلام د بنیادی عقائدو د اهمیت اندازه هم کیږي.

په سنن الدارمی کښې د سیدنا عمر رضی الله عنه نه روایت شویدې چه [اَلْاَنْعَامُ مِنْ نَوَاجِبِ الْقُرْآنِ] سورة الانعام د قرآن لُب لباب (خلاصه او نچوړ) دې. (الدارمی: ٣٤٠٢ واسناده موقوفا جید-حسین سلیم اسد) نواجب: یا په معنیٰ د عزتمند او کرهٔ سره دې. یا په معنیٰ د خلاصه او نچوړ سره. (غریب الحدیث لابن الجوزی ۲/۳۹۲)

نو دا سورت ډیر غوره سورت دې خاصکر په باب د دعوت الی الله کښې ډیر ناشنا سورت دې، د یو داعی بنده دپاره ددې نه ډیره فائده اخستلے کیږي، د دعوت طریقے ئې خودلی دي، (قُلْ کلمه پکښې (۲۸) کرته ذکر ده او د مشرکینو، د مخالفینو د الزام (مُلْزَم کولو) دپاره پکښې ډیر دلائل دي، که ددې سورت نه څوك په خپله ژبه کښې انتزاع او استنباط وکړي او هغه دلائل راجمع کړي نو په ښه انداز کښې به د دعوت یو کتاب ولیکلے شي چه د کافرو، مشرکانو او اهل بدعو د اعتراض طریقے او د هغې جوابونه ذکر کوي په لنډ لنډ الفاظو او جملو سره د موجانو (چپو) په طریقه، لکه وړې وړې چپے چه راځي.

## مناسبت :

۱-مخکی د خاص شرك رد وو چه هغه د نصاراؤ شرك وو نو پدے سورت کښ په عامو مشرکانو رد دے او دلته د هغے په نسبت په رد د شرك کښ تفصیل دے۔

۲- هلته رد د شرك فی التحلیل والتحریم وو او دلته رد د شرك اعتقادی دے۔

۳- هلته د عیسیٰ علیه السلام عجز بیان شو نو پدے سورت کښ بیان د معرفة د الله تعالیٰ دے۔ او دا د توحید د بیانولو غوره طریقه ده چه د مخلوقاتو کمزوری بیانه شی او بیا د الله تعارف بیان شی۔

٤- د آخری آیت سره ئے تعلق دے (وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ) یعنی الله تعالیٰ د آسمانونو او زمکے مالك څکه دے چه هغه آسمانونه او زمکه پیدا کړیدی۔

## موضوع د سورت

ددے سورت غالباً دوه لوی موضوعات دی (۱) مشهوره موضوع :
اَلرَّدُّ عَلَی الشِّرْكِ بِجَمِیْعِ اَنْوَاعِهٖ وَعَلَی الْمُشْرِکِیْنَ بِجَمِیْعِ اَصْنَافِهِمْ۔

یعنی پدے سورت کښ د شرك په ټولو اقسامو او د مشرکانو په ټولو ډلو باندے پوره رد دے۔ که هغه شرك عقیدوی دے، که شرك فعلی (یعنی شرك فی التحلیل والتحریم) دے، که شرك فی الدعاء، شرك فی العبادة، او که شرك فی العلم دے۔ (وَعِنْدَهٗ مَفَاتِحُ الْغَیْبِ) شرك فی التصرف۔ دغه شان نور قسم شرکونه لکه شرك فی التوکل، (وَکَفٰی بِاللّٰهِ وَکِیْلًا) شرك فی الخوف، شرك فی الرجاء، دارنګه مشرکین بالملائکة، مشرکین بالجن، (وَجَعَلُوْا لِلّٰهِ شُرَکَآءَ الْجِنَّ)، مشرکین بالعباد الصالحین، مشرکین بالاصنام، مشرکین بالکواکب (لکه په واقعه د ابراهیم علیه السلام کښ) دا ټول پکښ رد شویدی او د هغوی اصلاح ئے کړیده۔ ددے وجه نه پدے سورت کښ (قُلْ) کلمه زیاته ذکر شویده څکه چه پدے سورت کښ د احتجاج او د مناظرے طریقے ذکر دی۔

(۲) موضوع : چه هغه ډیره اهمه ده او دے سورت ورته ډیره توجه ورکړیده هغه [بَیَانُ تَعْرِیْفِ اللّٰهِ نَفْسَهٗ لِعِبَادِهٖ بِاَسْمَائِهٖ وَصِفَاتِهٖ وَاَفْعَالِهٖ] الله تعالیٰ خپلو بندګانو ته خپل تعارف بیانوی په خپلو نومونو، صفتونو او افعالو سره۔ ددے وجه نه د اول نه ئے سورت په (اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ) سره شروع کړیدے، چه الله کوم ذات دے؟ هغه په کوم ځای کښ

دے؟ په څه راضي کیږي او په څه ناراضه کیږي؟ دا وپیژني۔
لکه ددے تعارف مثالونه وګورئ (هُوَ الَّذِیْ خَلَقَکُمْ مِنْ طِیْنٍ) (وَهُوَ اللّٰهُ فِی السَّمٰوٰتِ) (قُلْ لِمَنْ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ) ﴿وَلَهٗ مَا سَکَنَ فِی الَّیْلِ وَالنَّهَارِ﴾ (وَعِنْدَهٗ مَفَاتِحُ الْغَیْبِ) (وَهُوَ الَّذِیْ یَتَوَفّٰکُمْ بِالَّیْلِ) (اِنَّ اللّٰهَ فَالِقُ الْحَبِّ وَالنَّوٰی- تبوله رکوع) (قُلْ اَغَیْرَ اللّٰهِ اَبْتَغِیْ حَکَمًا) (قُلْ اَغَیْرَ اللّٰهِ اَبْغِیْ رَبًّا) (وَهُوَ الَّذِیْ جَعَلَکُمْ خَلٰئِفَ فِی الْاَرْضِ) تر آخره پورے د الله په تعارف باندے روان دے۔
که څوك په یو یو آیت کښ سوچ وکړي او په آرام آرام پرے ورشي، نو د الله معرفت به ورته ډیر زیات حاصل شي۔
او د الله د معرفت سره به درے خبرے نورے ملګرے کوي چه هغه هم د الله د تعارف سره متعلق دي (۱) وَمِنْ صِفَاتِهٖ تَعَالٰی اِرْسَالُ الرُّسُلِ:
د الله د صفاتونه یو دا دے چه هغه د بندګانو د اصلاح دپاره رسولان رالیږي نو څوك چه د نبي خلاف کوي، هغه د الله بې ادبي کوي لکه روستو به راشي ﴿وَمَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖ اِذْ قَالُوْا مَا اَنْزَلَ اللّٰهُ عَلٰی بَشَرٍ مِنْ شَیْءٍ﴾ هغه انسانو الله ونهٔ پیژندو او د هغه قدرئے ونکړو چه څوك دا وائي چه الله هیڅ کتاب نهٔ دے نازل کړے۔ او د رسول الله ﷺ شان به بیانوي۔
(۲) وَمِنْ صِفَاتِهٖ اِنْزَالُ الْکِتَابِ (وَاِنْزَالُ الْوَحْیِ) د الله د صفاتونه دا هم ده چه هغه کتابونه او وحي رالیږي۔ (۳) وَاَنْ یُّبْعَثَ الْعِبَادُ بَیْنَ یَدَیْهِ- وَبِعِبَارَةٍ: اِثْبَاتُ الْاٰخِرَةِ ۔ او الله تعالیٰ به بندګان راپورته کوي او خپلے مخے ته به ئے ودروي، (یعني آخرت راتلل حق دي)۔ او دا مکي سورت دے او په مکي سورتونو کښ اکثر د توحید، رسالت، قرآن او قیامت موضوع وي لیکن طرزونه ئے مختلف وي، دلته د الله د تعارف په طرز سره ذکر دي۔
نو دا د دعوت ښه طریقه ده چه داسے وویل شي اول الله وپیژنه بیا د معبودانو کمزوري بیان کړه، او چا چه الله نهٔ وي پیژندلے او د معبودانو کمزوري بیانه کړي نو بیا په مینځ کښ پاتې کیږي، نهٔ د غیر الله شي او نهٔ د الله تعالیٰ، ددے وجه نه د الله تعالیٰ تعارف به په دوه قسمه دلیلونو سره کوي، په عقلي دلیلونو سره او په نقلي دلیلونو سره د انبیاؤ علیهم السلام نه۔
او چونکه د الله تعارف په ټولو مسئلو کښ اهمه او مزیداره او فائده منه مسئله ده او د هر څه نه زیاته ضروري ده، او خلك ترے اکثر غفلت کوي پدے وجه د الله تعارف، د هغه ذات، صفات او د هغه حقوق پیژندل ډیر ضروري دي۔
او پدے وجه په شرك باندے رد هم شویدے چه کله بنده الله تعالیٰ وپیژني نو د نورو

معبودانو کمزوری به ورته ښکاره شي. او ددې وجه نه دې سورت کښې به د الله نومونه او صفات او د هغه افعال (کارونه) هم ډیر ذکر کیږي چه د الله پوره تعارف وشي.

او پدې سورت کښې عقباتِ سته (شپږ کنډه وونه د داعي دپاره) بیانیږي، چه دا حافظ ابن القیمؒ لیکلي دي او بیا ئے زمونږ مشائخ بیانوي چه په هر داعي د حق باندې (چه د فتنو مقابله کوي) به شپږ عقبات راځي، کله به یو کنډوو په داعي راشي په هغې کښې به څه موده ونښلي چه د هغې نه خلاص شي، بیا بل راشي او کله چه د ټولو نه وځي نو بیا د شیطان یو بل جال دې چه هغې ته تَسْلِيْطُ النَّاسِ عَلَى الْمُؤْمِنِ الدَّاعِيْ وائي. یعنې شیطان په داعي مؤمن باندې خلك رامسلط کړي چه هغوی راځي او د داعي وخت خرابوي او د الله د بندګئ او د هغه د طاعت نه ئے وړانوي نو دا اوه عقبات شو.

ددې نه معلومیږي چه داعي به ډیر لوی همت ساتي او داسې تکلیفونو ته به ځان نیسي هله به کامیابیږي او داسې به نۀ وي چه اول نه به ورته څوك غاړې ته هارونه اچوي بلکه د خلکو دشمنیانې او خبرې او مناظرې او بدنامې لګول او رپوټونه کول، د علاقې خلك وریاندې راجمع کول دا ټول به کیږي. او که څوك حق نۀ بیانوي نو هغوی ته خیر وخلاص، هیڅ تکلیف نشته او د حق په بیان کښې ضرور دا کارونه راځي نو پدې سورت کښې داعي، حق بیانولو ته ډیر مضبوط تیاروي.

د مکې په مشرکانو کښې درې مرضونه وو (۱) د الله سره شریکان جوړول.

(۲) د الله لقاء (ملاقات) نۀ منل. (قَدْ خَسِرَ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِلِقَاءِ اللهِ).

(۳) د رسالت نۀ منل چه د بندګانو نه دې یو تن د الله رسول جوړ شي، او هغه دې د عامو انسانانو په شان وي، د دوی عقیده دا وه چه که رسول راځي نو پکار ده چه هغه خوراك څکاك نۀ کوي، د هغه سره خزانې وي، په هغه باندې هیڅ تکلیف نۀ راځي. نو پدې سورت کښې به ددې درې وارو خبرو تفصیلي بیان کیږي.

## حاصل د یو رکوع

پدې کښې الله تعالیٰ لنډې لنډې خبرې کړیدي چه دې ته بعض علماء مُوجات (چپې) وائي، اول ئے خپل حمد او خپل تعارف بیان کړیدې په درې قسمه دلیلونو سره چه عُلوِی، سفلي او وَسَطِي دي. بیا ئے په کافرانو رد کړیدې چه الله دومره لوی ذات دې او بیا هم کافران د الله سره برخه داران جوړوي. بیا په (۲) آیت کښې ئے خپل قدرت بیان کړیدې او په

(۳) آیت کښې د الله د علم بیان دے۔ او (٤) آیت کښې زجر دے معرضینو ته ددے دلائلو نه۔ او د زجر طریقه دا ده چه که اعراض کوئ نو د الله د عذاب انتظار وکړئ۔
بیا (٦) آیت کښې د عذاب او هلاکت مثال نے راوړیدے او دے ته تخویف دنیوی وائی۔ بیا (۷) کښې د مشرکانو په وحی باندے اعتراض او د هغے جواب۔ بیا (۸) آیت کښې بیا اعتراض دے په وحی او د هغے جواب۔ بیا (۱۰) کښې رسول الله ﷺ ته تسلی ده چه کله مشرکانو تنگ کړو۔ او ورسره مشرکانو ته زورنه ده چه غرق کیږئ لکه د پخوانو اقوامو په شان۔

| اَلۡحَمۡدُ لِلّٰهِ الَّذِیۡ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضَ وَ |
| --- |
| ټول صفتونه د کمال خاص الله لره دی هغه ذات چه پیدا کړی نے دی آسمانونه او زمکه او |
| جَعَلَ الظُّلُمٰتِ وَالنُّوۡرَ ۬ؕ ثُمَّ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا بِرَبِّهِمۡ یَعۡدِلُوۡنَ ﴿۱﴾ |
| پیدا کړی نے دی تیارے او رڼا بیا هغه کسان چه کفر نے کړے د رب خپل سره برابر کنړی مخلوق۔ |

**تفسیر** : د کعب الاحبارؒ نه نقل دی چه سورة الانعام په کومه خبره شروع شویدے (چه هغه د الله حمد دے د الله په پیدا کولو) نو پدے باندے تورات هم شروع شویدے (لکه هغے کښې سفر الخلق اول راخی) او سورة هود چه په کومه خبره ختم شویدے ﴿فَاعۡبُدۡهُ وَتَوَکَّلۡ عَلَیۡهِ وَمَا رَبُّکَ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعۡمَلُوۡنَ﴾ نو پدے باندے تورات هم ختم شویدے۔

(سنن الدارمی رقم : ۳٤۰۲) واسناده صحیح الی کعب - حسین سلیم)۔

الله تعالیٰ ددے سورت ابتداء په (الحمد) سره وکړه ددے دپاره چه هر کافر او مسلمان آوریدونکی ته دا معلومه شی چه تمام قسم بهترین صفات صرف الله دپاره دی۔ او په هغه خلقو باندے دلیل ثابت شی چه د الله سره غیر شریکان جوړوی۔ او (الَّذِیۡ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ) نے عقلی دلیل دے پدے خبره چه د الله دپاره تمام بهترین صفات ثابت دی ځکه چه الله داسے لوی کارونه کړیدی چه دا بل هیڅوك نشی کولے۔

او دا د الله تعالیٰ تعارف دے په عقلی دلیلونو سره۔

د حمد پوره تفصیلات په سورة الفاتحه کښې دوباره وگورئ۔

**فائده**: په حمد نے شروع وکړه اشاره ده چه الله تعالیٰ په پیدا کولو د مخلوق کښې حمید (ستائیلے شوے) دے، او محمود دے عبث کار نے نۀ دے کړے، نۀ نے ظلم کړے بلکه کمال نے

کړې۔
خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ : ددې په تفسير کښې امام مسلمؒ د ابوهريره ﷺ يو مرفوع روايت ذکر کړيدې چه [خَلَقَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ التُّرْبَةَ يَوْمَ السَّبْتِ وَخَلَقَ فِيهَا الْجِبَالَ يَوْمَ الْاَحَدِ وَخَلَقَ الشَّجَرَ يَوْمَ الْاِثْنَيْنِ وَخَلَقَ الْمَكْرُوْهَ يَوْمَ الثُّلَاثَاءِ وَخَلَقَ النُّوْرَ يَوْمَ الْاَرْبَعَاءِ وَبَثَّ فِيهَا الدَّوَابَّ يَوْمَ الْخَمِيْسِ وَخَلَقَ آدَمَ عليه السلام بَعْدَ الْعَصْرِ مِنْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ فِي آخِرِ الْخَلْقِ وَفِي آخِرِ سَاعَةٍ مِنْ سَاعَاتِ الْجُمُعَةِ فِيمَا بَيْنَ الْعَصْرِ اِلَى اللَّيْلِ] (صحيح مسلم : ۷۲۳۱)۔
الله تعالىٰ د خالى (هفتې) په ورځ خاوره پيدا کړه، او د اتوار په ورځ ئې په هغې کښې غرونه پيدا کړل او د دوشنبې په ورځ ئې ونې پيدا کړې او د سه شنبې په ورځ ئې مصيبتونه پيدا کړل او د چارشنبې په ورځ ئې رڼړا پيدا کړه او د پنجشنبې په ورځ ئې په هغې کښې حيوانات خوارهٔ کړل او د مخلوقاتو په آخر کښې ئې د جُمعې د ورځې په آخرى ساعت کښې د مازيګر نه تر شپې پورې آدم ﷺ پيدا کړو۔
دا صرف ترتيب د زمکې د پيدائش دے او د آسمانونو ترتيب په سورة حم السجده کښې راځي۔
وَجَعَلَ الظُّلُمٰتِ وَالنُّوْرَ: دلته جعل بسيط مراد دے چه په معنىٰ د (خَلَقَ) سره دے ځکه چه يو مفعول ته متعدى دے۔
الظُّلُمٰتِ وَالنُّوْر : واحدىؒ وئيلى دى چه په قرآن کښې هر ځاى تيارے او رڼړا معنوى مراد وى سِوئ ددې آيت نه چه دلته ظاهرى تيارے او رڼړا مراد دى۔
مګر که معنوى تيارے لکه شرك، کفر، بدعت، جهل وغيره مراد کړے شى هم صحيح ده ځکه چه لفظ ئې احتمال لري۔
ظلمات او نور اعراض دى او سموات او ارض جواهر او ذوات دى نو الله تعالىٰ د دواړو په پيدائش قادر دے۔
ظلمات ئې جمع راوړه ځکه چه تيارے په اعتبار د اقسامو او افرادو سره ډيرى دى او نُور يو دے۔
ثُمَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا : دلته (ثُمَّ) د استبعاد دپاره دے او د استبعاد معنىٰ دا ده چه ددې تمامو کائناتى دلائلو باوجود چه د الله په يوائې خالق او مالك کيدو باندې دلالت کوى شرك کول په عقلى توګه هم (د عقل نه) لرې دى، ليکن ددې مشرکانو حال دا دے چه دوى د قطعى کائناتى دلائلو باوجود د الله سره بل څوك شريکان کوى۔
ثُمَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا : پدې کښې زجر (رټنه) يا د کفارو نه اظهار د ناراضګى ده۔

يَعۡدِلُوۡنَ : عدل په معنیٰ د برابرولو سره دے او دا برابرول په محبت او تعظیم کښې دی۔

أَیْ يَعۡدِلُوۡنَ بِاللهِ غَیۡرَہٗ فِی الۡحُبِّ وَالتَّعۡظِیۡمِ] ځکه چه مشرکانو داسے برابرول نۀ دی کړی چه هغوی وئیلی وی چه زمونږ لات، منات هم آسمان او زمکه پیدا کړیدی۔

دلته (بِرَبِّهِمۡ) متعلق دے د (يَعۡدِلُوۡن) پورے۔ یا یعدلون د عدول نه دے (اعراض او اوړیدو ته وائی) او (بِرَبِّهِمۡ) د (كَفَرُوۡا) پورے متعلق دے یعنی بیا کوم خلك چه په رب باندے کفر کوی هغوی د الله نه او د حق نه اوړی او د هغه د دلائلو نه اعراض کوی او بل چا ته توجه کوی۔

دلته الله تعالیٰ مشرك ته کافر وویلو ځکه چه د الله د حقیقت نه منکر شو پدے وجه ورته کافر وائی۔

| هُوَ الَّذِیۡ خَلَقَكُمۡ مِّنۡ طِیۡنٍ ثُمَّ قَضٰۤی |
|---|
| خاص الله تعالیٰ هغه ذات دے چه پیدا کړی یئ تاسو د خټے نه بیائے فیصله کړیده |
| اَجَلًا ؕ وَاَجَلٌ مُّسَمًّی عِنۡدَہٗ ثُمَّ اَنۡتُمۡ تَمۡتَرُوۡنَ ﴿۲﴾ |
| د نیټے د مرګ او نیټه مقرره ده (مخلوق لره) د هغه سره، بیا (هم) تاسو شك کوئ۔ |

**تفسیر** : دا دویم عقلی دلیل دے۔ او پدے کښې د شرك د باطلوالی د بیانولو نه روستو د بعث بعد الموت نه انکار کونکو باندے رد کوی۔ اګرکه د آسمان او زمکے په پیدائش باندے قادر کیدل په بعث بعد الموت باندے د قادریدو غټ دلیل دے، لیکن چونکه د جګړے ځای د انسانانو دوباره ژوندی کول دی، پدے وجه د دوی د ابتدائی پیدائش نه دلیل نیول زیات مناسب شو۔

مِّنۡ طِیۡنٍ : ۱- دلته د انسانانو د پیدائش د خاورے نه خودلے شویدے پدے اعتبار سره چه دا ټول د آدم علیه السلام اولاد دے او آدم علیه السلام د خاورے نه پیدا شوے وو۔ نو ګویا که د هر انسان په پیدائش کښې د آدم علیه السلام د پیدائش جزء موجود دے۔ ۲- یا پدے اعتبار سره چه هغه نطفه چه په هغے سره انسان موجودیږی هغه د خاورے نه جوړیږی۔

او د بعض روایاتو نه معلومیږی چه کله د انسان نطفه رَحِم ته لاړه شی نو یو ملائك هغه په لاس کښې راواخلی او په کوم ځای چه به مری د هغے ځای نه خاوره راواخلی او دے نطفے سره ئے یو ځای کړی نو پدے معنیٰ باندے هر انسان د خاورے نه پیدا شو۔ (ابو نعیم فی

کتابه عن ابن مسعودؓ- القرطبیؒ)

## د دوه اجلونو څه مصداق دے؟

ثُمَّ قَضٰۤى اَجَلًا : ددے اجل نه مراد مرگ دے۔

وَاَجَلٌ مُّسَمًّى : ۱- نه مراد د قیامت ورځ ده۔ (مجاهدؒ) نو پدے کی دوه قیامته ذکر شو، صغریٰ او کبریٰ۔ او دا غوره مصداق دے۔ ۲- ځینی وائی : اول اجل نه مراد د دنیا عمر دے او (اَجَلٌ مُّسَمًّى) نه مراد د هر انسان عمر دے تر مرگه پورے۔

۳- صاحب د فتح البیان وائی : اول اجل نه مراد مُدَّةُ الْعُمْرِ الْمَحْتُوْم دے (یعنی د حتمی (مقرر) عمر موده)۔ او دویم اجل نه زیادت په عمر کښې مراد دے چه دا د نیکئ په وجه زیاتیږی نو دواړه د الله سره مقرر دی۔

٤- یا د اول اجل نه مراد د خوب نیته ده، او د دویم اجل نه مراد مرگ دے، اول قول ظاهر دے۔

مسمی : یعنی الله مقرر کړیده او نوم ئے ورله اخستے دے چه په فلانی کال په فلانی ورځ به وی۔ او د (عِنْدَهٗ) نه مراد دا دے چه د قیامت د ورځے علم صرف د الله سره دے۔ نو د عِنْدَهٗ معنیٰ ده : د الله په علم کښې۔

ثُمَّ : یعنی د ابتدائی پیدائش او د انتهائی پیدائش مشاهده کولو باوجود د بعث بعد الموت په عقیده کښې څنگه شك او شبهه کوئ۔

اَنْتُمْ تَمْتَرُوْنَ : ۱-یعنی تاسو د الله په اُلوهیت کښې شك کوئ او هغه سره شرك کوئ۔

۲- تَمْتَرُوْنَ فِی الْبَعْثِ وَالنُّشُوْرِ۔ تاسو په دوباره ژوند او راپورته کیدو کښې شك یا جګړے کوئ۔ دا یا د مِرْیَة نه دے په معنیٰ د شك سره، یا د مِرَاء نه دے په معنیٰ د جګړے کولو سره۔ او جګړه هم د شك د وجه نه کیږی۔

| وَهُوَ اللّٰهُ فِى السَّمٰوٰتِ وَفِى الْاَرْضِ ؕ يَعْلَمُ سِرَّكُمْ |
| --- |
| او هغه ذات معبود دے په آسمانونو او په زمکه کښې، پوهیږی په پټو ستاسو |
| وَجَهْرَكُمْ وَيَعْلَمُ مَا تَكْسِبُوْنَ ﴿۳﴾ |
| او په ښکاره ؤ ستاسو او پوهیږی په هغه څه چه تاسو ئے کوئ۔ |

**تفسیر** : دا دریم دلیل دے او دا دلیل د علم د الله تعالیٰ دے۔ چه هغه په هر څه پو هه دے۔

**عنوان د آیت** : الله تعالیٰ په کائناتو کښې معبود دے او په رازونو او ښکاره او د مخلوقاتو په کسبونو خبردار دے۔

**وَهُوَ اللَّهُ** : (هو) مبتداء ده او (الله) ئے خبر دے او الله په معنیٰ د معبود سره دے یعنی دغه الله، الله دے یعنی معبود (لائق د عبادت) دے په آسمانونو او زمکه کښې۔ ټولو آسمانونو او زمکے والا ئے عبادت کوی، او دوی له پکار دی چه د دغه ذات عبادت وکړی ځکه چه هغه ئے لائق دے۔

او داسے مطلب ئے نۀ دے چه [هُوَ اللّٰهُ مَوْجُوْدٌ فِي السَّمٰوٰتِ وَفِي الْاَرْضِ] دغه الله موجود دے په آسمانونو او زمکه کښې۔ ځکه پدے سره د نصوصو سره ټکراؤ پیدا کیږی او معنیٰ هم نۀ جوړیږی۔ (ابن کثیرؒ)

**سِرَّكُمْ وَجَهْرَكُمْ** : ۱ - دے نه مراد اقوال دی که ښکاره وی او که پټ، او (مَا تَكْسِبُوْنَ) نه مراد افعال دی۔ نو تکرار نشته۔ ۲ - یا معنیٰ دا ده : هغه الله په زړونو کښې ګرځیدونکو خبرو او د اندامونو په تمامو اعمالو پو هه دے، او انسان چه څه خیر او شر کوی په هغه ټولو پو هه دے۔

د سورة الزخرف په آیت (۸٤) : ﴿وَهُوَ الَّذِيْ فِي السَّمَآءِ اِلٰهٌ وَّفِي الْاَرْضِ اِلٰهٌ وَهُوَ الْحَكِيْمُ الْعَلِيْمُ﴾ کښې هم دا مطلب بیان شویدے۔ جهمیه ؤ ددے آیت نه دلیل نیولے دے چه الله هر ځای موجود دے۔ لیکن اکثرو مفسرینو ددے قول رد کړیدے او وئیلی ئے دی چه الله تعالیٰ په عرش باندے په هغه کیفیت سره مستوی (برابر) دے څنګه چه د هغه د عظمت او جلال لائق دے۔ البته د هغه علم هر شی ته محیط دے او هغه د خپل علم په اعتبار سره هر ځای دے۔

د آیت په صحیح معنیٰ کښې د اهل سنتو مفسرینو ډیر اقوال دی :

(۱) یو قول دا دے چه په آسمانونو او زمکه کښې صرف د هغه عبادت کیږی۔ هغه ته الله وئیلے کیږی او سوا د کافرانو جناتو او انسانانو نه ټول هغه لره د خوف او رجا (امید) په حالت کښې رابلی۔ دا قول ابن جریرؒ او قرطبیؒ غوره کړیدے۔

(۲) دویم قول دا دے چه هغه الله دے چه د آسمانونو او د زمکے د هر شی ظاهر او باطن پیژنی۔ نو پدے کښې به (يَعْلَمُ) متعلق وی د (فِي السَّمٰوٰتِ وَفِي الْاَرْضِ) سره۔ أَیْ وَهُوَ اللّٰهُ يَعْلَمُ سِرَّكُمْ وَجَهْرَكُمْ فِي السَّمٰوٰتِ وَفِي الْاَرْضِ] نحاسؒ وئیلی دی چه دا قول په ټولو کښې

احسن دے۔ (نقله القرطبیؒ وابن کثیرؒ)

(۳) او دریم قول دا دے چه په آسمانونو کښې صرف هغه (الله) دے۔ دے نه روستو نوے جمله ده چه (هغه په زمکه کښې ستاسو ظاهر او باطن پیژني)۔ (دا قول ابن جریرؒ غوره کړیدے – ابن کثیرؒ)

**فائده** : هرکله چه د الله تعارف وشو نو په ذهن کښې سوال پیدا شو چه الله ته مونږ ځان څنګه ورسوو؟ نو الله فرمائي چه ما وحی رالیږلے، رسول موجود دے د هغوی لاره اختیاره کړه ما ته به راورسیږے۔

تردے ځای پورے دلائل وو اُوس زجر (رټنه) بیانیږي۔

| |
|---|
| وَمَا تَأْتِيهِم مِّنْ آيَةٍ مِّنْ آيَاتِ رَبِّهِمْ إِلَّا كَانُوا عَنْهَا مُعْرِضِينَ ﴿٤﴾ |
| او نۀ راځي دوی ته یوه نخه د نخو د رب د دوی نه مګر وی دوی د هغې نه مخ اړونکي۔ |
| فَقَدْ كَذَّبُوا بِالْحَقِّ لَمَّا جَاءَهُمْ ۖ فَسَوْفَ يَأْتِيهِمْ |
| پس یقیناً دوی دروغژن کړو حق لره هرکله چه راغلو دوی ته نو زردے چه رابه شي دوی ته |
| أَنبَاءُ مَا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ ﴿٥﴾ |
| خبرونه (عذاب) د هغې چه دوی د هغې پورے توقے کولے۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښې زجر او زورنه ده په درے څیزونو، اعراض، تکذیب او استهزاء۔ او (فَقَدْ كَذَّبُوا) کښې د دنیا تخویف (یره) بیانیږي۔

د مکے کافرانو (او د ټولو کافرانو په) باره کښې وئیلے کیږي چه کله هم دوی ته د الله د طرف نه یوه نخه راځي لکه مخکښې بعض نخے ذکر شوے، نو دوی د هغې نه د عبرت حاصلولو او فائدے حاصلولو په ځای اعراض او انکار کوي۔

**اٰيٰتِ** : ددے درے مصداقات دی (۱) الآیات القرآنیة۔ (قرآني آیتونه) (۲) الادلة الکونیة۔ (کائناتي عقلي دلیلونه) (۳) المعجزات النبویة۔ (د نبي کریم ﷺ معجزات) او ددے نه اعراض یو په دے طریقه دے چه د هغې نه تغافل (غفلت) وکړي۔ (۲) یا ترے انکار وکړي او د هغې پورے توقے وکړي۔

**فائده** : امام رازيؒ وئیلي دي چه الله تعالیٰ پدے آیتونو کښې د کافرانو احوال په درے مرتبو کښې ذکر کړل، اوله مرتبه اعراض دے چه دوی په دلائلو او بیناتو کښې سوچ او فکر

نکوی، دویمه مرتبه : دوی په دغه دلائلو تکذیب کونکی دی، او دا مرتبه د مخکښ نه زیاته ده ځکه کله اعراض کونکے تکذیب نکوی بلکه د غفلت د وجه نه ئے اعراض کړے وی، بیا کله چه په هغے تکذیب وکړی نو کله د هغه تکذیب د استهزاء حد ته نهٔ وی رسیدلے خو کله چه دے حد ته راورسی نو دے په انکار کښ آخری درجے ته راورسیدو نو الله دلته بیان کړل چه دا کفار په دغه ترتیب سره دے مرتبو ته رارسیدلی دی۔

(نقله فی المنار)

صاحب المنار وائی چه دا آیتونه ښکاره آوازونه کوی په قباحت د تقلید او په ډاګه اعلان کوی چه په آیتونو او د هغے په استدلال کښ نظر او فکر کول واجب دی او پدے خبره چه د حق تکذیب کول او د حق نه محرومیدل د اعراض په وجه کیږی او دا خبره ثابتوی چه د دین اسلام بنیاد په دلیل او برهان باندے دے، نهٔ په شان د هغه دینونو چه هغه په تقلید د احبارو او رهبانو، او رؤساؤ او کاهنانو بناء دے، لیکن مسلمانانو ددے بیان نه روستو څه وکړل؟ اکثر د دوی نه د پخوانو په طریقو روان شو او د خپل دین حجت او دلیل ئے په تقلید د فلان او فلان باندے برباد کړو۔ اه۔

كَذَّبُوا بِالْحَقِّ : د حق نه مراد یا خو قرآن کریم دے، یا د نبی کریم ﷺ مبارکه ذات دے۔

پدے آیت کښ د مکے کافرانو ته زورنه او دهمکی ورکړے شویده چه که دوی حق دروغژن ګڼړی نو پوهه دے شی چه ددے تکذیب انجام به دوی ضرور مونده کړی، نو همدغه شان اُوشوه چه د بدر په میدان کښ د ګازرو او مولو په شان پریکړے شو۔

انباء : انباء ۱- یوه معنیٰ ده خبرونه د عذاب۔ ۲- حاصل معنیٰ ئے ده عُقُوبات (سزاګانے) دنیوی او اخروی۔

(مَا كَانُوا) د (ما) نه مراد جنت او جهنم او قیامت راتلل دی۔ یعنی زر دے چه دوی به وینی هغه کارونه چه دوی ورپورے توقے کولے چه دا خو حق او رشتیا دی او الله به دوی ته د دوی دروغ او افتراء بیان کړی نو کله چه د قیامت ورځ شی نو الله به دوی ته ووائی ﴿ هٰذِهِ النَّارُ الَّتِي كُنْتُمْ بِهَا تُكَذِّبُونَ ﴾ (الطور: ۱٤) دا هغه اُور دے چه تاسو به دروغژن ګڼړلو۔ (السعدی)

يَسْتَهْزِءُونَ : پدے کښ اشاره ده چه دوی صرف تکذیب نهٔ دے کړے بلکه ورسره استهزاء ئے هم وکړه۔ ځکه د حق تکذیب په دوه قسمه دے یو د جهالت د وجه نه وی نو دا څه نا څه عذر دے، دویم تکذیب د حق د استهزاء په طریقه وی۔ یعنی حق وپیژنی لیکن بیا هم ورپورے توقے کوی نو دا ډیر لوی جرم دے پدے وجه الله تعالیٰ دلته (يَسْتَهْزِءُونَ) لفظ

استعمال کړو نهٔ (يَكْذِبُوْنَ). او دا د کافرو طریقه ده چه د دین او نبی کریم ﷺ او قرآن پورے مسخرے کوی او د هغوی اهانت د خلکو په زړونو کښې کینول غواړی۔

**حکمة**: داسے آیت په سورة الشعراء (٦/٥) آیت کښې هم راغلے دے لیکن هلته (فَسَيَأْتِيهِمْ) په سین سره راغلے دے او دلته (فَسَوْفَ) راغلے دے، او شعراء کښې ئے مفعول د (كَذَّبُوا) حذف کړیدے. ددے حکمة دا دے چه سورة الانعام په نزول کښې مقدم دے په شعراء باندے نو شعراء کښې ئے حواله ورکړیده په انعام باندے، دارنګه سین کښې معنیٰ د قرب ده او سوف کښې د لرِ بعد ده او د شعراء د نزول زمانه هم نزدے ده او د انعام لرے ده۔ (روح المعانی والمنار)

| اَلَمْ يَرَوْا كَمْ اَهْلَكْنَا مِنْ قَبْلِهِمْ مِّنْ قَرْنٍ |
|---|
| آیا نهٔ ګوری دوی چه څومره هلاك کړیدی مونږ مخکې د دوی نه قومونه (پیړئ) |
| مَّكَّنّٰهُمْ فِي الْاَرْضِ مَا لَمْ نُمَكِّنْ لَّكُمْ |
| ځای ورکړے وو مونږ هغوی ته په زمکه کښې هغه چه ځای نهٔ دے درکړے مونږ تاسو ته |
| وَاَرْسَلْنَا السَّمَآءَ عَلَيْهِمْ مِّدْرَارًا وَّجَعَلْنَا الْاَنْهٰرَ |
| او رالیږلو مونږ باران په هغوی باندے پرله پسے (په شیبو) او ګرځولی وو مونږ نهرونه |
| تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهِمْ فَاَهْلَكْنٰهُمْ بِذُنُوْبِهِمْ |
| چه بهیدل به لاندے د هغوی نه نو هلاك کړل مونږ هغوی لره په سبب د ګناهونو د هغوی |
| وَاَنْشَاْنَا مِنْۢ بَعْدِهِمْ قَرْنًا اٰخَرِيْنَ ﴿٦﴾ |
| او راپیدا کړل مونږ روستو د هغوی نه قومونه نور۔ |

**تفسیر**: په دنیا کښې د عقوباتو مثال راوړی چه پخوانو امتونو (عادیانو، ثمودیانو فرعونیانو) نه عبرت واخلئ۔

فرمائی: آیا دے خلقو د هغه قومونو حال نهٔ دے پیژندلے چه د دوی نه مخکښې تیر شویدی چه کله هغوی د الله نه سرکشی اُوکړه نو الله هغوی لره څنګه هلاك کړل، حال دا چه هغه قومونه د مکے د کافرانو نه په شان او شوکت او مرتبه او دبدبه او قوت او جبروت کښې ډیر زیات وو۔ الله تعالیٰ هغوی ته مهلت ورکړو، په هغوی ئے د نعمتونو باران وکړو،

مال او دولت او آل او اولاد او لښکرے او فوجونه او دنیاوی اعتبار سره ئے لوی مقام ورکړو، بارانونه به پرے ډیر راوریدل او نهرونه ئے ورله جاری کړی وو او کله چه هغوی ددے نعمتونو د شکر ادا کولو په ځای په ګناهونو کښې مخکښې لاړل نو آخر هم الله د هغوی د ګناهونو په وجه هغوی راونیول او هلاك ئے کړل او نورو قومونو ته ئے موقع ورکړه. مقصد دا دے چه کله ددے قومونو دا حال شو نو الله د مکے کافران هم هلاك کولے شی او دارنګه نور.

قَرْنٍ : [أَيِ الْمُقْتَرِنُوْنَ فِيْ زَمَانٍ وَاحِدٍ] ـ قرن هغه خلکو ته وائی چه په یوه زمانه کښې موجود وی. (المنار)

د قرن د زمانے په تحدید کښې غوره قول دا دے چه دا اویا کاله یا اتیا کالو ته وائی. زجاج وائی : قرن هغه اجتماعی حالت ته وائی چه په هغے باندے یو قوم وی، یعنی هغه زمانے والا خلك چه په هغوی کښې نبی وی یا یو عالم وی یا بادشاه وی اګرکه هرڅومره عمرئے وی. نو د نوح عليه السلام قوم یو قرن شو اګرکه زر کاله عمرئے اُورد شوے وو، او قوم عاد یو قرن او قوم ثمود یو قرن او قوم صالح یو قرن دے. او هدا قول د قرآن د استعمال سره زیات مناسب دے، او قرن کله په معنیٰ د نفس زمانے سره هم استعمالیږی. (المنار)

مَّكَّنّٰهُمْ : که څوك ووائی چه هغوی به پدے وجه هلاك شوی وو چه قدرت او طاقت به ئے نۀ وو نو الله فرمائی : ما هغوی ته تمکین، (قدرت) او مضبوط ځایونه ورکړی وو.

د تمکین نه مراد قدرت دے یا مکانات، بنګلے او بادشاهی او مالداری ده.

مِّدْرَارًا : كَثِيْرًا بِلَا اِضْرَارٍ. دا هغه باران دے چه ډیر وی او ضرر پکښې نۀ وی. یا پرله پسے د وخت موافق. یعنی باغونه او خوراکونه او میوه جات ئے هم فراخه وو.

بِذُنُوْبِهِمْ : چه د هغوی لوی ګناهونه شرك او تکذیب د حق وو.

قَرْنًا اٰخَرِيْنَ : یعنی د مخکنو نه روستو مے نور خلك راپیدا کړل لیکن کله چه هغوی هم تکذیب وکړو نو هغوی هم هلاك شو او سورة المؤمنون (٤٤) آیت کښې دی ﴿فَاَتْبَعْنَا بَعْضَهُمْ بَعْضًا وَّجَعَلْنٰهُمْ اَحَادِيْثَ﴾. یعنی ما ورپسے کړل بعضے د بعضو پسے او هغوی مے د خلکو دپاره د عبرت قصے جورے کړے.

| وَلَوْ نَزَّلْنَا عَلَيْكَ كِتٰبًا فِيْ قِرْطَاسٍ |
| --- |
| او که نازل کړے وے مونږ په تا باندے کتاب (په یو ځای) په کاغذونو کښې |

| فَلَمَسُوهُ بِأَيْدِيهِمْ لَقَالَ الَّذِينَ |
|---|
| نو مسه کړے وے دوی هغه په لاسونو خپلو، خامخا وئیل به هغه کسانو |
| كَفَرُوْٓا اِنْ هٰذَآ اِلَّا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿٧﴾ |
| چه کفرئے کړیدے نهٔ دے دا مګر جادو دے ښکاره۔ |

**تفسیر**: دلته نه د مشرکانو اعتراضات شروع کیږی۔

دا د تکذیب بالحق یو صورت او محسوس نمونه او مثال بیانوی، د دوی د سخت تکبر حال دا وو چه دوی به رسول الله ﷺ ته وئیل چه ته دا قرآن په یادو لولے نو کیدے شی چه دا ته د ځان نه جوړوے، یا به کوم پیرے درته دا ښائی لکه دوی به بار بار داسے قسم اشکالات په رسول الله ﷺ باندے کول ځکه چه څوك حق نهٔ منی نو هغوی له د اعراض ډیرے بهانے ورځی، کله به وائی دا وښایئ او دا وښایئ نو د دوی یو اشکال دا وو چه که الله په خپل رسول باندے په کاغذ باندے لیکلے شوے یو کتاب نازل کړے وے او د بره نه دوی راروان لیدلے وے، او بیا دوی هغے له په خپلو لاسونو ګوتے وروړے وے او پوهه شوی وے چه دا واقعی په کاغذ باندے لیکلے شوے کتاب دے۔ نو الله فرمائی : بیا به هم دوی په کبر او عناد کښې راتللے او دا به ئے وئیلے چه دا خو ښکاره جادو دے، داسے څنګه کیدے شی چه الله تعالیٰ د آسمان نه لیکلے شوے کتاب نازل کړی !!۔ ددے وجه نه ددوی تعنتی اعتراضاتو جوابونو ته هم حاجت نشته، خپل کار به کوی لکه ډیر مجرمان اُوس په اهل حقو اعتراض کوی چه نیا په قرآن او حدیث کښې وښایه، کله به وائی میخه پکښې وښایه۔ د هغه دا مطلب نهٔ دے چه په نکاح کښې د نیا حلالوالے او حراموالے معلوم کړی بلکه ستا غلے کول ئے مطلب دے او قرآن او حدیث سپکوی نو دوی ته جوابونه ورکول نهٔ دی پکار۔

حافظ ابن کثیرؒ لیکی چه د محسوس دلائلو د لیدلو باوجود د دوی دا استکبار داسے دے لکه چه الله د دوی په باره کښې د سورة حجر په آیتونو (١٥/١٤) کښې فرمایلی دی : ﴿وَلَوْ فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ بَابًا مِّنَ السَّمَآءِ فَظَلُّوْا فِيْهِ يَعْرُجُوْنَ لَقَالُوْٓا اِنَّمَا سُكِّرَتْ اَبْصَارُنَا بَلْ نَحْنُ قَوْمٌ مَّسْحُوْرُوْنَ﴾ چه ((که مونږ په دوی باندے د آسمان یو دروازه راکولاوه کړو او دوی په هغے کښې ختل شروع کړی نو بیا به هم وائی چه زمونږ سترګے بندے کړے شویدی بلکه مونږ باندے جادو شویدے))۔ او په سورة الطور آیت (٤٤) کښې فرمایلی دی : ﴿وَاِنْ يَّرَوْا كِسْفًا مِّنَ

السَّمَآءِ سَاقِطًا يَقُوْلُوْا سَحَابٌ مَّرْكُوْمٌ ﴾ ( او كه دوى د آسمان نه راپريوتے ټكړه هم ووينى نو وائى به چه دا خو لاندے باندے وريځ ده)۔ يعنى د دوى د كبر او عناد حال دا دے چه انتهائى درجه ښكاره نخو ليدلو باوجود به هم دوى د خپل زړهٔ منلے تاويل كوى۔ ليكن دوى د الله د طرف نه د رشد او هدايت په دلائلو منلو سره په الله او د هغه په رسول ايمان نهٔ راوړى۔

(تفسير ابن كثير)

فَلَمَسُوْهُ بِاَيْدِيْهِمْ : لمس باليد كنايه ده د ښكاره ليدلو نه په خپلو سترګو۔

لَقَالَ الَّذِيْنَ : ځكه چه څوك عنادى شى نو هيڅ قسم دليل هغه لره فائده نهٔ وركوى۔

سِحْرٌ : يعنى دا كتاب جادو دے ځكه چه اثر پكښې دے او د جادو په ذريعه راخكته كړے شويدے۔ يا سحر په معنىٰ د كذب او باطل سره دے يعنى دا باطلے خبرے دى۔

| وَقَالُوْا لَوْلَآ اُنْزِلَ عَلَيْهِ مَلَكٌ ۭ وَلَوْ اَنْزَلْنَا مَلَكًا |
|---|
| او وائى دوى ولے نهٔ شى نازليدے په دهٔ ملائك او كه مونږ نازل كړو ملائك |
| لَّقُضِيَ الْاَمْرُ ثُمَّ لَا يُنْظَرُوْنَ ﴿٨﴾ |
| خامخا فيصله به وشى د كار د دوى. بيا به دوى له مهلت نشى وركيدے۔ |

**تفسير** : د دوى بل اعتراض : چه الله دے يو ملائك راوليږى او هغه دے خلكو ته بيان وكړى چه دا د الله رسول دے نو بيا به ئے مونږ ومنو۔ لكه سورة فرقان (٧) آيت كښې دى : ﴿فَيَكُوْنَ مَعَهٗ نَذِيْرًا﴾۔ چه هغه ملائك خلكو ته يره وركړى چه كه ددهٔ خبره مو ونهٔ منله نو هلاكيږئ۔

دارنګه دويم اعتراض : چه بشر رسول راليږى نو ملائك چه نُور دے هغه ولے رسول نهٔ راليږى؟ نو دلته ددے دواړو خبرو جواب بيانيږى۔

الله ورته جواب كوى : چه د الله اصول دا دى چه كله ملائك رسول راوليږى او د هغه خبره څوك ونهٔ منى نو سمدست عذاب نازلوى او مهلت نهٔ وركوى۔ ﴿مَا نُنَزِّلُ الْمَلٰٓئِكَةَ اِلَّا بِالْحَقِّ وَمَا كَانُوْٓا اِذًا مُّنْظَرِيْنَ﴾ (الحجر : ٨) يعنى (ملائك مونږ په عذاب سره راليږو او په دغه وخت كښې به دوى ته مهلت نهٔ وركړے كيږى)

او كه په دوى باندے سمدست عذاب راشى نو بيا خو نظام خرابيږى، پدے وجه الله تعالى بندګان په امتحان كښې اچولى دى ځكه چه په دوى كښې روستو څه نيكان خلك پيدا

کیږی نو ښکه ورله دا مشران نهٔ ختموی۔

لَقُضِيَ الْاَمْرُ : فیصله به وشی د کار د دوی یعنی هلاك به شی۔

لَا يُنظَرُوْنَ : د نظرۃٌ نه دے په معنیٰ د مهلت سره۔

| وَلَوْ جَعَلْنٰهُ مَلَكًا لَّجَعَلْنٰهُ رَجُلًا |
|---|
| او که چرته گرځولے مونږ دا رسول ملائك خامخا گرځولے به وو مونږ هغه لره سړے (په شکل کی) |
| وَّ لَلَبَسْنَا عَلَيْهِمْ مَّا يَلْبِسُوْنَ ﴿۹﴾ |
| او خامخا شك به راوستے وے مونږ په دوی باندے هغه چه اُوس دوی شك کوی۔ |

**تفسیر** : دا د دویم سوال جواب وو چه همدغه ملائك دِے رسول راولیږلے شی؟ نو الله فرمائی : که ما دغه رسول ملائك جوړ کړے وے نو هغه ته به ئے بیا شکل د سړی ورکولے (بشر متشکل) به وے، نو هغه به خلکو ته وئیلے چه اے خلکو ! زهٔ د الله رسول یم او زهٔ په حقیقت کښې ملائك یم، نو خلکو به ورته وئیل چه تهٔ څنګه ملائك ئے ستا خو پوزه خوله او اندامونه دی، او خوراك څښاك کوے، نکاح کوے، نو بیا به په دوی باندے نور هم ډیر گډوډوالے راغلے وے د هغے نه هم زیات چه دوی اُوس په ځانونو باندے په زوره گډوډوالے راوستے دے ځکه چه دا قانون دے چه په حق او اهل حقو باندے اعتراضاتو کولو سره انسان په دین کښې گډوډ کیږی او شکونه ئے زیاتیږی۔ او ځان ته په زوره د حق لاره بندوی لکه دے آیت کښې فکر وکړه۔

او که هغه په خپل ملائك کیدو باندے د قرآن یا کومے معجزے نه دلیل نیولے نو دوی به دوباره دروغژن کولے لکه څنګه چه دوی نبی کریم ﷺ دروغژن کریدے۔

وَّ لَلَبَسْنَا عَلَيْهِمْ مَّا يَلْبِسُوْنَ : یعنی دوی خو اُوس ځانونه په تلبیس (گډوډوالی) کښې اچولی دی او په هغه وخت کښې به ما دوی په گډوډوالی کښې اچولی وے ځکه چه ملائك به په شکل د انسان وے او ځان ته به ئے ملائك وئیلے نو خلکو به نهٔ منلے چه ستا دعوه غلطه ده نو په هغه وخت کښې به تلبیس به زیات وے۔

لبسنا : د لَبَسَ يَلْبِسُ لَبْسًا نه دے په معنیٰ د گډوډوالی او تلبیس سره۔ او لُبْسًا د سَمِعَ باب نه په معنیٰ د جامو اغوستلو سره دے، هغه دلته نهٔ دے مراد۔

وَلَلَبَسْنَا فِیْ ذٰلِكَ الْوَقْتِ مَا يَلْبِسُوْنَ الْآنَ عَلٰی اَنْفُسِهِمْ ۔ په دغه وخت کښې به مونږ په دوی

بانـدے هغه تلبیس راوستے وے کوم چه دوی اُوس په خانونو باندے راوستے دے. نو په دے آیت کښې د انسانانو نه د رسول رالیږلو حکمت بیان شو نهٔ د ملائکو نه.

| وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِّنْ قَبْلِكَ فَحَاقَ |
|---|
| او یقیناً توقے کړے شویدی په ډیرو رسولانو پورے مخکې ستا نه نو راګیر کړل |
| بِالَّذِيْنَ سَخِرُوْا مِنْهُمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ﴿۱۰﴾ |
| هغه کسانو لره چه توقے ئے کولے د دوی نه (عذاب) د هغه څه چه دوی ورپورے توقے کولے. |

**تفسیر** : په دے اعتراضونو سره به رسول الله ﷺ ته څومره تکلیف رسیدلے وی چه دا صرف داعی شخص محسوس کولے شی نو پدے وجه پدے آیت کښې الله تعالیٰ یو رسول الله ﷺ تسلی ورکوی او بل دغه مجرمانو ته دهمکی ده چه تاسو به د خپلو توقو انجامووینئ.

نبی کریم ﷺ ته تسلی ورکړے کیږی چه که ستا قوم تا پورے توقے کوی نو دا څه د تعجب خبره نهٔ ده، ستا نه مخکښې انبیاؤ (علیهم السلام) سره هم د هغوی قومونو داسے سلوك کړے وو نو په دنیا کښې د ذلت او رسوائی سره هلاك کړے شو، او په آخرت کښې دردناك عذاب د هغوی انتظار کوی. پدے آیت کښې نبی ﷺ او مؤمنانو دپاره په دنیا کښې د مدد او فتح وعده او په آخرت کښې د ښائسته انجام زیرے هم دے. نو همدغسے اُوشوه چه ذلت او رسوائی او قتل او هلاکت د مکے کافرانو قسمت جوړ شو. او نبی کریم ﷺ او مسلمانانو ته عزت او غلبه نصیب شوه.

مِّنْ قَبْلِكَ : نو دلته وقف دے یعنی هغوی صبر کړے وو نو تهٔ به هم صبر کوے.

فَحَاقَ بِالَّذِيْنَ : (ماکانوا) دا فاعل د (حَاقَ) دے. او حاق معنیٰ ده نازلیدل او راګیرول. او په (ماکانوا) کښې مضاف پټ دے. اَیْ عَذَابَ مَا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ . یعنی عذاب د هغه شی چه دوی د هغے پورے توقے کولے چه هغه رسولان او کتابونه دی. یعنی د رسولانو او معجزاتو پورے ئے توقے کولے نو د هغے عذاب پرے راغلو. یا د (مَا) نه مراد خپله عذاب دے یعنی پیغمبرانو به دوی ته د عذاب دهمکی ورکوله نو دوی به د دغه عذابونو پورے توقے شروع کړے نو دغه عذاب دوی لره راګیر کړل د کوم پورے چه دوی توقے کولے.

قُلْ سِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ ثُمَّ انْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِيْنَ ﴿١١﴾

ته ووایه وګرځئ په زمکه کښې بیا وګورئ چه څنګه وو انجام د تکذیب کونکو (حق لره)

**تفسیر: مضمون**: پدے آیت کښې د عبرت اخستو امر دے، بیا (۱۲) آیت کښې څلور خبرے ئے بیان کړیدی چه هغه د مخکښې مضمون سره متعلق دی۔ بیا (۱۳) آیت کښې د الله تعارف دے۔ بیا (۱٤) کښې رد په شرك او د مشرکانو په دعوت باندے چه هغه د غیر الله عبادت دے۔ تر (۱٦) آیت پورے، بیا په (۱۷، ۱۸) آیت کښې د مشرکانو د معبودانو کمزوری او الله خپل طاقت بیانوی۔

**قُلْ** : دا جواب د سوال دے چه کوم خلك الله تعالیٰ هلاك کړیدی چه هغوی به استهزاء کوله نو الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ ته ووئیل چه که د مکے کافران په قرآن کښې د ذکر شوی قومونو په واقعاتو کښې شك کوی، نو ته ورته اُووایه چه په زمکه کښې وګرځئ او د انبیاؤ دروغژن کونکو قومونو حال معلوم کړئ چه څنګه الله هغوی هلاك کړل۔ په تیر شوی آیت کښې نبی کریم ﷺ ته چه کومه تسلی ورکړے شویده ددے دا تتمه ده او ددے خبرے تاکید دے چه ددے کافرانو انجام به هم د مخکنو په شان وی۔ نو د الله دا وعده د بدر په میدان کښې پوره شوه۔ دارنګه په نورو مواقعو کښې هم۔

**سِيْرُوْا** : سیر دوه قسمه دے یو په قدمونو باندے ګرځیدل، او بل په عقول او فکر کولو سره یعنې سوچ وکړئ او تاریخ مطالعه کړئ۔ (معالم التنزیل للبغوی۲/۱۳۰)

**ثُمَّ انْظُرُوْا** : یعنې په سترګو به ئے هم وینئ چه شام، اردن او یمن ته ورشئ، ډیر اقوام مکذبه پراته دی۔ او نظر نه مراد سوچ او فکر کول هم دی۔

**عَاقِبَةُ** : عاقبة (انجام) څکه ذکر کوی چه کافر اول کښې په مزو کښې وی لیکن روستو تباه شی، د تکذیب او کفر انجام خراب وی۔

قُلْ لِّمَنْ مَّا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ قُلْ

ته ووایه ! چا دپاره دے اختیار د هغه څه چه په آسمانونو او زمکه کښې دی، ته ووایه !

لِّلّٰهِ ؕ كَتَبَ عَلٰى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ ؕ لَيَجْمَعَنَّكُمْ

خاص الله لره دے، لازم کړیدے هغه په خپل نفس باندے رحم کول خامخا راجمع کوی به تاسو لره

| اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ لَا رَيْبَ فِيْهِ ؕ اَلَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا |
|---|
| ورځ د قيامت ته، نشته هيڅ شك په هغې كښې، هغه كسان چه تاوان كښې ئې اچولي دي |
| اَنْفُسَهُمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۲﴾ |
| ځانونه خپل پس دوی ايمان نه راوړي۔ |

**تفسير** : پدے آيت كښې د الله د قدرت بيان دے په تعذيب (عذاب وركولو) د مشركانو۔ بل بيان رحمت د الله تعالىٰ دے، دريم اثبات د ورځې د قيامت، او څلورم بيان د عناد د كافرانو دے، چه دا تولے د يو بل سره تړلي خبري دي۔

ربط :

الله تعالىٰ ستاسو په عذاب قادر دے داسے مهٔ وايئ چه مونږ زورور او طاقتور يو۔

او دا اوله جمله دليل عقلي اعترافي سكوتي دے يعني چه تهٔ ورته ووائے چه د زمكے او د آسمانونو مالك څوك دے؟ نو هغوی به غلي شي ځكه چه دے كښې به هغوی څه ووائی نو الله تعالىٰ خپل نبي ته وائي چه ته ورته جواب وركړه چه دا د الله دي، د الله نه سوىٰ بل څوك كيدے شي، نو هركله چه ټول كائنات د الله دي، نو آيا هغه پدے قادر نهٔ دے چه په تاسو باندے آسمان راګوزار كړي يا د بره نه عذاب راولي، يا تاسو زمكے ته راكاږي۔

كَتَبَ عَلٰى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ : د مخكښې خبرے نه هيبت پيدا شو نو اُوس د الله د رحمت بيان كوي دپاره د رجاء (اميد) پيدا كولو۔ او دا هم جواب د سوال دے چه الله پدے خلكو باندے سمدست عذاب ولے نهٔ راولي؟ نو جواب وشو : كتب على نفسه الرحمة۔ الله په خپل ځان باندے رحمت ليكلے دے۔ ❁ او د الله د رحمت نه يوه دا ده چه هغه بندګانو ته په جلتئ عذاب نهٔ وركوي، يو مشرك او كافر به سل كاله كفر او شرك كوي الله به ئې نهٔ هلاكوي نو دا د الله مهرباني ده په هغه باندے، ورنه په يوه ورځ كښې به هلاك شوے وے۔ ❁ دارنګه د الله رحمت دا هم دے (تَوْبَةُ مَنْ يَّتُوْبُ) كه څوك توبه وباسي نو هغه ورله توبه قبلوي او شرك ورته معاف كوي۔ ❁ او دا رحمت الله تعالىٰ د ايمان والو دپاره په خپل ځان ليكلے دے چه جنت ته به ئې داخلوي۔

❁ او ددے رحمت صفت تقاضا وه چه الله انسانانو ته فطرتِ سليمه وركړو، خپل معرفت او توحيد طرف ته ئې د هغوی لارخودنه وكړه، انبياء عليهم السلام ئې راوليږل او كتابونه

ئې نازل کړل. په صحيحينو کښې روايت دے: ((الله فرمائی: اِنَّ رَحْمَتِيْ سَبَقَتْ غَضَبِيْ) بيشکه زما رحمت زما په غضب باندے غالب دے)). (صحيح بخاری: ۷۴۲۲)

كَتَبَ عَلٰى نَفْسِهِ: كتب کې معنىٰ د لزوم پرته ده.

نو دلته وقف دے بل سوال پيدا شو چه هرکله الله تعالىٰ خپل ځان باندے رحمت وليکلو نو دوی دپاره به هيڅ ځاي کښې عذاب نۀ وی؟ نو الله وفرمايل:

لَيَجْمَعَنَّكُمْ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ : يوه ورځ به راځی چه الله تعالىٰ به مجرمانو ته پکښې سزا ورکوی. نو مجرمانو له په تاخير د عذاب باندے (کوم چه اُوس رحمت دے) دهوکه کيدل نۀ دی پکار، قيامت کښې به ئې ورکوی، ولے که مجرم ته سزا ورنکړے شی، نو دا د الله د عدل او حکمة خلاف ده. نو اُوس خو تاخير د عذاب د دوی دپاره رحمت دے ليکن عذابونه د دوی د بدو اعمالو په نتيجه کښې د دوی په انتظار کښې دی.

او دا لَيَجْمَعَنَّكُمْ د مخکښې (لِمَنْ مَّا فِى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ) سره هم لګی چه هرکله هرڅه د الله دی نو الله پدے قادر دے چه قيامت راولی، هيڅوك منع کونکے ئې نشته.

دا رنګه د كَتَبَ عَلٰى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ سره ئې تعلق دے چه کمال رحمت د الله تعالىٰ به په قيامت کښې رابنکاره کيږی لکه حديث کښې دی چه الله تعالىٰ سل رحمتونه پيدا کړل يو ئې د هغے نه دنيا ته نازل کړو. الحديث. (بخاری ۶۰۰۰ ومسلم)

اَلَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ : ددے جملے څه مطلب دے چه کوم کسان ځان په تاوان کښې واچوی نو ايمان نۀ راوړی؟ دے کښې دوه بعيد تفسيرونه شويدی او يو ظاهر دے،

(۱) خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ بِالشِّرْكِ (خازن) يعنی چه ځان مشرکان کړی نو بيا ايمان نۀ راوړی. ليکن دا معنىٰ هم سمه نۀ برابريږی ځکه چه ډيرو مشرکانو ځان په شرك سره په تاوان کښې اچولے وو او بيا ئې هم ايمان راوړو.

(۲) خينی وائی: [خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ فِىْ عِلْمِ اللّٰهِ] (المنار) يعنی کوم کسان چه د الله په علم کښې تاوانيان دی نو هغوی ايمان نۀ راوړی، او څوك چه د الله په علم کښې تاوانيان نۀ دی نو هغوی ايمان راوړی. ددے خبرے لږه فائده شته چه پدے دلائلو به بعض کسان ايمان راوړی او بعض نۀ، ليکن ډيره فائده ئې نۀ ښکاره کيږی.

(۳) ظاهر تفسير دا دے چه دلته د خسران نسبت دوی ته شويدے چه دوی ځانونه په تاوان کښې اچولی دی [خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ بِزَوَالِ الْفِطْرَةِ وَالْعَقْلِ السَّلِيْمِ وَالْاِسْتِعْدَادِ الْقَرِيْبِ بِمُشَاهَدَةِ الرَّسُوْلِ وَذٰلِكَ بِالْعِنَادِ] يعنی دے خلکو ځان په تاوان کښې واچولو چه فطرت او

روغ عقل او نږدې استعداد او قابلیت چه د رسول الله ﷺ په لیدلو سره حاصلیدو هغه دوی زائل کړو په ضد او عناد سره، نو دوی ددې تولو څیزونو په ذریعه بیخي هدایت ته نږدې وو چه فطرت او عقل سلیم ئې لرلو او د رسول الله ﷺ معجزات ئې لیدل لیکن ضد کښې راغلل نو دغه څیزونه ترې زائل شو نو هدایت ته ونۀ رسیدل نو ځکه ایمان نۀ راوړی چه ذرائع د ایمان ئې ختم کړل۔ نو لنډ مطلب دا چه عناد سبب د عدم ایمان د دوی دې۔ او دغه تاوان دې په خپل لاس۔

علامه محمد رشید رضا وائي: فَمَنْ خَسِرَ نَفْسَهُ بِالتَّقْلِيدِ لَا يَنْظُرُ وَلَا يَسْتَدِلُّ حَتَّى يَهْتَدِيَ إِلَى الْإِيمَانِ۔ ځوك چه په تقلید کولو سره خان په تاوان کښې واچوی نو هغه سوچ او فکر نۀ کوی او نۀ دلائلو ته ګوری دې دپاره چه ایمان ته لاره ومومي۔ نو که دې چرته وګوری او حق ورته په دلیل سره ښکاره شي نو د ارادې د ضعف نه روستو دې کیني او د ملامت ګرو د ملامتیا برداشت ونکړې شي۔ (تفسیر المنار۷/۲۷٤)

| وَلَهُ مَا سَكَنَ فِي الَّيْلِ وَالنَّهَارِ ط |
| --- |
| او خاص د هغه دپاره هغه څه دي چه آرام کوی په شپه کښې او (خوځیږی) په ورځ کښې |
| وَهُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ﴿۱۳﴾ |
| او هغه هرڅه آوری، په هر څه پوهه دې۔ |

**تفسیر**: دا د الله د تعارف بل دلیل دې،

سَكَنَ : د سکون نه هم دې په معنیٰ د آرام سره او د سکنیٰ نه دې په معنیٰ د وسیدو سره۔ مَا سَكَنَ فِي الَّيْلِ وَالنَّهَارِ : نه مراد ټول عالَم دې۔ نو پدې کې د الله تعالیٰ د پوره تصرف او ملکیت بیان دې۔ په اوله معنیٰ باندې ځینی مفسرین دلته (والنهار) سره یو قید پټ راوباسی [أَيْ وَتَنْتَشِرُ فِي النَّهَارِ] یعنی خوځیږی په ورځ کښې، دلیل پرې د سورة الفرقان آیت (٤٧) دې ﴿ وَجَعَلَ النَّهَارَ نُشُورًا ﴾۔ او ځینی وائي چه تقدیر ته حاجت نشته او که کلام په خپل ظاهر پریخودې شي هم صحیح ده، ځکه چه مَا سَكَنَ ټول مخلوقات ته شامل دې ځکه چه هیڅ مخلوق داسې نشته چه هغه ته سکون نۀ وی حاصل ترڅو چه متحرك په حالت د حرکت هم متصف کیږی په سکون لکه چه دا خبره تحقیق شویده چه تفاوت د حرکاتو په سرعت او بطوء سره پدې وجه دې چه په مینځ کښې سکنات کم یا زیات

وی۔ (القاسمی)

بیا مَا سَكَنَ فِي اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ په (مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ) کښې داخل وو نو دوباره ئې ددے تصریح ولے وکړه؟ نو وجه دا ده چه پدے کښې اشاره ده چه د الله تعالیٰ تصرفات په پټو ځیزونو کښې هم شته اګرکه هغه چا ته په سترګو نهٔ ښکاره کیږی ددے وجه نه ئې د شپے ذکر مخکښې راوړو، او (نهار) ئې پرے عطف کړو دپاره د تکمیل د خبرے۔ (المنار)

دارنګه مخکښې ما فی السموات والارض کښې مکان او مکانیات ته اشاره وه او په ذکر د لیل او نهار کښې زمان او زمانیات ته اشاره ده، نو الله د دواړو مالك دے۔ (قاله ابومسلم الاصفهانی-محاسن التاویل للقاسمی)

السَّمِيعُ : یعنی د پټو خبرو آوریدونکے دے هرڅومره چه پټې وی۔

| قُلْ أَغَيْرَ اللّٰهِ أَتَّخِذُ وَلِيًّا فَاطِرِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ |
|---|
| ته ووایه! آیا سویٰ د الله نه ونیسم بل دوست، چه پیدا کونکے دے د آسمانونو او د زمکے |
| وَهُوَ يُطْعِمُ وَلَا يُطْعَمُ قُلْ إِنِّيٓ اُمِرْتُ |
| او هغه خوراك ورکوی او هغه ته خوراك نشی ورکیدے، ته ووایه! یقیناً حکم کړے شویدے ما ته |
| أَنْ أَكُوْنَ اَوَّلَ مَنْ اَسْلَمَ وَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿۱۴﴾ |
| ددے چه زهٔ شم اول د هغه چا نه چه تابع دی (الله تعالیٰ ته) او مهٔ کیږه د مشرکانو د ډلے نه۔ |

**تفسیر** : دا بله طریقه د تعلیم ده او د مشرکانو د دعوت رد دے، هرکله چه مشرکان د رسول الله ﷺ د دعوت نه تنګ راغلل نو هغه ته ئې (په ډیرو دعوتونو کښې یو) دا درخواست وړاندے کړو چه [هَلُمَّ نَعْبُدُ اِلٰهَكَ سَنَةً وَتَعْبُدُ آلِهَتَنَا سَنَةً] راځه چه مونږ ستا د الله یو کال بندګی وکړو او یو کال به ته زمونږ د آلهو بندګی کوے نو جوړه به مو راشی۔

او دا ئې هم وویل چه زمونږ ددے آلهو لږ شان صفت وکړه هم زمونږ جوړه راځی ﴿لَقَدْ كِدْتَّ تَرْكَنُ اِلَيْهِمْ شَيْئًا قَلِيْلًا﴾ نو قرآن کریم کښې الله تعالیٰ خپل نبی ته بار بار وائی چه د مشرك دعوت به نهٔ منے، هغوی ته به هیڅ قسمه میلان نکوے اګرکه دا تولہ دنیا پدے جوړیږی یا ورانیږی، پدے کښې به د هیڅا لحاظ نهٔ کوے ځکه چه پدے کښې د الله بی ادبی ده او د الله دبی ادبئ دپاره به د هیچا لحاظ نهٔ کیږی، د مصلحت دپاره به هم نهٔ کیږی، ورنه رسول الله ﷺ داسے کولے شو چه د دوی د معبودانو لږه موده صفت ئې کړے وے او بیا ئې

پکښې په آرام آرام کار شروع کړے وے لکه بعض خلك داسے کار کوی چه د مشرکانو سره خان مشرك کړی او د غیر الله نذرونه وخوری، او بیا وائی چه مونږ ورته دعوت ورکوو، دا د صوفیانو دعوت دے او اسلامی دعوت دا دے چه په منکراتو کښې به د هیچا سره نهٔ شریك کیږی، آیا دوی د رسول الله ﷺ نه زیات مصلحت پیژندونکی دی، رسول الله ﷺ دا هم کولے شو چه ټول فضائل ئے بیانولے مگر هغه د فضائلو سره د توحید نه شروع وکړه، د خلکو زړونه ئے وچول ﴿ فَاصْدَعْ بِمَا تُؤْمَرُ ﴾ او پدے باندے الله خوشحالیدو هغه حکیم ذات دے څکه ئے خپل نبی ته داسے حکمونه کړی وو.

اَتَّخِذُ وَلِيًّا : د ولی نه مراد معبود دے چه هغه سره د عبادت دوستی کیږی، ورنه د هر مؤمن په بندګانو کښې ولی شته چه هغه د الله رسول او نور مؤمنان دی.

او داسے مضمون پدے سورت کښې درے کرته راغلے دے ﴿ اَتَّخِذُ وَلِيًّا ﴾ ﴿ اَفَغَيْرَ اللهِ اَبْتَغِيْ حَكَمًا ﴾ (١١٤) آیت ﴿ اَغَيْرَ اللهِ اَبْغِيْ رَبًّا ﴾ (١٦٤) آیت. نو معلومه شوه چه د الله نه ما سوی نهٔ ولی شته، نهٔ حَکم (فیصله کونکے) او نهٔ رب. یعنی اے مشرکانو! تاسو ما ته عاجز مخلوق رابنایی؛ چه هغه زهٔ معبود جوړ کړم او لوی خالق د آسمانونو او زمکو پریدم.

وَهُوَ يُطْعِمُ : یعنی ستاسو معبودان خوراکیان دی او الله غنی ذات دے، پدے دواړو صفتونو کښې اشاره ده چه الله خالق هم دے او غنی هم، او ستاسو معبودان نهٔ خالقان دی او نهٔ غنیان. نو لوئی الله راباندے پریدئ او کمزورو پسے مو روانوئ.

لکه بعض خلك مونږ د کتاب او سنت نه اړوی او بل طرفته دعوت راکوی او د هغه چا پسے مو روانوی چه نهٔ الله خودلے دے او نهٔ رسول الله ﷺ او نهٔ ئے کتاب شته او نهٔ ئے پوره تاریخ، بیه نو تاسو مونږ څه پسے روانوئ؟.

وَلَا يُطْعَمُ : پدے کښې اشاره ده چه الله خوراك ته حاجت نهٔ لری او که والدین بچو ته یا نور خلك چا ته خوراك ورکړی، نو هغه ورته خپله هم محتاج وی. لکه داسے په سورة المائده (٧٥) او سورة الذاریات (٥٧) او (٥٨) کښې دی.

قُلْ اِنِّيْ اُمِرْتُ : دا بله طریقه د تعلیم ده، سوال وشو چه توحید منل خو به څه ضروری خبره نهٔ وی؟ نو جواب کوی چه دے خبره باندے ما ته د الله د طرفنه حکم شویدے نو دا ضروری حکم دے او دا هم راته وئیل شویدی چه د مشرکانو د ډلے نه مهٔ جوړیږه.

اَوَّلَ مَنْ اَسْلَمَ : یعنی ما ته دا حکم شویدے چه زهٔ اول هغه شخص جوړ شم چه الله ته په اخلاص سره سر خکته کوی. دے دپاره چه د نورو دپاره غوره نمونه شم.

| قُلۡ إِنِّيٓ أَخَافُ إِنۡ عَصَيۡتُ رَبِّي عَذَابَ يَوۡمٍ عَظِيمٖ ﴿١٥﴾ |
|---|
| ته ووایه! یقیناً زهٔ یریږم که نافرمانی وکړم د رب خپل نه د عذاب د ورځې لوئې نه. |

**تفسیر** : دا د بل سوال جواب دے هغوی وویل چه مونږ سره گوزاره وکړه، او که د الله حکم ونهٔ منلے شی نو څه نقصان به وشی؟ نو جواب وشو چه د لوی عذاب یره ده د قیامت په ورځ۔ تاسو سره د جوړ جاړی او د اختلاف د ختمولو غم دے، نهٔ بلکه د الله د عذابونو غم وکړئ۔ نو آیا تاسو چه ما شرك ته رابلئ؛ نو په دغه عذاب مے اخته کوئ۔

| مَّن يُصۡرَفۡ عَنۡهُ يَوۡمَئِذٖ فَقَدۡ |
|---|
| هغه څوك چه واړولے شو د هغهٔ نه عذاب په دغه ورځ نو یقیناً |
| رَحِمَهُۥۚ وَذَٰلِكَ ٱلۡفَوۡزُ ٱلۡمُبِينُ ﴿١٦﴾ |
| رحم وکړو الله تعالیٰ په هغه باندے، او دا کامیابی ده ښکاره۔ |

**تفسیر** : اُوس د دغه ورځې هیبت بیانوی چه هغه د ډیرو مشکلاتو ورځ ده په دغه ورځ کښې څوك د عذابونو نه واړولے شو او د جنت په طرف روان کړے شو نو دهٔ باندے خو د الله رحم وشو او لوئې کامیابئ ته ورسیدو۔
مَّن يُصۡرَفۡ عَنۡهُ : یعنی چا نه چه عذابونه په دغه ورځ واړولے شو نو کامیاب شو۔
رَحِمَهُۥ : أَيۡ رَحِمَهُ اللّٰه۔ الله پرے رحم وکړو۔

| وَإِن يَمۡسَسۡكَ ٱللَّهُ بِضُرّٖ فَلَا كَاشِفَ لَهُۥٓ إِلَّا |
|---|
| او که ورسوی تا ته الله تعالیٰ څه تکلیف نو نشته هیڅوك لرے کونکے د هغے سوئ |
| هُوَۖ وَإِن يَمۡسَسۡكَ بِخَيۡرٖ فَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيۡءٖ قَدِيرٞ ﴿١٧﴾ |
| د الله تعالیٰ نه او که ورسوی تا ته څه خیر نو هغه په هر شی قادر دے۔ |

**تفسیر** : دا د الله بل قسم تعارف دے چه الله لکه څنګه چه فاطر السموات دے نو دغه شان ضرررونه لرے کونکے هم هغه دے، نو بیا نورو معبودانو ته څه ضرورت ؟! نو دا دلیل عقلی دے چه د الله نه سوی هیڅوك حقدار د بندګئ نشته، ځکه چه د نفع او نقصان

مالك صرف هغه دے۔ هغه چه په مخلوقاتو کښې څنګه غواړی تصرف کوی، نۀ څوك د هغه فیصله چیلنج کولے شي او نۀ څوك هغه رد کولے شي۔ په صحیح بخاری کښې دی چه نبی کریم ﷺ به وئیل : ﴿اَللّٰهُمَّ لَا مَانِعَ لِمَا اَعْطَيْتَ وَلَا مُعْطِيَ لِمَا مَنَعْتَ وَلَا يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ﴾ اے الله! تـه چه چا له څه ورکوے نو هغه هیڅوك منع کولے نشي او ته چه چا نه منع کړی نو هغه له څوك ورکولے نشي۔ او هیڅ صاحبِ حیثیت ته د هغه حیثیت ستا په مقابله کښې فائده نشي رسولے۔

ددے نه معلومه شوه چه کوم خلك اولیاؤ ته –مړه وی که ژوندي– د نفع او د ضرر په امید رامدد شه چغې وهی نو دوی یقیناً مشرکان دی او دا کار ئے شرك او کفر دے۔

**يَمْسَسْكَ اللّٰهُ بِضُرٍّ** : مس لفظ او (ضر) نکره دلالت کوی چه اګرچه ضرر معمولی شان وی د هغے لرے کونکے هم د الله نه سیوئ بل هیڅوك نشي کیدے۔ ضر نه مراد بیماری، فقر او غریبی ده۔

**وَاِنْ يَّمْسَسْكَ بِخَيْرٍ** : یعنی که الله څه فائده دروسوی، دینی وی که دنیاوی، نو سورة یونس (۱۰۷) آیت کښې دی ﴿فَلَا رَآدَّ لِفَضْلِهٖ﴾ هیڅوك د الله فضل نشي واپس کولے۔

کوم بنده چه دا عقیده وساتی لکه سورة فاطر (۲) آیت کښې دی ﴿مَا يَفْتَحِ اللّٰهُ لِلنَّاسِ مِنْ رَّحْمَةٍ فَلَا مُمْسِكَ لَهَا وَمَا يُمْسِكْ فَلَا مُرْسِلَ لَهٗ مِنْ بَعْدِهٖ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ﴾ که الله دربانده د رحمت دروازه راکولاوه کړه نو څوك ئے بندولے نشي او که هغه ئے دربانده بنده کړی نو څوك ئے کولاوه ولے نشي) ددے عقیدے سره به بنده غني شي، په مخلوق باندے توکل ختم شي، او د مخلوق مدح او ذم او د هغوی د مال نه طمع ختمه شي، او د الله نه یره پیدا شي چه د خیر او شر مالك خو صرف الله دے۔

| وَهُوَ الْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهٖ ؕ وَهُوَ الْحَكِيْمُ الْخَبِيْرُ ﴿۱۸﴾ |
|---|
| او هغه (الله) زورَور دے، دپاسه دے د بندګانو خپلو نه او هغه حکمتونو والا خبردار دے۔ |

**تفسیر** : دا د الله تعالیٰ بل قسم تعارف دے او بل دلیل عقلي دے۔

**اَلْقَاهِرُ** : زورور۔[اَلْغَالِبُ الَّذِیْ لَایُغْلَبُ وَقِیْلَ هُوَ الْمُنْفَرِدُ بِالتَّدْبِیْرِ، یُجْبِرُ الْخَلْقَ عَلٰی مُرَادِهٖ] (سمعانیؒ والبغویؒ) قاهر هغه غالب ته وائي چه هیچرے نۀ مغلوبه کیږی یا یواځے نظام چلونکے چه مخلوق په خپله اراده باندے مجبوره کوی۔

یعنی په آسمان او زمکه کښې د تمامو مخلوقاتو څخه هغه ته خکته دی، هغه په هر شي باندې غالبه دې، تمام مخلوقات د هغه د عظمت او جلال او قهر او جبروت اقرار کونکي او د هغه د فیصلې مخې ته مجبور دی۔

فَوْقَ عِبَادِهٖ : فوقیت په درې قسمه دې ذاتاً، وَقَهْرًا وَرُتْبَةً ـ د ذات په اعتبار سره هم د بندګانو دپاسه په عرش باندې مستوي دې، او د غلبې او زور په اعتبار سره، او د مرتبې په اعتبار سره هم۔

| |
|---|
| قُلْ اَیُّ شَیْءٍ اَکْبَرُ شَهَادَةً ؕ قُلِ اللّٰهُ ﻻ شَهِیْدٌۢ بَیْنِیْ وَ |
| ته ووایه ! کوم شے ډیر لوئی دے په ګواهۍ کښې ته ووایه الله تعالیٰ ، ګواه دے په مینځ زما او |
| بَیْنَکُمْ ﻻ وَاُوْحِیَ اِلَیَّ هٰذَا الْقُرْاٰنُ لِاُنْذِرَکُمْ بِهٖ |
| په مینځ ستاسو کښې ، او وحي شویده ما ته دا دے قرآن دے دپاره چه ویروم تاسو په دے سره |
| وَمَنْ بَلَغَ ؕ اَئِنَّکُمْ لَتَشْهَدُوْنَ اَنَّ |
| او هغه چا له چه ورته ورسیږی دا قرآن۔ آیا تاسو ګواهي ورکوئ چه بیشکه |
| مَعَ اللّٰهِ اٰلِهَةً اُخْرٰی ؕ قُلْ لَّآ اَشْهَدُ ۚ قُلْ اِنَّمَا هُوَ |
| د الله تعالیٰ سره د بندګئ لائق شته ؟ ته ووایه ! ګواهي نهٔ کوم زهٔ، ته ووایه ! یقیناً هغه |
| اِلٰـهٌ وَّاحِدٌ وَّاِنَّنِیْ بَرِیْٓءٌ مِّمَّا تُشْرِکُوْنَ ﴿۱۹﴾ |
| لائق د بندګئ یو دے او یقیناً زهٔ بیزاره یم د هغې نه چه تاسو شریکان جوړوئ (د الله سره)۔ |

**تفسیر** : پدې آیت کښې د قرآن او د رسول الله ﷺ رشتینوالے ذکر دے۔ او دا بله طریقه د تعلیم ده او جواب د سوال دے، د مکې مشرکانو نبی کریم ﷺ ته وویل چه یو داسې سړے راوله چه ستا د نبوت ګواهي ورکړی، ځکه چه اهل کتابو خو ددې د ګواهي ورکولو نه انکار کړیدے۔ نو الله تعالیٰ نبی ﷺ ته حکم اُوکړو چه ته دې کافرانو ته اُووایه چه د الله نه لوی ګواه بل څوک جوړیدے شي، ځکه چه د الله په خبر کښې د دروغو احتمال نشي کیدے۔ او دا قرآن هم زما د نبوت تصدیق کوی چه ددې په شان تاسو راوړو نه عاجز یئ او دا قرآن ددې دپاره نازل شویدے چه اے مکې والو ! زهٔ تاسو او ټول انسانان پدې سره اُویروم۔

دې نه روستو الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ ته حکم وکړو چه ته د مشرکانو د شرک نه انکار

وکړه او ووایه چه تاسو خو د الله سره د نورو معبودانو کیدو ګواهي ورکوئ لیکن زهٔ دد یے نه انکار کوم، دیے نه روستو الله نبي ﷺ ته حکم وکړو چه هغه صرف د الله د وحدانیت اعلان وکړي او د دروغژنو معبودانو نه بیزاري ښکاره کړي.

بیا دلته عجیبه دا ده چه الله تعالیٰ د رسول الله ﷺ په رسالت ګواهي ورکړیده او رسول الله ﷺ د الله په توحید ګواهي ورکړیده، د یو بل ګواه شویدي ځکه چه دا دواړه لازم ملزوم خبري دي.

**مضمون** : دیے نه روستو دلیل نقلي د اهل کتابو نه ذکر دیے په معرفة د الله او په رد د شرك او په صدق د رسالت باندیے. بیا په (۲۱) آیت کښې وائي چه څوك ضدي دیے په هغه باندیے دلائل اثر نکوي.

**اَيُّ شَيۡءٍ اَكۡبَرُ شَهَادَةً** : یعني ګواهي د چا ډیره لویه ده؟ نو وقف دیے دوي به غلي شي. نو تهٔ جواب ورکړه چه د الله ګواهي د هرشي او د هر چا نه لویه ده.

دلته د شيء اطلاق په الله باندیے شویدیے ځکه چه د شيء نه مراد موجود في الخارج (په خارج کښې موجود) دیے یا په معنیٰ د مَا يُعۡلَمُ وَيُخۡبَرُ سره دیے. یعني چه په علم کښې راځي او د هغه نه خبر ورکولے شي. آؤ، الله تعالیٰ ته نوم په شيء سره نشي کیخودیے، په دعا کښې ئے نشي استعمالولے، صرف په إخبار کښې استعمالیږي.

**وَاُوۡحِيَ اِلَيَّ** : دا د الله شهادت دیے چه الله ما ته داسے کتاب راکړو چه هیڅوك ئے مقابله نشي کولے، نو دا دلیل دیے چه الله زما مدد او تائید کوي نو زهٔ رشتیني نبي یم، او دا قرآن حق کتاب دیے. د الله تعالیٰ د شهادت او ګواهئ تفصیل په سورة النساء کښې تیر شو.

مختصراً دا چه شهادت د الله تعالیٰ (۱) په بیان سره دیے (۲) او د رسول الله ﷺ په صدق باندیے د برهان (دلیل) په قائمولو سره دیے. (۳) او په نصرت او تائید سره دیے.

**لِاُنۡذِرَكُمۡ** : دا د قرآن کریم د نازلیدو فائده بیانوي.

**فائده** : د قرآن مقصد خو انذار او بشارت دواړه دي نو دلته بشارت ولے ذکر نشو او په یوه غایه باندیے اکتفاء وشوه؟ نو حکمة دا دیے چه پدیے وخت کښې مخاطبین سرکشان کافران معاندین مکابرین وو، نو د هغوي د حال مطابق یو مقصد د قرآن ذکر شو چه هغه انذار دیے. (التحریر والتنویر)

**وَمَنۡ بَلَغَ** : اَيۡ وَمَنۡ بَلَغَهُ الۡقُرۡآنُ . یعني هر هغه څوك هم پریے یروم چه قرآن چا ته ورسیږي تر قیامته پوریے. نو دا دلیل دیے په ختم نبوت باندیے.

د مقاتل بن سلیمانؒ نه مفسرینو نقل کړیدی : [مَنْ بَلَغَهُ الْقُرْآنُ مِنَ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ فَالرَّسُوْلُ ﷺ نَذِيْرٌ لَّهٗ] هر هغه څوك چه قرآن کریم ورته ورسیدو پیریان وی که انسانان، نو رسول الله ﷺ د هغه دپاره یره ورکونکے دے۔ (البغویؒ والقرطبیؒ) دا داسے شوه لکه رسول الله ﷺ چه راغے او تا ته ئے بیان وکړو۔ او ددے نه دا هم معلومه شوه چه د قرآن بیانونکی د رسول الله ﷺ نائبان دی۔ او دا هم معلومه شوه چه د قرآن کریم د نزول په وخت کښې موجود او غیر موجود ټول انسانان او پیریان د قرآن په احکامو باندے مخاطب دی او چا ته چه ونهٔ رسیږی نو هغه پدے باندے نهٔ دے ماخوذ۔ (تفسیر البیضاوی).

او محمد بن کعب القرظیؒ وئیلی دی : [مَنْ بَلَغَهُ الْقُرْآنُ فَكَأَنَّمَا رَأَى مُحَمَّدًا ﷺ وَسَمِعَ مِنْهُ] (ابن ابی شیبة وابو حاتم وابو الشیخ) (القرطبی۶/۳۹۹ والبغوی۳/۱۳٤) (وزاد ابن کثیر : عَنْهُ : وَكَلَّمَهُ] (ابن کثیر۳/۲٤٥ ) چا ته چه قرآن کریم ورسیدو نو ګویا که هغه محمد ﷺ ولیدو او د هغه نه ئے واوریدو او په یو روایت کښې دی ګویا که هغه سره ئے خبرے وکړے۔ (نو ګویا که مونږ د رسول الله ﷺ شاګردان او مقتدیان شو).

او ربیع بن انسؓ فرمائی : [حَقٌّ عَلَى مَنِ اتَّبَعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ أَنْ يَّدْعُوَ كَالَّذِيْ دَعَا رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ وَأَنْ يُّنْذِرَ كَالَّذِيْ أَنْذَرَ] (ابن کثیر)۔ څوك چه د رسول الله ﷺ د تابعدارئ دعوه کوی په هغه لازمه ده چه د رسول الله ﷺ په شان دعوت وکړی او داسے خلك ویروی لکه څنګه چه رسول الله ﷺ خلکو ته یره ورکړیده) نو څوك چه قرآن کریم بیان کړی نو هغه د رسول الله ﷺ په شان دعوت وکړو او خلك ئے ویرول۔

صاحب المنار لیکی : ددے نه معلومه شوه چه د اسلام په دعوت کښې قرآن کریم لره اعتبار دے، نو چا ته چه قرآن ونهٔ رسی هغه باندے دا نهٔ صادقیږی چه هغه ته دعوت ورسیدو، نو پدغه وخت کښې به هغه پدے دین باندے مخاطب نهٔ وی، نو ددے مفهوم دا راووتو چه د اسلام د دعوت په رسولو کښې حجت په قواعد کلامیه او دلائل نظریه ؤ سره نهٔ قائمیږی کوم باندے چه دغه علم بنا دے مګر که په هغے کښې د اسلام په اصولو او احکامو باندے تصریح موجوده شی. او مونږ ډیر مسلمانان وینو چه د سلفو صالحینو نه روستو هغوی د قرآن دعوت او تبلیغ پریښے دے او پدے باندے ئے علم پریښے دے او د سنت بیان کړی احکامو باندے ئے عمل پریښے دے، او د متکلمینو او فقهاؤ تقلید ته متوجه شویدی او قرآن په دوی باندے حجت دے اګرکه دوی خپل ځانونه د حجت اهل نهٔ دی ګرځولی آه۔ (تفسیر المنار۷/۲۸٥)

اَئِنَّكُمْ : استفهام د زجر دپاره دے۔ یعنی تاسو د الله سره د نورو معبودانو گواهی ورکوئ؟ نو دوی به غلی شی۔ نو ته ورته ووایه : چه زهٔ خو دا گواهی نهٔ ورکوم بلکه ما ته خو خپل رب وئیلی دی چه داسے ووایه : ﴿ اِنَّمَا هُوَ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ ﴾ چه دغه الله صرف یواځے معبود دے۔

یا مطلب دا دے که تاسو دغه گواهی د شرك ورکوئ نو زهٔ درسره پکښې شریك نهٔ یم، زهٔ دغه گواهی نهٔ ورکوم بلکه زهٔ ددے په خلاف په توحید باندے ماموریم۔ او مطلب ئے دا دے چه ستاسو دا گواهی غلطه ده او د الله د حکم خلاف ده۔

لَتَشْهَدُوْنَ : یعنی آیا تاسو ثبوت پیش کولے شئ چه د الله سره نور آلهه شته۔

وَّاِنَّنِیْ بَرِیْٓءٌ : د بیزارئ مطلب دا دے چه زهٔ د دوی عبادت نکوم، ایمان پرے نهٔ لرم او د دوی د عبادت نه نفرت کوم۔

مِّمَّا : ١- اَیْ مِنْ عِبَادَةِ مَا۔ د عبادت د هغه معبودانو نه چه تاسو ئے د الله سره شریکان جوړوئ۔ ٢- یا مِنْ شِرْكَةِ مَا تُشْرِكُوْنَ۔ د شرکت د هغه معبودانو نه چه تاسو ئے د الله شریکان جوړوئ نو زهٔ دا د الله سره شریکان نشم جوړولے۔

قُلْ لَّآ اَشْهَدُ : نه معلومه شوه چه رسول الله ﷺ د توحید گواهی ورکوی نهٔ د شرك، او د (قُلِ اللّٰهُ شَهِیْدٌ) نه معلومه شوه چه الله د رسول الله ﷺ د رسالت گواهی ورکوی۔

نو مذکوره آیت کښې ډیر علمونه دی که چا سوچ وکړو۔ اشاره ورته وشوه۔

| اَلَّذِیْنَ اٰتَیْنٰهُمُ الْكِتٰبَ یَعْرِفُوْنَهٗ كَمَا یَعْرِفُوْنَ |
|---|
| هغه کسان چه ورکړے مونږ دوی ته کتاب پیژنی دے نبی لره لکه څنګه چه پیژنی |
| اَبْنَآءَهُمْ م اَلَّذِیْنَ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ فَهُمْ لَا یُؤْمِنُوْنَ ﴿٢٠﴾ |
| ځامن خپل، هغه کسان چه تاوان کښې ئے اچولی دی ځانونه خپل پس دوی ایمان نهٔ راوړی۔ |

**تفسیر** : دا د رسول الله ﷺ په رشتینوالی باندے دلیل نقلی دے د اهل کتابو نه، پس د دلیل وحیی او عقلی نه۔

اَلَّذِیْنَ اٰتَیْنٰهُمْ : دا څوك وو؟ دا بعض کسان وو چه مکے ته د حبشو نه راغلی وو او ایمان ئے راوړے وو لکه سورة القصص کښې به ئے تفصیل راشی۔ او دارنګه مکے ته بعض یهود راغلی وو ایمان ئے راوړے وو، او مدینه کښې هم څه یهودیان وو چه د رسول الله ﷺ د ورتګ نه مخکښې به هغوی د رسول الله ﷺ تائید کولو۔

او پدې کښې د مشرکینو د مخکښې خبرې رد دے چه دوی وئیلی وو چه اهل کتاب ستا د نبوت په رشتینوالی ګواهي نهٔ ورکوی، نو الله فرمائی: تاسو دروغ وایئ؛ په دوی کښې چه کوم نیکان خلك دی، هغوی ګواهي ورکوی، او کوم اهل کتاب چه ګواهي نهٔ ورکوی نو هغه د هغوی ضد او بد قسمتي ده چه د هرڅه د پیژندلو باوجود انکار کوی، او نیکان خلك ورسره دا ناکاره اهل کتاب ټول زما نبی داسے پیژني لکه څنګه چه هغوی خپل اولاد پیژني، څکه چه ټولو انبیاؤ خپلو امتونو ته د محمد (ﷺ) صفات او د هغه مُلك او د هغه دار الهجرة او د هغه د امت صفات بیان کړیدی۔

نو د رسول الله ﷺ په حقانیت باندے الله تعالیٰ، او قرآن کریم او پخوانی اَهل کتاب ګواه شو۔

**يَعْرِفُوْنَهٗ**: ضمیر راجع دے رسول الله ﷺ ته، او ابن کثیرؒ وائی: [يَعْرِفُوْنَ الَّذِىْ جِئْتَهُمْ بِهٖ] پیژني هغه شے چه ما دوی ته راوړیدے۔

**اَلَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا**: یعنی چه څوك عنادګر شی نو که هغوی ته هر څو مره ډیر دلیلونه راوړے شی نو هغوی ایمان نهٔ راوړی۔

| وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَوْ كَذَّبَ |
|---|
| او څوك دے ډیر لوئی ظالم د هغه چا نه چه جوړوی په الله باندے دروغ یا دروغژن ګنړی |
| بِاٰيٰتِهٖ ؕ اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿۲۱﴾ |
| آیتونه د هغهٔ یقیناً نهٔ کامیابیږی ظالمان۔ |

**تفسیر**: پدے کښې الله تعالیٰ د مکے مشرکانو او اهل کتابو ته تخویف بیانوی او خبر ورکوی په نهٔ کامیابیدو د دوی۔ او پدے کښې سبب د خسران د دوی ذکر دے۔

**مضمون**: بیا ئے د آخرت تخویف بیان کړیدے، بیا د قرآن کریم په منکرینو باندے رد او د هغوی هلاکت بیان شویدے او د آخرت تخویف ئے تفصیلی ورله بیان کړیدے نو پدے رکوع کښې په مشرك او په منکر د قرآن باندے ردونه دی۔

دلته د مکے مشرکانو او د اهل کتابو په باره کښې وئیلے کیږی چه دوی نه لوی ظالمان څوك کیدے شی۔ د مشرکانو د خپلو بتانو په باره کښې دا عقیده وه چه دوی د الله په نیز زمونږ سفارشیان دی، پدے وجه ئے د هغوی عبادت کولو، او اهل کتابو د قرآن کریم او د

نبی ﷺ نه انکار وکړو، نو ګویا که دا ټول د توحید او د اسلام خلاف د خپلې معاندانه رویه په وجه لوی ظالمان دی، او ظالم هیڅ کله په مقصد کښې نشي کامیابیدے.

افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا : دلته الله تعالیٰ په الله دروغ جوړونکے او د حق تکذیب کونکے دواړو ته ظالمان ووېل. یعنی د باطل پسے روانیدل او د حق تکذیب دواړه یو شان جرم دے.

## د افتراء علی الله صورتونه

افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا : د افتراء علی الله ډیر صورتونه دی چه تفصیل به ئے په سورة یونس کښې راشي ان شاء الله تعالیٰ او بعض دا دی :

(۱) الله ته د شریك نسبت کول. (۲) هغه ته د اولادو نسبت کول.

(۳) بِدَعْوَى النُّبُوَّةِ. د نبوت دعوه وکړی چه الله ما ته وحی کړیده.

(٤) په تحلیل او تحریم سره چه الله یو شے حلال کړے وی دے ورته حرام وائی یا برعکس. لکه مشرکانو به ویل چه الله مونږ ته په شرك او بی حیائی باندے امر کړیدے.
﴿وَاللّٰهُ اَمَرَنَا بِهَا﴾

(٥) په تحریف او تبدیل سره. (٦) الله تعالیٰ ته هغے شے منسوبول کوم چه هغه نهٔ دے وئیلے. (وَاَنْ تَقُوْلُوْا عَلَى اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ) (۷) دعویٰ د جنت کول چه مونږ جنتیان یو او الله تعالیٰ راسره وعده کړیده او حال دا چه هغه وعده نهٔ وی کړی.

(۸) الله تعالیٰ زمونږ په شرك راضی دے لکه مشرکانو به ویل. (۹) هٰؤُلَاءِ شُفَعَاؤُنَا عِنْدَ اللّٰهِ. مشرکانو به د خپلو معبودانو په باره کښې وئیل چه دوی به زمونږ د الله په دربار کښې سفارش کوی. (۱۰) په قرآن کښې د خپلے غلطے عقیدے دپاره تاویلات کول لکه دا د اهل زیغو طریقه ده. (۱۱) قصداً بدعات ایجاد کول او بیا ددے نسبت شرع ته کول.

(۱۲) په اسماء او صفاتو کښې تاویلات کول. (۱۳) د حلول یا د وحدة الوجود عقیده لرل په رب العالمین دروغ تړل دی.

(۱٤) موضوع احادیث جوړول یا د هغے بیانول.

(۱٥) الله تعالیٰ ته د ځان نه نو مونه کیخودل. (۱٦) بی دلیله داسے وئیل چه الله تعالیٰ په فلانی شی خوشحالیږی او په فلانی نهٔ خوشحالیږی.

(۱۷) په تفسیر د قرآن او حدیث کښې غلو یا تفریط کول په الله تعالیٰ باندے افتراء ده لکه دا کثیر الوقوع خبره ده، یو مُلا وائی (صلاتهم) (مونځ) نه مراد بلنه ده. لکه چه په آیت

(۹۲) کښې به راشي۔ یا سورة مزمل کښې تهجد ندی بیان شوی بلکه د قرآن کریم درس ترې مراد دے دا تقول علی الله دے، او ددے مثالونه بیشماره دی والعیاذ بالله من جمیع ذلك۔

اَوۡ کَذَّبَ بِاٰیٰتِهٖ : د تکذیب معنیٰ ده نسبت د دروغو۔ یعنی د الله آیتونه دروغژن ګنړل او د هغې نه انکار کول۔

لَا یُفۡلِحُ : یعنی د عاقبت په اعتبار سره نهٔ کامیابیږی۔

| وَیَوۡمَ نَحۡشُرُهُمۡ جَمِیۡعًا ثُمَّ نَقُوۡلُ لِلَّذِیۡنَ |
|---|
| او په هغه ورځ چه راجمع به کړو مونږ دوی لره ټول بیا به ووایو هغه کسانو ته |
| اَشۡرَکُوۡۤا اَیۡنَ شُرَکَآؤُکُمُ الَّذِیۡنَ کُنۡتُمۡ تَزۡعُمُوۡنَ ﴿۲۲﴾ |
| چه شرك ئے کړیدے چرته دی شریکان ستاسو هغه کسان چه تاسو به پرے ګمان کولو |
| ثُمَّ لَمۡ تَکُنۡ فِتۡنَتُهُمۡ اِلَّاۤ اَنۡ قَالُوۡا وَاللّٰهِ |
| (چه دوی سفارشیان دی)۔ بیا به نهٔ وی بهانه د دوی مګر دا چه وائی به قسم دے په الله |
| رَبِّنَا مَا کُنَّا مُشۡرِکِیۡنَ ﴿۲۳﴾ |
| چه رب دے زمونږ، نهٔ وو مونږ شرك کونکی۔ |

**تفسیر** : پدے کښې د (افۡتَرٰی عَلَی اللّٰهِ کَذِبًا) مثال راوړی چه دوی خانله معبودان نیولی دی او دا ګمان پرے لری چه دا به د دوی دپاره سفارش کونکی وی، او دوی به د عذابونو نه خلاصوی، نو الله دوی ته تخویف اُخروی بیانوی۔ الله تعالیٰ به د قیامت په ورځ مشرکان او کافران ټول انسانان او جنات او شیطانان راجمع کوی او هغوی نه به د هغه بتانو او د غیر الله په باره کښې تپوس کوی چه دوی هغه د الله سره شریکان جوړ کړی وو، چه چرته لاړل هغه کسان چه تاسو د الله شریکان جوړول۔ او ددے تپوس مقصد به د مشرکانو ذلیله کول او رسوا کول وی۔

نَحۡشُرُهُمۡ جَمِیۡعًا : یعنی عابدان او معبودان ټول۔

اَیۡنَ شُرَکَآؤُکُمۡ : د شرکاؤ نسبت کله الله خپل ځان ته کوی چه ستاسو په ګمان زما شریکان څه شو؟ او کله ئے هغوی ته کوی ځکه چه دوی د ځان سره شریکان کړی وو په

مالونو او په اولادو کښې او په عباداتو کښې چه هغوی ته به ئې برخې مقرر کړې وې۔
تَزْعُمُوْنَ : ۱- اَنَّهَا تَشْفَعُ لَکُمْ۔ ۲- اَنَّهَا آلِهَةٌ] یعنې تاسو ګمان کولو چه دوی به ستاسو سفارش کوی نو اُوس هغوی راولئ چه سفارش وکړی، یا تاسو ګمان کولو چه دوی حق معبودان دی۔
لکه بل آیت کښې دی ﴿ وَمَا نَرٰی مَعَکُمْ شُفَعَآءَکُمُ الَّذِیْنَ زَعَمْتُمْ اَنَّهُمْ فِیْکُمْ شُرَکٰٓؤُا ﴾۔ (الانعام : ۹٦)
او دغه شان تېښتې او انکار د دوی په سورة حم السجده (٤٨) آیت کښې راغلې دے۔
ثُمَّ لَمْ تَکُنْ فِتْنَتُهُمْ : یعنې مشرکان چه د قیامت په ورځ سخت مشکل حقائق په خپلو سترګو اُووینی نو د شرک نه به د خپل براءت اعلان کوی او په خپلو دے دروغو به قسم هم خوری۔ ۱- نو د فتنې نه مراد یا کفر او شرک دے۔ اَیْ لَمْ تَکُنْ عَاقِبَةُ شِرْکِهِمْ اِلَّا الْجُحُوْدَ۔ (ابن القیمؒ) نۀ به وی انجام د شرک د دوی مګر انکار به وی څکه چه شرک به ورته ډیر لوی مصیبت او بلا ښکاره کیږی۔ لکه سورة الذاریات (١٤) آیت کښې دی: ﴿ ذُوْقُوْا فِتْنَتَکُمْ ﴾۔
۲- او یا د فتنې نه مراد جواب او قول د دوی دے چه هغه انکار دے۔
۳- او د ابن عباس رضی الله عنه نه نقل دی چه فتنه په معنیٰ د معذرت (بهانې) سره دے۔

## مشرکان د شرک نه ولے انکار کوی؟

مَا کُنَّا مُشْرِکِیْنَ : د شرک نه به ولے انکار کوی؟ یو خو به پدې طریقه ځان خلاصول غواړی لکه څوک چه ګیر شی نو اول انکار کوی۔ دویم دا چه مشرکان په دنیا کښې ځان ته مشرکان نۀ وائی بلکه دا وائی چه ﴿ مَا نَعْبُدُهُمْ اِلَّا لِیُقَرِّبُوْنَآ اِلَی اللّٰهِ زُلْفٰی ﴾ مونږ دا وسیله الله تعالیٰ ته جوړه وو او پدے سره الله ته ځان نژدے کول غواړو۔نو دوئ ته شرک نۀ وائی بلکه دا کمال ګنړی۔ (المنار۷/۲۸۸)
نو دلته د شرک او کفر نه انکار کول او ددے عذر او بهانه کول یوه بله ګناه ده چه د دوی د مشرک کیدو تاکید کوی۔
دوی به دا انکار د شرک نه په هغه وخت کښې کوی چه وینی چه الله تعالیٰ به مسلمانانو ته د ګناهونو نه بخښنه کوی، او د اُور نه به ئې راوباسی سوئ د شرک نه، نو دوی به په اُمید کښې شی چه کیدے شی چه مونږ ته هم معافی وکړے شی، لیکن په بعض مواقفو کښې به د شرک اقرار کوی دا طمع به لری چه کیدے شی چه په اقرار باندے کار وشی۔ (ابن

عباسؓ- ابن کثیر، المنار ۷/۲۸۸)

مَا كُنَّا مُشْرِكِيْنَ : ددے تائید په سورة النحل (۲۸) آیت کښې دے، ﴿ فَأَلْقَوُا السَّلَمَ مَا كُنَّا نَعْمَلُ مِنْ سُوْءٍ ﴾- (دوی به کیږدی غاړه کیخودل چه مونږ خو هیڅ بد عمل نهٔ کولو)

﴿ اُنْظُرْ كَيْفَ كَذَبُوْا عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ وَضَلَّ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ﴾ ﴿۲۴﴾

وګوره څنګه دروغ وائی په ځانونو خپلو او ورک به شی د دوی نه هغه چه دوی دروغ جوړول۔

**تفسیر** : یعنی دوی په خپلو ځانونو باندے په دنیا کښې دروغ وئیلی وو چه دا ګمان ئے لرلو چه دا معبودان به زمونږ سفارشیان وی، او د الله په نیز به زمونږ سفارش کوی او دا د الله تعظیم دے۔ نو په قیامت کښې به د دوی نه دغه ټول دروغ ورك شی او حقائق به رابنکاره شی۔ دا مطلب د انکار د دویمے وجے مطابق دے۔او که اوله معنیٰ واخستے شی چه دوی د ځان خلاصولو دپاره انکار کوی، نو بیا آیت په خپل ظاهر دے چه دوی ځان ته مشرکان په دنیا کښې وئیل لیکن په قیامت کښې د شرك نه انکاری شول۔ اؤ په دنیا کښې بعض مشرکانو ځان ته مشرکان نهٔ وئیل او شرك ئے کولو لکه بعض مسلمانان چه شرك کوی او ځان ته بزرګان وائی او دا واسطه، او شفاعت او وسیله ګنړی۔او بعض مشرکانو شرك کولو او دا به ئے وئیل چه مونږ دا د الله په مشیئت باندے کوو او الله پدے باندے راضی دے۔ (المنار)

اُنْظُرْ : یعنی لږ شان خو اُوګوره، څنګه دا خلق د علام الغیوب مخے ته د ځانونو مشرکان کیدو نه انکار کوی، او خپل ځانونه دروغژن کوی، او څنګه د شریکانو په باره کښې ددوی امیدونه خاورو سره ملاؤ شو، نهٔ ورله سفارشیان جوړ شو او نهٔ ئے د دوی مدد وکړے شو۔

وَضَلَّ عَنْهُمْ : ای فَقَدَ، وَنَسِيَ۔ یعنی ورك به شی، او هیر به شی د دوی نه۔

مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ : په دنیا کښې خو دوی ډیر دروغ جوړول چه دا معبودان به زمونږ سفارش کوی، او شرکی قصے به ئے بیانولے، وئیل به ئے چه دوی دومره طاقتونه لری چه مددونه کولے شی په نهٔ منونکو کتهونه اړولے شی او نر چینچنړ او ماده چینچنړه پیژنی۔

ددے تائید په سورة الاعراف (۵۳) کښې وګوره۔

﴿ وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّسْتَمِعُ اِلَيْكَ ج وَجَعَلْنَا ﴾

او بعض د دوی نه هغه څوك دی چه غوږ ایږدی تا ته (خو نهٔ پو هیږی) او ګرځولی دی مونږ

| عَلٰی قُلُوْبِهِمْ اَکِنَّةً اَنْ یَّفْقَهُوْهُ وَفِیْٓ اٰذَانِهِمْ وَقْرًا ؕ وَاِنْ |
|---|
| په زړونو د دوی پردې د پوهې د قرآن نه او په غوږونو د دوی کښې بوج لره، او که |
| یَّرَوْا کُلَّ اٰیَةٍ لَّا یُؤْمِنُوْا بِهَا ؕ حَتّٰٓی اِذَا جَآءُوْكَ |
| ووینی دوی هره نخه (نو) ایمان نۀ راوړی په هغې تردې چه راشی دوی تا ته |
| یُجَادِلُوْنَكَ یَقُوْلُ الَّذِیْنَ كَفَرُوْٓا اِنْ هٰذَآ اِلَّآ اَسَاطِیْرُ الْاَوَّلِیْنَ ﴿۲۵﴾ |
| جګړه کوی تا سره، وائی هغه کسان چه کفرئې کړیدې نۀ دے دا قرآن مګر قیصې دی د پخوانو۔ |

**تفسیر** : پدې کښې د دغه ظالمانو د قرآن نه انکار بیانوی او د قرآن منکرینو ته زجر او رټنه ده۔ (دا د وکذب بآیته تشریح شوه) او د بعض مشرکانو حال بیان شویدے، رسول الله ﷺ چه به کله په تهجدو کښې قرآن کریم لوستلو (په مسجد حرام کښې یا په کور کښې لکه په سیرت کښې دی) نو بعض مشرکان لکه ابوجهل، ابوسفیان، او اخنس بن شریق به راتلل او رسول الله ﷺ ته به ئې غوږ کیخودو چه دے څه وائی او د یو بل نه به پټ پټ راتلل چه څوك مو ونۀ وینی نو یو ځل راغلل چه کله بیرته ستنیدل نو په لاره کښې ئې یو بل ولیدل نو یو بل ئې ملامته کړل چه ددۀ خواته مۀ راځئ: هسې نه چه ستاسو په لیدو سره ځوانان د قریشو دۀ ته غوږ کیښږدی، بیا صبا راغلل بیائې یو بل ملامته کړل، په دریمه ورځ هم د یو بل نه پټ راغلل پدې ګمان چه نور دوه ملګری به نۀ وی راغلی نو سهار پورې ئې غوږ کیخودو الی آخر القصة (سیرت ابن اسحاق عن الزهری، - وکذا فی المنار)

نو دوی به په ظاهره کښې غوږ کیخودو لیکن پدے سره به دوی ته هیڅ فائده نۀ کیده ځکه چه دوی به په هغې کښې د سوچ او فکر کولو نه کار نۀ اخستو، او نۀ به د دوی نیت د رشد او هدایت حاصلول وو۔ بلکه مقصد ئې دا وو چه د محمد (ﷺ) د خولې نه به چرته غلطه خبره راوځی نو هغه به پکښې راګیر کړو او اعتراض به پرې وکړو بیا به دا خبرې نۀ بیانوی، لکه دا د ټولو باطل پرستو طریقه ده چه ښو خبرو ته نۀ ګوری مګر د یو تن غیر شعوری غلطی یا سبقت لسانی سره غلطی به د خلکو مخې مخې ته کوی دے دپاره چه د حق دروازه بنده کړی، هیڅکله ئې نشی۔ او خپل کفرونه او شرکونه او بدعاتو او خرافاتو ته به نۀ ګوری۔ نو الله دلته د دوی عمل او بیا دا ضد رانقل کوی او بیرته پرې رد کوی۔

او ددے نه دا فائده حاصلیږی چه کله یو حق پرست عالم ته انسان کینی او اعتراض ئې

مقصد نهٔ وی بلکه دا وائی که حق نے وونیلو نو منم ئے او که حق نهٔ وو نو نهٔ ئے منم نو الله ورته هدایت کوی او که د اعتراض په نیت کیناستو نو هدایت نه به محروم پاتی وی۔ دا د الله تعالیٰ اصول دی۔

مَنْ يَّسْتَمِعُ اِلَيْكَ : اَیْ لِلطَّعْنِ عَلَيْكَ ۔ د اعتراض دپاره تا ته غوږ اردی۔ لکه د روستو نه معلو میږی۔

اَنْ يَّفْقَهُوْهُ : دلته (لَا) مقدر دے، اَیْ لِئَلَّا یَفْقَهُوْهُ۔ دے دپاره مے پردے گرځولی دی چه پو هه نشی په قرآن۔ یا (كَرَاهِيَةَ) لفظ پټ دے۔

وَفِيْٓ اٰذَانِهِمْ وَقْرًا : په غوږو کښ ئے بوج گرځولے دے چه قرآن صحیح طریقے سره وانهٔ وری، نو دلته ذهن ته سوال راځی چه هرکله الله تعالیٰ ورله په غوږونو کښ بوج واچولو او هدایت ورته ونشو نو دا خلك خو به معذور وی؟ نو د روستو نه معلو میږی چه دا د دوی د ضد او عناد او بد اعمالو نحوست دے او د الله د طرفه ظلم نهٔ دے بلکه د دوی په بد اعمالو باندے عقوبت دے، نو الله دلته خپله استغناء بیانوی چه زما هم دوی ته ضرورت نشته ما پرے مهر ووهلو۔

وَاِنْ يَّرَوْا كُلَّ اٰيَةٍ : پدے کښ د دوی د ضد بیان دے چه دوی یواځے قرآن نهٔ بلکه هره نخه چه وینی د هغے نه اعراض کوی او ایمان پرے نهٔ راوړی۔

حَتّٰٓى اِذَا جَآءُوْكَ : یعنی دوی به د شپے قرآن واوریدو او د ورځے به بیا راتلل د بحث دپاره۔ یا به ئے یو مجلس کښ واوریدو نو روستو به د جګړو او بحث دپاره راغلل چه دا تا چه څه ووئیل دا خو جادو وه او د پخوانو اټکل قصے دی نو د حق تکذیب به ئے مخامخ وکړو۔ او حق ورته معمولی او فضول خبرے ښکاره شوے لکه دا حال زمونږ د زمانے د جاهلانو هم دے چه کتاب او سنت ورته هسے د فضائلو کتابونه ښکاری او خپل تاوئیلی ما وئیلی ورته ډیر اُوچت علم ښکاری۔

يُجَادِلُوْنَكَ : جدال په اصل کښ بحث مباحثے او مناظرے او د خولے چالاکئ ته وائی۔

اساطیر : جمع د اُسْطُوْرَة ده، اَلْقِصَّةُ الْمَكْذُوْبَة ۔ دروغژنے قصے ته وائی۔ په قرآن کریم باندے د کفارو دا گمان وو۔

وَهُمْ يَنْهَوْنَ عَنْهُ وَيَنْـَٔوْنَ عَنْهُ ج وَاِنْ يُّهْلِكُوْنَ

او دوی منع کول کوی د هغه نه او لرے کیږی د هغه او نهٔ هلاکوی

| اِلَّآ اَنْفُسَهُمْ وَمَا يَشْعُرُوْنَ ﴿٢٦﴾ |
| --- |
| مګر نفسونه خپل او نهٔ پوهیږي۔ |

**تفسیر** : دا د مشرکانو بله بدي ده او زورنه ده۔ یعنی د مکې مشرکانو د قرآن کریم صرف په تکذیب باندې اکتفاء نهٔ کوله بلکه خلق به ئې ددې د لوستلو او آوریدو نه هم منع کول چه چرته د هغې نه متأثره نشي، او خپله به هم د انتهائي درجې نفرت ښکاره کولو دپاره د هغه نه واړندې اُوسیدل۔ لکه په اعقابو (کنډه وونو) د مکه کښې دوی کسان مقرر کړي وو چه بهرنه څوك راځي نو هغه ددې نبي د خبرې آوریدو نه منع کړي لکه په ﴿ كَمَآ اَنْزَلْنَا عَلَى الْمُقْتَسِمِيْنَ﴾ (الحجر: ٩٠) کښې هغه ذکر دي۔ نو دوی دوه ګناهونه جمع کړي وو، لازمي او متعدي ګمراهان وو، او دا د تباهۍ سبب دې۔

یا دا چه دا آیت د ابو طالب او د بعض مشرکانو په باره کښې نازل وو، نو معنیٰ دا ده چه (وَهُمْ يَنْهَوْنَ عَنْهُ) دوی خلك منع کوی د رسول الله ﷺ د ضرر ورکولو نه او (وَيَنْئَوْنَ عَنْهُ) خپله لرې کیږي د هغه د تابعدارۍ او ایمان نه۔ لکه ابو طالب وغیره به نسبي طرفداري کوله لیکن د ایمان د وجه نه به نهٔ وه، نو ځکه ورته د ایمان توفیق ورنکړې شو چه اخلاص پکښې نهٔ وو، تأثر عن الله پکښې نهٔ وو۔ او دا به ئې وئیل :

| | | |
| --- | --- | --- |
| وَاللّٰهِ لَنْ يَّصِلُوْا اِلَيْكَ بِجَمْعِهِمْ | ❀ | حَتّٰى اُوَسَّدَ فِي التُّرَابِ دَفِيْنَا |
| فَاصْدَعْ بِاَمْرِكَ مَا عَلَيْكَ غَضَاضَةٌ | ❀ | وَابْشِرْ وَقَرَّ بِذَاكَ مِنْكَ عُيُوْنَا |
| وَدَعَوْتَنِيْ وَعَرَفْتُ اَنَّكَ نَاصِحِيْ | ❀ | وَلَقَدْ صَدَقْتَ وَكُنْتَ ثَمَّ اَمِيْنَا |
| وَعَرَضْتَ دِيْنًا قَدْ عَرَفْتُ بِاَنَّهٗ | ❀ | مِنْ خَيْرِ اَدْيَانِ الْبَرِيَّةِ دِيْنَا |
| لَوْلَا الْمَلَامَةُ اَوْ حَذَارُ مَسَبَّةٍ | ❀ | لَوَجَدْتَنِيْ سَمْحًا بِذَاكَ مُبِيْنَا |

○ قسم په الله! دا خلك تا ته هیڅ ضرر نشي درکولې اګرکه ټول راجمع شي تردې چه زهٔ په خاورو کښې خخ کړې شم۔ ○ تهٔ خپل دین ښکاره بیانوه په تا باندې به هیڅ تکلیف نهٔ وي او خوشحاله وسیږه او پدې باندې خپلې سترګې یخې ساته (زما به تا سره مدد وي)۔ ○ او تا ما ته دعوت راکړو او ما ته معلومه ده چه تهٔ زما خیر خواه ئې، او یقیناً تهٔ رښتینی او پدې مقام کښې امانت کړنې۔ ○ او تا ما ته داسې دین پیش کړو چه ما ته معلومه ده چه هغه د مخلوقاتو په دینونو کښې د ټولو نه غوره دین دې۔ ○ (خو) که د خلکو د ملامتیا او د کنځلو نه یره نهٔ وې نو تا به خامخا زهٔ مونډلې وې چه ستا دین ته به مې ښکاره

غاړه ورکړې وي.
وَهُمْ يَنْهَوْنَ عَنْهُ : نـأى وړانـدې والي تـه وائـي او دا شـامـلېږي إعراض د سماع (غوږ کيخودو) تـه او ددې د هـدايـت نـه اعراض کـولـو تـه. يعنی هغه ته غوږ نهٔ ږدي په طريقه د قبلولو او د هغه د هدايت نه اعراض کوي. (المنار)
وَاِنْ يُّهْلِكُوْنَ اِلَّآ اَنْفُسَهُمْ : يعنـي دوی پـدې کـار سره نبي کريم ﷺ او مسلمانانو ته هيڅ نـقصـان نشـي رسـولې. ځکه چه الله به خپله رڼړا مکمل کوي او خپل دين به غالبه کوي لکه څنګه چه د هغه وعده ده، دا خلق خپل ځانونه پخپله د هلاکت کندې ته ارتوي ليـکن دوی ته ددې هيڅ احساس نهٔ کيږي. معلومه شوه چه د قرآن او د نبي نه او د هغه د سنتو نه خلك منع کول ځان هلاکول دي.

| وَلَوْ تَرٰٓى اِذْ وُقِفُوْا عَلَى النَّارِ فَقَالُوْا |
|---|
| او که چرې ووينې تهٔ هغه وخت چه وبه درولې شي دوی په اُور باندې نو وائي به دوی |
| يٰلَيْتَنَا نُرَدُّ وَلَا نُكَذِّبَ |
| اې افسوس دې مونږ لره چه مونږ واپس کړې شوې او نهٔ وې دروغژن کړي مونږه |
| بِاٰيٰتِ رَبِّنَا وَنَكُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿٢٧﴾ |
| آيتونه د رب زمونږ او وې مونږه د مؤمنانو نه. |

**تفسير** : اُوس پـه آخرت کـښې د دوی حـال بيـانـوي چـه دوی به په قرآن او توحيد پسې ارمانونه او افسوسونه کوي ليکن وخت به تير وي.
او پـدې کـښې د مکـې مشـرکانو خپل ځانونو لره د هلاکولو کيفيت بيانوي، دوی خو په دنيـا کـښې د قرآن کريم تکذيب کـولـو، ليکن په آخرت کښې به دوی پدې خپل بد کار باندې پښيمـانـه وي او په سخت افسـوس کـښې به وي، او آرمان به کوي چه کاش مونږ بيرته دنيا ته واپس شوي وې نو د قرآن تکذيب به مو نهٔ کولې بلکه پدې به مو ايمان راوړې وې.
١- عـلی النار نه مراد (عِنْدَ النَّارِ) دې يـعـنـی د اُور په خوا کښې چه اُور ته ورښکاره شوی وي، ٢- يا د اُور دپاسه په صراط باندې ودرولې شوی وي.
٣- يا وقوف په معنیٰ د علم او پيژندلو سره دې نو معنیٰ ده : که تا ليدلې کله چه به دوی

اُو تـه داخـل شي او په هغې کښې په دردناك عذاب باندې پو هه شي چه هغه وخکې نو که تا ليدلې وې هغه عذاب چه دوی باندې به په دغه وخت کښې نازليږي او د دوی به څه حالت وی او د دوی په کـفـر باندې کو مه پښيمانتيا وی او افسو سو نه او ارمانو نه وی چه هغه بل هيـڅـا تـه نـهٔ حـاصـليږي نو خامخا تا به ډير ناشنا د ګبرا هټ والا حال ليدلې وې چه هغه په الفاظو کښې نهٔ راګيرېږي او د هغې بيان نشي کيدې. (المنار)

وَلَوۡ تَرَىٰٓ : ددې جزاء پټه ده [لَرَأَيۡتَ أَمۡرًا فَظِيۡعًا] تا به ډير د هيبت حالت ليدلې وې.

وَلَا نُكَذِّبَ : دا په زور د باء سره دې په تـقـديـر (أَنۡ) سره جواب د تمنا دې، ځکه أَنۡ په جـواب د تمنى کښې مقدر کيږي. او دغه شان لفظ د نَكُوۡنَ هم دې. أَىۡ وَلَا أَنۡ نُكَذِّبَ. دا يا د (لَيۡتَنَا) د لاندې دې يعنى ارمان دې چه مونږ تکذيب ونکړو او ارمان دې چه ايمان راوړو.

۲- يا دا د (قَالُوۡا) د لاندې دې او په (يٰلَيۡتَنَا نُرَدُّ) باندې د دوی تمنا ختمه شوه. يعنى فَقَالُوۡا لَانُكَذِّبُ يعنى دوی به دا وائى چه مونږ به بيا تکذيب نکوو. او حاصل مطلب دا چه (إِذَا نُرَدُّ فَلَا نُكَذِّبَ) يعنى کله چه مونږ واپس شو نو مونږ به تکذيب نکوو او د ايمان والو نه به وګرځو). صاحب المنار وائى : چه ددې تفسير مطلب دا دې چه عدم تکذيب او ايمان به د دوی پـه تـمـنـا کـښې نهٔ وی داخل، او تمنا به صرف د واپسۍ کوی او هر چه عدم تکذيب او ايمـان دې نـو د هغې وعده به کوی او سيبويه ددې مثال داسې ورکړيدې چه يو تن ووائى : [دَعۡنِىۡ وَلَا أَعُوۡدُ] مـا پريـده، او زهٔ بـه بيا نـهٔ راګـرځم. نو دلته په دَعۡنِىۡ کښې صرف طلب د پريخودو دې. او د نهٔ راګرځيدو وعده مستأنفه جمله ده چه د ماقبل نه منقطع ده او معنىٰ دا ده چه [وَأَنَا لَاأَعُوۡدُ تَرَكۡتَنِىۡ أَمۡ لَمۡ تَتۡرُكۡنِىۡ]. يعنى او زهٔ به نهٔ راګرځم پريدې خودم او که نهٔ. نـو دلته به معنىٰ دا وی (وَنَحۡنُ لَا نُكَذِّبُ) يعنى مونږ دنيا ته واپس کړې شو او که نهٔ خو تکذيب به هيڅکله نهٔ کوو او ايمان به خامخا راوړو. (المنار)

| بَلۡ بَدَا لَهُمۡ مَّا كَانُوۡا يُخۡفُوۡنَ مِنۡ قَبۡلُ ؕ وَلَوۡ رُدُّوۡا |
|---|
| بلکه ښکاره به شي دوی ته هغه چه دوی پټولو مخکې، او که واپس شي دوی |
| لَعَادُوۡا لِمَا نُهُوۡا عَنۡهُ وَإِنَّهُمۡ لَكٰذِبُوۡنَ ﴿۲۸﴾ |
| خامخا ورګرځي به هغه کارونو ته چه منع شويدي د هغې نه او يقيناً دوی خامخا دروغجن دي. |

**تفسير** : د دوی دا آرمـان بـه د رشتيني ارادې او خالص د عقيدې په بنياد نهٔ وی، بلکه د

دوى د زړونو پټ كفر او شرك به ښكاره كيږي، او دوى ته به يقين كيږي چه دوى د خپل شرك په وجه هلاكيږي، پدې وجه د پريشانو په عالَم كښې به د خپلو دروغژنو آرمانونو اظهار كوى- ليكن الله پو هيږي چه كه دوى دويم ځلي دنيا طرف ته واپس كړے شي، او د آخرت د عذاب دا منظر چه اُوس د دوى سترګو مخے ته دے، دا منظر لاړ شي نو دوى بيا خپل كفر او شرك ته واپس كيږي، پدے وجه په هر حال كښې دروغ وئيل او فساد د دوى په فطرت او خټه كښې داخل دى ځكه چه د اكثرو انسانانو په خټه كښې فساد اغړلے شوے وى چه كله دوى له سزا وركړے شي نو ښه شي او چه كله سزا ختمه شي نو بيا خپل زوړ كار ته راواپس كيږي لكه فرعونيانو باندے به الله تعالىٰ سزا نازله كړه نو دوى به وئيل مونږ ايمان راوړو خو چه سزا به لرے شوه نو بيرته به ئے وراني شروع كړو-

يُخْفُوْنَ مِنْ قَبْلُ : ددے څه معنىٰ چه دوى ته به هغه شے ښكاره شي چه دوى پخوا پټ ساتلو؟- ١- نو بعض مفسرينو دلته اخفاء په معنىٰ د تكذيب سره اخستے دے يعني خپل تكذيب به ورته اُوس ښكاره شي- ليكن دا بعيد تاويل دے-

٢- يُخْفُوْنَ مِنَ الْكُفْرِ وَغَيْرِهٖ مِنَ الْمَعَاصِيْ (ابن كثيرؒ والقاسمیؒ) يعني دوى چه كوم كفر او نور ګناهونه په دنيا كښې پټول او ځان ته ئے كافران او ګناهګاران نۀ وئيل نو هغه ورته اُوس راښكاره شو- ٣- يا مِنْ قَبْلُ نه مراد همدغه آخرت دے يعني لږ مخكښې دوى د شرك نه انكار كړے وو ليكن الله ئے چه كله عذاب ته بوځي نو دوى ته به پته ولګي چه دا خو واقعي مونږ مشركان وو او انكار هيڅ فائده ونكړه- نو ځكه اُوس ارمان كوى چه مونږ خو مشركان شو خو اے الله ! مونږ دنيا ته دوباره بوځه-

٤- حافظ ابن القيمؒ او ابن عاشورؒ ښه توجيه كړيده، وائي چه مشركان كافران مشران په دنيا كښې پدے خبره په زړه كښې ښه پو هيدل چه دا كتاب او رسول حق دے او مؤمنان په حق روان دى ﴿لَقَدْ عَلِمْتَ مَا اَنْزَلَ هٰؤُلَاۤءِ اِلَّا رَبُّ السَّمٰوٰتِ﴾ (اسراء: ١٠٢) ﴿وَجَحَدُوْا بِهَا وَاسْتَيْقَنَتْهَاۤ اَنْفُسُهُمْ ظُلْمًا وَّعُلُوًّا﴾ (النمل: ١٤) ځكه چه دوى به د ايمان نخے ليدلے يا د مؤمنانو غلبه او مدد به ئے ليدلو خو يو بل ته به ئے وصيت كولو چه دا خبره پټه ساتئ چه عوام خلك پو هه نشي هسے نۀ چه ايمان راوړي، او ووائي چه هغه څه چه زمونږ مشران ورته حق وائي نو دا به واقعي حق وى، او دا كار به ئے يا د عناد په وجه، يا د دنيا د مفادو په وجه كولو لكه سيادت (مشري) او غيرت به ورتللو چه څنګه ددے نبي او كمزورو مؤمنانو –چه په هغوى كښې غلامان هم دى– په فضيلت باندے اقرار وكړي- نو هركله چه دوى په

آخرت کښې عذاب ولیدو نو د ایمان تمنی ئې وکړه او د رسولانو د تصدیق ارمان ئې وکړو -کوم چه دوی مخکښې نه په زړه کښې ساتلے وو لیکن عمل ئې پرے نۀ کولو نو کافر حسابیدل نو اُوس تمنا کوی چه ارمان چه مونږ دغه تصدیق رابښکاره کړے وے نو ډیر به ښه وے، پدے سره به اُوس د عذابونو نه خلاص شوی وے۔ (التحریر والتنویر ۷۲/۶)

ابن عاشورؒ وائی دا ډیر ښه تفسیر دے چه د هغه احتمالاتو نه استغناء راولی کوم چه مفسرینو ذکر کړیدی ځکه چه هغۀ څه د آیت د اول سر سره سمون نۀ خوری او څه د آخر سره او څه د ټول آیت سره۔

حافظ ابن قیمؒ ددے یو ښه مثال ورکړیدے چه د پوهے دپاره ئې د لوستونکو مخے ته وړاندے کوو: هغه فرمائی: ددے مثال د هغه شخص دے چه د بل یو شخص محبت او معاشرت (ژوند تیرول) ئې په زړه کښې پټ ساتلی وی او دۀ ته ښه معلومه وی چه ددۀ دا محبت باطل دے او هدایت پدے کښې دے چه ددے نه واوړی نو دۀ ته څوك ووائی چه که تا باندے ددے شخص وَلی (مشر) خبر شی نو سزا به درکړی او دے ښه پدے پوهیږی لیکن مُکابره او ضد کوی او وائی چه بس ددے شخص سره محبت او معاشرت بعینه حق دے نو کله ئې چه ولی راونیسی دے دپاره چه هغه ته پدے کار سزا ورکړی او دۀ په سزا باندے یقین راشی نو دغه وخت ارمان کوی چه د سزا نه خلاص شی او بیا به د هغه شخص سره نۀ یو ځای کیږی، لیکن ددۀ په زړه کښې د هغه محبت او د هغه د ژوند حرص دومره مضبوط شوے وی چه دے به دوباره محبت ساتلو او ژوند تیرولو باندے راواپس کوی کله چه دے د سزا نه خلاص شی، بلکه پس د هغے نه چه سزاگانو ښه خوار کړے هم وی، نو دۀ ته د سزا په وخت هغه خطائی رابښکاره شی کومه چه دۀ پټه ساتله، او د کوم نه چه ملګری منع کولو هغه ورته حق ښکاره شی۔ لیکن که دے واپس شی دوباره هغه شان محبت ساتی۔

حافظ ابن قیمؒ فرمائی: پدے اضراب (بَلْ) کښې د دوی ددے خبرے نفی ده چه دوی وائی که مونږ دنیا ته واپس شو نو ایمان به راوړو او تصدیق به وکړو ځکه چه اُوس مونږ ته ښکاره شوه چه رسولانو کومه خبره کوله هغه حقه ده، نو الله ورته فرمائی: داسے نۀ ده بلکه تاسو پدے خبره د مخکښې نه پوهیدئ او تاسو دا خبره پټه ساتله، نو تاسو ته اُوس هیڅ شے نۀ دے ښکاره شوے چه تاسو پرے اُوس پوهه شئ او د هغے په وجه معذور وګنړلے شئ بلکه تاسو ته هغه شے ښکاره شو کوم چه د مخکښې نه معلوم وو او تاسو به یو بل ته

د هغې په پټ ساتلو وصیت کولو۔ آه والله اعلم۔

(عدة الصابرين ص: ۱۹۸) والتفسير القيم لابن القيم (۱/۳۷۲)

صاحب المنار ددې ډير مثالونه بيان کړيدي او بنه تفصيل ئې ليکلې دې چه هغې ته رجوع پکار ده۔ لکه يو فاسق چه شراب وڅکي او په سرئې درد شي يا جوار ګر جواري وکړي او تاوان وکړي، يا مريض يا کمزورې شخص د خپلې خوښې خوراك وکړي، يا په هغې کښې ډير والې وکړي، نو تکليف کښې واقع شي، نو دا تول پدې کار په دغه وخت کښې پښيمانه شي او عزم وکړي او توبه وباسي چه بيا به دا کار نۀ کوي ليکن کله چه موقعه ورته ملاؤ شي او د عمل وخت راشي نو بيا ورته راواپس کيږي پدې وجه چه دې د مخکښې نه عادت او اموخته شوې وي او د نفع په ځاى باندې خوند ته ترجيح ورکوي۔

بيا هغه ليکلي دي چه پدې باره کښې غوره طريقه د تربيت - چه په هغې سره خلك په نيغه لاره روان شي او فضيلت ته ورسيږي- دا ده چه د وړوکوالي نه خلك په نيك عمل باندې عادت کړې شي او ورسره تعليم او بنانسته تلقين ورکړې شي، او دا ډيره لويه خطائي ده چه بعض خلك وائي چه ماشومان آزاد پريخودل پکار دي دې دپاره چه په حريت او استقلال سره لوى شي، ځکه چه کله هلکان د خپلو خواهشاتو مطابق ژوند تير کړي نو بيا په غټ والي کښې د هغوى نه دغه خواهشات لرې کول ډير مشکل کار وي، ځکه چه هغه ئې مَلَکه او عادت جوړ شوې وي، او اکثر خلك د خپلو عاداتو تابع وي او په اول د ژوند کښې چه کوم شي باندې اموخته وي د هغې نه مخالفت نشي کولې مګر ډير کم خلك۔ آه۔ (چرسي او پوډري تردې چه نسواري دغه نشې ولې نشي پريخوستې ؟ ځکه چه اموخته وي، که په رمضان کښې ئې پريدې نو د رمضان پسې سمدست بيرته دې ته راواپس کيږي ځکه چه اموخته شوي وي)۔

**فائده** :عام باطل پرست پدې خبره پوهيږي چه قرآن او حديث حق دي ليکن د ضد په وجه يا د تنظيم يا د پارټۍ نه د وتو په يره، يا د مشرئ، يا د دنيا د لالچ (عهدې، وظيفې) يا د ملامتيا د خاطره په باطل باندې کلك ولاړ وي، کله وائي چه که حق ته تسليم شو نو شاګردان به مو کم شي، کله وائي چه اُوسه پورې پدې لاره تلي يو، اُوس که په حق روان شو خلك به وائي چه اُوسه پورې نۀ پوهيدو، د ملامتيا نه يريږي، او کله وائي چه خلك به رابانديې اړې او مالونه بند کړي، او کله وائي چه عزت به مو ختم شي، يا خوراك او تنخواه به د کوم ځاى نه اخلو، کله وائي چه پدې تقليدي لاره باندې زمونږ علماء او مشران او پلار

نیکه تلی دی نو دا اُوس څنګه پریدو، دا تول د حق نه منع کونکی څیزونه دی. لیکن د قیامت ورځ چه کله راشی نو بیا به ارمان کوی چه په زړه کښې مو حق منلو خو ارمان چه په خوله او په عمل سره مو هم منلے وے.

وَلَوْ رُدُّوْا: یعنی الله فرمائی چه ما ته د دوی خوئی معلوم دے، که دوی دنیا ته بیرته واپس شی بیا دغه شرك او ګناهونو ته واپس کیږی کوم نه چه منع شویدی، او دوی دروغ وائی چه مونږ به بیا نهٔ واپس کیږو.

| وَقَالُوْٓا اِنْ هِيَ اِلَّا حَيَاتُنَا الدُّنْيَا وَمَا نَحْنُ بِمَبْعُوْثِيْنَ ﴿۲۹﴾ |
|---|
| او وائی دوی نهٔ دے دا مګر ژوند دے زمونږ نزدے او نهٔ یو مونږ دوباره راپورته کړے شوی. |

**تفسیر**: دا هم د مخکښې سره مربوط دے، یعنی که فرض کړے شی چه دا خلق د بعث بعد الموت او د قیامت د مناظرو لیدلو نه روستو دویم ځلی دنیا ته ولیږلے شی، نو الله پوهیږی چه دوی به د خپل تمرد (سرکشئ) او نافرمانئ په وجه همدا وائی چه دا دے دنیاوی ژوند نه روستو بل کوم دویم ژوند نشته دے، او د مرګ نه روستو به مونږ بیرته نهٔ ژوندی کیږو.

یا دا رد دے په بله عقیده د مشرکانو چه هغه د آخرت نه انکار دے، او په هغے باندے زجر ورکوی. لکه مخکښې رد وو په انکار د قرآن باندے. او دا علت دے دپاره د (کاذبون) او پدے کښې د دوی د کذب یو صورت ذکر دے. یعنی دوی دروغژن دی یو دروغ ئے دا دی چه آخرت نهٔ منی.

هِيَ: نه مراد معروف ژوند دے. یعنی ژوند صرف هم دا یو دے چه کوم کښې انسانان روان دی، او ددے ژوند د ختمیدو نه روستو بل ژوند نشته.

| وَلَوْ تَرٰٓى اِذْ وُقِفُوْا عَلٰى رَبِّهِمْ ؕ قَالَ اَلَيْسَ |
|---|
| او که ووینے ته هغه وخت چه وبه درولے شی دوی رب خپل ته وبه وائی آیا نهٔ دے |
| هٰذَا بِالْحَقِّ ؕ قَالُوْا بَلٰى وَرَبِّنَا ؕ قَالَ |
| دا (ژوند) حق، دوی به ووائی آؤ، ولے نهٔ قسم دے په رب زمونږ. وبه وائی الله |

| فَذُوْقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُوْنَ ﴿۳۰﴾ |
|---|
| پس وڅکئ عذاب په سبب د هغې چه تاسو کفر کولو۔ |

**تفسیر** : د دوی دپاره تخویف أخروی او اثبات د آخرت بیانیږی۔ نبی کریم ﷺ ته خطاب کولو سره وئیلے کیږی چه کله دا مشرکان د خپل رب مخے ته پیش کیږی نو ستا مخے ته به یو لوئی او یرونکے منظر وی، کله چه الله د دوی نه د زجر او توبیخ په طریقه تپوس کوی چه اُوس اُووایئ بعث بعد الموت حق دے او که نهٔ ؟ نو دوی به په رب باندے قسم کولو سره وائی چه آو، دا خو بالکل حق دے۔

وَلَوْ تَرٰٓى : ددے (لَوْ) جواب ئے نهٔ دے ذکر کړے دے دپاره چه ذهن هر طرفته لاړ شی۔

عَلٰى رَبِّهِمْ : أَىْ عِنْدَ رَبِّهِمْ ۔ د رب مخے ته۔ یا د هغه په حکم او د هغه په فیصله سره۔ لکه د ﴿وَقِفُوْهُمْ اِنَّهُمْ مَسْئُوْلُوْنَ﴾ (الصافات: ۲٤) په شان دے۔

هٰذَا : اشاره ده وقوف (ودریدو) ته۔ یا بعث بعد الموت ته۔

بِالْحَقِّ : نه مراد رشتیا ده۔

فَذُوْقُوا الْعَذَابَ: یعنی پدے اقرار به نهٔ خلاصیږی بلکه دوی دپاره به د سزا حکم کیږی۔

| قَدْ خَسِرَ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِلِقَآءِ اللّٰهِ ؕ حَتّٰٓى اِذَا |
|---|
| یقیناً تاوانیان شو هغه کسان چه دروغژن گنړی ملاقات د الله تعالیٰ، ترد ے چه کله |
| جَآءَتْهُمُ السَّاعَةُ بَغْتَةً قَالُوْا يٰحَسْرَتَنَا عَلٰى مَا |
| راشی دوی ته قیامت ناڅاپه، وائی به دوی هائے افسوس دے زمونږ په هغے چه |
| فَرَّطْنَا فِيْهَا وَهُمْ يَحْمِلُوْنَ اَوْزَارَهُمْ |
| کوتاهی کړے مونږ په باره د قیامت کښ او دوی به پورته کوی بوجونه د گناهونو خپلو |
| عَلٰى ظُهُوْرِهِمْ ؕ اَلَا سَآءَ مَا يَزِرُوْنَ ﴿۳۱﴾ |
| په شاگانو خپلو، خبردار بد دے هغه بوج چه دوی ئے پورته کوی۔ |

**تفسیر** : مضمون : پدے آیت کښ د الله د ملاقات نه چه څوک انکار کوی د هغوی

دپاره تخویف اُخروی دے۔ بیا د دنیا بی رغبتی بیان شویده، بیا رسول الله ﷺ ته تسلی ده او په (۳۵) آیت کښې هغه ته تعلیم ورکوی، او په (۳٦) آیت کښې د خلکو دوه دلو ته تقسیم دے، یو مستجیبین (خبره منونکی) او بل موتیٰ دی۔ بیا په (۳۷) کښې د مشرکانو تعنتی اعتراض دے، او د هغے دوه جوابونه (قُلْ اِنَّ اللّٰهَ قَادِرٌ) او (وَمَا مِنْ دَابَّةٍ) سره۔ بیا (۳۹) آیت کښې د الله د آیتونو تکذیب کونکو گمراهي بیانوی او (۴۰) آیت کښې نفی د شرك فی الدعاء هم ده او ورسره تخویف دے۔

پدے آیتِ کریمه کښې الله تعالیٰ د هغه خلقو د تاوان حال بیان کړیدے چه د الله په دربار کښې د جواب ورکولو نه او د بعث بعد الموت نه انکار کوی چه ددے نه لویه د تاوان او نقصان خبره بله کومه کیدے شي۔ او دوی به په همدے حال کښې وی تردے چه دوی باندے کله مرگ ناڅاپي راشي نو په اُوچت آواز سره به د خپلو افسوسونو او پښیمانتیا اعلان کوی چه افسوس صد افسوس چه مونږ په دنیاوی ژوند کښې د تقصیر او کوتاهي نه کار اخستو۔ او نن مونږ حقیقی تاوان اُولیدو۔ او پدے باندے زیات به دا وی چه دوی به گناهونه په خپلو شاګانو باروی۔ او ممکن ده چه الله تعالیٰ به د دوی گناهونو له د یو بد شکل انسان صورت ورکړی، چه هغه به دا کافران په میدان محشر کښې په خپلو شاګانو کرځوی۔ لکه چه په بعض روایتونو کښې راغلی دی چه هغه حافظ ابن کثیرؒ ذکر کړیدی، او دا هم کیدے شی چه دا یو تمثیل وی چه ددے په ذریعه د قیامت په ورځ د کافرانو او مشرکانو واقعي احوال بیانول مقصود وی۔

**قَدْ خَسِرَ الَّذِيْنَ :** دا خلك ولے تاوانیان شو؟ وجه دا ده چه په مصیبت باندے ور روان دی او هغے له تیارے نکوی، فکرئے هم نشته۔ دویم د عظیم نعمتونو نه محروم شو کوم چه نورو خلکو وګټل۔ دارنګه د الله تعالیٰ د دیدار نه محروم شو او د هغهٖ د رضوان (رضا) نه، دا ټول تاوانونه دی۔

**بِلِقَآءِ اللّٰهِ :** د لقاء الله درے معانی دی (۱) الموت۔ (مرگ) (۲) بعث بعد الموت۔ (دوباره ژوندی کیدل) (۳) رُؤْيَةُ اللّٰهِ عَزَّوَجَلَّ۔ (د الله تعالیٰ دیدار کول)۔ او دلته ترے مراد بعث بعد الموت او د الله دیدار دے۔

**بَغْتَةً :** قیامت به داسے ناڅاپي راځي چه خلك به خوراك ته ناست وی او رابه شی۔

**فَرَّطْنَا فِيْهَا :** (فِيْهَا) نه مراد آخرت دے۔ یعنی د آخرت دومره لویه ورځ وه او مونږ پدے باره کښې دومره ډیره کوتاهي کړیده او هیڅ تیارے مو ورله نهٔ کولو۔ یا (فِيْهَا) ضمیر دنیا

ته راجع دي۔ چه دنیا کښې مونږ کوتاهي کړې چه د آخرت دپاره مو پکښې څه نۀ دي کړي۔
وَهُمْ يَحْمِلُونَ : یعنی دوی خو به د خپلې ګناه نسبت مشرانو ته کولو چه زمونږ آزار او ګناهونه به د هغوی په غاړه وي، نو الله وفرمایل چه دوی به خپل ګناهونه راپه شا کړي او د بل چا ګناه څوك نشي پورته کولې، البته د ګمراه کولو او غلط دعوت ګناه به ورته رسیږي۔
اَوْزَارَهُمْ : د بوجونو نه مراد ګناهونه دي۔
سَآءَ مَا يَزِرُوْنَ : دا ورسره څکه وائي چه بعض بوجونه د میوو او مالونو وي خو دا ډیر بد بوج دے څکه دے پسې سراسر عذابونه دي۔

| وَمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَآ اِلَّا لَعِبٌ وَّلَهْوٌ ؕ وَلَلدَّارُ الْاٰخِرَةُ خَيْرٌ |
|---|
| او نۀ دے ژوند دنیوی مګر لوبې او مشغله ده او خامخا کور روستنے ډیر غوره دے |
| لِّلَّذِيْنَ يَتَّقُوْنَ ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿۳۲﴾ |
| هغه کسانو لره چه تقویٰ کوي، آیا نو عقل نۀ لرئ تاسو۔ |

**تفسير** : پدې آیت کښې د دنیا بې رغبتي بیان شویده، او ددې بې ثباتي او زر ختمیدل او اثبات د بعث بعد الموت، او د آخرت د کامیابۍ دپاره د کوشش کولو ترغیب ورکړے شویدے۔ چه اے د الله بندګانو! د دنیا ژوند د لوبو او تماشو نه زیات هیڅ هم نۀ دی، پدے وجه ددې د مزو بندیان مۀ جوړیږئ او د آخرت د کامیاب جوړولو په کوشش کښې لګیا شئ، څکه چه اصل کامیابي د آخرت کامیابي ده۔
لَعِبٌ وَّلَهْوٌ : دا تشبیه یو په عدم نفع کښې ده، یعنی لکه څنګه لوبې او تماشې فائده منې نۀ دي، نو دغه شان د دنیا زندګي هم فائده منه نۀ ده مګر هغه چه د الله دپاره وي۔
دویم دا تشبیه په عدم ثَبات او په جلتۍ سره ختمیدو کښې ده۔ لکه څنګه چه لوبې او تماشې زر ختمیږي او څه همیشوالے نۀ لري، وخت ئې کم وي صرف د مازیګرې لږ وخت۔
علامه سعديؒ وائي : لَعِبٌ فِي الْاَبْدَانِ وَلَهْوٌ فِي الْقُلُوْبِ۔ یعنی دنیا په بدنونو باندې لوبې دي او په زړونو کښې لهوه ده، نو زړونه په دنیا باندې غافله او مشغول دي او نفسونه پدې باندې عاشق دي او هموم (غمونه) دې پورې متعلق دي۔ او مشغولتیا پدې باندې د ماشومانو د لوبو په شان ده۔ (تفسير السعدي)

## لعب او لهو کښې فرق

لعب هغه لوبو ته وائي چه نهٔ پکښې لذت وي او نهٔ څه فائده لکه ماشومان چه ځان مشغولوي۔ او لهو هغې ته وائي چه په هغې کښې څه نا څه لذت وي لکه خوانان چه کومې لوبې کوي، ټي وي، وي سي آر گوري، نيټ کيبل استعمالوي چه انسان غافله کوي۔ او دنيا دغه شان دوه قسمه ده۔ او د آخرت کارونه د لعب او لهو نه نهٔ دي ځکه چه حقيقت د لعب هغه دے چه فائده ترے نهٔ اخستے کيږي او لهو هغه دے چه انسان پرے د آخرت نه غافله کيږي، او کوم کار چه د آخرت دپاره کيږي هغه د دواړو نه بهر دے۔ (القرطبي)

صاحب المنارؒ وائي : لعب هغه کار ته وائي چه کونکے په هغې سره يو صحيح مقصد نهٔ اراده کوي چه هغه فائده اخستل او ضرر دفع کول دي لکه د ماشو مانو کارونه چه په هغې باندے ذاتي طور سره خوند اخلي۔تو د حلوئ د ډبي نه پرده لرے کول يا يوه دانه د خوراك دپاره ماتولو ته لعب نهٔ وائي۔ او لهو : هغه شے دے چه انسان مشغول کوي د مهم کار نه، او بيا هر هغه شے چه په هغې سره فائده اخستے کيږي هغې ته لهو وائي۔ (مفردات راغب)

او لهو په اصل کښې هر هغه شي ته وائي چه انسان مشغوله کوي برابره ده چه لوبې وي، يا مستي وي، يا د خوشحالئ اسباب وي، يا د هغه خيزونو نه راحت حاصلول وي چه هغه انسان لره ستړي کونکي يا په مشقت کښې اچونکي يا غمژن کونکي او خفه کونکي وي لکه د دنيا مصيبتونه او تکليفونه شو۔ بيا پدے کښې توسع وشوه نو کله ددے اطلاق کيږي په هغه شي باندے چه په هغې کښې خوشحالي او لذت وي اگر که په هغې سره مقصد د مشقت والا کارونو نه ځان مشغول کول نهٔ وي لکه د زنانو سره مستي کول او د هغوي نه فائده اخستل۔ او کله لهو هغه کوشش ته وائي چه انسان پرے د بل کوشش نه ځان مشغوله کوي ليکن ددے دپاره به فعل استعماليږي يعني داسے به وئيلے شي چه [لَهَوْتُ بِكَذَا عَنْ كَذَا] [ومنه قوله : فَأَنْتَ عَنْهُ تَلَهّٰى] او داسے به نهٔ وئيلے کيږي چه [هٰذَا الْفِعْلُ لَهْوٌ]۔

نو معنیٰ به دا وي چه کافران چه دا دنيا صرف ژوند گنړي - چه دا عبارت دے د هغه خيزونونه چه دوي پرے ذاتي طور سره خوندونه اخلي، يا دوي لره د غمونو نه مشغوله کوي- نو دا خو صرف لعب او لهو دي چه دے کښې هيڅ داسے فائدے دوي لره نشته چه هغه په روستو ژوند کښې فائده ورکړي۔ يا دا ژوند دائر دے په مابين د داسے عمل کښې چه

په عاقبت کښې فائده نهٔ ورکوی لکه د ماشومانو د لوبو په شان، او په مابین د داسې عمل کښې چه د هغې په جلتئ سره سلبی فائده شته لکه څنګه چه د لهو فائده شته چه هغه غمونه او دردونه لرې کول دی لکه ددې وضاحت د بعض علماؤ په قول سره کیږی چه د دنیا ټول خوندونه سلبی دی څکه چه دا دردونه زائل کول دی، د طعام لذت د لوږې درد زائل کوی، او ددې درد په اندازه په طعام کښې لذت غټیږی، او د اُوبو څکلو خوند د تندې درد ختموي. (المنار ۷/۳۰۴)

وَلَلدَّارُ الْاٰخِرَةُ : پدې کښې اشاره ده چه د متقیانو کار دا دې چه د لهو او لعب نه به خان ساتي. او دیل طرفنه کوم کارونه چه د متقیانو نهٔ دی هغه لهو او لعب دی. (القاسمی)

يَتَّقُوْنَ : یعنی د شرك او کفر او ګناهونو او لهو ولعب نه خان بچ کوی.

اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ : د عقل تقاضا دا ده چه بنده باقی په فانی باندې غوره کړی.

| قَدْ نَعْلَمُ اِنَّهٗ لَيَحْزُنُكَ الَّذِىْ |
|---|
| یقیناً پو هیږو مونږ چه بیشکه شان دا دې چه خامخا خفه کوی تا لره هغه خبرې |
| يَقُوْلُوْنَ فَاِنَّهُمْ لَا يُكَذِّبُوْنَكَ وَلٰكِنَّ الظّٰلِمِيْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ يَجْحَدُوْنَ ﴿۳۳﴾ |
| چه وائی ئې دوی پس یقیناً دوی دروغجن نهٔ ګڼړی تا لیکن ظالمان د آیتونو د الله نه انکار کوی. |

**تفسیر:** پدې آیت کښې بیا تسلی ده رسول الله ﷺ ته. مکې والو به چه کله د نبی کریم ﷺ تکذیب کولو او په کفر او عناد کښې به ئې د حد نه تجاوز کولو نو نبی ﷺ ته به ډیر زیات تکلیف ملاویدو او په غم او پریشانئ کښې به اخته کیدو. الله تعالیٰ د نبی ﷺ دې حال لیدو سره پدې آیت کښې تسلی ورکړیده، چه دا خلك ستا بدی نهٔ بیانوی بلکه دا زما بدي بیانوی، نو زهٔ به د دوی نه سخت ترینه بدله واخلم.

يَقُوْلُوْنَ : یعنی دوی درته شاعر او ساحر او لیونې وائی نو زهٔ پدې پو هه یم.

فَاِنَّهُمْ لَا يُكَذِّبُوْنَكَ : ۱- ددې یوه معنیٰ دا ده چه دوی ستا تکذیب په زړه کښې نهٔ کوی صرف په ژبه باندې د ضد د وجه نه انکار کوی. ۲- دویم دا چه دوی تا ته کاذب نهٔ وائی څکه چه دوی به رسول الله ﷺ ته صادق او امین وئیلو لیکن د وحی او د رسالت په وجه به ئې د هغه تکذیب کولو نو په حقیقت کښې دا خلك د الله دشمنی کوی.

ابوجهل نه چا تپوس وکړو چه محمد (ﷺ) چه کوم خبرې کوی دا دروغ دی؟ نو هغه

وونیل : [وَاللّٰهِ مَا نُکَذِّبُ مُحَمَّدًا وَلٰکِنْ نُکَذِّبُ مَا جَاءَ بِهِ]۔
قسم په الله که مونږ د محمد تکذیب کوو لیکن مونږ تکذیب کوو دهغه خبرو چه دهٔ راوړیدی یعنی خبرے ئے غلطے دی۔ (رواه الحاکمؒ - ابن کثیرؒ) (وصححه ابو عبد الله الدانی بن منیر آل زهوی فی ((سلسلة الآثار الصحیحة او الصحیح المسند من اقوال الصحابة والتابعین) (رقم ۳۴۹)
لکه دا د باطل پرستو طریقه ده چه وائی دا فلانے سرے ډیر ښه دے او متقی دے لیکن مسئلے ئے ورانے دی، د اولیاؤ او د امامانو بی عزتی کوی او که د ایمان او د تقویٰ خبرے ئے کولے نو ښه به وے۔
او اَخنس بن شُریق د ابوجهل نه د رسول الله ﷺ او د هغه د خبرو په باره کښې تپوس وکړو نو هغه وونیل چه مونږ او بنو عبد مناف د یو بل سره په فخرونو او د شرافت په کارونو کښې برابر وو آخر دوی وونیل چه مونږ کښې یو نبی شته چه د آسمان نه ورته وحی راځی نو مونږ خو دا فضیلت نشو موندلے؟ نو قسم په الله چه مونږ به پرے ایمان نهٔ راوړو او نهٔ به ئے تصدیق کوو۔ (ابن اسحاقؒ - فی ظلال القرآن)
نو دوی د رسول الله ﷺ ذاتِ گرامی منلو لیکن د هغه دعوت ئے نهٔ منلو، او دا په حقیقت کښې د الله سره دشمنی ده ځکه ورته الله تعالیٰ د غضب الفاظ استعمال کړیدی او ظالمان ئے ورته وئیلی دی۔
علامه ابوالسعودؒ په خپل تفسیر کښې لیکلی دی چه دا آیت دلیل دے ددے خبرے چه د نبی کریم ﷺ مقام د الله تعالیٰ په نیز دومره اُوچت او پورته دے چه دے نه روستو هیڅ مقام نشته، پدے وجه الله تعالیٰ د خپل نبی تکذیب د خپل آیتونو تکذیب اُوګرځولو، بلکه د نبی کریم ﷺ د تکذیب نفی ئے اُوکړه او د خپل آیتونو تکذیب ئے ثابت کړو۔
يَجْحَدُوْنَ : جحود : نَفْيُ مَا فِي الْقَلْبِ إِثْبَاتُهٗ وَإِثْبَاتُ مَا فِي الْقَلْبِ نَفْيُهٗ۔ (مفرداتِ راغب)
په زړه کښې چه د کوم شی اثبات وی هغه نفی کول او په زړه کښې چه د کوم شی نفی وی د هغې اثبات کولو ته جحود وائی چه دا په معنیٰ د انکار مع العلم سره استعمالیږی۔ ددے آیت زیات وضاحت په سورة الاسراء (۴۶) آیت کښې موجود دے۔

وَلَقَدْ كُذِّبَتْ رُسُلٌ مِّنْ قَبْلِكَ فَصَبَرُوْا

او یقیناً دروغژن وئیلے شویدی ډیرو رسولانو ته مخکښې ستا نه نو صبر کړے هغوی

| عَلٰی مَا کُذِّبُوْا وَاُوْذُوْا حَتّٰی |
|---|
| په هغې چه دوی ته دروغژن وئیلې کیدل او تکلیف ورکړې شوې وو تردې چه |
| اَتٰـهُمْ نَصْرُنَا ج وَلَا مُبَدِّلَ لِکَلِمٰتِ اللّٰهِ ج |
| راغلو هغوی ته مدد زمونږ، او نشته هیڅوك بدلونکې د کلمو (وعدو) د الله تعالیٰ |
| وَلَقَدْ جَآءَكَ مِنْ نَّبَاِی الْمُرْسَلِیْنَ ﴿۳٤﴾ |
| او یقیناً راغلې دې تا ته د خبر د رسولانو نه۔ |

**تفسیر**: پدې آیت کښې بیا تسلي ده رسول الله ﷺ ته او زیرې دې هغه ته په مدد کولو سره لکه چه د تیر شوي رسولانو سره مدد کړې شویدې، ځکه چه دا قانون دې چه کله مصیبت عام شي نو د هغې برداشت کول آسانیږي۔ نبي ﷺ ته نصیحت شویدې چه لکه څنګه چه ستا نه مخکښې رسولانو د خپلو قومونو په قسماقسم ضررونو صبر کړې، نو ته هم صبر اُوکړه۔

نَصْرُنَا : دلته وقف دې اَیْ فَاصْبِرْ اَنْتَ وَمَعَكَ النَّصْرُ۔ ته هم صبر کوه او د الله مدد به تا ته رارسیږي۔

وَلَا مُبَدِّلَ لِکَلِمٰتِ اللّٰهِ : د (کلمات الله) نه مراد دلته تورات، انجیل، زبور او قرآن نهٔ دې ځکه چه هغه خلك بدلولې شي، بلکه د کلمات الله نه مراد دلته [مَوَاعِیْدُ اللّٰهِ بِالنَّصْرِ] دې، د الله وعدې د نصرت۔ لکه صافات (۱۷۲) آیت کښې دي۔ او دا په هره ژبه کښې محاوره ده، په پښتو کښې خلك وائي چه ما دا خبره وکړه خو په بله به ئې نهٔ کړې۔یعنې ما حقیقت بیان کړو نو که ددې نه په غیر تهٔ بله خبره کوې هغه به د حقیقت خلاف وي۔ نو ددې مطلب دا شو چه الله یوه خبره وکړه چه زه به خپل نبي سره مدد کوم نو که ټوله دنیا راجمع شي او د نبي سره مدد ختموي او هغه ته شکست ورکوي او هغه ذلیله کول غواړي نو هیڅکله ئې نشي کولې۔

وَلَقَدْ جَآءَكَ : سوال پیدا شو چه الله تعالیٰ کومو پیغمبرانو سره مدد کړیدې ؟ نو وې فرمایل: تا ته پدې قرآن کښې خبرونه د پیغمبرانو راغلي دي، هغه ولوله او عبرت ترې واخله چه هغوی سره څنګه مددونه شویدي۔

| وَاِنۡ كَانَ كَبُرَ عَلَيۡكَ اِعۡرَاضُهُمۡ فَاِنِ اسۡتَطَعۡتَ اَنۡ تَبۡتَغِىَ |
|---|
| او که چرته وی ګران په تا باندې مخ اړول د دوی نو که طاقت لرې ته چه طلب کړې |
| نَفَقًا فِى الۡاَرۡضِ اَوۡ سُلَّمًا فِى السَّمَآءِ فَتَاۡتِيَهُمۡ بِاٰيَةٍ ؕ وَلَوۡ شَآءَ |
| یو سورنګ په زمکه کښې یا پوړیٔ آسمان ته پس چه راوړې دوی ته څۀ نخه، او که غوختے |
| اللّٰهُ لَجَمَعَهُمۡ عَلَى الۡهُدٰى فَلَا تَكُوۡنَنَّ مِنَ الۡجٰهِلِيۡنَ ﴿۳۵﴾ |
| الله تعالیٰ خامخا جمع کړی به ئے وے دوی په هدایت باندے پس مۀ کیږه د ناپو هو نه۔ |

**تفسیر**: پدے آیت کښې رسول الله ﷺ ته په باب د دعوت کښې تعلیم ورکړے کیږی، رسول الله ﷺ به ډیر حرص کولو چه مشرکان کومے معجزے غواړی چه الله تعالیٰ نے نازلے کړی نو ښه به وی، کیدے شی چه دوی ایمان راوړی، نو الله خپل نبی ته تعلیم ورکوی چه دا خلك که د معجزو طلب کوی نو ته به ئے نۀ کوے، هدایت د الله په اختیار کښې دے، ستا په لاس کښې نۀ دے، که ستا په لاس کښې وی نو څه ته ورته هدایت وکړه، نو هر کله چه هدایت د الله په لاس کښې دے، نو د الله نه به ځان نۀ مخکښې کوے، د الله پدے باب کښې ډیر حکمتونه دی چه دلته بعضو ته اشاره کوی۔

او پدے آیت کښې نبی ﷺ ته په یوه دریمه طریقه سره تسلی هم ورکړے کیږی چه که د کافرانو ایمان نۀ راوړل په تا باندے ګران تیریږی، نو ته د زمکے د یو سُرنګ نه یا پوړیٔ لګولو سره د آسمان نه د دوی دپاره یوه داسے نخه راوړه چه دوی د ایمان په راوړو مجبوره کړی، نو که ستا وس وی نو رائے وړه لیکن ته داسے نشی کولے، ځکه چه الله تا ته داسے قدرت نۀ دے درکړے، ځکه چه که داسے ممکن وے نو بیا ایمان راوړل ضروری کیدل لیکن داسے ایمان به د دوی دپاره فائده مند نۀ وی۔ نو معلومه شوه چه هدایت ستا په اختیار کښې نۀ دے نو په دوی پسے خفګان مۀ کوه۔

فَتَاۡتِيَهُمۡ بِاٰيَةٍ نه روستو (فَافۡعَلۡ) (وکړه) لفظ پټ دے۔

وَلَوۡ شَآءَ اللّٰهُ : اَىۡ اِيۡمَانَهُمۡ جَبۡرًا۔ الله فرمائی : که الله د دوی ایمان غوختلے جبراً، (یعنی په زور سره) نو تمام انسانان به ئے د هدایت په لاره راجمع کړی وے، لیکن د هغه مشیت د انتهائی قهر او انتهائی لطف او مهربانی ښکاره کولو په غرض داسے ونکړل۔ پدے وجه اے نبی! (ﷺ) ته د دوی د ایمان سخت آرمان مۀ کوه، یا د دوی د مطالبے پوره کولو سخت

خواهش کولو سره ددے ناپوهو په شان مهٔ جوړېږه، کوم چه د الله د مشیت یا د هغه د حکمت او مصلحت په تقاضا نهٔ پوهیږی۔ څکه چه که الله په زوره دوی ایمان ته راوستلے نو بیا به په دنیا کښې ابتلاء (امتحان) نهٔ راتلو، بیا به د نیك او بد، د نبی او غیر نبی کمال څه وو، ټول به هدایت والا وے نو امتحان به نهٔ وو او حال دا چه الله تعالیٰ په دنیا کښې بندګانو باندے امتحان کوی چه رسولان ورته راولیږی که چا په خپل بصیرت سره ایمان راوړو، نو د جنت مستحق به شی او که چا ایمان رانهٔ وړو نو د جهنم لائق به شی، نو ددے امتحان د وجه نه څه کسان جنت دپاره او څه د جهنم دپاره جوړوی۔ دا د هغه حکمت دے۔

بیا پدے امتحان کښې ډیرے فائدے وی، تمییز د خبیث او د طیب کیږی، الله پدے سره پیژندلے شی، هغه ته عاجزی ډیره کیږی، د هغه بندګی زیاته کیږی۔ عقلمند بنده به د الله تعالیٰ نه هدایت غواړی او ضد او عناد به نکوی۔

د آیت حاصل مطلب دا شو چه اے زما نبی ! زهٔ د هدایت په باب کښې په چا زور نکوم نو ته هم زور مهٔ کوه او د الله نه ځان مهٔ مخکښې کوه، بلکه دعوت کوه۔

فَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْجٰهِلِیْنَ : الله خپل نبی ته داسے خبره کولے شی، او دا تعلیم دے هغه ته چه تهٔ ددے ناپوهو په شان مهٔ کیږه چه د معجزو طلب کوے۔ او پدے کښې هغه ته زجر ورکول مقصد نهٔ دے۔ دویم دا د (وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ) سره متعلق دے (یعنی فَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْجَاهِلِیْنَ بِقَوْلِهٖ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ) یعنی ددے خبرے نه ځان مهٔ ناپوهه کوه چه که الله غواړی دوی ته هدایت کولے شی، الله پدے قادر دے۔ یعنی دا خبره دماغو کښې یاد ساته چه الله د دوی په هدایت قادر دے لیکن دغسے طریقے سره نهٔ کومه چه دوی غواړی بلکه په طریقه د امتحان سره هدایت کوی۔

| اِنَّمَا یَسْتَجِیْبُ الَّذِیْنَ یَسْمَعُوْنَ ط وَالْمَوْتٰی |
|---|
| یقیناً خبره منی هغه کسان چه آوری او مړی (چه کافران ورسره مشابه دی) |
| یَبْعَثُهُمُ اللّٰهُ ثُمَّ اِلَیْهِ یُرْجَعُوْنَ ﴿۳۶﴾ |
| راپورته به کړی دوی لره الله تعالیٰ بیا به خاص هغه ته واپس کولے شی۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښې الله فرمائی چه دعوت کله وشی نو دوه قسمه خلك پیدا شی، یو مستجیبین (یعنی خبره قبلونکی) او بل موتیٰ (هغه کافران چه زړونه ئے د مړو په شان

وی)۔ پدے کښې اشاره ده چه بعض خلك استعداد والا وی او بعض بې استعداده، نو که تهولو باندے الله تعالیٰ زور وکړی، نو بې استعداده خلك به هم مؤمنان شی نو بیا څه فائده وشوه؟ نو الله تعالیٰ اختیار څکه ورکړو چه بعض خلك به په خپل اختیار ایمان راوړی، او څوك به کفر وکړی په خپل اختیار نو اهل خلك به د نا اهلو نه جدا شی او دغه د امتحان مقصد دے۔

اِنَّمَا يَسْتَجِيْبُ : اَیْ دَعْوَتَكَ : یعنی ستا دعوت هغه خلك قبلوی۔

يَسْمَعُوْنَ : چه هغوی خبرے ته غوږ ږدی او بیا ئے قبلوی۔ سماع د انابت او د فهم حاصلولو مراد ده۔

وَالْمَوْتٰى : دے جمله کښې تشبیه ده، دلته ئے کافران د مړو سره مشابه کړیدی لکه څنګه چه مړی نۀ آوری نو کفار اګرکه آوری لیکن استجابت نۀ کوی نو ګویا که داسے دی لکه چه نۀ ئے آوری۔ نو مړی به په قیامت کښې الله ته پیش کیږی نو دغه شان به دا کافران الله ته پیش شی او هغه به ورسره حساب کوی۔ او دا په لنډو الفاظو کښې ډیر مزیدار مثال دے۔

څینی مفسرین (قاسمیؒ) ددے آیت مطلب داسے بیانوی : چه مخکښې په (۲۵) آیت کښې الله تعالیٰ د مشرکانو دا صفت بیان کړے وو چه د دوی په زړونو باندے پرده پرته ده، پدے وجه که قرآن آوری هم نو په هغے سره دوی ته هیڅ فائده نۀ رسیږی۔

همدا خبره الله تعالیٰ په دے آیت کښې په یو بل انداز کښې بیان کړیده چه دا مشرکان د مړو په شان دی، د دوی نه د ایمان توقع څنګه کیدے شی؟ ایمان خو هغه خلق راوړی چه ژوندی وی او د الله او د رسول خبرے په سوچ سره آوری او د هغے نه عبرت حاصلوی۔ دوی ته خو د حیواناتو ژوند ورکړے شویدے لیکن د دوی زړونه د فاسدو عقیدو او د رذیل اخلاقو په زهرو سره مړۀ شویدی۔

دے نه روستو الله تعالیٰ وفرمایل چه دا کافران چونکه نۀ آوری او نۀ جواب ورکوی پدے وجه مړۀ دی۔ دوی به الله تعالیٰ د قیامت په ورځ بیرته راپورته کوی او د هغه مخے ته به پیش کولے شی، په هغه وخت به هغه دوی ته د دوی د عملونو بدله ورکوی۔ (السعدی والمنار وتیسیر الرحمن)

نو د (يَسْمَعُوْنَ) نه مراد اَحياءُ القلوب (یعنی ژوندی زړونو والا) شو او د موتیٰ نه مراد موتی القلوب (یعنی مړو زړونو والا) شو۔

وَالْمَوْتٰى : خازن، نیشاپوری او السراج المنیر داسے وائی : چه دا مقابل د (اَلَّذِيْنَ يَسْمَعُوْنَ)

دے یعنی خبره هغه خلك قبلوی چه هغوی خبرے ته غوږ اږدی او انابت پکښی وی.
[وَالْكُفَّارُ الَّذِيْنَ هُمْ بِمَنْزِلَةِ الْمَوْتٰى فِيْ عَدَمِ السَّمَاعِ فَهُمْ لَا يَسْمَعُوْنَ يَبْعَثُهُمُ اللّٰهُ] او هرچه هغه کافران دی چه په شان د مړو دی په نهٔ آوریدو او نهٔ قبلولو د حق کښې نو دوی خبره نهٔ آوری او نهٔ ئے قبلوی نو دوی به الله تعالیٰ قیامت کښې راپورته کړی او هغه ته به د حساب کتاب دپاره ورو گرځولے شی. نو پدے کښې ترغیب دے چه تاسو استجابت د الله او د رسول وکړئ او منع ده د مخالفت نه. (السعدیؒ)

قاسمیؒ وائی: پدے کښې اشاره ده چه د کفارو هدایت د مړو د راژوندی کولو په شان دے چه صرف الله تعالیٰ پرے قادر دے نو پدے کښې د رسول الله ﷺ نا امیده کول دی د دوی د ایمان نه. او کافرانو ته مړی وئیل دوی پورے دومره تهکم او سپکاوے دے چه په هیڅ پټ نهٔ دے. (محاسن التاویل)

| وَقَالُوْا لَوْلَا نُزِّلَ عَلَيْهِ اٰيَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ ط قُلْ |
|---|
| او وائی دوی ولے نشی نازلیدے په دهٔ باندے نخه د طرفه د رب ددهٔ نه تهٔ ووایه! |
| اِنَّ اللّٰهَ قَادِرٌ عَلٰٓى اَنْ يُّنَزِّلَ اٰيَةً وَّلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٣٧﴾ |
| یقیناً الله قادر دے پدے چه نازله کړی نخه لیکن ډیر د دوی نه نهٔ پو هیږی. |

**تفسیر**: اُوس د موتیٰ تذکره کوی چه دا دومره ضدیان او عنادگر خلك دی چه الله څومره معجزات رالیږلی دی، هغه نهٔ منی او نور معجزات غواړی. نو پدے آیت کښې زجر دے په اِقْتِرَاحُ الْاٰيَاتِ (یعنی د خانه د معجزاتو په طلب کولو).

اٰيَةٌ: اَیْ مَطْلُوْبَةٌ لَنَا. یعنی هغه معجزه دے راوړی چه مونږه ئے طلب کوو مثلاً د مکے نه دے غرونه لرې کړی، نهرونه او چینے دے روانی کړی.

وَّلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ: ١- یعنی الله تعالیٰ کولے شی چه دغه شان معجزه نازله کړی لیکن اکثر د دوی نهٔ پو هیږی په قدرت د الله. (قرطبیؒ) ٢- یا په عاقبت د معجزے باندے، ځکه چه که الله معجزه راولیږی او دوی ئے ونهٔ منی نو غرق به شی.
٣- یا لَا يَعْلَمُوْنَ بِالْمَصْلَحَةِ. (قرطبیؒ) په مصلحت باندے نهٔ پو هیږی ځکه چه که د مکے نه غرونه لرې شی نو بل تن به ووائی چه مکه ډیره آزاده ده، لږ غرونه پکښې مزه کوی هغه پکښې راوله، بل به وائی آسمان رابسکته کړه، او بل به وائی چه دیوال د سرو زرو کړه

نو دا خو د الله نظام خرابول دی نو د کافرو په خبرو کښې مصلحت نشته۔ بس الله چه څه رالیږلی دی دغه د هدایت دپاره کافی دی۔

| |
|---|
| وَمَا مِنْ دَآبَّةٍ فِي الْاَرْضِ وَلَا طٰٓئِرٍ يَّطِيْرُ بِجَنَاحَيْهِ |
| او نشته هیڅ ژنده سر په ځمکه کښې او نهٔ مرغئ چه الوځی په وزرو خپلو |
| اِلَّآ اُمَمٌ اَمْثَالُكُمْ ؕ مَا فَرَّطْنَا فِي الْكِتٰبِ |
| مګر ډلے دی ستاسو په شان۔ نهٔ دے پریخے مونږ په دے کتاب کښې |
| مِنْ شَيْءٍ ثُمَّ اِلٰى رَبِّهِمْ يُحْشَرُوْنَ ﴿۳۸﴾ |
| هیڅ شے (ضروری د دین) بیا به خاص رب خپل ته دوی ورجمع کړے شی۔ |

**تفسیر** : دا تحقیقی جواب دے دوی ته، او ظاهر کښې دا کلام غیر مربوط ښکاره کیږی۔ لیکن ژوره معنیٰ پکښې پرته ده، د جواب حاصل روستو ذکر کیږی۔

فِي الْاَرْضِ : د فی الارض قید ئے ځکه ولګولو چه دَابّه لفظ کله صرف انسان ته هم وئیلے شی نو خبره عامه کوی۔

يَّطِيْرُ بِجَنَاحَيْهِ : دا ورسره ځکه وائی چه (طائر) کله ډاکی ته هم وائی نو هغه تړے وباسی۔

اُمَمٌ اَمْثَالُكُمْ : ۱- مفسرینو وئیلی دی چه حیوانات او مارغان ستاسو په شان امتونه دی په نومونو کښې چه څوك اُمَّةُ الْحِمَارِ (د خرو ډله) دے او څوك اُمَّةُ الْكِلَابِ (د سپو ډله) او څوك اُمَّةُ الطَّيْرِ (د مارغانو ډله) ده۔ ۲- یا امثالکم : اَیْ فِی الْخَلْقِ یعنی په پیدائش کښې ستاسو په شان دی، یعنی هغوی هم مخلوق دے او تاسو هم۔

۳- عطاء بن ابی رباحؒ وائی : اَمْثَالُكُمْ فِي التَّوْحِيْدِ وَالْمَعْرِفَةِ۔ یعنی ستاسو په شان دی په توحید او معرفت د الله کښې یعنی هغوی باندے هم توحید لازم وو او تاسو باندے هم لازم دے او هغوی منلے دے او تاسو نهٔ دے۔ (بغوی)

٤- ابن قُتیبة وائی : اَمْثَالُكُمْ فِيْ طَلَبِ الرِّزْقِ وَتَوَقِّي الْمَهَالِكِ ۔ ستاسو په شان دی په طلب د رزق کښې او د ځایونو د هلاکت نه په ځان ساتلو کښې، یعنی هغوی هم ستاسو په شان ځانله روزی طلب کوی او د هلاکت د ځایونو نه ځان بچ کوی۔ (بغوی)

۵- فی ظلال القرآن کښې دی : اَمْثَالُكُمْ اَیْ لَمْ تُخْلَقْ سُدًی (مُهْمَلَةً) بَلْ مُعَبَّدَةٌ مُذَلَّلَةٌ۔ یعنی

ستاسو په شان دي پدے کښې چه دوی مهمل نهٔ دي پیدا بلکه د الله تابع دي او هغه ته عاجزي کوي لکه تاسو مهمل نهٔ یئ پیدا۔
٦- أَمْثَالُكُم فِي الْمَوْتِ وَالْبَعْثِ وَالْاِقْتِصَاصِ (ابو هريره ﷺ) په هغوی به هم مرګ راځي او دوباره به قیامت کښې راپورته کولے شي او د یو بل نه به قصاص اخلي لکه ستاسو په شان۔ (قرطبیؒ)
٧- أَمْثَالُكُم فِي التَّشْبِيهِ ۔ (سفيان بن عُيينة) یعني ستاسو په شان دي چه په حیوانانو کښې کوم صفات دي نو انسانانو کښې هم هغه شان شته، بعض خلك د حمار سره مشابه وي۔ او بعض د سپو سره او بعضِ د چرګانو او بعض د غوایانو په شان وي۔ (بغویؒ، قرطبیؒ)
پدے تولو تفسیرونو کښې د آیت ښه مطلب نهٔ واضح کیږي او پوره فائده نهٔ حاصلیږي۔
٨- نو ښه مطلب دا دے چه پدے آیت کښې د الله تعالیٰ د علم محیط او د هغه د قدرتِ کامله، شامله بیان دے چه انسان په دهشت کښې غورزوي او هغه پدے طریقه چه په زمکه کښې کوم حیوانات دي او په هوا کښې چه څومره مارغان الوزي چه په کروړاؤ او کربونو پیدا دي نو دا امتونه دي او یو یو نهٔ دے لکه تاسو یو غټ امت یئ، مختلف قِسمه انسانان پکښې دي نو دا تشبیه په کثرت (ډیروالي) کښې ده۔ او دا الله تعالیٰ په خپل طاقت پیدا کړیدي او دوی له رزق ورکوي۔ (تفسير ابى السعود ٢/٣٦٠)
او دا ورته معلوم دي او بیائے په لوح محفوظ کښې لیکلي دي بیا به ئے مره کوي بیا به د هغوی ذرات راجمع کوي او آخرت ته به ئے پیش کوي نو دا څومره عظیم قدرت او علم دے نو الله تعالیٰ ته معجزه رالیږل څه ګران دي او هغه پوهه دے نو کومه معجزه چه مناسبه وي هغه رالیږي۔
او (مَا فَرَّطْنَا فِي الْكِتٰبِ) کښې د کتاب نه مراد لوحِ محفوظ دے یعني بیا مے دا په لوح محفوظ کښې لیکلي هم دي، نو دا څیزونه اول معلوممول او بیا د هغې پیدا کول او بیا د هغې لیکل، او ددے نه بیا لوپه خبره دا ده چه ﴿ثُمَّ اِلٰى رَبِّهِمْ يُحْشَرُوْنَ﴾ بیا د دوی حشر، دا تول حیوانات او مارغان او انسانان به مره شي نو د دوی ذرات الله ته معلوم دي، سل کاله او زر کاله مخکښې یو مارغه مړ دے، د هغې ذرات کوم ځای پراته دي، دا تول الله ته معلوم دي نو د قیامت په ورځ به الله تعالیٰ ستاسو حشر هم وکړي او ددے مخلوقاتو حشر به هم وکړي، روحونه به پکښې واچوي۔ نو دا د الله تعالیٰ څومره کامل علم دے چه د تولو څیزونو نه ئے احاطه کړیده نو د الله دے علم او قدرت ته فکر وکړه۔

نو د مخکښې آیت سره ئې مناسبت دا سې شو او د جواب حاصل دا شو چه تاسو یوه معجزه غواړئ حال دا چه الله تعالیٰ دا تول کائنات روان کړيدي، او قیامت کښې به دا تول راجمع کوی نو په دغه مطلوبه معجزه خو خامخا قادر دے، لیکن نه ئې نازلوی دے دپاره چه د هغه د حکمتونو محافظت وشي. نو دا د (انّ الله قادرٌ) دپاره د دلیل په شان شو. (ابو السعود)

ددے آیت بل ربط ابن عطیۃ او محمد رشیدؔ رضا دا بیان کړیدے چه مخکښې الله تعالیٰ د انسانانو حشر بیان کړو (ثم الیه یرجعون) نو اُوس د حیواناتو او مارغانو حشر بیانوی چه قیامت حق دے، انسانان لا څه چه حیوانات به هم قیامت کښې راپورته کولے شي. المحرر الوجیزوالمنار ۷/۳۲٦)

مَا فَرَّطْنَا فِي الْكِتٰبِ د کتاب یو مصداق مخکښې بیان شو یا د کتاب نه مراد قرآن کریم دے چه دا د هر شي تبیان دے لکه په سورة الاعراف کښې به ددے تفصیل راشي. یعنی ما په قرآن کریم کښې هیڅ شے د مهمو څیزونو نه نهٔ دے پریښے چه د هغے نه یو ددے خبرے بیان دے چه الله تعالیٰ د ټولو مخلوقاتو د مصلحتونو رعایت کوی څنګه چه مناسب وی. (ابوالسعودؔ)

مِنْ شَيْءٍ : یا (من شیء) په شان د مفعول مطلق دے دپاره د (فَرَّطْنَا) نو معنیٰ دا ده چه مونږ په کتاب کښې هیڅ تفریط نهٔ دے کړے بلکه په هغے کښې مو هر ضروری شے ذکر کړیدے. (ابوالسعودؔ)

ثُمَّ اِلٰی رَبِّهِمْ يُحْشَرُوْنَ : ځینی خلکو دا ضمیر صرف انسانانو ته راجع کړیدے او د حیواناتو حشر ئې نهٔ دے منلے، لیکن صحیح دا ده چه (رَبِّهِمْ) ضمیر ټولو حیواناتو، مرغانو او انسانانو ته راجع دے، لکه احادیثو کښې د هغے تفصیل موجود دے.

## د حیواناتو د حشر حکمتونه

د حیواناتو په حشر کښې ډیر حکمتونه دی، (۱) یو د الله تعالیٰ د عدل اظهار دے چه که حیواناتو کښې چا ظلم کړے وی هغه به هم قصاص کړے شي.

(۲) دویم اظهار د قدرت د الله تعالیٰ دے، بندګانو ته خپل طاقت وربنائی.

(۳) دریم د انسانانو د شرمولو دپاره ئې راجمع کوی دے دپاره چه د انسانانو سزاګانو ته وګوری نو حیوانات به د دغه مجرم انسان پورے خاندی، نو د ملائکو، او انسانانو او

حیواناتو په مینځ کښې به د الله مخې ته ولاړ وی، الله تعالیٰ به ئې دے تولو ته شرموی۔
(٤) ځلورم دا حیوانات به خاورے شي نو د کفارو حسرت به ډیر شی، وَيَقُولُ الْكَافِرُ يَا لَيْتَنِي كُنْتُ تُرَابًا۔ کافر به وائی چه ایے ارمان! چه زهٔ خاورے شوے وے۔
**سوال :** حیوانات خو مکلف نهٔ دی نو قصاص به څرنګه واخستے شی؟
**جواب :** یو عذاب دے هغه پرے نشته او بل قصاص دے نو هغه شته۔ پدے کښې د الله تعالیٰ د عدل اظهار دے د قیامت په ورځ۔ لکه حدیث کښې دی : حَتّٰى يُقَادَ لِلشَّاةِ الْجَلْحَاءِ مِنَ الشَّاةِ الْقَرْنَاءِ۔ (مسلم : ٢٣٣٧) په دے ذکر شوی آیت باندے ډیر خلك نهٔ دی پوهه شوی۔

| |
|---|
| وَالَّذِينَ كَذَّبُوا بِاٰيٰتِنَا صُمٌّ وَّبُكْمٌ |
| او هغه کسان چه دروغژن کنړی آیتونه زمونږ کانړهٔ دی او ګونګیان دی |
| فِي الظُّلُمٰتِ ؕ مَنْ يَّشَاِ اللّٰهُ يُضْلِلْهُ ؕ |
| په تیارو کښې دی، هغه څوك چه وغواړی الله تعالیٰ (نو) ګمراه کړی هغه لره |
| وَمَنْ يَّشَاْ يَجْعَلْهُ عَلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿٣٩﴾ |
| او هغه څوك چه وغواړی الله (نو) وګرځوی هغه په لاره نیغه۔ |

**تفسیر :** پدے آیت کښې الله فرمائی چه د کافرو د علم اسباب اخستلے شویدی څکه پدے خبرو نهٔ پوهیږی، او پدے کښې زورنه ده چه حیوانات او مارغان خپلو مصلحتونو ته هدایت مونده کوی لیکن کافران هدایت نهٔ مونده کوی، د علم ذرائع ئې ختم کړیدی۔
دارنګه مخکښې آیت کښې د الله د علم او قدرت عموم بیان شو نو دلته د هغه د مشیت عموم بیانوی۔ (احسن الکلام)
مطلب دا دے چه کوم خلك چه د الله د آیتونو تکذیب کوی، د هغوی مثال په جهالت او ناپوهئ او د فکر او نظر په بد حالئ کښې د هغه کونړ او ګونګی سړی په شان دے چه هغه په تیارو کښې د حیران روانیدو دپاره پریښودے شی، دغسے سړے هیڅ کله هم نیغه لاره نشی مونډے، او د تیارو نه هیڅ کله هم نشی وتلے۔
ابو السعودؒ وائی : دا متعلق دے د (مَا فَرَّطْنَا) پورے یعنی مونږ په قرآن کښې تول ضروری څیزونه ذکر کړیدی او په هغے سره مو د خلکو عذرونه او بهانے ختمے کړیدی لیکن کوم خلك چه زمونږ د آیتونو تکذیب کوی نو هغوی په تیارو کښې راندهٔ کانړه پراته دی چه هیڅ

نـهٔ آوري په سوچ او پوهے سره، پدے وجه دے ته اساطير الاولين وائي او دا آيات نهٔ ګڼړي او نـور آيتـونـه طـلـب کوي او دوي (بُکم) ګونګيان دي چه قادر نهٔ دي چه په حق باندے نطق وکړي پدے وجه خو ستا دعوت نهٔ قبلوي، آه۔

في الظلمات ئے په مخکښې عطف نکړو اشاره ده چه صرف (صُمٌّ بُكْمٌ) د هدايت نه مانع نهٔ دے بلکه ورسره په ډيرو تيارو کښې ننوتل سبب د ګمراهئ دے۔

ابو السعودؒ وائي : پدے ذکر کولو کښې مقصد د دوي په جهالت کښې ژور ننوتل او د دوي بد حالي ذکر ده ځکه کوڼړ او ګونګے چه کله ليدونکے وي نو دير کرته د بل په اشاره سره په خبره پوهه شي اګر که په الفاظو سره نهٔ پوهيږي، او بل هم په اشاره سره پوهه کولے شي او کله چه ددے سره ړوند وي يا په تيارو کښې وي، نو دهٔ باندے د فهم (پوهے) دروازه بيخي بنده شي نو ځکه وروسته روستو تاکيد کوي چه (من يشأ الله يضلله) يعني دا خلك چه هر کله په داسے حال کښې دي نو دوي باندے مهر وهلے شويدے د دوي نه د ايمان طمع بيخي نشي کيدے ځکه چه ځانونه ئے خپله ګمراهئ ته وارتول نهٔ د الله په جبر (زور) سره۔

(ابو السعود ۲/ ۳۹۰)

| قُلْ اَرَءَيْتَكُمْ اِنْ اَتٰكُمْ عَذَابُ اللّٰهِ اَوْ اَتَتْكُمُ |
|---|
| ته ووايه !آيا خبر راکړئ ما ته که راشي تاسو ته عذاب د الله تعالیٰ يا راشي تاسو ته |
| السَّاعَةُ اَغَيْرَ اللّٰهِ تَدْعُوْنَ ۚ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۴۰﴾ بَلْ اِيَّاهُ تَدْعُوْنَ |
| قيامت آيا غير د الله نه بلئ تاسو که يئ تاسو رشتينى۔ بلکه خاص الله لره به بلئ تاسو |
| فَيَكْشِفُ مَا تَدْعُوْنَ اِلَيْهِ اِنْ شَآءَ |
| نو لرے به کړي هغه (تکليف) چه بلنه کوئ تاسو هغے ته که وغواړي الله تعالیٰ |
| وَتَنْسَوْنَ مَا تُشْرِكُوْنَ ﴿۴۱﴾ |
| او هيروئ تاسو هغه چه تاسو ئے د الله سره شريکان جوړوئ۔ |

**تفسير** : پدے کښې بـل عـقـلـي دليل دے او په دے کښې رد د شرك في الدعاء دے او د مشرکانو د جهالت ذکر دے چه دوي سَره ددے نه چه په مصيبتونو کښې صرف الله تعالیٰ ته آواز کوي او کله چه الله تعالیٰ مصيبت لرې کړي نو بيا ورسره شرك کوي لکه دغه شان

په سورة يونس (۲۲) او اسراء (۶۷) او سورة لقمان (۳۲) كښې هم دي.

اَرَءَيْتَكُمْ : همزه د استفهام تعجبي دپاره ده، او رأيت په معنىٰ د ليدلو يا پيژندلو سره دے او (كُمْ) حرف خطاب دے د تاكيد دپاره راغلے دے، اعراب نهٔ غواړي، نو حاصل د معنىٰ دا شو : [ءَ اَبْصَرْتَ اَوْعَرَفْتَ الْحَالَةَ الْعَجِيْبَةَ فَاَخْبِرْنِيْ عَنْهَا] يعنى آيا كه تاسو عجيبه حالت ليدلے وي يا مو پيژندلے وي نو ما ته د هغے نه خبر راكړئ)

عَذَابُ اللّٰهِ : يعنى په دنيا كښې عذاب راشي.

السَّاعَةُ : ددے نه مراد يا ورو كے قيامت دے يعنى مرگ. يا لوى قيامت دے.

دلته وقف دے اَىْ مَنْ تَدْعُوْنَ؟. يعنى خبر راكړئ چه د عذاب په وخت كښې به چا ته آواز كوئ. يا آغير الله به رابلئ.

صٰدِقِيْنَ : فِىْ اَنَّ اٰلِهَتَكُمْ تَنْفَعُكُمْ. ۱– كه تاسو رشتينى يئ چه ستاسو آلِهه تاسو ته فائده دركولے شى. ۲– يا كه تاسو رشتينى يئ نو خبر راكړئ چه آيا تاسو به په تكليف كښې غير الله رابلئ. (ابوالسعود)

بَلْ اِيَّاهُ تَدْعُوْنَ : دا دليل دے چه مشركان هم په سخت وخت كښې صرف الله ته آواز كوى او هغه ته رامدد شه وائى. نو پدے كښې په مشركانو رد دے چه هركله تاسو په مصيبت كښې صرف الله ته آواز كوئ نو بيا په راحت كښې هم دغه الله ياد كړئ. ددے آيت تشريح په سورة يونس (۲۲) آيت او په سورة النحل (۵۳/۵۲) كښې ده.

| وَلَقَدْ اَرْسَلْنَآ اِلٰٓى اُمَمٍ مِّنْ قَبْلِكَ فَاَخَذْنٰهُمْ |
|---|
| او يقيناً راليږلى دي مونږ (رسولان) ډيرو امتونو ته مخكښې ستا نه پس ونيول مونږ دوى لره |
| بِالْبَاْسَآءِ وَالضَّرَّآءِ لَعَلَّهُمْ يَتَضَرَّعُوْنَ ﴿۴۲﴾ فَلَوْلَآ |
| په تكليفونو د مال او تكليفونو د بدن دے دپاره چه دوى عاجزى وكړى الله ته. پس ولے نهٔ وه |
| اِذْ جَآءَهُمْ بَاْسُنَا تَضَرَّعُوْا وَلٰكِنْ قَسَتْ قُلُوْبُهُمْ |
| كله چه راغے دوى ته عذاب زمونږ چه عاجزى ئے كړے وے ليكن سخت شو زړونه د دوى |
| وَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۴۳﴾ فَلَمَّا نَسُوْا |
| او ښائسته كړيدى دوى ته شيطان هغه عملونه چه دوى به كول. نو هركله چه هير كړو دوى |

| مَا ذُكِّرُوْا بِهٖ فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ |
|---|
| هغه خبرې چه نصیحت ورکړې شوې وو دوی ته په هغې نو راکولاؤ کړے مونږ په دوی باندې |
| اَبْوَابَ كُلِّ شَيْءٍ ۭ حَتّٰٓى اِذَا فَرِحُوْا بِمَآ اُوْتُوْٓا |
| دروازې د هر شي، تردې چه خوشحالي وکړه دوی په هغه څه چه ورکړې شوي وو |
| اَخَذْنٰهُمْ بَغْتَةً فَاِذَا هُمْ مُّبْلِسُوْنَ ﴿٤٤﴾ فَقُطِعَ |
| نو راونیول مونږ دوی ناڅاپه پس دغه وخت دوی نا اُمیده وو۔ پس پریکړې شوې |
| دَابِرُ الْقَوْمِ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا ۭ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ |
| جرړې د قوم هغه چه ظلم ئے کړے وو۔ او ټول صفتونه د کمال خاص الله لره دی |
| رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٤٥﴾ |
| چه پالونکے د مخلوقاتو دے۔ |

**تفسیر**: پدے آیت کښې الله تعالیٰ د رسولانو د رالیږلو او د هغوی د اقوامو په باره کښې یو قانون بیان کړیدے او هغه دا دے چه کله الله تعالیٰ پیغمبران راولیږی او خلك تکذیب وکړی نو الله امتحانات راولی، او دا امتحانات کله په مصائبو سره راولی او کله په راحت سره، که هغوی بنه شی نو بنه ده او که بنه نشی نو الله پرے استیصالی (بیخ ویستونکے) عذاب راولی چه ټول ختم کړی او نام ونشان ئے هم پاتے نشی۔ ددے اصولو نه روستو په شرك باندے رد کوی، بیا تخویف بیانوی، بیا د رسولانو د رالیږلو حکمت بیانوی بیا په (٥٠) آیت کښې جواب د اقتراح الآیات کوی۔

ربط :

بعض مشرکان خو لا داسے هم دی چه د عذاب د راتللو په وخت کښې هم الله ته رابلی څکه چه په ګمراهئ کښې سخت ننوتي وی۔ (ابوالسعود)

وَلَقَدْ اَرْسَلْنَآ : دلته (رُسُلاً) لفظ پټ دے، هغه ئے نه دے ذکر کړے څکه چه مقصد حال د قومونو ذکر کول دی، نه د رسولانو۔ او دلته (فَكَذَّبُوْا) لفظ پټ دے یعنی هغوی تکذیب وکړو۔

## د بأساء او ضراء فرقونه

بِالْبَأْسَآءِ : یعنی مالی سختئ، فقر وغیره۔

وَالضَّرَّآءِ : دا د بدن مرضونه او دردونه دي یا نور آفات دي۔ (قرطبیؒ وابوالسعودؒ) او قحط او تکلیف ته هم وائي برابره ده حسي وي او که معنوي۔ (المنار)

صاحب المنار یو بنه فرق کړیدے چه بأساء هغه خارجي سخت واقع کیدونکي تکلیفونه دي چه چا ته ورسیږي لکه نن زمانه کښې د جنګ تاثیر شو ځکه چه ددے واقع کیدل ډیر سخت درد ورکوي هغه چا ته چه اولادئے مړه شوي وي، یائے کلي او کورونه رنګ شوي وي، یائے ژوند تنګ شوے وي۔ (اګرکه بدن ته ئے څه زخم او تکلیف وغیره نهٔ وي رسیدلے) او ضراء هر هغه مصیبت ته وائي چه نفس ته سخت درد ورکوي، برابره ده چه سبب ئے نفسي وي یا بدني یا خارجي۔ نو بناء پدے باندے بأساء د اسبابو د ضراء نه دے۔ او دا دواړه په وزن د حَمْرَاء دي او ددے په مذکر کښې وزن د احمر نشته بلکه اسم تفضیل راغلے دے۔ (تفسیر المنار ۳۴۵/۷)

لَعَلَّهُمْ يَتَضَرَّعُونَ : ځکه چه مصیبت په انسان کښې عاجزي پیدا کوي، کیدے شي چه زړه به ئے نرم شي او د الله رسول ته به غاړه کیږدي۔ خو دا هم د الله رحم وي چه په مصیبت کښې بنده الله ته متوجه شي۔ تضرع : سوال کول دي په عاجزئ سره چه د شرك او کفر او ګناهونو نه توبه ورسره ملګري وي۔ (بغويؒ)

صاحب المنار وائي : د انسانانو طبائع او اخلاق مختلف دي، په شداندو او تکلیفونو سره د انسانانو تربیت کیږي، مغرور خلك د غرور نه واپس شي او فجار (بد کار) د خپل فجور نه واپس کړي، نو څومره لانقه ده چه اهل الاوهام (وهمونو والا خلك) به د خپل ځانونو په شان بندګانو او بتانو نه د دعا او رامدد شه وئیلو نه راواپس شي لیکن ډیر بد بخت شته چه شرك او فسق کښې داسے ژور ننوتي وي چه هیڅ تکلیف هغوي د ځاي نه نشي خوزولے او نه د هغوي شرك او فسق زائله کولے شي۔ المنار ۳۴۶/۷)

فَلَوْلَآ : دا په روستو (تَضَرَّعُوْا) باندے داخل دے۔

بَأْسُنَا : بأس په اصل کښې په جنګ کښې سختئ، په یره کښې سختئ، سخت عذاب، قوت، بهادرئ، تنګ حالي، خضوع (عاجزي) او فقر ته وائي۔ (لسان العرب) او امام راغبؒ وائي : بؤس او بأس او بأساء : شدت او مکروه ته وائي۔ یعني سختي او مصیبت۔ مګر بؤس په فقر او جنګ کښې زیات استعمالیږي، او بأس او بأساء په نکایة (سزا ورکولو)

کښې زیات استعمالیږي، او بیائې دے دپاره شوا هد ذکر کړیدي۔ (مفرداتِ راغب)
قَسَتْ قُلُوْبُهُمْ : زړونه ئې سخت شو چه د قرآن او د دلیلونو او وحی نه ئې هیڅ عبرت وانخستو۔
وَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ : شیطان ورته عملونه ښائسته کړل۔ شرك ئې ورته په صورت د توحید کښې او بدعت ئې ورته په صورت د سنت کښې ښکاره کړو۔ او دائې ورته ووئیل چه تاسو خو د پلار نیکه په دین او لاره روان یئ او دا ډیر ښه کار دے۔
او زمونږ په زمانه کښې هم دغه شان عذابونه د سیلابونو او قحطونو او مختلف قسم بحرانونو په شکل کښې راځي لیکن اکثر انسانان د سره حس نهٔ لري چه دا ولې کیږي؟ زړونه دومره سخت وي، او په کوم فساد کښې چه د عذاب نه مخکښې اخته وو، د عذاب نه روستو هم په هغوی کښې هیڅ تبدیلي نهٔ پیدا کیږي، والله المستعان فلا حول ولا قوة الا بالله العظیم۔
فَلَمَّا نَسُوْا مَا ذُكِّرُوْا بِهٖ : مخکښې امتحان وو په مصیبتونو اُوس امتحان دے په نعمتونو۔
فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ اَبْوَابَ كُلِّ شَيْءٍ : یعنی ما پرے سره د شرك او فسق نه د هر شی نعمتونه راکولاؤ کړل، بارانونه به کیدل او هر قسم آمدنئ به ډیرے شوے۔
نَسُوْا : دلته د نسیان نه مراد قصداً پریخودل دي، او داسے معامله کول لکه د هیر شوی شی په شان۔
مَا ذُكِّرُوْا بِهٖ : د توحید او د ایمان خبرے مراد دي۔
**فائده** : یو فتح الابواب ده لکه دلته او بل فتح البرکات ده، لکه سورة الاعراف (۹۶) آیت کښې ذکر ده ﴿وَلَوْ اَنَّ اَهْلَ الْقُرٰى اٰمَنُوْا وَاتَّقَوْا لَفَتَحْنَا عَلَيْهِمْ بَرَكٰتٍ مِّنَ السَّمَاءِ﴾ فتح د ابوابو دے ته وائي چه په انسان باندے نعمتونه سره د نافرمانئ نه ډیریږي او فراخه کیږي او دا استدراج او مهلت دے چه دا په کافرانو او فاسقانو باندے کیږي، او دا کرامت نهٔ دے، او فتح د برکاتو دا ده چه تهٔ د الله په طاعاتو کښې مصروف ئې، او الله درله نعمتونه وخت په وخت زیاتوي، چه څومره عبادت زیاتوے هغومره نعمتونه زیاتیږي، او دا په نیکانو باندے کیږي۔ نو معلومه شوه چه هره فراخي ضرري نهٔ ده او هره فراخي فائده منه نهٔ ده۔
امام احمدؒ د عقبه بن عامر ﷜ نه د نبی کریم ﷺ دا حدیث روایت کړیدے (اِذَا رَاَيْتَ اللّٰهَ يُعْطِي الْعَبْدَ مِنَ الدُّنْيَا عَلٰى مَعَاصِيْهِ مَا يُحِبُّ، فَاِنَّمَا هُوَ اسْتِدْرَاجٌ ثُمَّ تَلَا رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ هٰذِهِ الْاٰيَةَ : فَلَمَّا نَسُوْا الخ) چه کله ته اُووینے چه الله خپل یو بنده ته د هغه د گناهونو سره سره د

هغه د خواهش مطابق دنیاوي نعمتونه ورکوي نو پوهه شه چه د هغه رسئ سسته کړے شویده. بیا نبي ﷺ همدا آیت تلاوت کړو. (رقم: ۱۷۳۴۹، حدیث حسن- ارناووط)

فَرِحُوا : دلته فرح (خوشحالي) په معنیٰ د تکبر سره ده چه دے ته فَرَحَ الْبَطَرِ وائي یعنی د تکبر خوشحالي. نعمتونو نور په تکبر کښې واچول، او دائے دلیل د حقانیت وګڼړلو.

مُبْلِسُوْنَ : راغبؒ د ابلاس درے معاني کړیدي افسوس، حزن، او نا امیدي.

صاحب المنارؒ وائي : ابلاس په لغت کښې : نا امیدي د خیر او راحت نه، انقطاع الحجة، (چه دلیل ئے ختم شي)، د حزن یا د یرے یا د غم په وجه غلے کیدل. یعنی دوي نا امیده وو د نجات نه او د هر خیر نه، او افسوس کونکي وو، یا هلاك کیدونکي وو، دلیلونه او بهانے ئے ختمے وے. (المنار) یا حیران وو (القرطبيؒ) یا پښیمانه غمژن وو. (بغويؒ)

بغويؒ وائي : ابلاس په اصل کښې د غم او پښیمانتیا د وجه نه سر ټیټولو ته وائي.

مبلسون : نا امیده به وي د خپلو معبودانو نه.

دَابِرُ : جرړے ته وائي مراد ترے نه آخر او نسل دے یعنی د ظالمانو نسل الله ختم کړو او د آخر نه ئے پریکړل، یعني استیصالي عذاب به پرے راغلو.

وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ : دا آیت دلیل دے چه د ظالمانو په هلاکت باندے حمد لوستل پکار دي. او دا حمد پدے وجه دے چه د داسے کافرانو او ظالمانو هلاکول د ایمان والو دپاره لوی نعمت او رحمت دے، نو الحمد لله ونیل پکار دي، او بله دا چه د الله د دشمن په هلاکت باندے خوشحالي پکار ده. ځکه چه یو ناسور (ګنده زخم) وو چه د هغے آپریشن وکړے شو. نو پدے کښې مونږ ته تعلیم دے چه تاسو د الله حمد ووایئ په هلاکت د ظالمانو، او پدے کښې اشاره ده چه د هر کار په آخر کښې د الله حمد لوستل پکار دي. (المنار)

او اشاره ده چه الله تعالیٰ د دوي په هلاکولو کښې محمود دے ظلم ئے نۀ دے کړے والحمد لله.

| قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ اَخَذَ اللّٰهُ سَمْعَكُمْ وَاَبْصَارَكُمْ |
|---|
| تۀ ووایه ! خبر راکړئ (متوجه شئ) که واخلي الله غوږونه ستاسو او سترګے ستاسو |
| وَخَتَمَ عَلٰى قُلُوْبِكُمْ مَّنْ اِلٰـهٌ غَيْرُ اللّٰهِ يَاْتِيْكُمْ |
| او مهر ووهي په زړونو ستاسو، څوك دے حقدار د بندګئ سوا د الله نه چه را ولي تاسو ته |

| بِهٖ ؕ اُنْظُرْ كَيْفَ نُصَرِّفُ الْاٰيٰتِ ثُمَّ هُمْ يَصْدِفُوْنَ ﴿٤٦﴾ |
| --- |
| دا، وګوره څرنګ بیانوو مونږ (دوی ته) آیتونه بیا دوی اوړی د هغې نه۔ |

**تفسیر** : پدې آیت کښې الله تعالیٰ موجوده کفارو ته خطاب کوی، ❁ او پدې کښې بل عقلی دلیل دے په توحید د الله باندې❁ او پدې کښې د الله معرفت هم ذکر دے۔

ربط : مخکښې عام تکالیف ذکر وو، دلته خاص مصیبتونه بیانوی۔ ❁ یا مخکښې خارجی مصیبتونه وو دلته داخلی او نفسی مصیبتونه دی۔

مطلب د آیت : د مکې مشرکانو ته په نوی انداز کښې زجر او توبیخ ورکړے کیږی او د هغوی د شرکی اعمالو فساد بیانیږی، چه اے زما رسوله ! (ﷺ) ته دوی ته اُووایه ! چه که الله ستاسو غوږونه او ستاسو سترګے واخلی او ستاسو په زړونو باندے مهر اُووهی او لیونی مو جوړ کړی نو آیا د الله نه سوئ څوک شته چه هغه دوباره راواپس کړی ؟!۔ د ګونګیانو او کنړو او لیونو کوم بابا شته ؟!

دا درے واړه اندامونه د انسانی جسم اشرف اندامونه دی، کله چه دا بیکاره شی نو د انسانی جسم نظام به ګډوډ وی، پدے وجه الله تعالیٰ دا درے واړه ذکر کړل۔

اَخَذَ اللّٰهُ سَمْعَكُمْ الخ : نیشاپوریؒ وائی دا کنایه ده د عقل زائله کولو او لیونی کولو نه۔ او ددے په شان آیت په سورة النمل (٦٠) او سورة القصص (٧١) کښې ذکر دے۔

مَّنْ اِلٰهٌ : دا آیت دلیل دے چه (اِلٰه) په معنیٰ د کار جوړونکو او حاجت پوره کونکی سره هم راځی۔ اګرکه اصل معنیٰ ئے د معبود ده۔

يَاْتِيْكُمْ بِهٖ : (بِهٖ) ضمیر ماخوذ ته راجع دے یعنی کوم شے چه ستاسو نه اخستے شویدے۔

اُنْظُرْ كَيْفَ نُصَرِّفُ : یعنی ته وګوره چه څنګه مونږ نخے په مختلف انداز کښې بیانوو، لیکن دا مشرکان دے ته ګوری او اعراض کوی او د حسد او عناد او کبر او غرور په وجه په هغے کښې سوچ او فکر نۀ کوی۔

نصرف : تصریف په مختلف قِسمه عبارتونو سره مضمون ذکر کول دی۔

الْاٰيٰتِ : دلته د آیات نه مراد یا خو مطلق دلائل دی، ❁ یا مطلق قرآنی دلائل، ❁ یا هغه دلائل چه د سورت د ابتداء نه واخله تردے ځای پورے بیان شویدی، ❁ یا هغه عقلی دلائل چه د آسمانونو او زمکے په پیدا کونکی او د هغه په وحدانیت باندے دلالت کوی۔ تول

مصداقات صحیح دي.

يَصۡدِفُوۡنَ : أَيۡ يُعۡرِضُوۡنَ عَنۡهَا مُكَذِّبُوۡنَ ـ د هغې نه اعراض کوي او تکذیب کوي. (بغويؒ)
صدف او صدوف په اصل کښې سخت اعراض ته وائي، ځیني وائي چه دا د صَدَفَةُ الۡجَبَل نه دې یعنې اړخ او غر چه په کوم خاې ختمیږي، نو دلته ترې معنیٰ د اوړیدو مراد ده یعنې لرې اوړي او په هغې کښې هیڅ تأمل او فکر نۀ کوي. (المنار ۳۴۹/۷)

نو په آیت کښې زجر شو په اعراض کولو د سوچ کولو نه په آیتونو د الله تعالیٰ کښې لکه په ابتداء د سورت کښې تیر شو.

| قُلۡ اَرَءَيۡتَكُمۡ اِنۡ اَتٰـكُمۡ عَذَابُ اللّٰهِ بَغۡتَةً اَوۡ جَهۡرَةً |
| --- |
| تۀ ووایه ! خبر راکړئ که راشي تاسو ته عذاب د الله ناڅاپه (د شپې) یا ښکاره (د ورځې) |
| هَلۡ يُهۡلَكُ اِلَّا الۡقَوۡمُ الظّٰلِمُوۡنَ ﴿۴۷﴾ |
| نۀ به هلاکیږي مګر قوم ظالمان (مشرکان). |

**تفسیر** : دا بل دلیل عقلي دې او پدې کښې تخویف دنیاوي دې او مخکښې په (۴۰) آیت کښې دوه قسمونه د عذاب ذکر وو، دنیوي او اُخروي، دلته دوه نور قسمونه ذکر کوي ناڅاپي بغیر د نخو نه، او سره د نخو نه، یا د شپې او د ورځې. نو په آیت کښې بیان د معرفت د الله تعالیٰ دې پدې طریقه چه د الله تعالیٰ عذاب په هیڅ شي سره نشي دفع کیدې.

اَرَءَيۡتَكُمۡ : أَيۡ أَرَأَيۡتُمۡ أَنۡتُمۡ أَنۡفُسَكُمۡ كَيۡفَ يَكُوۡنُ شَأۡنُكُمۡ، أَوۡ أَخۡبِرُوۡنِيۡ عَنۡ مَصِيۡرِكُمۡ (المنار).

یعنې تاسو خپل ځانونه لیدلي دي، یا تاسو خبریږئ د خپلو ځانونو نه چه ستاسو به څه حال وي یا ما ته خبر راکړئ چه ستاسو ګرځیدل به کوم طرفته وي کله چه د الله عذاب راشي.

بَغۡتَةً اَوۡ جَهۡرَةً : یعنې ناڅاپي چه څه نښه نښانه او اشارې ورکولو نه بغیر راشي، او جَهۡرَةً دا چه څه اشارات او خبر مخکښې نه ورکړې شي. یا لَيۡلًا او نَهَارًا ته وائي. (شپه او ورځ) (حسن بصريؒ - قرطبيؒ) څکه چه د کافران قومونو هلاکونکې عذاب یا خو د شپې ناڅاپي یا د ورځې ښکاره راځي.

او په ((القوم الظالمون)) کښې د عذاب سبب طرف ته اشاره ده چه د دوي د هلاکت سبب د دوي ظلم او طغیان او د الله نه سرکشي ده.

## اشکال او جواب

دلته وائی چه عذاب راشی نو صرف ظالمان به هلاك کیږی او حال دا چه په حدیث کښې راغلی دی چه کله عذاب راشی نو مؤمنان هم هلاکیږی، او مشاهده هم ددے گواه ده، سیلاب راشی نو د نیکانو خلکو کورونه هم وړیسی او خلك پکښې مړه شی؟

**جواب** : ۱- ځینی مفسرینو وئیلی دی چه دلته د هلاکت نه مراد هلاکتِ حقیقی دے او حقیقی هلاکت دا دے چه جهنم ته لاړ شی، او هرچه مؤمن دے نو هغه صرف وړلے شی خو جهنم ته نهٔ ځی بلکه دغه عذاب ورله د گناهونو صفا کونکے شی۔

۲- بل جواب دا دے چه مؤمنان چه په دغه وخت هلاك کیږی، نو دوی کښې هم ظلم وی ځکه چه مؤمنان دوه قسمه دی یو مُصلحین او بل صالحین، نو د عذاب په وخت مصلحین نهٔ هلاك کیږی (ځکه چه کومه علاقه کښې دعوت کیږی او د منکراتو نه منع کیږی نو هلته الله عذاب نهٔ راولی) او چه کله صالحین موجود وی، او نهی عن المنکر نهٔ کوی نو دوی ظالمان شو نو دوی به هم هلاك کیږی ځکه چه فریضه ئے پریښے ده، نو صرف په دنیاوی سزا کښې به اخته کیږی او آخرت به ئے ښه وی، او د کافرو هلاکت زیات دے چه دنیا او آخرت دواړه ئے تباه شول، جهنم ته لاړل۔

| |
|---|
| وَمَا نُرْسِلُ الْمُرْسَلِيْنَ اِلَّا مُبَشِّرِيْنَ وَمُنْذِرِيْنَ ج فَمَنْ |
| او نهٔ دی رالیږلی مونږ رسولان مگر زیرے ورکونکی او یره ورکونکی نو چا چه |
| اٰمَنَ وَاَصْلَحَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿۴۸﴾ |
| ایمان راوړو او نیك عمل ئے وکړو نو نهٔ به وی هیڅ یره په دوی او نهٔ به دوی غمژن شی۔ |
| وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا يَمَسُّهُمُ الْعَذَابُ |
| او هغه کسان چه دروغژن ئے وگڼړل آیتونه زمونږ وبه رسیږی دوی ته عذاب |
| بِمَا كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ ﴿۴۹﴾ |
| په سبب د هغے چه دوی نافرمانی کوله۔ |

**تفسیر** : اُوس د پیغمبرانو د رالیږلو مقصد بیانوی، چه هغه بشارت او انذار دے، او دا

جواب د سوال دے چه مشرکانو نبیﷺ ته وویل چه مونږ ستا خبره نهٔ منو، نو په مونږ باندے عذاب راوله یا معجزات راوړه۔
نو الله تعالیٰ فرمائی : د انبیاء او رسولانو ذمه واری دا ده چه هغوی الله طرف ته خلق راوبلی او د جنت زیرے ورکړی او د جهنم نه یره ورکړی۔ د هغوی ذمه واری دا نهٔ ده چه د کافرانو د خواهش او د هغوی د مرضیٔ مطابق به د الله نه د نخو رالیږلو دعا کوی۔ نو څوك چه د انبیاء او رسولانو علیهم السلام په تابعداریٔ کښې ایمان راوړی او نیك عمل اُوکړی نو د هغه ځای به جنت وی، چه نهٔ به په دوی کوم غم وی او نهٔ به په آینده کښې څه یره وی۔ او چا چه د الله د آیتونو تکذیب اُوکړو د هغه ځای به جهنم وی او دا به د الله د طرف نه د دوی د سرکشیٔ انجام وی۔
كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا : دا ئے عقیده شوه او (بِمَا كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ) ئے عمل شو۔

| |
|---|
| قُلْ لَّآ اَقُوْلُ لَكُمْ عِنْدِىْ خَزَآئِنُ اللّٰهِ وَلَآ اَعْلَمُ |
| تهٔ ووایه ! څه نهٔ وایم تاسو ته چه ما سره خزانے د الله دی او نهٔ پوهیږم |
| الْغَيْبَ وَلَآ اَقُوْلُ لَكُمْ اِنِّىْ مَلَكٌ ۚ اِنْ اَتَّبِعُ اِلَّا مَا |
| په غیبو خبرو باندے او نهٔ وایم تاسو ته چه زهٔ ملائك یم، تابعداری نهٔ کوم مگر د هغے |
| يُوْحٰٓى اِلَیَّ ؕ قُلْ هَلْ يَسْتَوِى الْاَعْمٰى وَالْبَصِيْرُ ؕ اَفَلَا تَتَفَكَّرُوْنَ ﴿۵۰﴾ |
| چه وحی کیدے شی ما ته۔ تهٔ ووایه ! آیا برابر دے ړوند او لیدونکے آیا پس فکر نهٔ کویٔ تاسو۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښې جواب دے په طلب کولو د معجزاتو، او دا جواب د وَهم د مشرکانو هم دے چه هغوی دا وَهم لری چه پیغمبر به دے ته وائی چه هغه ته به د غیبو علم وی، د الله د خزانو مالك به وی، خوراك څکاك به نهٔ کوی، د الله په مینه به پائی، لکه ډیرو پیرانو هم دا خبره جوړه کړیده چه فلانے پیر خوراك نهٔ کوی، ولاړ بابا دے چه هیڅکله نهٔ کینی، عوام دوکه کوی، آیا دا کارونه د نیکیٔ نښه ده؟۔
نو الله دلته فرمائی چه تاسو د نبوت تصور غلط کړیدے، د نبی کار خو صرف ثواب او عذاب بیانول دی، او عذاب او معجزات راوستل د هغه په اختیار کښې نهٔ دی، او نهٔ دغه مذکوره کارونه د هغه په اختیار کښې دی۔ نو په آیت کښې د رسول الله ﷺ نه نفی د هغه

صفاتو ده چه هغه د بشریت نه پورته دی او د اُلو هیت صفات دی۔
نو پدے آیت کښې نبی ﷺ ته د تعلیم طریقے بیان شویدی چه د مشرکانو د سوالونو جواب ورکړه۔
الله تعالیٰ خپل نبی ﷺ ته فرمائی چه د مکے مشرکان ستا نه کله نخے طلب کوی او کله بل سوال کوی نو ته ورته اُووایه! چه الله ما ته د رزق خزانے نهٔ دی حواله کړی چه زهٔ د هغے نه ستاسو د خواهش مطابق تاسو ته درکوم، او غر په سرو زرو بدل کړم، او نهٔ زهٔ په غیبو پوهیږم چه د قیامت یا د عذاب نازلیدو وخت تاسو ته بیان کړم او نهٔ زهٔ ملائك یم چه د ما فوق العاده (یعنی ناشنا) کارونو مظاهره اُوکړم، زهٔ خو صرف د هغه وحی اتباع کوم کومه چه د الله د طرف نه په ما نازلیږی چه هغه قرآن او سنت دی۔ وحی لفظ دواړو ته شاملیږی۔
**لَآ اَقُوْلُ لَكُمْ** : یعنی زما په باره کښې دا عقیده مهٔ ساتئ؛ او نهٔ زهٔ تاسو ته ددے خبرے دعوت درکوم۔
**فائده** : د اُلو هیت دوه جامع صفتونه دی، یو تصرف او اختیار او د آسمان او د زمکے د خزانو قدرت، او دویم علم غیب (یعنی د اسبابو نه بغیر علم) او دا دواړه صفتونه ئے د نبی نه نفی کړیدی، نو څوك چه دا دواړه یا یو ددے صفاتو نه نبی ﷺ ته ورکوی هغه نبی لره اِلٰه جوړ کړو۔
**اِنْ اَتَّبِعُ** : هغوی ووئیل: چه هر کله ته دا کارونه نشے کولے نو بیا زمونږ او ستا فرق څه شو؟ نو جواب وشو چه فرق دا دے چه ما ته وحی کیږی، زهٔ د هغے تابعدار یم او تاسو ته وحی نهٔ کیږی۔
**الْاَعْمٰی وَالْبَصِیْرُ** : ړوند او بینا یعنی گمراه او هدایت والا دواړه برابر نشی کیدے، پدے وجه اے د مکے مشرکانو! تاسو د الله په نخو کښې فکر کولو سره د رشد او هدایت لاره ولے نهٔ اختیاروئ او ځان نه رانده ولے جوړوئ؟۔
❁ یا اعمٰی کافر دے او بصیر مؤمن دے، ❁ یا اعمیٰ هغه دے چه د الله تعالیٰ د معرفت نه ړوند وی او بصیر هغه دے چه د الله تعالیٰ او د هغه د رسول ﷺ پیژندونکے وی۔
❁ یا د اعمیٰ نه مراد باطل معبود او بصیر نه مراد الله تعالیٰ دے۔ ❁ یا اعمی عن الوحی او بصیر بالوحی۔ (د وحی نه ړوند او د وحی لیدونکے دے)۔
او داسے آیت په سورة هود (۲۱) کښې هم راغلے دے۔

| وَاَنْذِرْ بِهِ الَّذِيْنَ يَخَافُوْنَ اَنْ يُّحْشَرُوْٓا |
| --- |
| او یره ورکړه پدے (وحی) سره هغه کسانو ته چه یریږی ددے نه چه راجمع به کړے شی دوی |
| اِلٰى رَبِّهِمْ لَيْسَ لَهُمْ مِّنْ دُوْنِهٖ وَلِيٌّ وَّلَا شَفِيْعٌ لَّعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ ﴿۵۱﴾ |
| خپل رب ته نهٔ به وی دوی لره سوئ د الله نه څوك دوست او نهٔ سفارشی، دے دپاره چه دوی کښں تقویٰ راشی۔ |

**تفسیر** : مضمون : پدے رکوع کښں الله تعالیٰ د صحابه کرامو او مؤمنانو صفات او د هغوی شان ئے بیان کړیدے، او د مشرکانو په هغوی باندے اعتراض، او بیا الله تعالیٰ خپل نبی ته د هغوی په باره کښں حکم کوی چه دوی کله ستا خوا ته راشی نو دوی ته هرکلے وایه او سلام پرے اچوه، او زیری ورله ورکوه یعنی کافران ئے خو نهٔ منی خو د مؤمنانو قدر کوه دوی د الله د کتاب نه اثر اخلی۔

ربط او مناسبت

په تیر شوی آیتونو کښں الله تعالیٰ خبر ورکړے وو چه مشرکان د کانړهٔ، گونګی او د روند سړی په شان دی، بلکه مړهٔ دی همدا وجه ده چه دوی د روښانه ورځے په شان ښکاره نخو نه هیڅ عبرت حاصل نهٔ کړو، اُوس الله تعالیٰ خپل نبی (ﷺ) ته حکم اُوکړو چه ته پدے قرآن باندے هغه خلك ویره وه (او دعوت ورته وکړه) چه هغوی د الله نه یریږی او د الله د وحی نه متأثره کیږی او فائده حاصلوی۔ نو که مشرکان عبرت نهٔ اخلی نو مؤمنان خو ئے اخلی، نو ستا بیان ضائع نهٔ شی۔ بله دا چه د قرآن نه د فائدے اخستو اسباب ئے بیان کړی چه هغه د آخرت نه یره ده او دا سبب مشرکانو کښں نشته۔

وَاَنْذِرْ بِهِ : د بـه (ه) ضمیر قرآن ته راجع دے او دا دلیل دے چه انذار په وحی پورے خاص دے، په هسے قصو باندے انذار نهٔ کیږی۔

اَنْ يُّحْشَرُوْٓا اِلٰى رَبِّهِمْ : یعنی د حشر د ورځے نه یریږی۔ ددے نه دا قانون معلوم شو چه څوك د آخرت د ورځے نه یریږی نو د قرآن نه به فائده اخلی۔ ددے وجه نه په قرآن کریم کښں د آخرت او د قرآن جمع په ډیرو آیتونو کښں شویده ځکه چه د یو بل سره لازم ملزوم دی۔ او د آخرت یره د قرآن نه د فائدے اخستو دپاره سبب دے۔

لَيْسَ لَهُمْ مِّنْ دُوْنِهٖ وَلِيٌّ : پدے کښں رد دے په یهود او نصاریٰ او مشرکانو چه دوی به

انبياء او خپل مشران د خپلو خانونو دپاره سفارشيان ګنړل نو الله فرمائي چه په قيامت کښې به ستاسو دوست او سفارشي هيڅوك نهٔ وي سوئ د الله نه نو الله خبر ورکړو چه د کافرانو دپاره سفارشي نشته څکه چه د دوی د الله سره دوستانه نشته. او که دا آيت د مؤمنانو په باره کښې وي نو د هغوی دپاره د رسول الله ﷺ شفاعت به د الله په اذن سره وي نو حقيقي سفارش کونکے الله تعالیٰ دے، لکه الله فرمائي: ﴿وَلَا يَشْفَعُوْنَ اِلَّا لِمَنِ ارْتَضٰى﴾ (انبياء: ۲۸) (قرطبیؒ)

**لَعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ**: دے دپاره چه د دوی تقوىٰ نوره هم زياته شي. يا لغوى معنىٰ مراد ده يعنى دے دپاره چه هميشه د الله د عذاب نه بچ شي. اوله معنىٰ غوره ده څکه چه متضمن ده دويمے معنىٰ لره.

څينې مفسرين وائي چه د (يَخَافُوْنَ اَنْ يُّحْشَرُوْا) نه هغه مشرکان هم مراد دی چه هغوی آخرت منلو نو الله وفرمايل چه دوی ته قرآن بيان کړه دوی باندے به اثر وکړي، او څوك چه آخرت نهٔ مني نو په هغوی باندے اثر نکوی نو د (لَعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ) معنىٰ به دا وی چه دوی د شرك نه بچ شي. (زجاج–القرطبیؒ)

| وَلَا تَطْرُدِ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَدٰوةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيْدُوْنَ وَجْهَهٗ ؕ |
|---|
| او مهٔ شړه تهٔ هغه کسان چه رابلی رب خپل صبا او بيګاه، غواړی دوی مخ د الله، |
| مَا عَلَيْكَ مِنْ حِسَابِهِمْ مِّنْ شَيْءٍ وَّمَا مِنْ حِسَابِكَ عَلَيْهِمْ |
| نشته په تا باندے حساب د دوی هيڅ شے او نشته د حساب ستا نه په دوی باندے |
| مِّنْ شَيْءٍ فَتَطْرُدَهُمْ فَتَكُوْنَ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۵۲﴾ |
| هيڅ شے (يعنى ذمه وارى) نو که تهٔ وشړے دوی نو شے به د ظالمانو نه. |

**تفسير:** شان نزول

ددے په شان نزول کښې مفسرينو مختلف روايات نقل کړيدی چه قرطبیؒ او ابن کثيرؒ وغيره ذکر کړيدی مګر ډير معتمد روايت هغه دے چه:

امام مسلمؒ د سعد بن ابی وقاص ﷺ نه او امام احمدؒ د عبد الله بن مسعود ﷺ نه ددے آيت کريمه د شان نزول په باره کښې روايت کړيدے چه د رسول الله ﷺ په مجلس کښې څه ضعيف او کمزوری شان صحابه کرامؓ موجود وو (په روايتونو کښې د سعد بن ابی وقاص،

عبد الله بن مسعود، بلال، صهیب، عمار بن یاسر او خباب رضی الله عنهم وغیرهم نو مونږ راغلي دي) هلته د قریشو څه کسان تیریدل نو هغوی وویل چه اے محمده ! آیا تا د خپل قوم په بدله کښې دوی خپل کړیدي، آیا الله مونږ پریخودو او په دوی ئے احسان اُوکړو، آیا مونږ د دوی تابع شو ؟ که ته دوی د خپل مجلس نه اُوباسے نو کیدے شي چه مونږ به ستا اتباع اُوکړو نو د رسول الله ﷺ په زړه کښې تیره شوه چه دا مؤمنان خو هسے هم ملګري دي، دوی به ددے مجلس نه جدا کړو او کافران به راشي زمونږ خبرے به واوري، کیدے شي چه ایمان راوړي۔ (او په یو روایت کښې دي : مشرکانو وویل : [أَطْرُدْ هٰؤُلَاءِ لَا يَجْتَرِءُوْنَ عَلَيْنَا] دا خلك وشړه زمونږ په مجلس کښې ئے مهٔ کینوه چه په مونږ زړه ور نشي، نو دا آیت نازل شو، او الله تعالیٰ نبي کریم ﷺ د غریب او کمزورو مسلمانانو د خپل مجلس نه پدے لالچ شړلو نه منع کړو چه د قریش مشران خلق به ددهٔ مجلس ته راشي، او ددهٔ خبرے به واوري او متأثره به شي او ایمان به راوړي۔ (المنار والقرطبيؒ وابن کثیرؒ)

نو پدے آیت کښې د رسول الله ﷺ په دعوت باندے حرص او د کافرانو د ایمان نه د الله استغناء ذکر کیږي، هغه د کافرانو د ایمان څه پرواه کوي؟!۔ او د دغه مؤمنانو ډیر لوی فضیلت دے چه دوی کښې ډیر لوی کمالات دي، او رسول الله ﷺ یوه ورځ ابوبکر صدیق ؓ ته وفرمایل : [لَئِنْ أَغْضَبْتَهُمْ لَقَدْ أَغْضَبْتَ رَبَّكَ] که تا دا ملګري (عمار، بلال، صهیب ؓ) غصه کړي وي (چه ابوبکر صدیق ؓ دوی ته څه خبره کړے وه) نو تا خپل رب غصه کړیدے، بیا صدیق اکبر ؓ لاړو او د هغوی نه ئے معافي وغوښته۔ (صحیح مسلم: ٦٤٩٦)

## ربط

۱ – مخکښې د رسول الله ﷺ نه عمومي نفي وشوه چه هغه د خزانو اختیار مند نهٔ دے، اُوس وائي چه هغه د خپلو ملګرو د حساب اختیار هم نهٔ لري۔ (المنار)

۲ – مخکښې د هغوی دا صفت وشو چه (يَخَافُوْنَ اَنْ يُّحْشَرُوْا اِلٰى رَبِّهِمْ) (دوی د خپل رب د حشر نه یریږي) نو دلته د هغوی په قرب امر کوي او منع کوي چه دوی د خپل مجلس نه مهٔ شړه او هم دغسے خلکو سره کینه۔

يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ : د دعاء نه مراد دلته ذکر (د الله یادول) دي۔ (ابراهیم النخعيؒ – بغويؒ)

چه د قرآن تلاوت او عام ذکرونو ته شاملیږي۔ او ظاهري دعاء مراد کول هم صحیح دي، ځکه چه دعاء هم لوی عبادت دے۔

بِالْغَدٰوةِ وَالْعَشِيِّ : سعید بن مسیبؒ او مجاهدؒ ددے نه د (صبا او بیګاه) فرض

مونځونه مراد اخستی دی آه. ځکه چه په مکه کښې صرف د سهار او مازیګر دوه مونځونه وو، نو هغه هم پکښې داخل دی. او ددې نه معلومیږی چه د سهار او مازیګر ذکر ډیر بهتر دې. یا ددې نه عام اوقات مراد دی لکه دا په محاوره کښې ذکر کیږی. خلك وائی چه زۀ دا کار صبا او بیګاه کوم یعنی هر وخت.

یُرِیۡدُوۡنَ وَجۡهَهٗ : یعنی صرف د الله د مخ اراده لری، پدې کښې اخلاص ته اشاره ده، ځکه چه په مکه کښې پدې وخت کښې هیڅ دنیاوی لالچ نۀ وو، انتهائی غربت وو، رسول الله ﷺ سره هیڅ نۀ وو سوئ د تکلیفونو نه.

او په (وَجۡهَه) ذکر کولو کښې اشاره ده چه دوی چه عمل کوی نو دا عمل متوجه کوی هغه چا ته چه د چا د وجه نه ئې کوی، نو دا داسې مزیدارې طریقې او اهتمام سره کوی چه دومره اهتمام په هغه عمل کښې نۀ کیږی کوم چه چا ته لیږلے شی، یا فی الجمله مطلوب وی. او په هغې کښې عامل دا لحاظ نۀ ساتی چه ما ته دغه ذات ګوری. او ددې مثال داسې دې چه بعض خلك د بادشاهانو او امیرانو دپاره په بنګلو کښې کارونه او خدمتونه کوی چه هغوی ئې نۀ وینی، او بعض خلك داسې کارونه کوی چه بادشاهان په هغې باندې اجمالی نظر اچوی، او بعض داسې عملونه وی چه هغه ډارك بادشاهانو ته د تقرب دپاره د هغوی مخې ته پیش کیږی، نو لازمی خبره ده چه دا روستنی عمل به ډیر مزیدار وی د نورو په نسبت. (المنار ۷/۳۶۵)

او (وجه) د الله تعالیٰ صفت دې بغیر د کیف او تشبیه او تمثیل او تاویل نه، د الله داسې مخ دې د چه نورو مخونو مشابه نۀ دې. (تفسیر السمعانی ۲/۱۰۲)

او محاوره هم داسې ده چه خلك یو بل ته وائی : ستا د مخه مې دا کار وکړو او ستا د مخ لحاظ مې وکړو او ستا مخ ته مې وکتل. (تفسیر السمعانی)

مَا عَلَیۡكَ مِنۡ حِسَابِهِمۡ : یعنی هر چا سره به الله تعالیٰ خپل خپل حساب کوی، او دا جواب د مشرکانو ددې وینا دې چه هغوی ووئیل : دې غریبانو په تا باندې حقیقی ایمان نۀ دې راوړې، منافقت کوی ؟ جواب وشو چه ظاهری علامات د دوی د اخلاص دی، او د باطن حساب کول په تا باندې نشته، هغه الله ته سپارلے شویدی. پدې کښې الله تعالیٰ په خپلو دوستانو مؤمنانو باندې ډیر غیرت کړیدې او د دوی طرفداری او ننګه ئې کړیده.

وَّمَا مِنۡ حِسَابِكَ : دا جمله صرف د تاکید دپاره راوړې شویده. یا د حساب نه مراد مواخذه (نیوکه) ده، یعنی د هر چا خپل خپل عمل دې، او خپل خپل حساب به ورسره

کیږي، نبي کريم ﷺ د دوی د باطن ذمه وار نهٔ دے۔

فَتَطْرُدَهُمْ : دا جواب دے د (مَا عَلَيْكَ مِنْ حِسَابِهِمْ) يعنی په تا باندے د دوی څه حساب نشته چه ته ئے وشړے۔ او (فتكون من الظالمين) جواب دے د (وَلَا تَطْرُدِ) يعنی مهٔ ئے شړه کنے د ظالمانو نه به شے۔ (البغوی ۱۴۷/۲ والمنار)

او ددے نه معلومیږی چه دے مشرکانو پدے کار سره ګید او چل جوړ کړے وو دے دپاره چه ددے نبي نه دا خپل ملګری هم واوړی او ترے خفه شي او د دوی هم ایمان راوړل مقصد نهٔ وو څکه الله تعالیٰ خپل نبي ته داسے ادب ورکړو چه د دوی پرواه مهٔ ساته۔

مِنَ الظَّلِمِينَ : رسول الله ﷺ هغوی نهٔ دی شړلی نو پدے وجه هغه ته د ظلم نسبت نهٔ کیږي، او که په زړه کښې ئے راغلی وی نو هغے باندے راتيول نشته۔

| وَكَذٰلِكَ فَتَنَّا بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ |
|---|
| او دغسے امتحان کوو مونږ د بعضو د دوی په بعضو سره |
| لِيَقُولُوْٓا اَهٰٓؤُلَآءِ مَنَّ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ |
| دے دپاره چه ووائی دوی (کافران) دا کسان احسان کړیدے الله تعالیٰ په دوی باندے |
| مِّنْۢ بَيْنِنَا ؕ اَلَيْسَ اللّٰهُ بِاَعْلَمَ بِالشّٰكِرِيْنَ ﴿۵۳﴾ |
| د مینځ زمونږ نه، آیا نهٔ دے الله ښه پوهه په شکر کونکو باندے۔ |

**تفسير** : دا اُوله عقبه ده چه په داعی باندے راځی او هغه دا چه مشرکین او موحدين په يو بل باندے امتحان دے، پدے طریقه چه الله تعالیٰ کمزورو او ضعیفانو خلکو ته د ایمان توفيق مخکښې ورکړی او غنیان او سرداران ترے محرومه کړی، نو په موحدينو دا امتحان دے چه دوی ورته وائی چه آيا د حق پرستئ احسان صرف په تاسو باندے وشو بل څوک نشته، نو جواب وشو چه الله خپل شکر ګذار بندګان پيژنی۔

(دارنګه يو تن چه کله ايمان راوړی او صحيح دين او حق زده کړی نو خلك هغه پسے خبرے کوی چه الله پاك صرف تهٔ ليدلے وے او تا ته ئے حق درکړو او مونږ ته ئے نهٔ راکولو، او الله ته صرف تهٔ ګران شوے، پدے کښې د هغه مقصد د هغه تحقير او د هغه دعوت خرابول وی۔ نو ددے جواب دا دے چه الله ته خپل بندګان معلوم دی، ما کښې به ئے څه خير ليدلے

وی او هغه به تاسو کښې نهٔ وی ځکه ئې ما ته حق رانصیب کړېدے۔

او په غتهو خلکو دا امتحان دے چه هغوی وائی که مونږ ایمان راوړو نو ددے کمزورو تابع کیږو (لکه ابوجهل وغیره وئیلی وو چه مونږ به د بنی عبد مناف تابع شو ځکه ایمان نهٔ راوړو) بل دا امتحان دے چه دوی وائی چه دا څنګه چل وشو چه مالداره او غتهان ددے نبی نهٔ تابع کیږی او کمزوری ئے تابعداری کوی چه هیڅ رایه نهٔ لری او تاپوهه دی، معلومیږی چه دا دین او دا نبی حق نهٔ دے، ولے که دا حق وے نو مشرانو او عقل والو به منلی وے (او دا کافرانه ذهن دے) ځکه دین او حق پرستی خو د مالدارو جاګیر او تیکه نهٔ ده چه اول به ئے مالداره منی او بیا به ئے غریبان، نو دا امتحان شو۔

(او داسے امتحان هر وخت راځی چه کله د یو کمزوری بدن، غریب او کمزوری نسب والا سړی علم او تقوی د مالدارو او غتهانو او مخوریزو دپاره د ګمراهئ ذریعه وګرځی، وائی چه دا فلانکی خان به اُوس راځی او مونږ ته به دین بیانوی، دا د فلانئ ځوئ)

ددے آیت کریمه تفسیر بیانولو سره حافظ ابن کثیر رحمه الله لیکلی دی چه د اسلام په ابتداء کښې به په رسول الله ﷺ باندے اکثر ایمان راوړنکی کمزوری سړی، ښځے غلامان او وینځے وو۔ د قریشو د شریفانو نه ډیرو کمو خلقو اسلام قبول کړو لکه چه د نوح علیه السلام قوم نوح علیه السلام ته وئیلی وو: ﴿مَا نَرَاكَ اتَّبَعَكَ إِلَّا الَّذِينَ هُمْ أَرَاذِلُنَا بَادِيَ الرَّأْيِ﴾ چه مونږ خو وینو چه ستا اتباع صرف سپك خلق کوی)۔ (هود: ۲۷)۔ او لکه هرقل ابوسفیان نه تپوس کړے وو چه ددے نبی اتباع شریفان خلك کوی که کمزوری خلك؟ ابوسفیان ووئیل چه کمزوری خلك۔ نو هرقل ووئیل چه [هُمْ أَتْبَاعُ الرُّسُلِ] د رسولانو اتباع همداسے خلك کوی۔ د مکے مشرکانو به د دغه کمزورو مسلمانانو پورے توقے کولے، هغوی ته به ئے عذاب ورکولو او وئیل به ئے چه آیا مونږه الله پریخودو او په دوی ئے احسان وکړو؟

نو الله ددے په جواب کښې دلته وفرمایل چه آیا الله شکر کونکی بنده نهٔ پیژنی؟ یقیناً الله د دوی اقوال او افعال او د دوی د زړونو د پټو خبرو نه هم خبردار دے۔ پدے وجه دوی ته توفیق ورکوی او نیغے لارے طرف ته ئے لارخودنه کوی، او د تیارو او ظلمتونو نه ئے راوباسی او د اسلام او ایمان رڼا ته ئے رسوی۔

امام مسلم د ابوهریره رضی الله عنه نه روایت کړیدے چه [إِنَّ اللَّهَ لَا يَنْظُرُ إِلَى صُوَرِكُمْ وَلَا إِلَى أَلْوَانِكُمْ وَلَكِنْ يَنْظُرُ إِلَى قُلُوبِكُمْ وَأَعْمَالِكُمْ] الله تعالیٰ ستاسو صورتونو او ستاسو رنګونو ته نهٔ ګوری بلکه هغه ستاسو زړونو او عملونو ته ګوری۔ (صحیح مسلم: ۲۵٦٤)

او په یو بل روایت کښې ورسره ﴿وَلَا إِلَىٰ أَمْوَالِكُمْ﴾ لفظ راغلے دے، یعنی نهٔ ستاسو مالونو ته ګوری.

فَتَنَّا : په فتنه او امتحان کښې اچوو نو غریبان د غټانو دپاره فتنه او امتحان جوړ شی.

بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ : د اول بعض نه مراد مشرکان دی او د دویم بعض نه حق پرست دی.

لِّيَقُولُوٓا : یعنی دے دپاره چه دا مشرکان ووائی. په ﴿لِيَقُولُوا﴾ کښې لام د عاقبت او حکمة دے.

بِالشّٰكِرِيْنَ : یعنی دے خلکو کښې شکر ګذاری ده او تاسو کښې ضد او عناد او تکبر دے ځکه نے تاسو ته حق نصیب نکړو. نو اعتراض مهٔ کوئ.

| وَإِذَا جَآءَكَ الَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِاٰيٰتِنَا فَقُلْ |
|---|
| او کله چه راشی تا ته هغه کسان چه ایمان لری په آیتونو زمونږ نو تهٔ ورته ووایه |
| سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ كَتَبَ رَبُّكُمْ عَلٰى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ ۙ أَنَّهٗ |
| سلام دے وی په تاسو، لازم کړیدے رب ستاسو په نفس خپل رحم کول چه بیشکه |
| مَنْ عَمِلَ مِنْكُمْ سُوٓءًا بِجَهَالَةٍ ثُمَّ تَابَ مِنْ بَعْدِهٖ |
| چا چه عمل وکړو ستاسو نه بد په ناپوهئ سره بیا توبه وباسی روستو ددے نه |
| وَأَصْلَحَ فَأَنَّهٗ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿٥٤﴾ |
| او عمل نیک کړی نو بیشکه هغه بخونکے رحم کونکے دے. |

**تفسیر** : مخکښې آیت کښې نے ووئیل چه دا ملګری شړه مهٔ، دلته وائی چه دوی کله ستا مجلس ته راځی نو دوی ته هرکلے وایه او ستړی مشی ورته کوه او سلامونه پرے اچوه.

سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ : سوال : طریقه دا ده چه راتلونکے به سلام اچوی نو ددے څه مطلب دے چه تهٔ پرے سلام وایه؟. ددے (۱) یو مطلب دا دے چه کله دوی ستا مخے ته راشی په لاره کښې نو تهٔ پرے په سلام کښې مخکښې کیږه. (۲) دویم دا چه دلته د سلام نه مراد مرحبا (هرکله راشه) وئیل دی. (۳) دریم دا چه د سلام نه مراد دعاء د سلامتیا ده یعنی الله دِے تاسو ته سلامتیا درکړی.

كَتَبَ رَبُّكُمْ عَلٰى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ : دا جواب دے د مخالفینو ددے طعن چه تاسو خو تر اُوسه پورے په شرك او كفر او بدعاتو كښې وئ نو اُوس مونږ ته مسئلے كوئ او اُوس ښه سړی شوئ؟ نو د هغے جواب وشو چه مخكښې مونږ په جهالت او ناپوهئ كښې وو او الله تعالیٰ د توبې نه روستو د جهالت كارونه معاف كوی۔

یا دا د مخكښې سره لګی چه دغه ملګرو ته یو سلام او هركله وایه او بل ورته د الله د رحمتونو تذكره كوه چه الله تعالیٰ زاړه ګناهونه معاف كوی دے دپاره چه دوی په دین باندے نور هم كلك شی او پدے زیری سره نور هم خوشحاله شی۔

بِجَهَالَةٍ : د جهالت نه مراد جهل بالعاقبة دے (یعنی د انجام نه ناخبری) ورنه پدے كښې قصداً او جهالت دواړه قسمه ګناهونه داخل دی لكه د ابو العالیةؒ نه مونږ په تفسیر د سورة النساء كښې نقل كړی چه هغه فرمائی : ما د رسول الله ﷺ د ملګرو نه آوریدلی دی چه هر هغه څوك چه د الله تعالیٰ نافرمانی كوی هغه جاهل دے۔ (القرطبیؒ)

| وَكَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ |
|---|
| او دغسے تفصیلی بیانوو مونږ آیتونه (د توحید) |
| وَلِتَسْتَبِيْنَ سَبِيْلُ الْمُجْرِمِيْنَ ﴿٥٥﴾ |
| او دے دپاره چه ښه ښكاره شی لاره د مجرمانو۔ |

**تفسیر** : [وَكَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الْآيَاتِ لِيَهْتَدُوا وَلِتَسْتَبِيْنَ]۔ یعنی مونږ آیتونه تفصیل سره بیانوو دے دپاره چه خلك په هدایت شی او د مجرمانو لاره ښه واضحه شی۔ یا تقدیر داسے دے [لِيَتَبَيَّنَ الْحَقُّ] دے دپاره چه حق خلكو ته ښه ښكاره شی۔

دا دویمه عقبه د تبلیغ ده چه باطل پرست به ډیر كرت دا اعتراض كوی چه تاسو دا یوه مسئله راتینګه كریده بیانوئ ئے، بله مسئله درله نۀ درځی، نو تا باندے به د جهالت ټاپه لګوی، نو جواب دا دے چه دا مسئله مونږ باربار څكه بیانوو چه د توحید او د شرك لارے جدا جدا معلومے شی، او د مجرمانو لاره ښكاره شی چه څوك دا حق منی او څوك ئے نۀ منی، ولے كه تفصیل ونشی او خبره مجمله پریخودے شی نو د مجرمانو لاره نۀ واضحه كیږی، او پدے باندے ډیرے داعی تجربه وكړی چه كله ستنه شانه یو كړته خبره وكړی چه شرك ښه شے نۀ دے نو چا باندے دومره زور نۀ راځی او چه كله منبر ته وخیژی او تفصیل

سره د شرك رد وکړی او د هغے ټول اقسام او مثالونه بیان کړی او د باباګانو نومونه نے واخلی نو پدے وخت کښې به تا ته د مجرم او غیر مجرم معلومات وشی چه څو مره خلك به ورته غصه وی، اول کښې به تا ته عام خلك ټول حق پرست ښکاری لیکن کله چه دے حق په تفصیل سره بیان کړو نو حق پرست او باطل پرست به درته په یو مجلس کښې معلوم شی۔

نو الله فرمائی : زهٔ هم دا تفصیل ددے دپاره کوم چه مجرمان او غیر مجرمان سره معلوم شی، او جدائی راشی، او دا د هرے مسئلے په باره کښې قانون دے لکه بدعات، خرافات، تقلید، جمهوریت رسمونه وغیره۔

**حکمة** : نُفَصِّلُ د متکلم او تَسْتَبِيْنَ د غائب صیغے راجمع شوے، پدے کښې حکمة دا دے چه تفصیل د آیتونو سره خپله د مجرمانو لاره واضحه کیږی، او په تَسْتَبِيْنَ کښې اشاره ده چه مخاطب له اول او بیا نور خلکو له پکار دی چه پدے کښې تدبر او فکر او سوچ وکړی او پدے باندے خان پو هه کړی او ددے نه عبرت واخلی ځکه چه ډیر کرته یو آیت به خپله واضحه وی لیکن ډیر خلك د هغے نه غافل وی ﴿وَكَأَيِّنْ مِّنْ آيَةٍ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ يَمُرُّوْنَ عَلَيْهَا وَهُمْ عَنْهَا مُعْرِضُوْنَ﴾ (یوسف : ۱۰۵) (المنار ۳۷۷/۷)

| قُلْ اِنِّيْ نُهِيْتُ اَنْ اَعْبُدَ الَّذِيْنَ |
|---|
| ته ووایه ! یقیناً زهٔ منع شوے یم ددے نه چه بندګی وکړم د هغه کسانو |
| تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ؕ قُلْ لَّآ اَتَّبِعُ اَهْوَآءَ كُمْ لا |
| چه رابلئ تاسو هغوی سوئ د الله نه ته ووایه ! زهٔ تابعداری نه کوم د خواهشاتو ستاسو، |
| قَدْ ضَلَلْتُ اِذًا وَّمَآ اَنَا مِنَ الْمُهْتَدِيْنَ ﴿٥٦﴾ |
| یقیناً ګمراه به شم زهٔ په دغه وخت او نهٔ به یم زهٔ د هدایت موندونکو نه۔ |

**تفسیر** : پدے رکوع کښې بیا د الله تعالیٰ تعارف بیانیږی۔ او په هر قسم شرك باندے ردونه دی، او دا هم د تعلیم او ادب طریقے دی او د سوالاتو جوابونه دی۔ او پدے آیت کښې رد د شرك فی العبادة دے، چه دا د خواهش تابعداری ده او ګمراهی ده او د هدایت نه محرومیدل دی۔

او پدے آیت کښې د سبیل المجرمین بیان دے چه هغه عبادت د غیر الله دے۔ او دا آیت

جواب دے د مشرکانو د دعوت چه رسول الله ﷺ ئے د غیر الله عبادت ته رابللے وو۔

**سوال** : رسول الله ﷺ ته دوی ونیلی وو چه ته زمونږ د معبودانو یو کال بندگی وکړه او مونږ به ستا د معبود یو کال بندگی وکړو؟ نو جواب وشو چه زهٔ ددے نه منع شوے یم چه د الله تعالیٰ نه سِویٰ د نورو معبودانو بندگی وکړم ځکه چه دا خو د خواهش تابعداری ده او گمراهی ده او د هدایت نه ځان محروملول دی۔

**تَدْعُوْنَ** : دلته دعاء په معنیٰ د عبادت سره دے، لیکن اکثر مشرکان شرك فی الدعاء کوی پدے وجه دعاء ذکر کیږی۔

**لَا اَتَّبِعُ** : **سوال** : که زمونږ د دین او معبودانو عبادت وکړے نو څه نقصان به وشی، پدے کښِ خو جوړجاړے راځی؟ جواب وشو چه دا خو د خواهشاتو تابعداری ده۔

**قَدْ ضَلَلْتُ** : د خواهشاتو تابعداری دوه قسمه ده یو هغه ده چه صرف گناه وی، او بل هغه ده چه انسان پرے د هدایت نه وځی او شرك او کفر کښِ داخلیږی، نو دا ډیره خطرناکه تابعداری د خواهش ده، نو ځکه زهٔ ستاسو ددے خواهشاتو تابعداری نهٔ کوم پدے کښِ خو هلاکت دے۔

| قُلْ اِنِّیْ عَلٰی بَیِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّیْ وَکَذَّبْتُمْ بِهٖ ط |
|---|
| ته ووایه ! یقیناً زهٔ په ښکاره دلیل یم د طرفه د خپل رب نه او دروغژن کنړے تاسو هغه، |
| مَا عِنْدِیْ مَا تَسْتَعْجِلُوْنَ بِهٖ ط اِنِ الْحُکْمُ |
| نو نشته ما سره هغه عذاب چه په جلتئ سره غواړئ تاسو هغے لره، نهٔ دے اختیار |
| اِلَّا لِلّٰهِ ط یَقُصُّ الْحَقَّ وَهُوَ خَیْرُ الْفٰصِلِیْنَ ﴿۵۷﴾ |
| مگر الله لره دے۔ بیانوی حق لره او هغه غوره دے د فیصله کونکو نه۔ |

**تفسیر** : یعنی تاسو سره خواهش دے او ما سره واضح دلیل دے۔

دا د بل **سوال** جواب دے : چه ستا په خبره څه دلیل دے ؟ نو جواب وشو چه زهٔ د خپل رب د طرفنه په ښکاره دلیل روان یم، او تاسو د خواهشاتو پسے روان یئ، او زما بیّنه (ښکاره دلیل) نهٔ منئ نو ددے جواب پټ دے : [فَاَنْتُمْ تَسْتَحِقُّوْنَ الْعَذَابَ] نو تاسو خو د عذاب مستحق یئ، ځکه چه څوك حق نهٔ منی هغه د عذاب حقدار وی۔

**مَا عِنْدِیْ** : بیا هغوی **سوال** وکړو چه هرکله مونږ حق نهٔ منو او د عذاب مستحق یو

نو راولـه عذاب که ته رشتینی یې؟ جواب وشو چه تاسو د عذاب حقدار یئ او که تاسو ئے غواړئ نـو دا زما په اختیار کښې نشته چه زهٔ هغه فوراً راولم، بلکې کښې د تعجیل یا تاخیر تـعلق د الله تـعالیٰ د فیصلے سره دے، هغه دا د یو عظیم حکمت د وجه نه روستو کړیدے، لیـکن د هغے واقع کیدل ضروری دی. او که زهٔ ئے دربانديے اوس نشم راوستے نو دا دلیل نهٔ دے چه په تاسو به عذاب نهٔ راځی.

مَا تَسْتَعْجِلُوْنَ بِهٖ : ددے نه مراد د دنیا عذاب دے لکه په سورة انفال (۳۲) آیت کښې دی.

اِنِ الْحُكْمُ : دلته حکم تکوینی مراد دے یعنی د چا د عذاب او د مرګ فیصله کول.

یـعـنـی د عذاب د فیصلو اختیار د الله سره دے او هغه ئے د خه حکمتونو په بنیاد روستو کوی، هر شے د هغه سره په اندازه دے. (المنار)

يَقُصُّ الْحَقَّ : قص تـفـصیلی بیان ته وائی. ۱-أَىْ يَقُصُّ عَلٰى رَسُوْلِهِ الْقَصَصَ الْحَقَّ فِىْ جَمِيْعِ أَخْبَارِهٖ وَوَعْدِهٖ وَوَعِيْدِهٖ]. بیانوی په خپل رسول بانديے حق بیان په ټولو خبرونو او وعدو او وعیدونو کښې. ۲- قص کله په معنیٰ د تالاش کولو سره راځی

[أَىْ يَتَّبِعُ الْحَقَّ وَيُصِيْبُهٗ فِىْ أَقْوَالِهٖ وَأَفْعَالِهِ الَّتِىْ يَتَصَرَّفُ بِهَا فِىْ عِبَادِهٖ]

الله تـعالیٰ تالاش کوی حق او هغے ته رسیدل کوی په خپلو هغه خبرو او کارونو کښې چه په هغے سره په بندګانو کښې تصرف کوی. (المنار۷/۳۷۹)

په (اِنِ الْحُكْمُ) کښې حکم تکوینی مراد شو او قَصُّ الْحق کښې حکم تشریعی مراد دے.

الْفٰصِلِيْنَ : د وضاحت کونکو نه. او په دویمه معنیٰ فاصل په معنیٰ د فیصله کونکی سره دے. (محاسن التاویل للقاسمیؒ) نو فاصلین : حق (او صفا) وینا کونکی او د عدل فیصله کونکی دواړو ته شاملیږی. (التحریر والتنویر)

| قُلْ لَّوْ اَنَّ عِنْدِىْ مَا تَسْتَعْجِلُوْنَ بِهٖ |
| --- |
| تهٔ ووایه ! که چرته وے زما سره هغه عذاب چه په جلتئ غواړئ تاسو هغے لره |
| لَقُضِىَ الْاَمْرُ بَيْنِىْ وَبَيْنَكُمْ ۗ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالظّٰلِمِيْنَ ﴿۵۸﴾ |
| خامخا فیصله د کار به شوے وے په مینځ زما او مینځ ستاسو کښې او الله ښه پو هه دے په ظالمانو. |

**تفسیر** : دا تفصیلی جواب دے چه حاصل ئے دا دے چه که عذاب زما په اختیار کښې وے نو ما دربانديے نازل لو څکه چه زهٔ انسان یم، تاسو چه باربار د عذاب مطالبه کوئ نو

زما زړه به تنګ شي او صبر به مې تمام شي، نو زهٔ به ئې دربانديې نازل کړم او دا خو الله تعالیٰ دے چه عذاب د هغه په اختیار کښې دے، او هغه صبرناك ذات دے چه خلك ئې غواړي او هغه ئې نهٔ نازلوي ځکه چه حلیم دے، او پدے کښې هم د الله تعالیٰ تعارف دے چه پدے آیت کښې د الله رسول وائي چه ما کښې دومره صبر نشته چه تاسو به عذاب غواړئ او زهٔ به درته انتظار وکړم او الله صبرناك ذات دے، هغه ئې په خپل وخت نازلوي ځکه چه الله تعالیٰ په ظالمانو پوهه دے خامخا به پرے عذاب رالیږي.

لَقُضِيَ الْاَمْرُ بَيْنِيْ وَبَيْنَكُمْ: یعنی ما به دربانديې عذاب نازل کړے وے، او زمونږ او ستاسو فیصله به شوے وے چه تاسو ټول به په یو ځل هلاك شوي وے.

او قُضِيَ ئې مجهول راوړه اشاره ده چه که د عذاب اختیار نبي سره هم وے او هغه پرے فیصله کولے نو هغه به هم د الله په مشیت باندے کیدلے. (المنار)

**سوال:** حافظ ابن کثیرؒ دلته یو سوال او جواب لیکلے دے چه په حدیث د مسلم کښې دي چه د طائف نه په واپسئ کښې نبي کریم ﷺ ته مَلَكُ الْجِبَال رابشکاره شو او ورته ئې ووئیل چه که ته غواړے نو زهٔ به ستا دا دشمنان د دوه غرونو ترمینځ وچقوم، نو معلومه شوه چه د نبي کریم ﷺ په اختیار کښې عذاب وو او دلته وائي چه زما په اختیار کښې عذاب نشته؟

**جواب** دا دے چه کله منکرینو د نبي کریم ﷺ نه د عذاب مطالبه کوله نو په دغه وخت کښې د رسول الله ﷺ سره د عذاب اختیار نهٔ وو کنې پرے راګوزار کړے به ئې وے، او هر چه دغه حدیث دے نو په هغې کښې دا خبره نشته چه پدغه وخت کښې دغه دشمنانو د عذاب مطالبه کړے وه، او رسول الله ﷺ ته د هغې اختیار حاصل شوے وو، نهٔ بلکه په هغې کښې صرف دا خبره ده چه مَلَكُ الجبال ورته یو عرض کړے وو چه که ته غواړے نو زهٔ به داسے وکړم، لیکن رسول الله ﷺ هغه عرض رد کړو او دا ئې ووئیل چه کیدے شي چه د دوی د شاګانو نه به داسے خلك پیدا شي چه د الله خالصه بندګي به کوي. (ابن کثیر ۳/۲٦٤)

وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالظّٰلِمِيْنَ : هرکله چه الله تعالیٰ په ظالمانو پوهه دے نو پدے وجه ئې ما ته عذاب نهٔ دے راسپارلے. (المنار)

ظاهر مطلب دا دے چه الله تعالیٰ په ظالمانو ښه پوهه دے نو په هغوی باندے به په خپل مناسب وخت کښې عذاب نازلوي ځکه چه هغه د دوی په حال ښه خبردار دے او د دوی د ګناهونو اندازه ورته معلومه ده او هغه د دوی نه هیڅکله غافل نهٔ دے.

| وَعِندَهُۥ مَفَاتِحُ ٱلْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَآ إِلَّا هُوَ ۚ وَيَعْلَمُ مَا |
|---|
| او د الله سره چابیانے د غیبو دی نهٔ پوهیږی په هغے مګر هغه (الله) او پوهیږی په هغه څه |
| فِى ٱلْبَرِّ وَٱلْبَحْرِ ۚ وَمَا تَسْقُطُ مِن وَرَقَةٍ إِلَّا يَعْلَمُهَا |
| چه په وچه او دریاب کښې دی او نهٔ پریوزی یوه پاڼړهٔ مګر پوهیږی الله په هغے |
| وَلَا حَبَّةٍ فِى ظُلُمَٰتِ ٱلْأَرْضِ وَلَا رَطْبٍ وَلَا يَابِسٍ إِلَّا فِى كِتَٰبٍ مُّبِينٍ ﴿٥٩﴾ |
| او نهٔ پریوزی یوه دانه په تیارو د زمکه کښې او نهٔ لوند او نهٔ وچ مګر په کتاب ښکاره کښې دی |

**تفسیر** : اُوس د الله د تعارف بل انداز، او دا جواب د سوال هم دے چه صحیح ده اختیار د عذاب خو نشته لیکن د عذاب وخت خو به درته معلوم وی چه کله به راځی؟ نو جواب کوی چه ددے علم صرف الله ته سپارلے شویدے، ځکه چه د غیبو خزانے د هغه سره دی. دویم پدے کښې اشاره ده چه علم د الله تعالیٰ محیط دے، وخت د عذاب، سبب د عذاب ټول هغه ته معلوم دی، دریم : دارنګه د قرآن کریم طریقه دا ده چه د بعض اشیاؤ پورے د علم خاص کولو نه روستو تعمیم کوی دپاره د دفع د وَهم.

نو پدے آیت کښې د الله تعالیٰ د علم، قدرت، حکمة او مشیت بیان دے.

تفصیل ئے دا دے چه دا ټول کائنات او د هغے ذرات د الله په علم کښې وو، بیا الله تعالیٰ دا ټول کائنات ددے د پیدائش نه مخکښې ولیکل او دا ډیر مشکل کار وی او بیا د الله لیکل داسے نهٔ وی چه په ډیرو پاڼړو کښې ئے ولیکی بلکه دا په یوه تخته کښې لیکی نو په یوه تخته کښې ټول کائنات جمع کول دا د الله بل قسم قدرت او علم دے ځکه ورته کتاب مبین وائی چه ښیځی واضح دے، بیا دریم : الله تعالیٰ دا مخلوقات په خپل مشیت سره پیدا کړل او وجود ته ئے راوستل، او بیا د هغوی دپاره ئے چه کوم څیزونه د آبادئ او ژوند تیرولو مقرر کړیدی هغه ورته په همغه وخت کښې رسوی، دا ډیر ناشنا علم او ناشنا قدرت دے، لکه د یو تن دپاره ئے مرګ ولیکو چه مثلاً صبا لس بجے به په پیښور ښار کښې زید مړ کیږی، دا الله د آسمانونو او د زمکے د پیدائش نه پنځوس زره کاله مخکښې ولیکل نو دا زید به دنیا کښې پیدا کیږی او پیښور ښار ته به راځی او دے ورځے ته به برابریږی، او اسباب به ورته برابروی او په همدغه وخت به ترے ساه اخلی او د الله نه دا غائب کیږی نهٔ چه زید رانه هیر شو پدے ورځ ئے مرګ وو خو څه صبا ته به ئے مړ کړو، یا ووائی چه راته یاد دے خو اسباب

نۀ دي برابر، یا بل کوم مانع شته نو د هغه د ارادے او مشیت نه بیخي تخلف (روستو والے) نۀ کیږي، او همدے ته د تقدیر مسئله وائي چه اول د یو شي علم راځي بیا د هغے لیکل بیا په هغې باندے قدرت د پیدا کولو، بیا په هغې باندے فیصله کول چه دے ته قضاء وائي۔ نو تقدیر مخکښې دے د قضاء نه۔ بیا پدے مقرر وخت کښې مرگ راوستلو کښې د الله ډیر حکمتونه وي چه صرف هغه پرے پوهیږي۔ نو پدے کښې د الله تعالیٰ کمال ذکر دے۔

مَفَاتِحُ الْغَيْبِ : جمع د مَفتح ده خزانو ته وائي یعني خزانے : هغه څیزونو چه د انسانانو د علم نه غائب دي۔ یا جمع د مِفتح ده چابیانو ته وئیلے شي۔ یعني هغه وسائل چه په هغے سره علم د غیبو ته رسیدل کیږي۔ (المنار)

الله تعالیٰ د غیبي کارونو د هغه قیمتي او اهم اشیاؤ سره تشبیه ورکړیده چه هغه په صندوقونو کښې بندولے شي او په ډیر احتیاط سره هغے ته تالا لگولے شي۔ د هغه غیبي کارونو علم د الله نه سوئ هیچا ته نشته۔ (قاسمیؒ)

وَيَعْلَمُ مَا فِي الْبَرِّ : اوله جمله کښې د الله تعالیٰ علم محیط کلي ذکر شو په ټولو مغیباتو (غائب څیزونو) او دا یوه قضیه عقلي ده او د قضیه عقلیه پوهه په مثال باندے بناء وي نو اُوس د هغے تفصیل بیانوي چه موجودات په دوه قسمه دي، اعیان او اعراض، بیا اعیان دوه قسمه دي، بري او بحري، او اعراض هم دوه قسمه دي، اَوصاف او حرکات، اَوصاف دوه قسمه دي، رطب (لوند) او یابس (اُوچ) او حرکات هم دوه قسمه دي، یو حرکت د اُوچت نه زمکے ته نو دا (وَمَا تَسْقُطُ مِنْ وَرَقَةٍ) شو او حرکت د زمکے د سطح نه داخل د زمکے ته نو دا (لَا حَبَّةٍ) شو، نو پدے کښې ټول موجودات (کائنات) داخل شو۔

(احسن الکلام والتفسیر الکبیر)

وَيَعْلَمُ مَا فِي الْبَرِّ : یعني الله تعالیٰ د وچے او د دریاب په څیزونو پوهیږي کوم چه د بندگانو نه اکثر پټ دي، او لږ ورته ښکاره دي۔ برئ مخکښې کړو ترقي ده د ادنیٰ نه اعلیٰ ته ځکه چه دریاب کښې ډیر څه پټ دي۔ او دارنگه د انسان اول علم په اُوچه باندے راځي۔

وَمَا تَسْقُطُ مِنْ وَرَقَةٍ : پدے کښې ډیر عموم دے چه صرف علم د وَرقے (پانړے) نۀ بلکه د هغے د حرکت علم هم د الله تعالیٰ سره دے۔ معلومه شوه چه د الله تعالیٰ علم په ټولو جزئیاتو باندے احاطه کړیده۔

وَلَا حَبَّةٍ : یعني دانه چه زمیندار (کسان) په پټي کښې گوزاري او د خلکو د سترگو نه پناه شي۔ یا ئے هغه دانه چه میږان ئے خپلو سوړو ته وړسي، یا خپله د بوټي نه تخم

پریوځی او په ځمکه کښې داخل شی ددې ټولو علم د الله سره دې۔

وَلَا رَطْبٍ وَّلَا يَابِسٍ : دا تعميم بعد التخصيص دې، دې نه هر ژوندې او مړ انسان او جن او ملائك بلكه ټول څيزونه مراد كيدې شي۔ نو د مثالونو ذكر كولو نه روستو دا بيرته رجوع ده قضيه عقلي ته۔ (الكبير، والمنار)

صاحب د «فتح البيان» ليكلي دي چه پدې آيت سره د كاهنانو، نجوميانو او د غيبو خبرې خودونكو رد كيږي، كوم چه د كشف او د الهام د دروغو دعوې كوي، چه هيڅ علم ورله نشته او نه د هغوي په قدرت كښې دي۔

په مسند احمد كښې د ابو هريره رضي الله عنه روايت دې چه رسول الله ﷺ وفرمايل: «څوك چه كوم كاهن يا نجومي خواته راغلو نو هغه په محمد (ﷺ) باندې د نازل شوي كتاب نه انكار اُوكړو»۔ (مسند احمد: ٩٥٣٢) وسنده حسن رجاله رجال الصحيح - شعيب)

د عبد الله بن مسعود رضي الله عنه وينا ده چه نبي كريم ﷺ ته د غيبي امورو د چابيانو نه سوئ هرڅه وركړې شوي وو۔ (قاسمي)

## د مفاتح الغيب مصداقات

١- د ابن عباس رضي الله عنهما وينا ده [اَلْأَقْدَارُ وَالْأَرْزَاقُ] چه د مفاتح الغيب نه مراد تقدير او روزي ده۔

٢- ضحاك وائي: [خَزَائِنُ الْأَرْضِ وَعِلْمُ نُزُوْلِ الْعَذَابِ]۔ د ځمكې خزانې او د عذاب د نازليدو علم۔

٣- عطاء وائي: [مَا غَابَ عَنْكُمْ مِنَ الثَّوَابِ وَالْعِقَابِ]۔ ثواب او عقاب چه ستاسو نه غائب دې۔

٤- څيني وائي: [اِنْقِضَاءُ الْآجَالِ وَعِلْمُ أَحْوَالِ الْعِبَادِ مِنَ السَّعَادَةِ وَالشَّقَاوَةِ وَخَوَاتِيْمِ أَعْمَالِهِمْ] قاسمي) د نيټو ختميدل او د بندګانو د حالاتو يعني د نيك بختئ، بد بختئ او د هغوي د اعمالو د خاتمې علم دې۔ ليكن مفاتيح ددې نه هم ډيره فراخه معنیٰ لري۔ (قاسمي)

د ابن عمر رضي الله عنه نه روايت شويدې چه رسول الله ﷺ وفرمايل: «مفاتح الغيب (د غيبو چابيانې) پنځه څيزونه دي، د هغې علم د الله نه سوئ هيچا ته هم نشته: صبا به څه كيږي، رَحِم كښې څه دي، صبا به بنده څه كوي، د انسان مرګ به چرته راځي، او باران به

کله کیږي))۔ په یو روایت کښې دي چه ((قیامت به کله راځي))۔ (صحیح بخاري: ۱۰۳۹)

او پدے حدیث کښې دا پنځه څیزونه د حصر دپاره نهٔ دي، لکه علماء وائي چه مفهوم العدد له اعتبار نهٔ وي او مشرکانو به ددے پنځه څیزونو د علم دعوه کوله نو ځکه الله تعالیٰ پدے کښې حصر وکړو۔ او دے پنځو څیزونو ته ئے چه مفاتیح الغیب وئیلی دي نو ددے ډیره ښه وجه صاحب المنار ذکر کړیده او هغه وئیلي دي چه ما پدے باندے ډیر سوچ د طالبیٔ زمانے نه کړیدے خو الله پرے زما ذهن کولاؤ کړیدے هغه دا چه غیب هغه شی ته وائي چه د وجود یا د شهود نه غائب وي چه هغه عالم البرزخ او عالم الآخرة دے، او بعض عالَم د دنیا هغه ګیاه ده چه لا پیدا شوي نهٔ وي او هغه حیوان چه لا پیدا شوے نهٔ وي او د انسان کټه چه په مستقبل کښې به حاصلیږي نو د سورة لقمان په آیت کښې ﴿إِنَّ اللَّهَ عِندَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ وَيُنَزِّلُ الْغَيْثَ وَيَعْلَمُ مَا فِي الْأَرْحَامِ وَمَا تَدْرِي نَفْسٌ مَاذَا تَكْسِبُ غَدًا وَمَا تَدْرِي نَفْسٌ بِأَيِّ أَرْضٍ تَمُوتُ﴾ کښې دے ته اشاره شویده نو قیامت د آخرت مفتاح (چابي) ده، او باران د عالم النبات چابي ده، او (مَا فِي الْأَرْحَامِ) د عالَم الحیوان چابي ده او (وَمَا تَدْرِي نَفْسٌ) د کسبونو او عملونو چابي ده۔ او (وَمَا تَدْرِي نَفْسٌ بِأَيِّ أَرْضٍ تَمُوتُ) یعنې مرګ د عالم البرزخ چابي ده۔ او دا ټول څیزونه لا موجود او مشاهد نهٔ دي نو ځکه ئے دے ته مفاتیح الغیب (د غیبو چابیانې) وئیلي دي۔ (المنار ۳۹۱/۷)

فِي كِتَابٍ مُّبِينٍ : ددے نه مراد یا علم د الله تعالیٰ دے، نو دا به بدل کُل وي د (إِلَّا يَعْلَمُهَا) نه۔ یا ددے نه مراد لوح محفوظ دے۔ نو په (إِلَّا يَعْلَمُهَا) کښې علم ته اشاره ده او په (إِلَّا فِي كِتَابٍ مُّبِينٍ) کښې د هغے لیکلو ته اشاره ده، او همدا قول غوره دے ځکه چه په (کتاب مبین) کښې کیدل مستلزم دی علم د الله تعالیٰ لره۔ نو په آیت کښې به دواړو خبرو ته (چه علم او لیکل دي) اشاره راشي، او دا د الله تعالیٰ د کتاب کمال او بلاغت دے۔

نو څوک چه کتاب مبین د الله تعالیٰ د علم نه کنایه ګرځوي نو دا ظاهر نهٔ ده بلکه لوح محفوظ مراد دے، پدے کښې ډیر کمال دے لکه مخکښې ذکر شو ځکه چه لیکل د علم نه ګران کار دے۔

وَهُوَ الَّذِي يَتَوَفَّاكُم بِاللَّيْلِ وَيَعْلَمُ مَا

او خاص الله هغه ذات دے چه اُودهٔ کوي تاسو په شپه کښې او پو هیږي په هغه څه

| جَرَحْتُمْ بِالنَّهَارِ ثُمَّ يَبْعَثُكُمْ فِيهِ لِيُقْضَى أَجَلٌ مُّسَمًّى ج |
| --- |
| چه کوئ تاسو په ورځ کښې بیا پاځوی تاسو په ورځ کښې دے دپاره چه پوره کړے شی نیټه مقرره |
| ثُمَّ إِلَيْهِ مَرْجِعُكُمْ ثُمَّ يُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٦٠﴾ |
| بیا خاص هغه ته واپسی ده ستاسو بیا به خبر درکوی تاسو ته په هغه عملونو چه تاسو ئې کوئ |

**تفسير** : دا د الله تعالیٰ بل تعارف او دلیل عقلی دے۔

ربط :

۱- په مخکښې آیت کښې ئې ووئیل چه الله په هرڅه پو هیږی، دلته وائی چه ستاسو په عملونو هم پو هیږی، دا ئې ولے خاص کړل؟ نو وجه دا ده چه عمل د انسان ډیر مقصودی دے په نسبت د نورو څیزونو۔ ۲- یا مخکښې عموم علم د الله تعالیٰ وو دلته عموم قدرت د الله تعالیٰ بیانیږی چه ستاسو اُوده کیدل او بیداریدل هم د الله په اختیار کښې دی۔

يَتَوَفّٰكُمْ : دلته توفی نه مراد خوب دے۔ او په اصل کښې یو شے پوره اخستل دی نو دلته هم د انسان هغه نفس چه تمییز او تصرف کوی هغه په خوب کښې اخلی۔ (سمعانی)

جَرَحْتُمْ : أَيْ كَسَبْتُمْ : چه تاسو ئې کوئ۔

يَبْعَثُكُمْ فِيهِ : د فیه ضمیر راتلونکے ورځے ته راجع دے۔

أَجَلٌ مُّسَمًّى : ددے نه مراد د انسان د مرګ نیټه ده۔ نو هره ورځ او شپه چه تیریږی بنده مرګ ته نزدے کیږی۔

## فوائد او علوم

پدے آیت کښې هم ډیر فوائد او علوم دی (۱) یو بیان د علم او د قدرت د الله تعالیٰ دے، او (۲) بل اهتمام په اعمالو د بندګانو۔ (۳) او ناشنا خبره پکښې دا ده چه إِثْبَاتُ يَوْمِ الْقِيَامَةِ بِالدَّلِيلِ الْعَقْلِيِّ الْعَجِيبِ ۔ په ناشنا عقلی دلیل سره د قیامت د ورځے اثبات کوی، هغه دا چه ماسخوتن اُوده کیدل داسے دی لکه مرګ او قبر ته تلل، مړے هم په ځان نهٔ پو هیږی او اُوده هم نهٔ پو هیږی، او مړے نهٔ ژوندے دے (د دنیا په احکامو کښې) او نهٔ مړ دے (ځکه چه برزخ کښې ژوندے دے) او دغه شان اُوده شخص هم دے، چه نهٔ مړ دے ځکه چه ساه په کښې شته او نهٔ ژوندے دے ځکه چه تصرف نشی کولے، آوریدل او لیدل نشی کولے۔ نو خوب بعینه د مرګ مثال دے لکه قرآن او حدیث کښې اکثر د مرګ تشبیه د خوب سره ورکوی [اَللّٰهُمّ

بِاسْمِكَ اَمُوْتُ] ماسخوتن وواتى او د سهار پاڅيدو وخت كښې وائى [اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ اَحْيَانَا بَعْدَ مَا اَمَاتَنَا وَاِلَيْهِ النُّشُوْرُ]. نو هره ورځ مونږ ته الله تعالیٰ قيامت يادوى.

(٤) بيا پدے آيت كښې اشارة اثبات د عذاب قبر هم شته، پدے طريقه چه سړے چه اوده وى نو په خوب كښې پرے خوشحالى او تكليف راځى، او وېښ خلك ورته خواته ناست وى د هغه په حال نه پوهيږى، نو دغه بعينه د قبر او برزخ مثال دے چه مړى باندے نعمتونه او راحتونه راځى او عذابونه راځى، او ژوندى پرے نه پوهيږى.

**فائده**: يُنَبِّئُكُمْ : دا ډير سخت عذاب دے، د ډيرو عذابونو مرادف دے ځكه د الله تعالیٰ مخامخ د انسان عيبونه راښكاره شى او ټول خلك ئے هم وينى.

| وَهُوَ الْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهٖ وَيُرْسِلُ عَلَيْكُمْ حَفَظَةً ط |
|---|
| او هغه (الله) زورور دے، دپاسه دے د بندګانو خپلو نه او رالیږلی په تاسو حفاظت كونكى ملائك |
| حَتّٰٓى اِذَا جَآءَ اَحَدَكُمُ الْمَوْتُ تَوَفَّتْهُ رُسُلُنَا |
| (څوكيداران) تردے چه كله راشى يو تن ستاسو ته مرګ وفات كوى هغه لره ملائك زمونږ |
| وَهُمْ لَا يُفَرِّطُوْنَ ﴿٦١﴾ ثُمَّ رُدُّوْٓا اِلَى اللّٰهِ مَوْلٰىهُمُ الْحَقِّ ط |
| او دوى هيڅ كوتاهى نه كوى. بيا به واپس شى دوى الله ته چه مالك د دوى دے يقينى، |
| اَلَا لَهُ الْحُكْمُ قف وَهُوَ اَسْرَعُ الْحٰسِبِيْنَ ﴿٦٢﴾ |
| خبر شئ: خاص هغه دپاره اختيار د فيصلے دے او هغه جلت حساب كونكے دے. |

**تفسير**: د الله تعالیٰ بل قسم تعارف او عقلى دليل دے چه الله زورآور ذات دے، د بندګانو په كارونو كښې صرف الله تصرف كوى، هغه چه د دوى سره څنګه غواړى معامله كوى، او هغه د بندګانو حفاظت د ملائكو په ذريعه كوى او بيا پرے مرګ راولى او تاسو د مرګ نه نشئ بچ كيدے.

اَلْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهٖ : د قهر معنىٰ مخكښې (١٨) آيت كښې تيره شوه چه په يو شى باندے غلبے ته وائى، بيا غلبه په يو شى باندے اوچتوالى لره مستلزم ده، پدے وجه د قهر سره فوق ذكر كيږى، او قهر د الله تعالیٰ په مختلفو طريقو سره دے، قهر د معدوم په ايجاد سره دے، او قهر په موجود باندے په فناء كولو سره دے، او قهر د نور په ظلمت سره دے، او

ددے برعکس- او قهر د شپے په ورځے سره او برعکس نو تولو قسمونو د انقلابی تصرف نه قهر ونیلے شی-

بیا په (۱۸) آیت کښې تصرف د نفع او ضرر ذکر وو نو د هغے سره ئے قهر ذکر کړو ځکه چه دا هم د الله د قهر یو اثر دے، او دلته مخکښې تصرف د اُوده کولو او بیدارولو ذکر دے چه دا بل قِسم د اثر د قهر د الله دے، نو ځکه ئے وروستو دوباره (القاهر) ذکر کړو. احسن الکلام

د ((حفظه)) نه مراد هغه ملائک دی چه د انسان نه مخکښې روستو هر وخت لګیدلی وی او د هر قسم آفت او مصیبت نه ئے د الله په حکم سره بچ کوی، که دا ملائک نهٔ وے نو شیطانانو به انسانان تس نس کړی وے- او ددے یو حکمة دا هم دے چه کله یو بنده پوهه شی چه زما عملونه ما پسے لیکلے شی او په قیامت کښې به په ما باندے د تولو خلکو مخامخ پیش کولے شی نو دے د ګناهونو نه ډیر منع کیدونکے ګرځی- (قاسمیؒ)

ابن ابی العزؒ په ((شرح العقیدة الطحاویه)) کښې لیکلی دی چه ددے ملائکو شمار څلور دے، دوه په ورځ کښې اُوسیږی او دوه په شپه کې- دا تر هغه وخته پورے حفاظت کوی ترڅو چه د انسان مقرر اجل (نیټه) رانهٔ شی لکه چه الله تعالیٰ په سورة رعد آیت (۱۱) کښې فرمایلی دی: ﴿لَهُ مُعَقِّبَاتٌ مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهِ يَحْفَظُونَهُ مِنْ أَمْرِ اللَّهِ﴾- (د هر یو دپاره د یو بل پسے روستو راتلونکی ملائک مقرر دی، چه ددهٔ مخے او روستو وی او د الله د حکم مطابق ددهٔ حفاظت کوی)-

ځینی روایاتو نه معلومیږی چه هغه ابن جریرؒ او ابن کثیرؒ ذکر کړیدی په تفسیر د سورة الرعد کښې چه دا لس ملائک د ورځے او لس ملائک د شپے دی نو تول شل ملائک شو-

(ابن کثیر ۴/۴۳۹) وابن جریر (۱۶/۳۷۰)

په دے کښې هغه ملائک هم داخل دی چه د بندګانو اعمال شماری او لیکی، دغه شان پدے آیت کښې د ملائکو درے قسمونه بیان شویدی- تردے پورے چه کله د مرګ وخت راشی نو روح اخستونکی ملائک او نور مددګار ملائک راشی بغیر د تاخیر نه د هغه روح اخلی، او د الله د حکم مطابق که نیک روح وی، نو ((علیین)) کښې، او که فاجر وی نو په ((سجین)) کښې ئے محفوظ کوی-

رُسُلُنَا : ددے نه معلومیږی چه وفات کونکی ملائک ډیر دی، او د سورة السجده (۱۱) آیت ﴿يَتَوَفَّاكُمْ مَلَكُ الْمَوْتِ الَّذِي وُكِّلَ بِكُمْ﴾ نه معلومیږی چه یو ملائک دے؟ ځینی وائی چه مَلَکُ الموت جنس دے ډیرو ملائکو ته وائی، لیکن حقه دا ده چه ددے تفسیر په

حدیث کښې راغلې دې هغه دا چه ملك الموت هر مړی پسې ورځي. او دا نور ملائك د هغه سره أعوان (مددګار) دی لکه عبد الله بن عباس رضی الله عنهما هم فرمائی: [إِنَّ لِمَلَكِ الْمَوْتِ أَعْوَانًا] (التحرير والتنوير) د ملك الموت سره ملګری وی. او د مسند احمدؒ وغیره په روایت کښې دی [فَإِذَا أَخَذَهَا لَمْ يَدَعُوهَا بِيَدِهِ طَرْفَةَ عَيْنٍ] یعنی کله چه ملك الموت روح واخلی نونور ملائك دغه روح د ملك الموت په لاس کښې د سترګے د رپ په اندازه نهٔ پریږدی او زرئې ترې اخلی او په یوه ټوټه کښې ئې تاووی. (مسند احمد: ۱۸۵۵۷ باسناد صحیح)

د ملك الموت نوم بعض مفسرینو (عزرائیل) لیکلے دے لیکن په صحیح نصوصو کښې ددهٔ نوم نهٔ دے ذکر شوے صرف ملك الموت نوم ئې دے.

**سوال**: یو ملك الموت څنګه په دنیا کښې ټولو مړو ته په یو وخت حاضر شی؟ لکه دا معلومه ده چه په یو وخت کښې د لس لکهو نه زیات مړی کیږی؟ (ددے وجه نه بعض بې دینه خلك ددے پورے خندنې کوی)؟ **جواب**: ملك الموت د غر په شان جسم نهٔ لری چه په آرام به روانیږی بلکه دا نُور دے لکه ملائك نُور دی. او د نُور رفتار د پخوانو سائنسدانو په نیز په یوه ثانیه (سیکنډ) کښې یو لاکھ شپږ اتیا زره میله دے نو په یو منټ کښې (11160000) میله دے او یو عرب سائنسدان لیکلی دی چه (درے لاکه میله دے) او دا عام انوارات مراد دی، او بیا د ملائکو انوارات ددے نه هم تیز دی. نو هغه ته الله تعالیٰ دا طاقت ورکړیدے چه د ټولے دنیا انسانان په یو لاس کښې ونیسی او ټولو نه په یو ځل روح واخلی لکه د قیامت د راتللو په وخت کښې به دغسے کوی. لکه ددے تفصیل د المنار نه روستو په آیت (۹۷) کښې راځي.

**فائده**: بعض مشرکان وائی چه ملك الموت ټولے دنیا ته رسیدلے شي نو رسول الله ﷺ خو د هغه نه بهتر دے هغه هم هر ځای حاضر ناظر کیدے شي. جواب دا دے چه د رسول الله ﷺ بهتر والے په خپل ځای دے لیکن هغه ته الله تعالیٰ دا قسم طاقت نهٔ دے ورکړے او ملك الموت ته ئې ورکړیدے لکه هغه انسان دے، خوراك، څکاك، نکاح او خوب ته حاجت لری او ملك الموت ئې نهٔ لری. او همیشه د داسے قسم قیاسونو په وجه دین او توحید تباه شویدے.

ثُمَّ رُدُّوا إِلَى اللهِ: د مرګ نه روستو ټول انسانان الله تعالیٰ ته یو ځل واپس کیږی او روح ئې بره آسمان ته خیژی نو چا ته د آسمان دروازے کولاوے شي او روح ئې علیین ته پورته کړے شي او چا ته کولاوے نشي نو روح ئې سجین ته ګوزار شی.

مَوْلٰىهُمُ : د مَوْلىٰ نه مراد مالك او متصرف دے۔

الْحَقِّ : یعنی یقینی، او رشتینی۔

اَلَا لَهُ الْحُكْمُ : یعنی د روحونو پیش کیدو نه روستو فیصله او واك د الله تعالیٰ دے چه هغه د دوی په باره کښې څه فیصله کوی، او هغه به په ډیره جلتئ سره د مخلوقاتو حساب اخلی۔

یو حساب په قبر کښې دے چه (مَنْ رَّبُّكَ؟ ) نو د قبر سوال جواب ددے آیت نه ثابت دے۔ او دویم په آخرت کښې دے، او حدیث کښې دی چه الله تعالیٰ به د ټول مخلوق د حساب نه دومره زر فارغه شی لکه د دنیا د ورځو نه چه د سهار نه تر غرمے پورے وخت وی۔

| قُلْ مَنْ يُّنَجِّيْكُمْ مِّنْ ظُلُمٰتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ |
| --- |
| ته ووایه څوك دے چه نجات درکړی تاسو ته د تیارو د وچے او د دریاب نه، |
| تَدْعُوْنَهٗ تَضَرُّعًا وَّخُفْيَةً ۚ لَئِنْ اَنْجٰنَا |
| رابلئ تاسو هغه په عاجزئ او په پټه سره، که چرے خلاص کړو هغه مونږ لره |
| مِنْ هٰذِهٖ لَنَكُوْنَنَّ مِنَ الشّٰكِرِيْنَ ﴿٦٣﴾ قُلِ اللّٰهُ يُنَجِّيْكُمْ |
| ددے (مصیبت) نه نو خامخا شو به د شکر کونکو نه۔ ته ووایه ! الله بچ کوی تاسو |
| مِّنْهَا وَمِنْ كُلِّ كَرْبٍ ثُمَّ اَنْتُمْ تُشْرِكُوْنَ ﴿٦٤﴾ |
| ددے (مصیبت) نه او د هر غم نه بیا تاسو شرك کوئ۔ |

**تفسیر** : دا بل قسم تعارف، او عقلی دلیل دے په رد د شرك باندے، او دلته د کلام سیاق د مشرکانو سره متعلق دے چه په سختو مشکلاتو کښې تاسو الله تعالیٰ ته رامدد شه وایئ او په ورو مصیبتونو کښې خپلو معبودانو ته آوازونه کوئ حال دا چه د ټولو مصیبتونو نه بچ کونکے صرف الله تعالیٰ دے نو بیا تاسو ولے د هغه سره شرك کوئ؟، نجات الله تعالیٰ درکړی او نسبت ئے بل چا ته کوئ، یا چه کومه وعده موکړی وی نو هغے کښې خلاف کوئ۔

ظُلُمٰتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ : د اُوچے د تیارو نه مراد مختلف قِسم مصیبتونه، د دشمن یرۀ او لاره ورك کیدل دی او د دریاب د تیارے نه مراد د چپو یره، او د طوفان یره، او لاره ورك کیدل

دی۔ دلته الله تعالیٰ د مشرکانو د فطرت کوږ والے بیان کړیدے چه کله دوی ته څه یره اُورسیږی نو د الله مخے ته زاری او عاجزی کوی، او پټه پټه دعا کوی او الله سره وعده کوی چه که هغه ددے مصیبت نه نجات راکړو نو مونږ به د هغه د شکر گذار بندگانو نه جوړیږو او شرك به نهٔ کوو۔

نو ته ورته ووایه چه ددے مصیبت نه او د هر مصیبت نه صرف الله نجات درکوی۔ لیکن د دوی د فطرت کوږ والی او د شرکی عادت نتیجے ته اُوگوره چه د نجات موندلو نه روستو دوی خپلے وعدے هیرے کړی او خپل نجات ورکونکے بل څوك یادوی۔

تَضَرُّعًا وَّخُفْيَةً : یعنی بیا په تاسو کښې عاجزی په ژبه، او اخلاص په زړه کښې پیدا شی۔

كُلِّ كَرْبٍ :کرب هغه غم ته وائی چه ساه ورسره دوبه شی یعنی غټ غم۔

| قُلْ هُوَ الْقَادِرُ عَلٰٓى اَنْ يَّبْعَثَ عَلَيْكُمْ عَذَابًا مِّنْ فَوْقِكُمْ اَوْ مِنْ |
|---|
| ته ووایه الله تعالیٰ قادر دے پدے چه راولیږی په تاسو عذاب د بره طرف ستاسو نه یا د |
| تَحْتِ اَرْجُلِكُمْ اَوْ يَلْبِسَكُمْ شِيَعًا وَّيُذِيْقَ بَعْضَكُمْ |
| لاندے د خپو ستاسو نه یا گډوډ کړی تاسو مختلفے ډلے او وبه څکوی بعض ستاسو ته |
| بَأْسَ بَعْضٍ ؕ اُنْظُرْ كَيْفَ نُصَرِّفُ الْاٰيٰتِ لَعَلَّهُمْ يَفْقَهُوْنَ ﴿٦٥﴾ |
| جنگ د نورو، وگوره څنگه بیانوو مونږ آیتونه دے دپاره چه دوی پو هه شی۔ |

**تفسیر** : یعنی اے زما رسوله! (ﷺ) کومو مشرکانو چه وعده کړے وه چه دوی به د مصیبت نه د نجات موندلو نه روستو د الله شکر گذار بندگان جوړیږی، لیکن خپله وعده ئے هیره کړه او بیا ئے شرك شروع کړو، (نو دے خلکو ته پدے آیت کښې سخته دهمکی بیان شویده) چه ته دے خلقو ته اُووایه! چه د الله د عذاب نه په امن کښې کیدل په هیڅ شان نشته څکه چه هغه خو په هر وخت او هر حال کښې په مختلف قسم عذاب کښې اخته کولو باندے قادر دے، که هغه غواړی نو د اُور او کاڼو باران به وکړی، یا به آسمان ستاسو په سرونو راوغورزوی، یا که اُوغواړی نو طوفان به راولیږی، یا به مو په زمکه کښې خخ کړی، یا به مو په مختلفو ډلو کښې تقسیم کړی او بیا به تاسو خپل مینځ کښې یو بل لره قتلوئ۔

خینی وائی : (مِنْ فَوْقِكُمْ) نه مراد ناکاره مشران راتلل دی او (من تحت ارجلکم) نه

نافرمانه خدمتګاران او اولاد دی. یا دا چه د بره نه به بارانونه بند کړی او د زمکے نه به بوټی بند کړی نو دا هم عذاب دے. (زمخشری)

بخاری د جابر رضی الله عنه نه روایت کړیدے چه کله دا آیت ﴿ قُلْ هُوَ الْقَادِرُ عَلَى أَنْ يَبْعَثَ عَلَيْكُمْ عَذَابًا مِّنْ فَوْقِكُمْ ﴾ نازل شو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل : [اَعُوذُ بِوَجْهِكَ ] (زۀ پناهی طلب کوم ستا په مخ سره) او چه کله ﴿ أَوْ مِنْ تَحْتِ أَرْجُلِكُمْ ﴾ نازل شو نو نبی صلی الله علیه وسلم دوباره وویل : [اَعُوذُ بِوَجْهِكَ ] بیا کله چه ﴿ أَوْ يَلْبِسَكُمْ شِيَعًا وَيُذِيقَ بَعْضَكُمْ بَأْسَ بَعْضٍ ﴾ نازل شو نو نبی صلی الله علیه وسلم وویل : (وَهٰذَا أَهْوَنُ) (دا زیات آسان دے). (بخاری: ٤٦٢٨) (٧٣١٣) (٧٤٠٦)

دے ته ئے آسان ځکه وویل چه د انسانانو یو بل ته ضرر ورکول آسان وی، یو بل باندے څه نا څه زړه یخ کړی. لیکن د الله تعالی عذاب چه نازل شی هغه ډیر سخت وی نو ځکه رسول الله صلی الله علیه وسلم ددے نه پناهی طلب کړه.

مسلم د سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه نه روایت کړیدے چه یوه ورځ مونږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره په یو نژدی کلی راتلو نو د بنی معاویه د مسجد په خوا کښې تیر شو. نبی صلی الله علیه وسلم مسجد ته داخل شو او دوه رکعاته مونځ ئے وکړو او مونږ هم د هغه سره مونځ وکړو. هغه ډیره اُوږده دعا اُوکړه، بیا ئے مونږ طرف ته مخ راوګرځولو وے فرمایل چه ما د خپل رب نه درے څیزونه وغوختل، نو هغه ما ته دوه راکړل او یو ئے بند کړو. ما د خپل رب نه اُوغوختل چه زما امت په غرق کیدو هلاك نکړی نو دائے ماته راکړو. او ما د خپل رب نه اُوغوختل چه زما امت په قحط سالۍ سره هلاك نکړی، نو هغه ئے ماته راکړو. او ما د خپل رب نه سوال اُوکړو چه زما امت په خپل مینځ کښې د یو بل سره په جګړو اخته نکړی نو دا دعائے راته منع کړه. (صحیح مسلم: ٧٤٤٢) باب هلاك هذه الامة بعضهم ببعض)

شِيَعًا : جمع د شِيعَةٌ ده، هغه ډلے ته وائی چه په یو غرض، یا عقیده یا خواهش کښې متفق وی. او شیعه د سړی تابعدارو او اهل ته هم وائی.

وَّيُذِيقَ : دا ئے پرے عطف کړو اشاره ده چه مختلفے ډلے جوړیدل سبب د اختلافاتو او جنګونو دے، نو د بأس نه مراد قتل او شر دے.

صاحب التحریر وائی چه پدے کښې دهمکی ده مشرکانو د مکے ته، او تائید دے د مسلمانانو چه الله تعالی دغه شان وکړل چه عمومی عذابونه خو پرے رانغلل مګر په بدر او نورو غزواتو کښې ئے د مسلمانانو بأس (د جنګونو تریخوالے) وڅکلو. ددے وجه نه رسول الله صلی الله علیه وسلم دے ته آسان ووئیلو چه کله سزا مشرکانو ته رسیږی نو دا به د مسلمانانو

په لاس وي اګر که دوی ته به هم پکښې تکلیف رسي. او هغه دا وئیلی دي چه دا خطاب مسلمانانو ته نهٔ دے پدے وجه رسول الله ﷺ ددے نه تعوذ نهٔ دے کړے. اګر که الفاظ صلاحیت د دواړو فریقینو د خطاب لري. (التحریر والتنویر ۱۴۸/۶)

| وَكَذَّبَ بِهٖ قَوْمُكَ وَهُوَ الْحَقُّ ۗ قُلْ لَّسْتُ |
| --- |
| او دروغجن ګنړی دے لره قوم ستا او حال دا چه دا حق دے، ته ووایه ! نهٔ یم زهٔ |
| عَلَيْكُمْ بِوَكِيْلٍ ﴿٦٦﴾ لِكُلِّ نَبَاٍ مُّسْتَقَرٌّ وَّسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ﴿٦٧﴾ |
| په تاسو باندے ذمه وار. د هر خبر دپاره وخت مقرر دے او زر دے چه تاسو به پوهه شئ. |

**تفسیر** : دا زورنه ده منکرینو ته او (بهٖ) ضمیر قرآن ته یا عذاب، یا تصدیق د آیتونو ته راجع دے.

او پدے کښې د مکے مشرکانو واقعي احوال بیانیږي او نبی کریم ﷺ ته وئیلے شي چه ستا قوم د قرآن تکذیب اُوکړو، حال دا چه دا حق دے، او پدے کښې بیان شوے هره خبره رشتینی ده. ته دوی ته اُووایه چه زهٔ ستاسو ذمه وار نهٔ یم چه تاسو به ضرور ایمان راوړئ، زما کار خو صرف د الله تعالیٰ پیغام رسول دي.

بِوَكِيْلٍ : وکیل هغه چا ته وائي چه کار او اختیار ورسپارلے شوے وي، نو معنیٰ دا ده چه زهٔ تاسو په زوره د تکذیب نه نشم اړولے، دا د الله په اختیار کښې دے.

لِكُلِّ نَبَاٍ مُّسْتَقَرٌّ : دا جواب د سوال دے چه دوی تکذیب کوی نو عذاب پرے ولے نهٔ راځي؟ نو جواب وشو چه د الله د هر خبر او د هرے فیصلے واقع کیدو یو وخت مقرر دے. او ما تاسو ته د قرآن او د رسول د تکذیب او د شرك انجام بیان کړیدے چه تاسو به یوه ورځ عذاب راګیروی لکه د بدر په میدان کښې د هغه خبر تصدیق وشو.

نبأ : هغه خبر چه قرآن ورکړیدے چه عذاب به راځي، د دنیا یا د آخرت عذاب. یعنی د قرآن او د نبي وعدے به رشتینی کیږي. یا د نبأ نه مراد هر خبر دے چه تکذیب ته هم شامل دے او د مستقر (ځای د قرارې) نه مراد انجام دے یعنی ستاسو د تکذیب به هم څه انجام خو راوځي او هغه به تاسو ته رسیږي.

مُّسْتَقَرٌّ : ځای د قرارې، یا وخت مقرر.

| وَاِذَا رَاَيۡتَ الَّذِيۡنَ يَخُوۡضُوۡنَ فِيۡۤ اٰيٰتِنَا |
|---|
| او کله چه ووینې ته هغه کسان چه ننوزی (بحث کوی په باطله) په آیتونو زمونږ کښې |
| فَاَعۡرِضۡ عَنۡهُمۡ حَتّٰى يَخُوۡضُوۡا فِيۡ حَدِيۡثٍ غَيۡرِهٖ ؕ وَاِمَّا يُنۡسِيَنَّكَ |
| نو مخ واړوه د هغوی نه تردې چه شروع شی په خبره بله کښې او که چرته هیر کړو ستا نه |
| الشَّيۡطٰنُ فَلَا تَقۡعُدۡ بَعۡدَ الذِّكۡرٰى مَعَ الۡقَوۡمِ الظّٰلِمِيۡنَ ﴿۶۸﴾ |
| شیطان نو مه کینه روستو د یاداشت نه سره د قوم ظالمانو نه۔ |

**تفسیر** : پدې آیت کښې ایمان والو ته یو ادب ورکوی چه کله په یو مجلس کښې د شرك، بدعت او فسق خبرې کیږی نو دغه مجلس کښې شریك کیدل منع دی، صرف د هغوی د نصیحت دپاره ورتلل جائز دی۔

د اسلام په ابتداء کښې چه به د مکې مشرکانو صحابه کرامؓ لیدل چه قرآن به ئې لوستلو نو دوی به وریپورې توقې کولې او خبرې به ئې جوړولې، د هغه حالاتو مطابق الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو او رسول الله ﷺ او صحابه کرامؓ ئې منع کړل چه کافران کله د قرآن پورې توقې کوی نو داسې مجلسونو نه به پاڅیږئ تردې چه دوی په بله خبره کښې شروع شی۔

او کله چه نبی کریم ﷺ هجرت وکړو او مدینې منورې ته راغلو نو هلته هم د کافرانو او منافقانو همدا رونه وه چه دوی به هم د قرآن کریم او رسول الله ﷺ پورې توقې کولې نو الله تعالیٰ د داسې مجلسونو نه د پرهیز کولو حکم وکړو، لکه چه د سورة النساء په آیت (۱۴۰) کښې راغلی دی: ﴿وَقَدْ نَزَّلَ عَلَيْكُمْ فِي الْكِتَابِ اَنْ اِذَا سَمِعْتُمْ آيَاتِ اللهِ يُكْفَرُ بِهَا وَيُسْتَهْزَأُ بِهَا فَلَا تَقْعُدُوْا مَعَهُمْ حَتّٰى يَخُوْضُوْا فِيْ حَدِيْثٍ غَيْرِهٖ اِنَّكُمْ اِذاً مِّثْلُهُمْ﴾ (او الله په قرآن کریم کښې ستاسو دپاره نازل کړیدی چه کله تاسو واورئ چه د الله د آیتونو انکار کیږی او د هغې پورې توقې کیږی نو د هغوی سره مه کینئ تردې پورې چه ددې نه سوئ په بله خبره کښې شروع شی ورنه تاسو به د هغوی په شان شئ)۔

مفسرینو لیکلی دی چه دا حکم عام دې او د امت مسلمه په هر فرد دا فرض دی چه چرته هم د اسلام یا د قرآن یا د سنت وغیره پورې توقې کیږی، یا بدعت او خرافاتو طرف ته دعوت کیږی نو د هغه مجلس نه به بائیکاټ کوی، که نهٔ وی نو په هغه باندې به هم دغه حکم لګی کوم چه اُوس د سورة النساء په آیت کښې تیر شو ﴿اِنَّكُمْ اِذاً مِّثْلُهُمْ﴾ چه (تاسو به

هم د هغوی په شان شئ)۔ او ددے پوره تشریح او فوائد د سورة النساء د آیت (۱۴۰) لاندے تیر شویدی۔

يَخُوضُوْنَ : خوض په اصل کښې اَلدُّخُوْلُ فِي الْبَاطِلِ يعني په يو باطل کار کښې ننوتو ته وائي۔

فِيْ حَدِيْثٍ غَيْرِهٖ : د کافرو سره د دنیاوی خبرو یا د تجارت په خبرو کښې په مجلس کښې ناسته جائز ده چه دین ته پکښې نقصان نه وی۔

وَإِمَّا يُنْسِيَنَّكَ الشَّيْطٰنُ : يعني که شیطان درنه دا قول (فَاَعْرِضْ عَنْهُمْ) او (فَلَا تَقْعُدْ) امر هیر کړی، یا دا چه انسان غافل وی او د هغوی د توقو نه خبر نشی نو بیا به گناهګار نه وی۔

| وَمَا عَلَى الَّذِيْنَ يَتَّقُوْنَ مِنْ حِسَابِهِمْ مِّنْ شَيْءٍ |
| --- |
| او نشته په هغه کسانو چه خان ساتي (د شرك نه) د حساب د دوی نه هیڅ شے |
| وَّلٰكِنْ ذِكْرٰى لَعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ ﴿۶۹﴾ |
| لیکن نصیحت کول دی (دوی ته) دے دپاره چه دوی بچ شی۔ |

**تفسیر** : دا جواب د سوال دے چه مونږ په علاقه کښې موجود یو او دغسے مجرمان په مجلسونو کښې د الله د آیتونو پورے توقے کوی، او مونږ ورسره نه شریك کیږو نو آیا پدے به مونږ الله تعالیٰ راګیروی او مونږ به گناهګار یو؟

(لکه د ابن عباسؓ نه نقل دی چه کله دا مخکښې حکم نازل شو نو صحابه کرامؓ وویل چه مونږ به څنګه په مسجد حرام کښې کینو او د بیت الله نه به طواف وکړو حال دا چه مشرکان خو همیشه بکواس کوی؟۔ (بغوی))

نو الله جواب کوی : چه کله کافران د الله د آیتونو پورے توقے کوی، په هغه وخت که د الله نه یریدونکی مسلمانان د دوی د مجلسونو نه بچ شی نو د کافرانو گناه به هغوی پورے نه پیوسته کیږی، لیکن هغوی ته به امر بالمعروف او نهی عن المنکر نه پریدی دا نصیحت ورکول په دوی باندے لازم دی۔

وَّلٰكِنْ ذِكْرٰى : اَيْ لٰكِنْ يُذَكِّرُوْنَهُمْ ذِكْرٰى ۔ لیکن دوی باندے لازم دی چه هغوی ته به نصیحت کوی، شاید چه هغوی به هم د گناه نه بچ شی۔

۱- یعنی څوك چه په گناه کښې شریك نه وی نو په هغه گناه نشته خو په شرط د

دعوت بانددے۔

۲- ددے دویم مطلب دا بیان شویدے چه د الله نه یریدونکی خلق که د یوے مجبورتیا په وجه د داسے خلقو سره کینی، یا کافران راشی او د دوی په مجلس کښې د ګناه خبرے کوی، او یا د الله د آیتونو پورے توقے کوی، نو د هغوی ګناه به د مؤمنانو پورے نهٔ پیوسته کیږی لیکن پدے صورت کښې به هم هغوی ته امر بالمعروف او نهی عن المنکر کوی۔

د تفسیر علماؤ وئیلی دی چه داسے مجلسونو کښې د شرکت اجازت د اسلام په ابتداء کښې وو، کله چه مسلمانانو خپل ایمان پټ ساتلو لیکن په مدنی ژوند کښې کله چه د سورۃ نساء والا آیت نازل شو کوم چه مخکښې ذکر شو نو دا اجازت منسوخ شو۔ لکه د هغه آیت په معنیٰ کښې سوچ وکړه۔ او سورة الانعام مکی سورت دے او سورة النساء مدنی دے۔ (ابن کثیر۲/۴۳۵)

هان، د نیوي د تجارت معامله وغیره منسوخ نهٔ ده، د هغے د اثبات دیر دلائل شته۔

لَعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ : علامه سعدیؒ فرمائی : ۱- دا دلیل دے چه داعی به داسے الفاظ استعمالوی چه هغه مقصد یعنی تقویٰ ته نزدے کول کوی۔

۲- او ددے نه دا هم معلومه شوه چه تذکیر او وعظ که چرته موعوظ (یعنی مخاطب) دپاره نور شر زیاتولو نو بیا به د هغے پریخودل واجب وی ځکه چه کله دعوت د مقصود خلاف راوځی نو د هغے پریخودل مقصود وی۔ (تفسیر السعدی ۱/۱۹۰)

| |
|---|
| وَذَرِ الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا دِيْنَهُمْ لَعِبًا وَّ لَهْوًا وَّغَرَّتْهُمُ |
| او پریږدهٔ هغه کسان چه نیولے ئے دے دین خپل لوبے او مشغله او دهوکه کریدی دوی لره |
| الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا وَذَكِّرْ بِهٖٓ اَنْ تُبْسَلَ نَفْسٌۢ بِمَا |
| ژوند دنیوی، او بیان کره قرآن چه هلاك نشی یو نفس په سبب د هغه عمل |
| كَسَبَتْ ۗ لَيْسَ لَهَا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِيٌّ وَّلَا شَفِيْعٌ ۚ |
| چه کړے ئے وی، نشته هغه لره سویٰ د الله تعالیٰ نه دوست او نهٔ سفارشی |
| وَاِنْ تَعْدِلْ كُلَّ عَدْلٍ لَّا يُؤْخَذْ مِنْهَا ۗ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ |
| او که جرمانه ورکوی هره جرمانه نهٔ به شی اخستے د هغے نه، دا هغه کسان دی |

| اُبۡسِلُوۡا بِمَا كَسَبُوۡا ۚ لَهُمۡ شَرَابٌ |
|---|
| چه هلاك به شي په سبب د هغه عمل چه كړي ئې دي، د دوي دپاره څښكل دي |
| مِّنۡ حَمِيۡمٍ وَّعَذَابٌ اَلِيۡمٌۢ بِمَا كَانُوۡا يَكۡفُرُوۡنَ ﴿۷۰﴾ |
| د كرمونو اُوبو نه او عذاب دردناك دے په سبب د هغې چه دوي كفر كوي۔ |

**تفسیر** : دا بل ادب دے په باره د هغه خلكو كښې چه دين نه ئې لهو او لعب جوړ كړيدے۔ او هغه كسانو ته توبيخ او زورنه ده چه د الله د آيتونو پورے توقے كوي۔

د آيت مطلب دا دے : الله تعالىٰ نبي كريم ﷺ ته حكم وكړو چه كوم خلق د دينِ اسلام پورے توقے كوي، تهٔ دوي په خپل حال پريږده، دوي خو د دنيا ژوند په دهوكه كښې ارتولي دي، دوي مطمئن دي او گمان كوي چه ددے ژوند نه روستو بل كوم ژوند نشته، او هره نيكبختي د دنيا په لذتونو او مزو كښې ده۔ تهٔ د دوي د تكذيب هيڅ پرواه مهٔ كوه، او دوي په خپل حال پريږده، دا خلق لوئي عذاب طرف ته روان دي۔ او ددے قرآن په ذريعه خلق يره وه چه هسے نه دوي د خپلو بدو اعمالو په وجه د قيامت په ورځ هلاك او برباد نكړے شي، چه په هغه ورځ به د دوي دپاره د الله نه سوئ هيڅوك وَلي نهٔ وي چه د طاقت په ذريعه د دوي مدد وكړي او نهٔ به كوم سفارشي وي چه د سفارش په ذريعه د الله عذاب روستو كړي۔

او كه په هغه ورځ دوي هر قسمه فديې وركول غواړي نو نهٔ به قبليږي۔ د الله دين پورے توقے كونكي به په خپلو بدو عملونو او حرامو شهوتونو كښې د ډوبيدو په وجه هلاك كولے شي۔ په هغه ورځ به د دوي د څكلو دپاره كرمے اُوبه وركولے شي چه د دوي په خيټو كښې به آوازونه كوي او د دوي كولمے به پريكړي او بهر به ئې گوزار كړي او د دوي د كفر په وجه به دوي ته د اُور دردناك عذاب وركړے كيږي چه هغه اُور به د دوي په جسمونو كښې هميشه بليږي (الله تعالىٰ دے زمونږ په جسمونو باندے د جهنم اُور حرام كړي آمين)۔

وذر الذين : ددے پريښودو مطلب دا دے چه دوي ما ته پريږده زهٔ به ورسره كورم۔نو دا دهمكي ده۔ يا مطلب دا دے : لَاتُبَالِ بِهِمۡ ۔ يعنى په دوي باندے هيڅ پرواه مهٔ ساته۔ او دا مطلب نهٔ دے چه نصيحت ورته مهٔ كوه۔

دِيۡنَهُمۡ لَعِبًا وَّ لَهۡوًا : ۱– يعنى دين داسے سپك او ضائع شے گنړي لكه لوبي او تماشے۔ نو دين نه ئې لوبي او تماشے جوړي كړيدي۔

۲- دے کښې چا برعکس معنیٰ کړیده چه دوی لهو او لعب نه دین جوړ کړیدے یعنی لوبی او تماشے ئے داسے لازم کړیدی لکه دین. لیکن دا ظاهر القرآن نهٔ دے.

۳- ځینی وائی چه د (دِیْنَهُمْ) نه مراد (عِیْدَهُمْ) دے لکه خازن لیکلی دی. یعنی د اختر نه ئے لوبی او تماشے جوړے کړیدی. ٤- څلورم قول ډیر بعید دے چه اِتَّخَذُوْا دِیْنَهُمْ ذَرِیْعَةً لِّلَّهْوِ وَّاللَّعِبِ . یعنی دین ئے د لهو او لعب دپاره ذریعه جوړه کړیده چه هغه دنیا ده یعنی دین ئے د دنیا ذریعه جوړه کړیده. پدے کښې اول تفسیر صحیح دے.

یا دا چه دین ئے د دنیاوی مقصد د حاصلولو ذریعه جوړه کړیده.

وَذَكِّرْ بِهٖۤ اَنْ تُبْسَلَ : دلته (لِئَلَّا) کلمه پټه ده. یعنی په قرآن باندے نصیحت پدے وجه ورکړه چه چرته راګیر نشی یو نفس په سبب د خپلو عملونو.

اَنْ تُبْسَلَ : خپله معنیٰ ئے د هلاکت ده، اَیْ اَنْ تُهْلَكَ (ابن عباسؓ) او حاصل ترجمے ئے داسے شویدی اَنْ تُحْبَسَ (قتادهؒ) چه راګیر نشی. اَنْ تُفْضَحَ. (بخاریؒ) چه ونهٔ شرمولے شی.

اَنْ تُسْلَمَ لِلْهَلَاكِ. (مجاهدؒ، عکرمهؒ، سُدیؒ- بغویؒ) چه هلاکت ته ونهٔ سپارلے شی.

اَنْ تُؤْخَذَ. (ابن زیدؒ) چه راونهٔ نیولے شی.

او حاصل معنیٰ دا ده چه قرآن ددے دپاره بیان کړه چه دا خلك ایمان راوړی او د خپلو بدو عملونو په وجه هلاك نشی.

وَاِنْ تَعْدِلْ : یعنی که هره فدیه او جرمانه ورکوی نو هغه به ترے نهٔ اخستے کیږی. او مطلب دا چه نهٔ د بل زور شته او نهٔ د خپل مال زور شته.

اُولٰٓئِكَ الَّذِیْنَ اُبْسِلُوْا : اَیْ اُهْلِكُوْا. هلاك کړے شویدی په سبب د بدو عملونو.

لَهُمْ شَرَابٌ : دا د هغوی د هلاکت بیان دے.

| قُلْ اَنَدْعُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَالَا یَنْفَعُنَا وَلَا |
|---|
| تهٔ ووایه !آیا راوبلو سویٰ د الله نه هغه معبودان چه فائده نهٔ شی راکولے مونږ ته او نهٔ |
| یَضُرُّنَا وَنُرَدُّ عَلٰۤی اَعْقَابِنَا بَعْدَ اِذْ هَدٰىنَا |
| ضرر راکولے شی او واپس کړے شو په پوندو خپلو پس د هغے نه چه هدایت وکړو مونږ ته |
| اللّٰهُ كَالَّذِی اسْتَهْوَتْهُ الشَّیٰطِیْنُ فِی الْاَرْضِ |
| الله تعالیٰ په شان د هغه چا شو چه ګوزار کړے وی هغه لره شیطانانو (پیریانو) په زمکه کښې |

| حَيْرَانَ ص لَهٗ اَصْحٰبٌ يَّدْعُوْنَهٗ اِلَى الْهُدَى ائْتِنَا ط |
|---|
| چه حیران وی دهٔ لره ملګری وی، رابلی دهٔ لره نیغې لارې ته چه راشه مونږ ته (او هغه نهٔ راځي) |
| قُلْ اِنَّ هُدَى اللّٰهِ هُوَ الْهُدٰى ط وَاُمِرْنَا |
| تهٔ ووایه یقیناً هدایت د الله همدا صحیح هدایت دے، او حکم کړے شویدے مونږ ته |
| لِنُسْلِمَ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۷۱﴾ وَاَنْ اَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ |
| چه تابع شو د رب العالمین۔ او دا (حکم شویدے مونږ ته) چه پابندی کوئ د مانځه |
| وَاتَّقُوْهُ ط وَهُوَ الَّذِيْٓ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ﴿۷۲﴾ |
| او یره کوئ د هغه نه او الله تعالیٰ هغه ذات دے چه خاص هغه ته به ورجمع کړے شئ۔ |

**تفسير** : دا نتیجه ده د مخکنو دلیلونو . او پدے کښې بله طریقه د تعلیم ده، او پدے کښې جواب د هغوی د سوال دے چه هغوی وئیلی وو زمونږ معبودان شته هغوی ته به آواز کوو، هغه به زمونږ سفارشیان جوړیږی. او ایمان والو ته ئے دعوت ورکړے وو چه تاسو هم زمونږ معبودانو ته په ښه نظر وګورئ، او د دوی نه هم کله مددونه وغواړئ۔

(لکه مفسرینو د سُدیؒ نه نقل کړیدی چه د مکے مشرکانو مسلمانانو ته ووئیل چه زمونږ په لاره روان شئ او دین د محمد (ﷺ) پریدئ. نو الله تعالیٰ خپل رسول (ﷺ) ته حکم وکړو چه هغه په ډیر شدت (سختئ) سره د دوی د خبرے رد وکړی – المنار)۔

نو د جواب حاصل دا دے چه غیر الله ته آواز کول او مدد غوښتل خو ارتداد او لیونتوب دے نو آیا تاسو مونږ مرتد کولو او لیونتوب ته راغواړئ۔ د الله هدایت زمونږ دپاره شته هغه کافی دے، او هغه دا دے (وَاُمِرْنَا لِنُسْلِمَ لِرَبِّ الْعَالَمِيْنَ) (وَاَنْ اَقِيْمُوا الصَّلَاةَ وَاتَّقُوْهُ)۔

وَنُرَدُّ :اَيْ اِلَى الشِّرْكِ ۔ دا آیت دلیل دے چه بغیر د ظاهری اسبابو نه غیر الله نه دعا غوښتل (لکه بابا، قبر او ولی ته رامدد شه وئیل) ارتداد دے۔

عَلٰى اَعْقَابِنَا : جمع د عَقِب ده، پوندو ته وائی او د رَجَعَ عَلٰى عَقِبَيْهِ معنی دا ده چه د کوم ځای نه راغلے وی بیلته بیرته واپس شی . او دا کنایه ده د مرتد کیدو نه۔ (التحریر)

او عرب دا ددے دپاره استعمالوی چه کله یو شخص د قدرت نه روستو عاجز شی، یا د اُوچتوالی نه روستو ښکته شی، یا کمال ته ورمخکښې کیدو نه روستو بند شی، او ددے

اصل استعمال د شکست یا تاوان راواپس کیدل دی، یا د نیك عمل نه عاجز کیدل دی۔ او بیا په هر مذموم (بد) راګرځیدو کښې استعمالیږی۔ (المنار)

یعنی دا خو د اوچتے مرتبے نه ښکته راپریوتل دی، دا مونږ چرته کوو۔

بَعْدَ اِذْ هَدٰنَا اللّٰهُ : اَیْ اِلٰی دِیْنِ الْاِسْلَامِ وَالتَّوْحِیْدِ (الخازن ۲/ ۱٤۲)

پس د هغے نه چه مونږ ته ئے د دین اسلام او توحید لاره وخودله۔

كَالَّذِی اسْتَهْوَتْهُ : اَیْ نَصِیْرُ كَالَّذِیْ (قاسمی) یعنی زمونږ حال به ددے سړی په شان شی۔ مطلب دا چه کوم بنده چه د توحید د دعوت قبلولو نه روستو بیا په شرك کښې اخته کیږی او د بتانو او د قبرونو عبادت شروع کوی، نو الله تعالیٰ د داسے سړی دلته مثال بیان کړیدے چه لکه یو سړے د خپلو ملګرو سره په یوه صحراء ورتیریږی او د شیطانانو جناتو په ګیره کښې راشی (پیران پرے کینی) چه دا د نیغے لارے نه واړوی او بل طرفته ئے روان کړی، او هغه حیران او پریشان نۀ پوهیږی چه څه وکړی، او د هغه ملګری دۀ ته آواز کوی چه مونږ طرف ته راشه، سیده لاره دلته ده، لیکن هغه د شیطانانو په چکر کښې داسے ننوتے وی چه نۀ هغه د خپلو ملګرو د آواز جواب ورکوی او نۀ هغه طرف ته ځی۔

نو مشرك هم دغه شان پیرانے، بی عقله، بی وقاره وی لکه پیران چه پرے ناست وی او پریشانه وی چه کوم طرفته لاړ شی، کوم بابا نه ئے وغواړی، تول ژوند ئے پریشانه وی۔

اِسْتَهْوَتْهُ : اَیْ سَیَّرَتْهُ فِیْ هُوِیٍّ مِنَ الْاَرْضِ۔ یعنی هغه ئے یوے شاړے او خکته زمکے ته بوتلے دے۔ (التسهیل واللباب)

قتادة وائی : [اَضَلَّتْهُ فِی الْاَرْضِ] په زمکه کښې ئے بی لارے کړے وی۔ (ابن کثیر)

قاسمیؒ وائی : [اِسْتَمَالَتْهُ عَنِ الطَّرِیْقِ الْوَاضِحِ] د ښکاره لارے نه ئے کوږ کړے وی۔

جَعَلَتْهُ الشَّیَاطِیْنُ مُتَّبِعًا لِهَوَاهُمْ۔ شیطانانو د خپل خواهش تابع ګرځولے وی۔ (اللباب)

ذَهَبَتْ بِهَوَاهُ وَعَقْلِهٖ۔ شیطانانو ددۀ خواهش او عقل ختم کړے وی۔ (المنار)

ابن ابی حاتمؒ د ابن عباس ﷺ نه روایت کړیدے چه دا یو مثال دے چه الله تعالیٰ د باطلو معبودانو د حالت دپاره بیان کړیدے۔ او دارنګه دا مثال دے د هغه خلکو هم چه باطل معبودانو طرفته دعوت ورکوی او د هغه کسانو چه الله طرف ته دعوت ورکوی، د هغوی د حالت بیانولو دپاره الله تعالیٰ ذکر کړیدے۔ لکه یو سړے دے چه لاره ئے ورکه کړی وی او حیران ګډوډ روان وی نو پدے کښې ورته یو تن آواز وکړی چه اے فلان بن فلان! زمونږ لارے ته راشه، او ددۀ نور ملګری وی هغه ورته آواز کوی چه زمونږ لارے ته راشه، نو که د

اول آواز کوونکي خبره ومني نو هغه به ئې بوځي تردې چه هلاکت ته به ئې گوزار کړي، حال دا چه دې گمان کوي چه ددې خلکو دا آواز صحیح دې، او دوي په صحیح لاره روان دي، او د دوي په خبره منلو کښې زه په یو صحیح لاره روان شوم، او مینځ کښې هلاکت ته غورزیدلې وي، او که د هدایت والا آواز قبول کړي نو نیغې لارې ته به ورسیږي.

او بیا ډیر کرته دغه پیران او شیطانان دهٔ لره وخوري، یا ئې په یوه شاړه زمکه کښې پریدي چه د تندې او د لوږې نه مړ شي، نو دغه شان به دا د گمراهئ داعیان دهٔ لره پریدي چه هیڅ مدد به ورسره نشي کولې، نو بیا به پښیمانه وي او ارمانونه به کوي لیکن وخت به تیر وي. (ابن جریر وابن کثیر ۳/ ۲۸۰)

نو کله چه سړې مشرك شي نو دغه شان حیران وي چه د نیکانو ملگرو خبره نهٔ مني او هغه ورته شیطان بد ښکاره کړي چه دوي خو د پلار نیکه لاره او طریقه پریښې ده، او حال دا چه خپله په هلاکت روان وي، د گمراهانو خبره مني. او دا حال د عامو انسانانو دې چه د دوه متعارضو دعوتونو ترمینځ حیران وي اِلَّا مَنْ عَصَمَهُ اللّٰهُ (تفسیر السعدی)

ابن عاشورؒ وائي: دلته د بیل بیل اجزاؤ تشبیه هم صحیح ده چه ارتداد بعد الایمان مشابه دې د لیونئ د عقل ختمیدو سره، او کفر مشابه دې په زمکه کښې د حیران گرځیدو سره، او مشرکان چه مسلمانانو ته دعوت ورکوي هغه د شیطانانو سره مشابه دي، او د الله دعوت چه انسانان ایمان ته رابلي او ملائك د هغه وحي راوړي دا د هغه ملگرو مشابه دي چه دې هدایت ته رابلي نو بناء پدې (كَالَّذِیْ) نه مراد به غیر معین شخص وي. (التحریر ۶/۱۶۳)

هُدَى اللّٰهِ هُوَ الْهُدٰى : یعني هدایت د الله چه الله پرې رسولان رالیږلي دي همغه اصل هدایت دې او ماسوئ د هغې نه گمراهي ده. (قاسمیؒ)

لِنُسْلِمَ : یعني د الله تعالیٰ په یواځې بندگیانې کوو. وَنَنْقَادَ. یعني مونږ تابع او منقاد شو.

وَاَنْ اَقِيْمُوا : دا په (لِنُسْلِمَ) باندې عطف دې اَیْ وَاُمِرْنَا اَنْ اَقِيْمُوا. یعني مونږ ته دا حکم هم شویدې چه مونځ قائم کړئ.

وَهُوَ الَّذِیْٓ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ : او مونږ ته دا حکم شویدې چه ددې یقین سره ژوند تیر کړئ چه د قیامت په ورځ ستاسو د ټولو د هغه مخې ته جمع کیدل دي. یا (وَهُوَ الَّذِیْٓ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ) علتِ غائیه دې د (اُمِرْنَا) دپاره. ځکه منقاد شئ چه ستاسو حشر کیدو والا دې.

| |
|---|
| وَهُوَ الَّذِیْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ ؕ وَیَوْمَ |
| او الله هغه ذات دے چه پیدا کړی ئے دی آسمانونه او زمکه په حق سره او په هغه ورځ |
| یَقُوْلُ كُنْ فَیَكُوْنُ ؕ۬ قَوْلُهُ الْحَقُّ ؕ وَلَهُ الْمُلْكُ |
| چه وبه وائی شه نو شی به، وینا د هغه حقه (رشتینې) ده، او خاص هغه لره بادشاهی ده |
| یَوْمَ یُنْفَخُ فِی الصُّوْرِ ؕ عٰلِمُ الْغَیْبِ |
| په هغه ورځ چه پوکے به وکړے شی په شپیلۍ کښې هغه عالم دے په هر پټ |
| وَالشَّهَادَةِ ؕ وَهُوَ الْحَكِیْمُ الْخَبِیْرُ ﴿۷۳﴾ |
| او ښکاره باندے او هغه حکمتونو والا خبر دار دے۔ |

**تفسیر** : (تُحْشَرُوْنَ) کښې د قیامت تذکره وشوه نو اُوس عقلی دلیل راوړی د هغے د اثبات دپاره، او رد کوی په منکرینو د قیامت۔ او دا د الله تعالیٰ تعارف هم دے او د توحید دپاره عقلی دلیل هم دے۔ چه پیدا کول او ورانول د دنیا دواړه د الله په اختیار کښې دی، بل څوك كار ساز او واكدار نشته۔

بِالْحَقِّ : یعنی د حق دپاره چه هغه د الله بندګی ده۔ یا لِاِظْهَارِ الْحَقِّ : د حق د راښکاره کولو دپاره چه هغه توحید دے۔ یا بِالْعَدْلِ وَالْحِكْمَةِ۔ (ابن کثیرؒ) په عدل او حکمة سره۔

مطلب د آیت دا دے : کوم الله چه مونږ ته حکم کړیدے چه هغه ته تسلیم شو، هغه آسمانونه او زمکے په عدل او حکمت سره پیدا کړیدی، هغه ددے دواړو او پدے کښې د تمام موجود مخلوقاتو مالك او مدبر دے، او د قیامت په ورځ دوی لره د حشر میدان ته د (كُنْ) په کلمے سره په جمع کولو قادر دے۔ د هغه مراد او خواهش، د هغه د امر او د حکم نه نشی روستو کیدے۔ د هغه حکم او وینا بهر حال نافذ او واقع ده۔

وَیَوْمَ یَقُوْلُ كُنْ فَیَكُوْنُ : یعنی الله به دا آسمانونه او زمکه د كُنْ په کلمه سره وران کړی او قیامت به راولی۔

یَوْمَ یُنْفَخُ فِی الصُّوْرِ : یعنی په کومه ورځ د قیامت کښې چه شپیلۍ اُوپوکلے شی نو په هغه ورځ به د هغه بادشاهی وی، او د خپلو مطیع (فرمانبردارو) او عاصی (ګناهګارو) بندګانو سره به د هغوی د عملونو مطابق سلوك كوی۔

د نفخ فی الصور پوره بیان به په سورة الکهف یا سورة یس کښې راشي ان شاء الله که عمر وفاداري وکړله.

د (صُوْر) نه مراد هغه شے دے چه په هغے کښې به اسرافیل ﷺ پوکے کوي۔ اول پوکے د فناء کیدو او دویم د راپورته کولو دپاره، لکه چه په مسند احمدؒ کښې د ابو سعید خدري ؓ نه روایت شویدے چه نبي کریم ﷺ به فرمایل: ((زهٔ به څنګه آرام محسوس کړم حال دا چه شپیلئ وهونکی (ملائك) شپیلئ په خوله کښې نیولے ده، او تندے ئے راکوږ کړیدے او په انتظار کښې دے چه کله به دهٔ ته حکم کیږي چه پدے کښې پوکے وکړي)). (الترمذی: ۳۲٤۳ ومسند احمد: ۳۰۱۰ بسند صحیح- البانی)

په مسند احمد کښې د عبد الله بن عمرو ؓ نه روایت دے چه یو بانډچي د رسول الله ﷺ نه د شپیلئ په باره کښې تپوس وکړو نو هغه وفرمایل: ((هغه یو ښکر دے چه په هغے کښې به پوکے وهلے شي)). دا حدیث ابوداود، ترمذی (۳۲٤٤) او حاکمؒ هم روایت کړیدے. (مسند احمد: ٦٥٠٧) حدیث صحیح)

او د هغه چا قول خطاء دے (لکه ابو عبیدؒ) چه وائي صُوَر جمع د صُوْرَةٌ ده یعنی د مړو او ارواحو په صورتونو کښې به پوکے ووهلے شي. یو خو دا د حدیث خلاف ده، او بل د لغت هم خلاف ده ځکه چه هغه د صُوَرٌ لفظ دے چه مفرد ئے صُوْرَةٌ راځي، او دا لفظ صُوْرٌ خپله مفرد دے.

امام قرطبیؒ د ابو الهیثمؒ نه نقل کړیدي چه څوك ددے نه انکار وکړي چه صور ښکر دے نو دا داسے دے لکه چه د عرش، میزان او صراط نه انکار وکړي او د هغے دپاره تاویلونه ولټوي. څوك چه احادیث د رسول الله ﷺ ته رجوع نکوي هغوي به دغه رنګه ګډے وډے خبرے کوي والعیاذ بالله.

| وَاِذْ قَالَ اِبْرٰهِيْمُ لِاَبِيْهِ اٰزَرَ اَتَتَّخِذُ اَصْنَامًا اٰلِهَةً ۚ |
|---|
| او کله چه ووئیل ابراهیم (؈) خپل پلار ته چه آزر وو آیا نیسے ته بتان لائق د بندګئ؛ |
| اِنِّيْٓ اَرٰىكَ وَقَوْمَكَ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿٧٤﴾ وَكَذٰلِكَ نُرِيْٓ اِبْرٰهِيْمَ |
| یقیناً زهٔ وینم تا لره او قوم ستا په ګمراهئ ښکاره کښې. او دغسے خودلی وو مونږ ابراهیم ته |
| مَلَكُوْتَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَلِيَكُوْنَ مِنَ الْمُوْقِنِيْنَ ﴿٧٥﴾ |
| بادشاهي د آسمانونو او د زمکے (چه دلیل تري ونیسی) او دے دپاره چه شي د یقین کونکو نه. |

**تفسیر:** پدے کښې دلیل نقلي ذکر کوی د ابراهیم ﷺ نه په رد د شرك د مشرکانو چه اے مشرکانو! تاسو چه د ابراهیم ﷺ د محبت دعوے کوئ او د هغه د دین تابعدار ځان ګڼړئ او هغه خپل مشر ګڼړئ، او هغه طرفته په خپل نسبت باندے فخر کوئ، نو راشئ وګورئ هغه خو د الله د خاطره د خپل مشرك پلار هم پرواه نهٔ ده کړے، او د هغه د مشرکانه کردار او اعمالو نه ئے ښکاره انکار کړے وو. او تاسو د الله سره برخه داران جوړوئ او د خپل پلار نیکه خلاف کوئ.

آزَرَ : دا آیت پدے باندے قطعي دلیل دے چه آزر د ابراهیم ﷺ د پلار نوم وو، او ددے تائید د بخاری د هغه حدیث نه هم کیږی چه ابو هریره ﷺ د رسول الله ﷺ نه روایت کړیدے چه د قیامت په ورځ به ابراهیم ﷺ خپل پلار آزر سره ملاویږی، نو د آزر په مخ به خړوالے او غبار الوزی او پریشانی به پرے راغلے وی. ابراهیم ﷺ به هغه ته وائی : آیا ما تا ته نهٔ وو وئیلی چه زما نافرمانی مهٔ کوه، نو پلار به ئے ووائی : نن ورځ به زهٔ ستا نافرمانی نهٔ کوم، نو ابراهیم ﷺ به خپل رب ته ووائی : اے ربه ! تا ما سره وعده کړے وه چه د قیامت په ورځ به ما نهٔ رسوا کوے، او ددے نه لویه رسوائی څه کیدے شی چه زما پلار ستا د رحمت نه لرے کړے شی؟ نو الله تعالیٰ به وائی چه ما جنت په کافرانو حرام کړیدے. بیا به ووئیلے شی، اے ابراهیم! د خپلو خپو لاندے وګوره، هغه به وګوری [فَإِذَا هُوَ بِذِيخٍ مُلْتَطِخٍ فَيُؤْخَذُ بِقَوَائِمِهِ فَيُلْقَى فِي النَّارِ]. نو هغه سره به په وینه کښې لت پت د کورکتې په شکل یو جسم ملاؤ شی چه د هغه خپے به ونیولے شی او جهنم ته به ګوزار کړے شی). (صحیح بخاری: ۳۳۵۰)

او تاریخ والو چه لیکلی دی چه نوم ئے (تارخ) وو، یا ئے آزر د تره نوم وو او تره ته هم پلار وئیلے شی، نو دے اقوالو ته د قرآن په خلاف هیڅ اعتبار نشته. او دا کیدے شی چه آزر ئے خپل نوم وی او تارخ ئے لقب وی.

أَصْنَامًا : جمع د صَنَم ده، دا لفظ په قرآن کښې پنځه کرته ذکر دے، بتانو ته وائی بیا په هر معبود من دون الله باندے ئے اطلاق کیږی. ابن جریرؒ وئیلی دی چه هر هغه شکل چه د لرګی یا د کټے وغیره نه جوړ کړے شی چه په شکل د انسان یا د بل شی سره وی، او هغه شکل ته هم وئیلے شی چه په دیوال وغیره باندے په شکل د انسان وغیره سره جوړ شی.

او د ابراهیم ﷺ قوم دا بتان د ملائکو په شکل جوړ کړی وو، دے دپاره چه د هغے په عبادت سره ملائکو ته ځان نزدے کړی، او بیا ملائك د الله په دربار کښې وسیله جوړه کړی

دے دپاره چه د الله په دربار کښې د دوی دپاره په رزق او مدد وغیره کارونو کښې سفارش وکړې کوم ته چه دوی محتاج وی۔ (ابن کثیر)

فِیْ ضَلٰلٍ مُّبِیْنٍ: سوال: په دعوت کښې خو نرم الفاظ استعمالول پکار وی او دا خو سخت الفاظ دی؟ جواب دا دے چه ابراهیم علیه السلام نرمه لهجه استعمال کړه لکه په سورة مریم (۴۲/۴۳) آیت کښې هغه ذکر دی، خو کله چه هغه په هغې سره هدایت ته رانغے نو روستو ئے ورته دا الفاظ ووئیل چه کیدے شی متوجه شی، او پلار ئے په دعوت کښې مخکښې کړیدے ځکه چه د پلار حق مخکښې دے، یا پدے وجه چه آزر د هغه مشرکانو مشر وو او هغهٔ به خلك شرك ته رابلل، ځکه ئے ورته (وَقَوْمَكَ) لفظ استعمال کړو۔ نو پدے وجه هغه ته دعوت مخکښې وکړے شو۔

وَكَذٰلِكَ: أَیْ كَمَا أَرَیْنَاهُ قُبْحَ الشِّرْكِ كَذٰلِكَ أُرِیْنَاهُ مَلَكُوْتَ الخ۔ یعنی لکه څنګه چه ما هغه ته د شرك بدی خودلے وه نو دغه شان مے ورته ملکوت السموات خودلی وو۔

مَلَكُوْتَ: په وزن د رَهَبُوْت او جَبَرُوْت، د مبالغے په وزن مصدر دے۔ ددے معنیٰ لوئی مُلك (بادشاهی) ده،

پدے کښې بیا دوه تفسیره دی (۱) یو دا چه فُتِحَ لَهُ الْكَائِنَاتُ ۔ چه الله تعالیٰ د آسمانونو او زمکے هر شے د هغه مخے ته ښکاره راوستو او هغه د عرش پورے او د زمکے آخری تل پورے هرڅه اُولیدل۔ (مجاهد وعطاء – ابن کثیر)

بعضو وئیلی دی چه ددے نه مراد په آسمانونو او زمکو کښې موجود عجائب او غرائب دی۔ مګر ظاهر او راجح دا ده چه ددے نه دا ظاهری آسمانونه او زمکه مراد دی لیکن ابراهیم علیه السلام ترے ډیر عبرت اخستے وو، لکه کافران هم آسمان او زمکه وینی او مونږه ئے هم وینو، هغوی ترے الله نهٔ معلوموی او مونږه ئے ترے معلوموو، نو ابراهیم علیه السلام خپل توحید او په الله باندے یقین ډیر ددے نه معلوم کړے وو۔ هغه به همیشه په خپلو دلائلو کښې آسمانونه او زمکه ذکر کول ځکه چه څوك د کوم شی نه ډیر متأثر وی هغه ډیر ذکر کوی۔ او آسمان او زمکه د الله ډیر عجیب مفتوح (کولاؤ) کتاب دے چه ډیر عبرتونه پکښې پراتهٔ دی۔

د وَلِیَكُوْنَ نه مخکښې (لِیَسْتَدِلَّ) لفظ پټ دے، یعنی دے دپاره چه پدے سره دلیل ونیسی۔ او یقین ئے پرے زیات شی۔

یعنی هغه به د آسمانونو او د زمکے په خِلقت (پیدائش) او پدے کښې موجود عجائبو او

غرائبو کښې سوچ کولو سره د الله په وحدانیت باندې دلیل نیولو دعوت ورکړې وو، دې دپاره چه د الله په توحید باندې د هغه یقین زیات مضبوط شي.

| فَلَمَّا جَنَّ عَلَيۡهِ الَّيۡلُ رَاٰ كَوۡكَبًاۚ قَالَ هٰذَا |
|---|
| نو هرکله چه تیارهٔ راوسته په دهٔ باندې شپې، ولیدو دهٔ ستورې وې وئیل: (آیا) دا |
| رَبِّيۡۚ فَلَمَّآ اَفَلَ قَالَ لَآ اُحِبُّ الۡاٰفِلِيۡنَ ﴿۷۶﴾ فَلَمَّا |
| زما رب دې، نو هرکله چه پریوتو وې وئیل زهٔ مینه نکوم د پریوتونکو سره. پس هرکله |
| رَاَ الۡقَمَرَ بَازِغًا قَالَ هٰذَا رَبِّيۡۚ فَلَمَّآ اَفَلَ |
| چه ولیدله دهٔ سپوږمۍ ښکاره وې وئیل: آیا دا زما رب دې نو هرکله چه پریوتهٔ |
| قَالَ لَئِنۡ لَّمۡ يَهۡدِنِيۡ رَبِّيۡ لَاَكُوۡنَنَّ مِنَ الۡقَوۡمِ الضَّآلِّيۡنَ ﴿۷۷﴾ |
| وې وئیل که هدایت ونکړی ما ته رب زما خامخا زهٔ به شم د قوم ګمراهانو نه. |

**تفسیر**: دا د مخکښې ذکر شوی اجمال تفصیل دې، او ددې خبرې بیان دې چه څنګه ابراهیم ﷺ د آیاتو او براهینو نه دلیل نیولو سره د یقین مرتبه حاصل کړه. مفسرینو لیکلی دی چه د ابراهیم ﷺ پلار او د هغه قوم به د بتانو، نمر او سپوږمۍ او ستورو عبادت کولو. ابراهیم ﷺ غوختل چه د هغوی دیني غلطي ښکاره کړي چه د کومو باطلو معبودانو عبادت دوی کوی د هغوی نه هیڅوك هم د معبود جوړیدو مستحق نهٔ دې. پدې وجه ابراهیم ﷺ ووئیل چه زهٔ پریوتونکی او غائبیدونکی نهٔ خوښوم څکه چه داسې سپك صفت د الله نشي کیدې.

څینې مفسرین وائي چه دا د ابراهیم ﷺ د بلوغ نه مخکښې واقعه ده چه مور په یو سورنګ کښې لوی کړې وو چه کله راووتو، نو ستوری بیا سپوږمۍ بیا نمرئې ولیدو، او هر یو ته ئې رب وئیلو څکه چه په دغه وخت کښې ئې الله نهٔ پیژندلو، او آخر کښې ئې رب معلوم کړو. دا غلطه خبره ده او د ابراهیم ﷺ په شان کښې بې ادبي ده، دا نشي کیدې چه په نبي باندې داسې وخت راشي چه هغه ته توحید معلوم نهٔ وي.

اګرکه ډیرو مفسرینو او اهل سیرت لکه محمد بن اسحاقؒ او قرطبیؒ او ابن کثیرؒ وغیره دا واقعه تفصیل سره ذکر کړیده، او بیا پرې څینو رد هم کړیدې، صاحب المنار وائي دا ابن

اسحاقؑ د یهودو نه اخستے ده۔

صحیح خبره هغه ده چه مونږ ذکر کړه چه دا مخاصمة الکفار ده، یعنی د کافرو سره ئے بحث او مناظره کړیده لکه د روستو (یَا قَوْمِ إِنِّي بَرِيءٌ مِّمَّا تُشْرِكُونَ) نه معلومیږی۔ دارنګه روستو (وَحَاجَّهُ قَوْمُهُ) او (وَتِلْكَ حُجَّتُنَا آتَيْنَاهَا إِبْرَاهِيمَ عَلَىٰ قَوْمِهِ) پریے دلیل دے۔

نو په مخکښې آیت کښې د ابراهیم علیه السلام یقین بیان شو، نو اوس ئے د مشرکانو سره مناظره بیانوی۔ او مخکښې رد وشو په زمکے والا بتانو باندے، نو اوس په هغه باطلو معبودانو رد کوی چه په آسمان کښې دی، دے دپاره چه د دوی په ټولو باطلو معبودانو رد وشی۔

**فائده** : اشاره ده چه داعی لـه اولاً خپل یقین مضبو طول پکار دی، بیا دعوت کښې اثر ډیر وی۔

فَلَمَّا جَنَّ : جنّ د جُنُون نه دے په معنیٰ د تیاره کیدو سره۔

هٰذَا رَبِّي : یعنی ستاسو په ګمان آیا دا زما رب دے۔ (قرطبیؒ) نو دلته استفهام انکاری همزه پټه ده۔ (قاله قطربؒ) أَهٰذَا رَبِّي۔ آیا دا زما رب کیدے شی؟۔ او دا ئے په طریقه د قیام حجت په هغوی باندے یا په طریقه د استهزاء سره وئیلی دی۔ (المنار)

فَلَمَّآ أَفَلَ: د أُفُول نه دے په معنیٰ د پریوتو او زائله کیدو سره۔

لَآ أُحِبُّ الْآفِلِينَ : یعنی کوم څیزونه چه فانی کیږی او پریوزی نو د هغوی سره زهٔ د عبودیت مینه نهٔ کوم چه عبادت ورلـه شروع کړم، ددے نه معلومه شوه چه ټول انبیاء علیهم السلام، اولیاء او بزرګان آفلین دی، هغوی قبرونو ته تلی او تلونکی دی نو د عبادت مستحق بیخی نهٔ دی۔

رومی چه د وحدة الوجود والا دے مثنوی کښې ئے لیکلی دی :

آندرین وادی مـرو بی این دلیل لا احب الآفلین گو چون خلیل۔

بَازِغًا : یعنی ښکاره، او بزغ په اصل کښې خیرولو ته وائی او سپوږمئ او نمر چه کله راښکاره شی نو تیاره پـه خپلے رڼـا سره وچوی۔ او بزوغ عرب د اول راښکاره کیدو د ستوری او غابښ وغیره دپاره استعمالوی۔ (المنار)

هٰذَا رَبِّي : ربی لفظ کښې اشاره ده چه ابراهیم علیه السلام د مخکښې نه رب پیژندلو۔

لَئِن لَّمْ يَهْدِنِي رَبِّي لَأَكُونَنَّ مِنَ الْقَوْمِ الضَّالِّينَ : پدے کښې د ابراهیم علیه السلام قوم ته تنبیه کړے شویده چه څوك سپوږمئ خپل معبود جوړوی هغه یقیناً ګمراه دے، او دا چه

حقے لارے طرف تہ هدایت د الله په توفیق او د هغه په لطف او کرم سره ملاویږی.
او په الضالین کښې ئے اشاره وکړه چه تاسو خو ګمراهان یئ چه د پریوتونکو او زائله کیدونکو څیزونو عبادت کوئ.

| فَلَمَّا رَأَى الشَّمْسَ بَازِغَةً قَالَ هٰذَا رَبِّي هٰذَآ أَكْبَرُ ج |
|---|
| پس هرکله چه ولیدو دهٔ نمر ښکاره وے ویل آیا دا زما رب دے دا لوئی دے (ستاسو په خیال) |
| فَلَمَّآ أَفَلَتْ قَالَ يٰقَوْمِ إِنِّي بَرِيٓءٌ مِّمَّا |
| نو هرکله چه پریوتو هغهٔ دهٔ وونیل: اے قومه زما! یقیناً زهٔ جدا یم د هغے نه چه |
| تُشْرِكُونَ ﴿۷۸﴾ إِنِّي وَجَّهْتُ وَجْهِيَ لِلَّذِي |
| تاسو ئے شریکوئ د الله سره. یقیناً ما متوجه کړیدے مخ خپل هغه ذات ته چه |
| فَطَرَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ حَنِيفًا وَّمَآ أَنَا مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴿۷۹﴾ |
| پیدا کړی ئے دی آسمانونه او زمکه، مضبوط یم په توحید او نهٔ یم زهٔ د مشرکانو د ډلے نه. |

**تفسیر**: لاتر اُوسه د نمر د معبود کیدو رد کول باقی وو. پدے وجه د نمر د ښه راختلو انتظار ئے وکړو او کله چه هغه راوختلو نو خپل مشرك قوم ته مخاطب شو وے وئیل چه کیدے شی دا به زما رب وی څکه دا د ټولو نه لوئی دے، او مقصد په مناظرانه انداز کښې د هغوی رد کول وو. نو کله چه یو څو ګینټے روستو هغه هم پریوتو او قوم د هغه سره د هغے د پریوتو نظاره وکړه، او د هغه د ضعیف او ناقص کیدو یقین ئے وکړو، نو هغوی ته دوباره مخاطب شو وے وئیل چه اے زما قومه! لږ خو راته ووایئ چه داسے بی ثباته او سپك شے معبود څنګه کیدے شی؟ زهٔ ستاسو د شرکی اعمالو او دروغژنو معبودانو نه د براءت اعلان کوم.

هٰذَآ أَكْبَرُ: أَيْ جِرْمًا وَّنُوْرًا. یعنی د جُثے او رڼړا په اعتبار سره لوی دے.

إِنِّي وَجَّهْتُ: مخکښې د مشرکانو نه براءت وو اُوس ذکر د توحید دے، او پدے کښې اظهار د خپلے عقیدے دے.

ابراهیم علیه السلام ووئیل چه ما خو خپل نیت او خپل هر عبادت او عمل صالح د الله دپاره خالص کړیدے، او د زړهٔ او د روح په کومی کښې مے دا محبت کینولے دے، د هغه پاك ذات

محبت چه هغه آسمانونه او زمکه پيدا کړيدي او تمامو باطلو دينونو او فاسدو عقيدونه دلرې والي اختيارولو سره اعلان کوم چه زهٔ مشرك نهٔ يم او نهٔ د مشرکانو د ډلې نه يم۔
وَجَّهْتُ وَجْهِيَ : يعنې توله توجه مې الله ته ده، او حاصل معنیٰ ئې ده : قَصَرْتُ تَوْحِيْدِىْ بِاللّٰهِ۔ ما خپل توحيد بند کړيدې په الله باندې۔

| وَحَآجَّهٗ قَوْمُهٗ ؕ قَالَ اَتُحَآجُّوْٓنِّىْ فِى اللّٰهِ |
|---|
| او جګړه وکړه ده‌ٔ سره قوم ده‌ٔ، ده‌ٔ ووئيل آيا تاسو جګړې کوئ ما سره په باره د الله کښې |
| وَقَدْ هَدٰىنِ ؕ وَلَآ اَخَافُ مَا تُشْرِكُوْنَ |
| او يقيناً هدايت کړې هغه ما ته، او نهٔ يريږم زهٔ د هغې نه چه شريکان جوړوئ تاسو |
| بِهٖٓ اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ رَبِّىْ شَيْئًا ؕ وَسِعَ رَبِّىْ كُلَّ شَىْءٍ |
| د هغه سره، مګر که وغواړي رب زما څه شے (ځکه) فراخه دې رب زما هر شي ته |
| عِلْمًا ؕ اَفَلَا تَتَذَكَّرُوْنَ ﴿۸۰﴾ |
| په علم کښې، آيا نو تاسو نصيحت نهٔ اخلئ۔ |

**تفسير** : وَقَدْ هَدٰىنِ : يعنې په وحې او فطرت سره ئې ما ته هدايت کړيدې چه شرك مهٔ کوه۔
مطلب د آيت دا دې : د ابراهيم عليه السلام قوم د خپلو شرکي عقائدو په تائيد کښې او د هغه د دعوت د توحيد په رد کښې ئې کله هغه ته دهمکۍ ورکړه او کله په ګنده دليلونو سره ئې خپله خبره مناوول غوختل۔ نو ابراهيم عليه السلام هغوی ته جواب ورکړو وې فرمايل چه آيا تاسو ما سره ددې په باره کښې مناظرې کول غواړئ چه د الله هيڅ شريك او مثيل نشته؟ د الله تعالیٰ په توحيد باندې خو ما حجت قائم کړو او ددې خبرې قطعي نفي وشوه چه د الله نه سوئ څوك د عبادت لائق شته، ځکه چه کامل صرف د الله ذات دې، او د هغه نه سوئ ټول څيزونه ناقص دي، او ناقص معبود نشي کيدې۔
وَلَآ اَخَافُ : هغوی ورته ووئيل چه زمونږ باباګان او معبودان به درې ووهي، د هغوی غضب به درباندې نازل شي، نو ده‌ٔ ورته ووئيل چه زهٔ ستاسو د معبودانو نه نهٔ يريږم ځکه هغه خو بې ساه جمادات دي، هغوی نفع يا نقصان نشي رسولې۔

حافظ ابن کثیر رحمه الله لیکلی دی: ابراهیم علیه السلام هغوی ته ووئیل چه ستاسو د وینا د باطل کیدو دلیل دا دے چه دا بالکل بی اثره دی، پدے وجه زهٔ نهٔ یریږم او نهٔ د هغوی پرواه ساتم. که د هغوی په وَس کښې څه وی نو وُدے کړی او ما ته دِے مهلت نهٔ راکوی.

اَنۡ یَّشَآءَ رَبِّیۡ: دا استثناء منقطعه ده لیکن که زما رب یو کار وغواړی هغه کوی. داسے نهٔ چه الله په ما باندے یو مصیبت راولی نو تاسو به وایئ: چه باباګانو ووهلو، هغے کښې به د باباګانو هیڅ دخل نهٔ وی، ځکه ډیر کرت داسے کیږی چه په یو موحد باندے یو تکلیف راشی نو مشرکان وائی چه اولیاؤ پسے به ئے خبرے کولے هغوی ځنګه ووهلو. او مینځ کښې هغه د الله امتحان وی.

وَسِعَ رَبِّیۡ کُلَّ شَیۡءٍ: أیْ أحَاطَ رَبِّیۡ کُلَّ شَیۡءٍ فِیۡ عِلۡمِهٖ.

الله هر شے په خپل علم کښې راګیر کړیدے، نو الله تعالیٰ پوهیږی چه دے مؤمن ته تکلیف رسولو کښې څو مره فائده ده؟!.

| |
|---|
| وَ کَیۡفَ اَخَافُ مَاۤ اَشۡرَکۡتُمۡ وَلَا تَخَافُوۡنَ |
| او څنګه به یره وکړم زهٔ د هغے نه چه شریکوئ تاسو د الله سره او نهٔ یریږئ تاسو |
| اَنَّکُمۡ اَشۡرَکۡتُمۡ بِاللّٰهِ مَا لَمۡ یُنَزِّلۡ |
| چه بیشکه تاسو شریکان جوړ کړیدی د الله سره هغه څوک چه نهٔ دے نازل کړے الله |
| بِهٖ عَلَیۡکُمۡ سُلۡطٰنًا ؕ فَاَیُّ الۡفَرِیۡقَیۡنِ اَحَقُّ بِالۡاَمۡنِ ۚ |
| په هغے سره په تاسو هیڅ دلیل، پس کوم یو د دواړو ډلو نه ډیر لائق دے په امن (د عذاب نه) |
| اِنۡ کُنۡتُمۡ تَعۡلَمُوۡنَ ﴿۸۱﴾ اَلَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا وَلَمۡ یَلۡبِسُوۡۤا اِیۡمَانَهُمۡ |
| که تاسو پوهیږئ. هغه کسان چه ایمان ئے راوړیدے او نهٔ ئے دے ګډ کړے ایمان خپل |
| بِظُلۡمٍ اُولٰٓئِکَ لَهُمُ الۡاَمۡنُ وَهُمۡ مُّهۡتَدُوۡنَ ﴿۸۲﴾ |
| د شرک سره، دا کسان دوی له امن دے (بچ کیدل دی د عذاب نه) او دوی هدایت والا دی. |

**تفسیر**: ابراهیم علیه السلام ووئیل: دا څنګه کیدے شی چه زهٔ د هغه بتانو نه ویریږم چه نهٔ نفع رسولے شی او نهٔ نقصان، او نهٔ خالق دی او نهٔ رازق. او تاسو د هغه الله نه نهٔ یریږئ چه د هغه سره تاسو ډیر باطل معبودان بغیر د دلیل او برهان نه شریکان جوړ کړیدی، حال دا چه

هغه یواځې خالق او رازق دے، او د هر نفع او نقصان صرف هغه مالك دے، نو تاسو له یره پکار ده. دے نه روستو ابراهیم ﷺ ووئیل چه زما معبود الله دے، چه په هر شی قادر دے او ستاسو معبودان د خاورو ډهیری دی. نو لږ سوچ خو وکړئ چه د امن او سکون حقدار تاسو مشرکان یئ او که مونږ ایمان والا؟. که تاسو کښې د علم څه اثر هم وے، نو یقیناً ستاسو به جواب همدا وے چه بیشکه ایمان والا د امن او سلامتیا مستحق دی.

فَأَيُّ الْفَرِيقَيْنِ : ځان ته ئے هم فریق وو. او د امن نه مراد امن د الله د عذابونو نه دے.

الَّذِينَ : دلته وقف دے هغوی غلی شو نو دهٔ ووېل : چه هغه خلك چه ایمان ئے راوړیدے او د ایمان سره ئے شرك نهٔ دے یو ځای کړے، هم دوی د امن مستحق دی.

د ظلم نه مراد دلته شرك دے. امام احمدؒ د عبد الله بن مسعود ؓ نه روایت کړیدے چه کله دا آیت نازل شو نو په خلقو باندے ډیر گران پریوتو نو دوی رسول الله ﷺ ته ووئیل چه اے د الله رسوله ! مونږ نه څوك دے چه په خپل ځان ئے ظلم نهٔ وی کړے. یعنی څوك گناه نهٔ کوی. نو نبی ﷺ وفرمایل چه د آیت دا مطلب نهٔ دے کوم چه تاسو فهم کړیدے، آیا تاسو د الله د نیك بنده (لقمان) وینا نهٔ ده آوریدلے :

﴿يَا بُنَيَّ لَا تُشْرِكْ بِاللهِ إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ﴾

چه ((اے ځویه ! د الله سره هیڅوك شریكان مهٔ جوړوه یقیناً شرك ډیر لوئی ظلم دے)). نبی ﷺ وفرمایل دلته د ظلم نه مراد شرك دے. نو دلته په (بِظُلْمٍ) کښې تنوین د تعظیم دپاره دے. رواه البخاری فی کتاب الایمان رقم (٣٢) ورقم : (٣٣٦٠) ومسلم (٣٤٢).

ابن ابی حاتمؒ لیکلی دی چه تمامو صحابه کرامو او تابعین عظامو د ظلم معنیٰ شرك بیان کړیده.

او ایمان سره د شرك یوځای کول اکثر خلك کوی، الله هم منی لیکن بیا ورسره شرك هم کوی. ﴿وَمَا يُؤْمِنُ أَكْثَرُهُمْ بِاللهِ إِلَّا وَهُمْ مُشْرِكُونَ﴾ (یوسف :١٠٥).

لَهُمُ الْأَمْنُ وَهُمْ مُهْتَدُونَ : دا د خالص ایمان دوه فائدے دی چه امن به د عذابونو نه ورته ملاویږی، او هدایت به ورته کوی او په نیغه لاره به ئے روانه وی.

**فائده** : انسانان څلور قسمه دی (١) هغه چه په الله ایمان نهٔ راوړی. (٢) هغه چه په الله ایمان راوړی مگر د هغه سره بل څوك هم شریکوی. (٣) هغه چه هیڅ دین نهٔ لری، نو دا ټول کفار دی، همیشه به په اُور کښې وی. (٤) هغه چه په الله ایمان راوړی او هیڅ شے ورسره نهٔ شریکوی نو دا مؤمن موحد دے، کامیاب دے الله تعالیٰ دِے مونږ ددے نه

وکړخوی، آمین۔

| وَتِلْكَ حُجَّتُنَآ اٰتَيْنٰهَآ اِبْرٰهِيْمَ عَلٰى قَوْمِهٖ ؕ |
|---|
| او دغه دلیل وو زمونږ ورکړے وو مونږ ابراهیم (علیه السلام) ته په مقابله د قوم د هغهٔ کښې |
| نَرْفَعُ دَرَجٰتٍ مَّنْ نَّشَآءُ ؕ اِنَّ رَبَّكَ حَكِيْمٌ عَلِيْمٌ ﴿۸۳﴾ |
| پورته کوو مونږ درجے د هغه چا چه وغواړو یقیناً رب ستا حکمتونو والا پوهه دے۔ |

**تفسیر:** **مضمون:**

پدے رکوع کښې الله تعالیٰ دلیلی نقلی اجمالی د ټولو انبیاؤ نه بیان کړیدے په توحید باندے چه دے ټولو پیغمبرانو د الله سره شرك نهٔ دے کړے او دوی د توحید د بیان دپاره راغلی وو۔ نو مشرکان ددے انبیاؤ مخالفت کوی۔ بیا په بله رکوع کښې په منکرینو د وحی باندے تفصیلی ردونه دی، په مختلفو طریقو سره ﴿وَمَا قَدَرُوا اللّٰهَ﴾ کښې دا بیانوی چه څوك د الله وحی نهٔ منی، نو دوی د الله بې قدری کونکی دی، بیا ئے د وحی تفصیلات بیان کړیدی چه الله تورات رالیږلے دے او قرآن ئے رالیږلے دے او قرآن څه دپاره راغلے دے او څوك ترے فائده اخلی،

بیا (وَمَنْ أَظْلَمُ) کښې د دروغژن نبوت دعویدار یا د قرآن مقابله کونکی باندے رد دے، او په مرگ سره ئے تخویف ورکړیدے چه د دوی به د مرگ په وخت کښې څومره بد حالت وی، بیا تخویف د آخرت مشرکینو ته چه یواځے به الله له راځئ چه نهٔ به ستاسو سره مال وی او نهٔ به شفعاء وی۔ او دا بیانوی چه دوی به بیا دنیا ته د واپس کیدو ارمانونه کوی لیکن وخت به تیر وی۔ او تخویف ئے په شرك باندے ورکړیدے بیا په بله رکوع کښې پنځه عقلی دلیلونه ذکر دی چه په هغے کښې یو د الله معرفت او د هغه د توحید بیان دے او مقصد پکښې رد د شرك هم دے۔ او په (۱۰۵) کښې ترغیب دے قرآن کریم ته۔ او د هغے نه روستو به نور عنوانات د قرآن کریم متعلق ذکر کیږی۔

حُجَّتُنَآ : د حجت نه مراد هغه دلائل دی چه د آیت (۷٤) ﴿اَتَتَّخِذُ اَصْنَامًا اٰلِهَةً﴾ نه تر دے ځای پورے بیان شو، چه د هغے رد نشی کیدے، او دغه حجتونه عقلی هم وو او شرعی هم، یعنی الله ورته په وحی باندے خودلی وو او ابراهیم (علیه السلام) خپل قوم ته پیش کړل او عقلی دلیلونه هم وو۔ او عقل او نقل چه دواړه جمع شی نو ډیر کمال پیدا کوی۔

عَلٰی قَوْمِهٖ : ددے نه معلومیږی چه دا مخکښې دلائل د مناظرے په شکل بیان کړی وو د قوم د مقابلے دپاره، دے دپاره چه هغه په قوم باندے غالبه شی۔

نَرْفَعُ دَرَجٰتٍ مَّنْ نَّشَآءُ: یعنی الله تعالیٰ چه په چا باندے غواړی خزانے د علم او حکمت راکولاوی، او په نورو خلقو ورته فوقیت ورکوی، الله تعالیٰ حکمتونو لره پیژندونکے دے۔

رفع د درجات دا هم ده چه په دنیا کښې به ئے عزت وی او په آخرت کښې جنت۔

او دے کښې عمومی معنیٰ هم اخستے شی چه الله تعالیٰ درجات د چا چه وغواړی پورته کوی بِالْاِیْمَانِ وَبِالْحُجَّةِ وَالْبَیَانِ۔ په ایمان سره او په دلیل او بیان سره هم لکه دلته ئے ابراهیم عليه السلام ته پورته درجه ورکړه د دلائلو په وجه۔

| وَوَهَبْنَا لَهٗۤ اِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ ؕ كُلًّا هَدَيْنَا ۚ |
|---|
| او وبخښلو مونږ هغهٔ ته اسحاق او یعقوب (علیهما السلام) هر یو ته هدایت کړے وو مونږ |
| وَنُوْحًا هَدَيْنَا مِنْ قَبْلُ وَمِنْ ذُرِّيَّتِهٖ |
| (توحید ته) او نوح ته هدایت کړے وو مونږ مخکښې ددے نه او د اولادو د هغه (نوح) نه |
| دَاوٗدَ وَسُلَيْمٰنَ وَاَيُّوْبَ وَيُوْسُفَ وَمُوْسٰى وَهٰرُوْنَ ؕ |
| داود او سلیمان او ایوب او یوسف او موسیٰ او هارون (علیهم السلام) ته (مونږ هدایت کړے وو) |
| وَكَذٰلِكَ نَجْزِى الْمُحْسِنِيْنَ ﴿٨٤﴾ وَزَكَرِيَّا |
| او دغسے بدله ورکوو مونږ نیک عمل کونکو ته۔ او (هدایت کړے وو مونږ) زکریا |
| وَيَحْيٰى وَعِيْسٰى وَاِلْيَاسَ ؕ كُلٌّ مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿٨٥﴾ وَاِسْمٰعِيْلَ وَ |
| او یحیٰی او عیسیٰ او الیاس (علیهم السلام) ته دا ټول وو د نیکانو نه۔ او اسماعیل او |
| الْيَسَعَ وَيُوْنُسَ وَلُوْطًا ؕ وَكُلًّا فَضَّلْنَا عَلَى الْعٰلَمِيْنَ ﴿٨٦﴾ وَمِنْ |
| الیسع او یونس او لوط ته، او هر یو مونږ غوره کړے وو په مخلوقاتو۔ او بعض |
| اٰبَآئِهِمْ وَذُرِّيّٰتِهِمْ وَاِخْوَانِهِمْ ۚ وَاجْتَبَيْنٰهُمْ |
| د پلارانو د دوی نه او د اولادو د دوی نه او د وروڼو د دوی نه، او غوره کړی وو مونږه دوی |

| وَهَدَيْنٰهُمْ إِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿۸۷﴾ |
| --- |
| او هدایت کړے وو مونږه دوی ته لارے نیغے ته۔ |

**تفسیر** : هرکله چه ابراهیم علیه السلام د الله دپاره سخته تیره کړه او د قوم مقابله ئے وکړه او د الله تعالیٰ د رضا د خاطره د خپل ټول قوم او د هغوی د معبودانو نه د براءت (بیزاری) اعلان کړه نو هغوی اُور ته ګوزار کړو بیا د اُور نه روستو هغه هجرت وکړو نو د الله سبحانه وتعالیٰ عادت دا دے چه څوك سخته تیره کړی هغه ورته انعام ورکوی نو الله هغه ته او د هغه ښځے ساره رضی الله عنها ته د نیکے بدلے ورکولو په توګه په بوډا والی کښ په اسحاق سره زیرے ورکړو او د هغه د څوی یعقوب زیرے ئے ورکړو۔ دارنګه دا زیرے ئے ورکړو چه څوی او نمسے دواړه به نبیان وی۔ لکه چه الله تعالیٰ په سورة هود آیت (۷۱) کښ فرمایلی دی : ﴿ فَبَشَّرْنَاهَا بِإِسْحَاقَ وَمِنْ وَرَاءِ إِسْحَاقَ يَعْقُوْبَ ﴾ چه مونږ ساره ته د اسحاق او د اسحاق نه روستو د یعقوب زیرے ورکړو) یعنی ستاسو د دواړو په ژوند کښ به الله تعالیٰ ستاسو څوی اسحاق ته د یعقوب په شان څوی ورکوی چه د هغے په لیدلو به ستاسو سترګے یخیږی لکه څنګه چه د اسحاق په پیدائش سره ستاسو سترګے یخے شوے وے۔ الله تعالیٰ په سورة مریم آیت (۴۹) کښ دا خبره پدے الفاظو سره بیان کړیده : ﴿ فَلَمَّا اعْتَزَلَهُمْ وَمَا يَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللهِ وَهَبْنَا لَهٗ إِسْحَاقَ وَيَعْقُوْبَ وَكُلًّا جَعَلْنَا نَبِيًّا ﴾

وَوَهَبْنَا : هبه دے ته وائی چه چا یو شے غوښتے نهٔ وی او هغه ته ورکړے شی۔ نو ابراهیم علیه السلام صرف اسماعیل علیه السلام غوښتلے وو، نهٔ اسحاق او نهٔ یعقوب علیهما السلام۔

كُلًّا هَدَيْنَا : ۱- دلته د هدایت نه مراد د الله معرفت دے۔

۲- هَدَيْنَا إِلَى الدِّيْنِ الْحَقِّ ثُمَّ الْوُصُوْلِ إِلَى الْجَنَّةِ۔ الله ورته حق دین طرفته هدایت کړے وو او بیا ئے جنت ته ورسول۔

۳- او دلته د هدایت نه مراد توحید او په هغے باندے کلکوالے هم دے، نو مطلب دا دے چه دا پیغمبران چه په کوم توحید او د الله په بندګئ روان وو همدغه هدایت دے۔

وَنُوْحًا هَدَيْنَا مِنْ قَبْلُ : یعنی مونږ د ابراهیم علیه السلام نه مخکښ نوح علیه السلام ته هم لوئی هدایت یعنی نبوت ورکړے وو او دا خبره هم د ابراهیم علیه السلام دپاره د شرافت باعث ده چه د دوی پلار نوح علیه السلام هم نبی وو۔ او د هدایت نه هدایت د توحید هم مراد دے لکه نزدے راروان دے۔

حافظ ابن کثیر رحمه الله لیکلی دي چه الله تعالیٰ نوح او ابراهیم علیهما السلام هر دواړو ته یو عظیم خصوصیت ورکړے وو۔ الله چه کله نوح علیه السلام او په هغه باندے ایمان راوړونکو نه سیوئ ټول غرق کړل نو په زمکه باندے صرف د هغه اولاد پاتے شو۔ او ابراهیم علیه السلام نه روستو چه څومره انبیاء علیهم السلام پیدا شویدی دا ټول د هغه د اولادو نه وو۔ انتهیٰ۔

پدے وجه د اکثرو خلقو رائے ده چه (وَمِنْ ذُرِّيَّتِهٖ) نه مراد د ابراهیم علیه السلام اولاد دی۔ او لوط علیه السلام د ابراهیم علیه السلام وراره وو۔ پدے وجه د هغوی په ذریت (نسل) کښې شمار دے، او همدا قول راجح دے او مخکښې نوح علیه السلام ته هم ضمیر راجع کول صحیح دی۔

وَمِنْ ذُرِّيَّتِهٖ : أَيْ هَدَيْنَا مِنْ ذُرِّيَّتِهٖ دَاوُدَ الخ۔ او مونږ هدایت کړو ده د اولادو نه داود علیه السلام ته۔

وَكَذٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِيْنَ : پدے کښې خبره عامه کوی چه ددے انبیاؤ په شان نورو نیکانو ته هم زۀ هدایت کوم چه خپل معرفت او حق دین ورنصیب کوم او جنت ته ئے رسوم۔ نو دا هدایت پیغمبرانو پورے خاص نۀ دے۔ او محسنین لفظ راوړو کښې اشاره ده چه دغه معرفت صرف احسان والو ته نصیب کیږی۔

وَعِيْسٰى : او عیسیٰ علیه السلام د ابراهیم علیه السلام په ذریت کښې شمار شو حال دا چه هغه خو د مریم علیها السلام د خیټې نه بغیر د پلار نه پیدا شوے وو، دا دلیل دے چه د لوڼړو اولاد د انسان په ذریت (اولادو) کښې داخل دے۔

د صحیح بخاری روایت دے چه رسول الله ﷺ د حسن بن علی رضی الله عنهما په باره کښې وفرمایل: ((زما دا ځوی به سردار وی))۔ او کله چه نبی کریم ﷺ د نجران د عیسایانو سره مباهله کوله، نو د آیت کریمه ﴿فَقُلْ تَعَالَوْا نَدْعُ أَبْنَاءَنَا وَأَبْنَاءَكُمْ﴾ په تقاضا حسنؓ او حسینؓ ئے خان سره واخستل او ورغلو۔ (القرطبیؒ وابن کثیرؒ)۔

ابن ابی حاتمؒ روایت کړیدے چه حجاج بن یوسف یحیی بن یَعْمُرْ ته پیغام ولیږلو چه ما آوریدلی دی چه ته حسن او حسینؓ د نبی کریم ﷺ په ذریت کښې شمار کوے، ما خو ټول قرآن ولوستو چرته هم دا ملاؤ نشو نو یحییٰ خبر ور اُولیږلو چه آیا تا د سورة الانعام آیت :﴿وَمِنْ ذُرِّيَّتِهٖ دَاوٗدَ وَسُلَيْمٰنَ وَاَيُّوْبَ وَيُوْسُفَ وَمُوْسٰى وَهٰرُوْنَ وَكَذٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِيْنَ وَزَكَرِيَّا وَيَحْيٰى وَعِيْسٰى وَاِلْيَاسَ﴾ نۀ دے لوستلے؟ نو هغه ووئیل آو، نو وے وئیل چه آیا پدے آیت کښې عیسیٰ علیه السلام د ابراهیم علیه السلام په ذریت کښې نۀ دے شمار کړے شوے، حال دا چه د هغه څوك پلار نۀ وو؟ نو هغه ووئیل چه تا رښتیا ووئیل۔

حافظ ابن کثیر رحمه الله وائی : همدا وجه ده چه کله یو سړے د خپل ذریت دپاره وصیت وکړی یا وقف وکړی یا هغه ته څه هبه کړی نو د لونړو اولاد به هم شاملیږی۔ د آیت په ضمن کښې یوه بله خبره هم د ذکر کولو قابل ده چه اسماعیل عليه السلام نے د اسحاق عليه السلام سره پدے وجه ذکر نکړو چه دلته مقصود د بنی اسرائیلو د انبیاؤ ذکر دے چه هغه د اسحاق او یعقوب د اولادو نه وو۔ د اسماعیل عليه السلام د شا نه صرف خاتم النبیین پیدا شویدے چه علی الاطلاق افضل الانبیاء وو۔ او نبی کریم ﷺ پدے وجه ذکر نشو چه الله تعالیٰ پدے آیت کښې هغه ته حکم کریدے چه هغه د عربو قومونو په خلاف د شرک په نفی باندے د ابراهیم عليه السلام په عمل سره دلیل قائم کړی۔

بله دا چه روستو رسول الله ﷺ ته د دغه انبیاء علیهم السلام په اقتداء امر شوے نو هغه هم کامل هدایت والا شو۔

وَالْيَسَعَ : دا د بنی اسرائیلو پیغمبر دے او دده قصه په قرآن کښې نۀ ده بیان شوے، یعنی اَلْيَسَعُ بن اَخْطُوْب بن الْعَجُوْز۔ (بغویؒ) ځینی وائی چه دا د الیاس عليه السلام ملګرے وو۔ ځینی وائی چه دا د الیاس عليه السلام خلیفه او د هغه خادم وو او دۀ ته په عبرانئ کښې (الیشاع) وائی، لکه الیاس ته چه ایلیا وائی، او په تورات کښې دده لویه قصه ذکر ده چه په هغے کښې دده نبوت او معجزات خودلے شویدی۔ (القاسمیؒ)

او د زکریا علیه السلام نه مخکښې راغلے وو۔ (قرطبی)

او الیاس بن فنحاص بن العیزار بن هارون (عليه السلام) بن عمران (عليه السلام) د ((آخاب)) بادشاه په زمانه کښې راغلے وو کله چه دوی د بتانو عبادت شروع کړو خاصکر د بعل بت چه هغه د کنعانیینو بت وو چه دا د اُردن په مشرقی طرف کښې وو او هلته بعلبك ښار هم دے۔

(التحریر والتنویر)

**فائده** : دلته الله تعالیٰ دغه پیغمبران چپه چپه طریقے سره ذکر کړل، او ډله ډله ئے ذکر کړل، نۀ په ترتیب د زمانو او تاریخ سره او نۀ په ترتیب د فضیلت سره څکه چه دا کتاب د مناقب او مدائحو نۀ دے بلکه د وعظ او نصیحت او عبرت کتاب دے۔ نو دلته الله دوی درے قسمه ذکر کړل څکه چه په دوی کښې په هر یو قسم کښې یوه جامعه معنیٰ پرته ده۔

اول قسم : داود، سلیمان، ایوب، یوسف، موسیٰ او هارون (علیهم السلام) دوی کښې جامع صفت دا وو چه دوی ته الله تعالیٰ د نبوت او رسالت سره بادشاهی او امارت او حکم او سرداری ورکړے وه، د داود او سلیمان علیهما السلام بادشاهی او مشری خو ښکاره ده، او ایوب

او يوسف (عليهما السلام) كښې اول لوى مالداره محسن امير وو، او دويم لوى وزير او تصرف كونكے حاكم وو- او دوى دواړه هر يو په تكليف د بدن مبتلا شوى وو نو دواړو صبر كړے وو او په مالدارئ پرے امتحان راغلے وو نو شكر ئے كړے وو- او هرچه موسىٰ او هارون (عليهما السلام) دى، نو هغوى حاكمان وو ليكن بادشاهان نۀ وو، نو هره يوه جوړئ په يو خصوصيت باندے ممتازه ده، يا په دوى كښې د دنيا د نعمتونو او مزو په اعتبار سره اول داود او سليمان (عليهما السلام) وو بيا وروسته ايوب او يوسف (عليهما السلام) وو او بيا وروسته موسىٰ او هارون (عليهما السلام) وو- ځكه ئے دوى سره محسنين ذكر كړو چه دوى سره الله تعالىٰ دنياوى او دينى دواړه احسانات كړى وو- (پدے وجه چه دوى كښې احسان زيات وو)

او دويم قسم : زكريا، يحيى، عيسىٰ او الياس عليهم السلام، دوى په سخت زهد او د دنيا د مزو نه په اعراض باندے د نورو پيغمبرانو نه جدا دى، دے وجه نه دوى سره ئے صالحين ذكر كړل-

دريم قسم : اسماعيل، اليسع، يونس او لوط عليهم السلام- او دا ئے د تولو روستو راوړل ځكه چه دوى سره بادشاهى او مشرى هم نۀ وه او نۀ د مخكنو په شان په زهد باندے مشهور وو (او د دوى فضيلت په خلكو كښې مشهور نۀ وو) پدے وجه ئے دوى سره عام فضيلت په مخلوقاتو ذكر كړو- (المنار ٧/٤٩٠)

صاحب المنارؔ وائى : چه زما په علم كښې دے نكتے ته مخكنو مفسرينو سبقت نۀ دے كړے او دا د الله تعالىٰ فضل دے چه په ما باندے ئے راكولاؤ كړو-

او ددے تولو حاصل دادے چه دے انبياؤ په حالت د مشرئ او په حال د بادشاهئ كښې او په حال د مصائبو كښې او په حال د سختنه كښې او په حال د زهد او په حال د كموالى د ملګرو كښې په توحيد باندے كلك والے كړے وو- (احسن الكلام)

دارنګه داود او سليمان عليهما السلام اصحاب الملك مع النبوة وو- او ايوب او يوسف عليهما السلام اصحاب المصائب الكثيره وو (ډير مصيبتونه ئے تير كړيدى) او موسى او هارون عليهما السلام اصحاب كثرة المعجزات وو (معجزات ئے زيات وو) او تول محسنين وو- او زكريا او يحيى او عيسىٰ او الياس عليهم السلام په دنيا كښې زهد والا وو- او اسماعيل او اليسع او يونس او لوط عليهم السلام اصحاب قلة الاتباع وو- (تابعدار ملګرى ئے كم وو)-

وَمِنْ اٰبَآءِ هِمْ : دا د (هَدَيْنَا) د لاندے دے نو په (نوحًا) باندے عطف دے- په دغه مخكنو پيغمبرانو كښې څه پلاران دى او څه ئے خامن دى او څه وررونه دى-

وَاجْتَبَيْنٰهُمْ : اجتباء د جَبْیٌ نه دے په اصل کښې راجمع کولو ته وائی، بیا اجتباء، اَلْاِخْتِیَارُ لِمَعَالِی الْاُمُوْرِ ته وئیلے شی یعنی د اُوچتو کارونو دپاره غوره کول۔ یعنی دوی به د الله دین او توحید ته دعوت ورکولو نو ددے نه بل لوی کار کوم یو دے؟!۔

صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ : یعنی د الله دپاره یواځے بندگی کول۔ او معلومه شوه چه صراط مستقیم د انبیاؤ علیهم السلام لارے ته وائی۔

| ذٰلِكَ هُدَى اللّٰهِ يَهْدِيْ بِهٖ مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ ۚ وَلَوْ |
|---|
| دا هدایت د الله دے هدایت کوی په دے سره چا له چه وغواړی د بندګانو خپلو نه او که |
| اَشْرَكُوْا لَحَبِطَ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۸۸﴾ |
| شرك کړے وے دوی خامخا برباد شوی به وے د دوی نه هغه عملونه چه دوی کول۔ |
| اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحُكْمَ وَالنُّبُوَّةَ ۚ فَاِنْ |
| دا هغه کسان دی چه ورکړے مونږه دوی ته کتاب او پوهه د دین او پیغمبری، پس که |
| يَّكْفُرْ بِهَا هٰٓؤُلَآءِ فَقَدْ وَكَّلْنَا بِهَا قَوْمًا |
| انکار کوی ددے (مسئلے د توحید) نه دا کسان، نو یقیناً سپارلے ده مونږه دا هغه قوم ته |
| لَّيْسُوْا بِهَا بِكٰفِرِيْنَ ﴿۸۹﴾ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ هَدَى اللّٰهُ |
| چه نهٔ دی هغوی ددینه انکار کونکی۔ دا هغه کسان دی چه هدایت کړے وو دوی ته الله |
| فَبِهُدٰىهُمُ اقْتَدِهْ ۗ قُلْ لَّآ اَسْئَلُكُمْ عَلَيْهِ اَجْرًا ۗ |
| نو په لاره د هغوی پسے روان شه، ته ووایه نهٔ غواړم زهٔ ستاسو نه په دے څه بدله |
| اِنْ هُوَ اِلَّا ذِكْرٰى لِلْعٰلَمِيْنَ ﴿۹۰﴾ |
| نهٔ دے دا مگر نصیحت دے دپاره د خلقو۔ |

**تفسیر** : پدے کښې اشاره ده چه توحید دین د تولو انبیاؤ دے۔ ذلك اشاره ده مخکښې (هدینا او هدینا هم) کښې ذکر شوی هدایت ته۔ یعنی انبیاؤ ته چه الله کوم هدایت ورکړیدے، دغه د الله هدایت دے ورکوی ئے چا ته چه وغواړی۔

وَلَوْ اَشْرَكُوْا : پدے کښې اشاره کوی چه انبیاء علیهم السلام په توحید راغلی وو او اے

مشرکانو! ستاسو د دین نه سراسر مخالف وو. حافظ ابن کثیرؒ لیکلی دی چه پدے آیتِ کریمه کښې د شرك هیبت، او انتهائی بدی ذکر ده چه دا داسے زهریله گندگی ده چه د انسان عملونه بربادوی لکه چه الله تعالیٰ په سورة الزمر آیت (٦٥) کښې فرمایلی دی:

﴿ وَلَقَدْ اُوْحِيَ اِلَيْكَ وَاِلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكَ لَئِنْ اَشْرَكْتَ لَيَحْبَطَنَّ عَمَلُكَ ﴾

چه ((تا ته او ستا نه مخکښې انبیاء کرامو ته د وحی په ذریعه وئیلے شویدی چه که تا شرك وکړو نو ستا عمل به ضائع کیږی)).

اُولٰٓئِكَ: پدے کښې الله تعالیٰ د انبیاء علیهم السلام دوباره لوی شان بیانوی چه دا واړه خلك مهٔ گنړئ او پدے کښې د مخکښې (هدی الله) تفصیل دے.

د الکتاب نه مراد جنس کتابونه دی او دا کتاب ورکول عام دی که بالذات ورکړے شوے وی، یا ورته د بل نبی نه په میراث کښې پاتی شوے وی.

مفسر ابو السعودؒ لیکلی دی چه دلته د آسمانی کتابونو ورکولو نه مراد په هغے کښې د موجود حقائقو تفهیم او په تمامو غتو کارونو احاطه ده ځکه چه د دوی نه په بعضو باندے هیڅ متعین کتاب نهٔ وو نازل شوے.

وَالْحُكْمَ : هر نبی ته الله تعالیٰ د کتاب نه علاوه زبانی وحی ورکړی وی چه هغے ته حکمة او سنت وئیلے شی نو دلته د حکم نه مراد حکمة دے. د حکمة او حکم کله یوه معنیٰ وی لکه دلته او په سورة یوسف (٢٢) ﴿آتَيْنَاهُ حُكْمًا وَعِلْمًا﴾ او ﴿ وَآتَيْنَاهُ الْحُكْمَ صَبِيًّا﴾ (مریم: ١٢) کښې راغلے دے. او کله پکښې فرق وی. حکم فیصلے ته او د فیصلو علم ته وائی چه د خلکو ترمینځ فیصلے کولے شی، او پدے علم کښې ډیر طاقت وی چه خپل علم تطبیق کولے شی.

ددے نه معلومه شوه چه توحید د داسے اُوچتو خلکو عقیده وه، نو معلومیږی چه توحید ډیر لوی شے دے، ځکه چه غټو خلکو ته الله تعالیٰ کومه عقیده ورنصیب کړی وی هغه ډیره غټه وی.

فَاِنْ يَّكْفُرْ بِهَا: پدے کښې الله تعالیٰ خپله استغناء د توحید بیانوی د مشرکانو نه چه تاسو ورے پکښې نهٔ یئ؛ زما نور بنه بندگان شته، هغوی به دا خبرے منی. او پدے کښې اشاره ده چه کوم دین الله تعالیٰ رالیږلے دے نو د هغے نه په انکار د بعضو خلکو سره د الله دین نهٔ ختمیږی بلکه که لږ څه خلك انکار وکړی نو نور خلك الله پیدا کړی چه دغه صحیح دین راپورته کړی. نو د الله دین چا ته نهٔ دے محتاج. او پدے کښې اشاره ده چه د

مؤمنانو صحابه کرامو جماعت داسے دے چه د الله تعالیٰ دین ئے راپورته کړے دے او د قریشو مشرانو پورته نکړو نو کشرانو ته الله تعالیٰ ورکړو۔

بِهَا : دا ضمیر یا (هدایة) ته راجع دے چه مراد ترے توحید دے، او یا کلمے د لا اله الا الله ته راجع دے۔ او دا مراد دے په لفظ د هدیٰ کښې۔ او نبوت ته یا کتاب او نبوت او حکم درے واړو ته راجع کول بعید دی۔

هٰٓؤُلَآءِ : ددے نه مراد موجوده کافران دی او (قومًا) نه مراد څوك وائی انبیاء علیهم السلام دی، او څوك وائی چه ملائك دی، او څوك وائی چه ددے نه ددے امت انصار او مهاجرین صحابه کرامؓ مراد دی، او څوك وائی چه د هرے زمانے موحدین دی۔ او همدا آخری قول غوره دے۔ (القرطبیؒ والبغویؒ) او علامه ابن القیمؒ فرمائی : [وَالظَّاهِرُ اَنَّ كُلَّ مَنْ قَبِلَهَا اِيْمَانًا وَّعَمَلًا وَّدَعْوَةً وَّجِهَادًا فَهُوَ مِنْ اَهْلِهَا] ۔ ظاهر دا ده چه هر هغه څوك چه دغه توحید او هدایت په ایمان او عمل او دعوت کولو سره قبول کړی، او بیا د هغے دپاره مجاهده کوی نو دا اهل د دغه هدایت دے۔ (التفسیر القیم لابن القیمؒ والبدائع)

او پدے امت کښې د صحابه کرامو نه روستو ډیر داسے خلك شته چه د الله یواځے بندگی کوی، او د شرك مقابله او دشمنی کوی، او د هغے په دلیل او مناظرے سره رد کوی، او په طریقه د درس او تدریس او تعلیم او تعلم سره هغه عقیدةً او عملًا رد کوی، نو پداسے خلکو کښې د الله تعالیٰ نه ځان داخلول غوښتل پکار دی۔

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ هَدَى اللّٰهُ : مفعول پټ دے یعنی هَدَاهُمُ اللّٰهُ۔ الله ورته هدایت کړیدے۔

فَبِهُدٰهُمُ اقْتَدِهْ : د هُدی نه مراد سنت او سیرت دے۔ (بغویؒ)

**سوال** دا دے چه زمونږ نبی ته حکم شویدے د پخوانو انبیاؤ اقتداء وکړه نو ددے نه خو معلومه شوه چه زمونږ نبی د پخوانو انبیاؤ نه افضل نهٔ دے ځکه چه د مقتدِی مرتبه د مقتدیٰ نه ښکته وی؟ او آیا د رسول الله ﷺ شرع د پخوانو انبیاؤ نه کامله نهٔ ده؟

جواب : دلته په دے حکم د اقتداء کښې دوه کماله دی، یو د رسول الله ﷺ خپل ذاتی کمالات، او بل د پخوانو پیغمبرانو په اقتداء سره ئے د هغوی صفات هم راجمع کړیدی۔

صاحب المنار ددے ډیر ښه تفصیل کړیدے هغه فرمائی : د الله په توحید علم او د هغه په تنزیه او په اثبات د صفات کمالیه ؤ او د دین ټول اصول او عقائد لکه ایمان په ملائکو او د قیامت په جزا او سزا وغیره پدے کښې خو اقتداء او امر په اقتداء نشی کیدے ځکه چه ددے ټولو وحی الله تعالیٰ خپل رسول ته په ډیره کامله طریقه سره کړیده، نو دا خو د رسول الله

ﷺ دپاره په علمِ ضروري او برهاني سره ثابت وو. او کوم آیت کښې چه دي ﴿ثُمَّ أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ أَنِ اتَّبِعْ مِلَّةَ إِبْرَاهِيمَ﴾ نو د هغې مطلب دا دے چه هغه ملت چه د هغې وحي الله تعالیٰ خپل رسول ته کړیده او د هغې په اتباع ئې ورته امر کړیدے چه هغه عقیده او د دین اصول دي نو هغه د ابراهیم ملت دے، او دے به د هغې تابعداري د الله په حکم سره کوی نۀ پدے وجه چه دا د ابراهیم ﷺ ملت دے ځکه چه نبی کریم ﷺ ته کوم څیزونه معلوم شوی وو، نو هغه ئې د ابراهیم ﷺ نه نۀ وو اخستي، ځکه دے د هغه په زمانه کښې هم نۀ وو او نۀ ئې د هغه نه نقل کړی، او دغه شان عملي احکامو کښې هم رسول الله ﷺ د يو پیغمبر تابعداري نۀ ده کړے، بلکه هغه چه د هغې تابعداري کوی نو د الله په حکم سره، حاصل دا چه اقتداء صرف په عملي سیرت کښې کیږی چه هغه طریقه د دعوت د دین، او دین قائمول، او د مشرك قومونو نه بیزاري، او په باب د دعوت کښې صبر کول، او ښائسته اخلاق او ښائسته اعمال خپلول دي، لکه صبر، شکر، شجاعت او حلم، ایثار او زهد، سخاء او فیصله په عدل باندے الخ. (المنار۷/۴۹۷)

ځینی علماء وائي چه د هدی نه مراد تمام اصول، عقائد او اخلاق او طریقے د دعوت د انبیاء علیهم السلام دي او په فروعو (عملي احکامو) کښې هغه مراد دي چه د هغوی په دین پورے خاص نۀ دي. (احسن الکلام)

او امام رازيؒ فرمائي: دا آیت دلیل دے چه زمونږ نبي د ټولو انبیاؤ نه افضل دے او ددے بیان دا دے چه پدے مذکوره انبیاؤ کښې د کمال او شرافت صفات تقسیم وو نو داود او سلیمان علیهما السلام کښې د نعمتونو شکر او په ایوب ﷺ کښې صبر په بدني مرضونو او په یوسف ﷺ کښې دواړه وو (او ورسره صبر په حسد د بدخواهانو وو) او موسیٰ ﷺ د ډیرو او قوي معجزاتو والا وو او د لوی سرکش سره ئې مقابله کړے وه او په زکریا، یحیٰی، عیسیٰ او الیاس علیهم السلام کښې زهد في الدنیا او په اسماعیل ﷺ کښې صدق (رښتیا) او په یونس ﷺ کښې په سختئ کښې تضرع (عاجزي) وه، نو الله مخکښې انبیاء ذکر کړل بیا ئې زمونږ نبي ته حکم په اقتداء وکړو نو ګویا که دا حکم ئې ورته وکړو چه د عبودیت او طاعت ټول صفات په دغه انبیاؤ کښې وو دغه هم وکړه او بیا ئې خپل ذاتي صفات او کمالات هم ورکړی وو نو دے په ټولو کښې افضل شو. (الرازي، والقاسميؒ في محاسن التاویل).

او پدے وجه به رسول الله ﷺ پدے آیت باندے عمل کولو، د پخوانو پیغمبرانو چه به کوم نیك عمل وو، هغې باندے به رسول الله ﷺ عمل کولو لکه داود ﷺ سجده کړے وه

نو رسول الله ﷺ به د سورت ص (په واقعه) کښې سجده کوله، لکه د ابن عباسؓ نه دغه شان روایت شویدے، او رسول الله ﷺ وفرمایل:

[رَحِمَ اللّٰهُ مُوْسٰی لَقَدْ اُوْذِیَ فِی اللّٰهِ فَصَبَرَ]

الله دِے په موسیٰ علیه السلام رحم وکړی هغه ته د الله دپاره ډیر ضرر ورکړے شو نو هغه صبر وکړو زهٔ به هم صبر کوم۔

او بیا چه رسول الله ﷺ ته کوم حکم شویدے دا د هغه د امت افرادو ته هم شویدے چه هغوی دغه طریقے راجمع کړی۔ لکه یو د دغه هدایت نه د الله یواځے بندگی کول او د هغے دپاره دعوت کول دی۔

اقْتَدِهْ: کښې (هاء) د سکتے دپاره ده۔

قُلْ لَّآ اَسْئَلُكُمْ: یعنی یو د انبیاؑ د هدایت نه دا ده چه هغوی به د دین دعوت په اخلاص سره بغیر د دنیاوی لالچ نه کولو، نو ته هم ووایه چه زهٔ تاسو نه پدے بیان د توحید او د قرآن باندے هیڅ اجرت نهٔ غوارم۔ نو که ددے کتاب نه هدایت اخلئ نو دا د ټول عالَم دپاره د هدایت او نصیحت خزانه ده۔

اِنْ هُوَ اِلَّا ذِكْرٰی لِلْعٰلَمِیْنَ: قرآن نه د ټول عالَم ذکرئ وئیلے شی، دا دلیل دے چه په قرآن کریم کښې د ټول عالَم حاجت پوره شویدے، نو څوک چه قرآن ناقص گنړی بیا به دا د عالَم دپاره څنګه نصیحت او یاداشت شی۔ او دا دلیل دے چه قرآن کریم او د رسول الله ﷺ رسالت (چه د قرآن تشریح ده) دا به تر قیامته پورے وی، نو د بل نبی د راتللو هیڅ گنجائش نشته۔

اَلْعَالَمِیْنَ: نه مراد انسانان او پیریان دی او جمع ئے څکه راوړیده چه په انسانانو کښې ډیر مختلف اقوام دی؛ عرب، عجم وغیره۔ او عالمین کښې پیریان او ملائکو ته هم اشاره ده پدے وجه ئے جمع راوړیده۔

| وَمَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖٓ اِذْ قَالُوْا مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ |
|---|
| او قدر نهٔ دے کړے دوی د الله په لائق قدر سره کله چه ووئیل دوی نهٔ دے نازل کړے الله |
| عَلٰی بَشَرٍ مِّنْ شَیْءٍ ۗ قُلْ مَنْ اَنْزَلَ الْكِتٰبَ الَّذِیْ جَآءَ بِهٖ مُوْسٰی |
| په هیڅ بنده باندے هیڅ شے، ووایه چا نازل کړیدے کتاب هغه چه راوړیدے هغے لره موسیٰ |

| |
|---|
| نُوْرًا وَّهُدًى لِّلنَّاسِ تَجْعَلُوْنَهٗ قَرَاطِيْسَ تُبْدُوْنَهَا |
| رڼا او هدايت دپاره د خلقو کرځوئ تاسو هغه ټکړے ټکړے ښکاره کوئ تاسو بعض د هغے |
| وَتُخْفُوْنَ كَثِيْرًا ۚ وَعُلِّمْتُمْ مَّا لَمْ تَعْلَمُوْٓا اَنْتُمْ وَلَآ |
| او پټوئ تاسو ډير، او خودلے شويدی تاسو ته هغه خبرے چه نۀ پيژندلے تاسو او نۀ |
| اٰبَآؤُكُمْ ۖ قُلِ اللّٰهُ ۙ ثُمَّ ذَرْهُمْ فِيْ خَوْضِهِمْ يَلْعَبُوْنَ ﴿۹۱﴾ |
| پلارانو ستاسو، ته ووايه ! الله تعالیٰ! بيا پريږدۀ دوی په باطلو خبرو خپلو کښ چه لوبے کوی |

**تفسیر :** ربط :

مخکښ د الله د توحيد بيان وو اُوس پدے رکوع کښ د رسالت او د وحی بيان دے۔ او هغه پدے طريقه چه الله هغه ذات دے چه بندګان مهمل نۀ پريدی بلکه وحی ورته نازلوی، او خوك چه د وحی منکر دے نو هغه د الله ډير غټ بی ادبه دے، يا دا چه په الله دروغ جوړ کړی الله ورته وحی نۀ وی کړی او هغه دعوه کوی چه ما ته ئے وحی کړيده۔ او د هغوی سزا به بيانوی او په آخر کښ د مشرك سزا۔ او پدے آيت کښ د الله تعالیٰ د معرفت بيان هم دے۔

## شان نزول او اختلاف

خينی مفسرينو ويلی دی چه دا آيت مدنی دے او د مکی سورت په مينځ کښ کيخودلے شويدے، او دليل دا دے چه پدے کښ تورات ذکر دے او د هغے د پټولو او ښکاره کولو تذکره ده، او دا خو يهودو کړے وو او يهود په مکه کښ نۀ وو بلکه په مدينه کښ وو، بيا د تفسير په کتابونو کښ يو تفسيری روايت هم ددے د شان نزول په باره کښ ذکر شويدے۔

ابن ابی حاتمؒ د سعيد بن جبيرؒ نه مرسلًا روايت کړيدے چه يو يهودی چه هغه ته به ئے مالك بن الصيف ويلو راغلو او د رسول الله ﷺ سره ئے بحث شروع کړو نو نبی کريم ﷺ ورته فرمايل : [اَنْشُدُكَ بِالَّذِيْ اَنْزَلَ التَّوْرَاةَ عَلٰى مُوْسٰى هَلْ تَجِدُ فِي التَّوْرَاةِ اَنَّ اللّٰهَ يُبْغِضُ الْحَبْرَ السَّمِيْنَ (وَكَانَ حَبْرًا سَمِيْنًا) فَغَضِبَ، وَقَالَ مَا اَنْزَلَ اللّٰهُ عَلٰى بَشَرٍ مِّنْ شَيْءٍ] تا ته په هغه الله قسم درکوم چه په موسیٰ علیه السلام ئے تورات نازل کړيدے چه آيا تۀ په تورات کښ دا خبره مومے چه الله تعالیٰ د پيړ (چاق) ملا سره مينه نۀ کوی (او دے خپله پيړ ملا وو) نو هغه

غصه شو او دائے وویل چه الله په هیڅ انسان باندے هیڅ وحی (کتاب) نهٔ دے رالیږلے۔ بیا روستو پدے خبره خپلو یهودیانو ملامته کړو نو هغه وویل چه ما په غصه کښې دا خبره کړے وه، آخر دا چه هغه ئے د خپل ملاتوب نه ویستلو۔ نو ددے په باره کښې دا آیت نازل شو۔ او په دغه یهودوئے رد وکړو چه تاسو د وحی او کتابونو نه انکار کوئ نو بیا تاسو سره چه د تورات دا کاغذونه پراته دی دا د کوم کتاب دی؟۔ (دا روایت سندًا ثابت نهٔ دے پدے وجه پدے باندے پوره اعتماد نشته)۔

او بله دا چه یهودیان د پخوانی آسمانی کتابونو منکر نهٔ وو۔

۲ – دویم قول: ابن عباس رضی الله عنهما او مجاهدؒ فرمائی چه دا آیت د قریش کافرانو په باره کښې نازل شوے وو۔ انتهٰی۔ او حافظ ابن کثیرؒ فرمائی دا اصح قول دے، او ابن جریرؒ غوره کړیدے۔ او قریشو په رسول الله ﷺ باندے د قرآن نازلیدلو نه د زیات انکار په توګه وویل چه الله هیڅ کتاب په هیڅ انسان نهٔ دے نازل کړے۔ او دا د الله په خلاف د دوی د جرأت او بهادرئ انتهاء وه چه د انبیاء او رسولانو د بعثت نه ئے بالکل انکار وکړو۔ او پدے باندے دلیل دا قول د الله تعالیٰ دے: ﴿ قَالُوۡا سِحۡرَانِ تَظٰهَرَا ۟ وَ قَالُوۡۤا اِنَّا بِکُلٍّ کٰفِرُوۡنَ ﴾ (القصص:۴۸) (دوی وویل: دا دواړه (تورات او قرآن) جادو دے چه د یو بل مدد ئے کړیدے دارنګه ﴿ وَقَالَ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا لَنۡ نُّؤۡمِنَ بِهٰذَا الۡقُرۡاٰنِ وَلَا بِالَّذِىۡ بَيۡنَ يَدَيۡهِ ﴾ (سبا: ۳۱)۔ (او کافرانو ووئیل: مونږ پدے قرآن او نهٔ ددے نه په مخکښې کتابونو هیڅکله ایمان نهٔ راوړو) ددے قول مطابق چه دلته د تورات تذکره شویده او دوی ته الزامی جواب ورکړے شویدے نو دا پدے وجه صحیح کیږی چه د عربو خلقو به د یهودو په ذریعه د تورات خبرے آوریدلے او اقرار به ئے کولو، او د هغوی تصدیق به ئے کولو چه دا اهل کتاب او اهل علم دی۔ او بیا هم د ضد د وجه نه دے ظالمانو د تورات نه او د ټولو آسمانی کتابونو نه انکار وکړو۔

لکه همدا خوئی د اُوسنئ زمانے په بدعتیانو او ډیرو مقلدینو کښې هم موجود دے چه ډیر کرته دوی ته د قرآن او حدیث دلیلونه ښکاره شی نو دوی په مذهبی جنون کښې راشی او ددے نه چورلټ انکار شروع کړی۔ او ددے ډیر مثالونه او واقعات لیدلے شویدی۔ الله تعالیٰ دے مونږ د داسے مرض نه محفوظ وساتی۔ آمین۔

قُلْ مَنْ اَنْزَلَ : د دواړو قولونو مطابق الله تعالیٰ د هغوی الزامی جواب د سوال په صورت کښې ورکړو چه اے زما رسوله! (ﷺ) ته لږ د دوی نه تپوس وکړه چه هغه تورات چه په موسیٰ علیه السلام باندے نازل شویدے چه هغه د خلقو دپاره نُور او هدایت او د حق او

باطل ترمینځ فرق کونکے کتاب وو، دا چا نازل کړے وو؟ هغه تورات چه هغه یهودیان د خپل خواهش مطابق په ټکړو کښې تقسیم کړے رابښکاره کوی، او کوم چه د دوی د خواهش مطابق نهٔ وو نو هغه پټوی.

تَجْعَلُوْنَهٗ قَرَاطِيْسَ : بیا د دویم قول مطابق **سوال** دا دے چه که دا مشرکانو ته جواب شی نو دا خطاب به څنګه صحیح شی چه تاسو دا تورات ټکړے ټکړے کړیدے او بعض ښکاره کوئ او بعض پټوئ؟ جواب دا دے چه په یو قراءت کښې (يَجْعَلُوْنَهٗ قَرَاطِيْسَ) او (يُبْدُوْنَهَا) راغلے دے نو دا غائب ضمیرونه به یهودیانو ته راجع وی لکه ددے مطابق تشریح وشوه. نو بیا دلته په یهودو باندے رد شو چه الله دغه کتاب رالیږلے وو او یهودو په کښې ورانے وکړو. لیکن مشهور قراءت د خطاب په صیغه دے نو بیا به **جواب** دا دے چه پدے کښې جنس انسانانو ته خطاب دے لکه دا د قرآن کریم طرز دے چه انتقال کوی د نوع نه جنس ته یا د خطاب د یو قوم نه خطاب د بل قوم ته لکه علامه خفاجیؒ وئیلی دی چه دا هم د اُدَباؤ په نیز یو قسم التفات دے (چه په کلام کښې حُسن پیدا کوی) نو پدے کښې به د مشرکانو نه خطاب یهودو ته نقل شی او پدے کښې به په مشرکانو تعریض وی چه ستاسو انکار د الله د وحی نه داسے بے دلیله او باطل دے لکه چه یهودیانو د تورات سره کوم کار کړے وو چه هغه ئے د خپل خواهش مطابق تس نس کړے وو او د خپلے مرضئ مطابق به ئے پکښې تصرف کولو. (محاسن التاویل للقاسمی بتصرف)

نو د (تَجْعَلُوْنَهٗ) ضمیر به الکتاب ته راجع شی په طریقه د صنعتِ استخدام مشهور سره چه دا د علم بلاغت یو قانون دے چه د یو لفظ دوه معانی وی، د ظاهری لفظ نه یوه معنیٰ واخستے شی لکه دلته ترے تورات واخستے شو او په ارجاع د ضمیر سره ترے بله معنیٰ لکه دلته ترے مطلق کتابونه د الله مراد اخلو. (تلخیص المفتاح)

او ددے التفات مثال په سورة الاعراف کښې ﴿ هُوَ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ ﴾ کښې راغلے دے چه هلته ئے آدم ؑ او حواء ذکر کړیدی، بیا ئے روستو ﴿ فَلَمَّا اٰتٰىهُمَا صَالِحًا جَعَلَا لَهٗ شُرَكَاۗءَ ﴾ کښې عام انسانان ذکر کړیدی، او دا په خطاب کښې د مشرانو طریقه هم وی چه کله خاص خطاب وکړی (یوه ډله ورانے وکړی) نو بیا عامو خلکو باندے رد وکړی چه په تاسو کښې دا نقصان دے، اګرکه په هغوی کښې به ښه خلك هم وی. نو دلته به معنیٰ دا جوړه شی چه په تاسو انسانانو کښې دا مرض دے چه د الله کتاب تس نس کوئ او څه پکښې پټوئ چه د هغه انسانانو سر فهرست یهودیان دی، او بیا چه هر څوك وی. او

مشرکان هم د یهودو په شان دی چه مشرکان د وحی منکرین دی او یهودو پکښې تحریف کړیدے، نو د دواړو د یو بل سره مشابهت دے. نو دواړو ته خطاب صحیح شو.

## فوائد الآیة:

وَمَا قَدَرُوا اللَّهَ : د قدر دلته درے مصداقه دی (۱) ابوالعالیة وائی: قدر په معنیٰ د وصف (صفت) سره دے اَیْ مَا وَصَفُوا اللَّهَ حَقَّ تَوْصِيفِهِ. د الله لائق صفتونه ئے نهٔ دی کړی.

(۲) مَا عَظَّمُوا اللَّهَ حَقَّ تَعْظِيمِهِ. (ابن عباسؓ) دوی د الله لائق تعظیم نهٔ دے کړے.

(۳) مَا عَرَفُوا اللَّهَ حَقَّ مَعْرِفَتِهِ (ابوعبیده، اخفشؒ - قرطبیؒ والبغویؒ - والمنار)

یعنی دوی د الله معرفت نهٔ دے کړے په لائق معرفت سره، او دا تعبیر د سورت د موضوع سره ښه مناسب دے.

**فائده** : دا جمله په قرآن کریم کښې درے ځله راغلے ده دلته د الله د وحی او کتاب نه د منکرینو په رد کښې راغلے ده. او سورة الحج (۷۴) آیت کښې د دوی بې قدری دا وه چه د الله سره ئے کمزورے مخلوق شریك جوړولو نو د هغے رد دپاره راغله، او سورة الزمر (۶۷) آیت کښې د الله تعالیٰ د عظیم قدرت نه د انکار د رد دپاره راغلے ده.

اِذْ قَالُوْا : دا تفصیل د بې قدریٔ دے، او دا دلیل دے چه د الله د وحی نه انکار کول د الله د حکمة د تقاضا او د هغه رحمت د آثارو او د هغه د محیط علم، او د هغه د قیام بالقسط خلاف دی. (المنار) لنډه دا چه د الله وحی نهٔ منل الله ته د ډیرو نقصاناتو نسبت دے، یو دا چه الله مخلوق پیدا کړو او بیا ئے هیڅ پرواه نهٔ کوی، هغه ترے غافل دے (والعیاذ بالله)، دویم دا چه الله کائنات پیدا کړل او هغه ئے مُهمل پریښی دی، نهٔ به ورته امر کیږی او نهٔ نهی، او حساب کتاب نشته، نو دا الله ته د عبث نسبت دے. او ددے په نتیجه کښې بیا د قیامت نه انکار راغے ځکه چه وحی او پیغمبران نهٔ وی او احکام شرعیه نهٔ وی نو بیا حساب کتاب او آخرت نشته نو د عالَم ټول نظام پدے باندے گلوډ کیږی او هغه ته د ظلم نسبت کیږی.

مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ : دا انکار د مکے مشرکانو کړے وو لکه سورة القصص کښې به قصه راشی چه دوی به په عام اوقاتو کښې وئیل چه پیغمبران هم شته او تورات او انجیل د الله کتابونه دی لیکن کله چه ضد کښې راغلل، نو بیا ئے د هر څه نه انکار وکړو او دا ئے په هغه وخت کښې ووئیل چه دوی باندے دلیلونه پیش کړے شو چه دا مسئلے خو په تورات کښې دی چه

توحید د الله حق دے او قیامت حق دے لکه دوی یو وفد یهودو ته لیږلے وو چه دا محمد (ﷺ) چه کومے مسئلے کوی آیا دا حقے دی؟ نو هغوی ورته جواب ورکړو چه آؤ، دا خو په تورات کښ هم لیکلے شویدی، نو دوی انکار وکړو او وے وئیل چه ﴿ سِحْرَانِ تَظَاهَرَا ﴾ دا قرآن او تورات دواړه جادو دے چه د یو بل مدد ئے کریدے ﴿ وَقَالُوْا اِنَّا بِكُلٍّ كَافِرُوْنَ ﴾ او دا ئے وونیل چه مونږ دا دواړه نهٔ منو. نو الله پرے هلته رد وکړو ﴿ قُلْ فَأْتُوْا بِكِتَابٍ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ هُوَ اَهْدٰى مِنْهُمَا اَتَّبِعْهُ اِنْ كُنْتُمْ صَادِقِيْنَ ﴾ څیِ تاسو د الله د طرفنه یو داسے کتاب راوړیٔ چه هغه د تورات او انجیل نه زیات هدایت والا وی چه د هغے تابعداری وکړو، نو چه دا کتابونه نهٔ منے او خپل هم یو کتاب نشے پیش کولے نو معلومه شوه چه د خواهش پسے روان یئ؛ لکه زمونږ د زمانے د بدعتیانو په شان چه نهٔ قرآن او حدیث کامل منی او نهٔ خپل کوم آیت او حدیث لری او نهٔ د خپل امام نه کوم صفا دلیل پیش کولے شی نو د څه پسے مو روانوی؟!۔

مَنْ اَنْزَلَ الْكِتٰبَ : دوی سلبِ کلی کړے وو نو د هغے په رد کښ ایجاب جزئی راغلو۔

او ددے رد او احتجاج طریقه دا ده چه هرکله تاسو قرآن نهٔ منیٔ نو دا خو تاسو عامو اوقاتو کښ منیٔ (چه کله ضد نکویٔ) چه تورات الله تعالیٰ په موسیٰ علیه السلام باندے نازل کړے وو نو بیا هغه چا رانازل کړو؟ هغه خو منیٔ چه الله رالیږلے وو، نو دغه شان ئے دا هم رالیږلے دے۔ دویمه طریقه دا ده چه که تاسو هغه هم نهٔ منیٔ او جاهلان یئ نو بیا د بنی اسرائیلو د علماؤ نه تپوس وکړیٔ هغوی به خبر درکړی چه آؤ، تورات حق کتاب وو۔ نو دغه شان دا قرآن هم حق کتاب دے۔

نُوْرًا وَّهُدًى : نُور کښ دلیلونو او هدی کښ حکمتونو ته اشاره ده۔ یا نور نه مراد د توحید رنړا ده چه بنی اسرائیل ئے د شرك او کفر د تیارو نه راویستل او هدی نه مراد دا چه احکام شرعیه دی چه دوی پرے د گمراهیٔ نه بچ کیدل۔ (المنار)

قَرَاطِيْسَ : قراطیس جمع د قِرْطَاس ده، اصل کښ معنیٰ ئے د کاغذ ده، دلته ترے قطعه (ټکړه) مراد ده۔ یعنی اے یهودو! تاسو د خپل غرض دپاره دغه کتاب ټکړے ټکړے کړیدے چه څینی د خپل غرض دپاره ښکاره کویٔ او څینی پټویٔ، څکه چه د دوی ملیانو به کله چه د دوی په فائده کښ حکم وو، نو هغه به ئے په یو کاغذ باندے ولیکلو او مستفتی ته به ئے ورکړو، او کله چه به ئے په پټولو کښ فائده وه، نو د عوامو نه به ئے پټ ساتلو، او دا څکه چه دغه کتاب د دوی په لاسونو کښ وو، او د عوامو په لاسونو کښ د هغے نه هیڅ

نُسخه نهٔ وه، او ددے پټ والی نه مراد په حوادثو کښې د هغې نصوص پټول دی ماسوئ د هغه حصے نه چه مخکښو یهودیانو هیر کړے وو کله چه قدس خراب شو او دوی عراق ته وشړلے شو۔ او دا آیت به په مکه او دغه شان په مدینه کښې لوستلے کیدو تردے چه په مدینه کښې د یهودیانو علماؤ د رجم آیت پټ کړو او ددے نه لوی د رسول الله ﷺ بشارت او د هغه صفات ئے پټ کړی وو۔ (المنار)

ځینی مفسرینو ددے آیت د وجه نه د قرآن کریم سیپاری کول مکروه ګڼړلی چه پدے کښې د قرآن کریم بی ادبی ده، د قرآن کریم عظمت پرے کمیږی، قرآن کریم یو کتاب دے، ډیرو کتابونو ته تقسیمول ئے مناسب نهٔ دی البته که د تعلیم دپاره ترے څه حصه جدا کړے شی نو جائز به وی۔

وَعُلِّمْتُمْ مَّالَمْ تَعْلَمُوٓا : یعنی د تورات په ذریعه دارنګه د محمد ﷺ په ذریعه تاسو ته او ستاسو پلارانو ته هغه علمونه حاصل شو کوم چه تاسو ته مخکښې نه نهٔ وو معلوم لکه د پخوانو انبیاء علیهم السلام واقعات، احکام شرعیه او صحیح عقیدے، نو دا تاسو ته د کوم ځای نه معلوم شو؟ (ولے که د الله کتاب نهٔ وی نو انسان به په ډیرو تیارو کښې پروت وے او لوی جاهل به وے دا خو قرآن او حدیث دے چه موږ انسانانو ته ددے په وجه د عالَم صحیح تاریخ معلوم دے)

قُلِ اللّٰهُ : نو دوی به غلی شی نو الله خپله ددے جواب ورکړو، چه تهٔ اُووایه چه په موسیٰ ؑ باندے تورات الله نازل کړے وو او محمد (ﷺ) ته هغه علوم او معارف د الله د طرف نه د وحی په ذریعه ملاؤ شویدی۔ او کله چه دا خبره ثابته شوه نو بیا په رسولانو باندے بالعموم او په نبی کریم ﷺ باندے بالخصوص د وحی د نزول نه تاسو څنګه انکار کولے شئ ؟!۔

او دا دلیل دے چه د الله په کتاب سره هغه علمونه حاصلیږی چه مخلوق د هغې علم نهٔ لري۔

قُلِ اللّٰهُ: دلته علامه ابن کثیرؒ په ذکر مفرد والو باندے ردونه کړیدی۔ ذکر مفرد دے ته وائی چه صرف الله، الله کوی یا هو هو کوی، دا قرآن او حدیث کښې نشته صرف صوفیانو د ځان نه جوړ کړیدے، بدعت دے، سبحان الله، الحمد لله دا قسم اذکار کول پکار دی، او ددے زیات تفصیل په مجموع الفتاوی د ابن تیمیهؒ او فتاوی الدین الخالص (۲) کښې وګوره۔

او دلته (الله) کلمه فاعل د (اَنْزَلَ) دے یا مبتداء ده او (اَنْزَلَهَا) ئے خبر دے۔

ثُمَّ ذَرْهُمْ : هر كله چه الله تعالىٰ حجت قائم كړو نو خپل رسول ته ئے حكم وكړو چه دوى د خپلو باطلو عقائدو او اعمالو په تيارهٔ كښې حيران پريده، پدے كښې دهمكى پرته ده۔

| |
|---|
| وَهٰذَا كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ مُبٰرَكٌ مُّصَدِّقُ الَّذِىْ |
| او دا كتاب دے نازل كړيدے مونږه، بركت والا دے، تصديق كونكے دے د هغه كتابونو |
| بَيْنَ يَدَيْهِ وَلِتُنْذِرَ اُمَّ الْقُرٰى وَمَنْ |
| چه مخكښې ددهٔ نه دى، او دے دپاره چه ويروے تهٔ اصل د كلو (مكے) والا او هغه څوك |
| حَوْلَهَا ۭ وَالَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ |
| چه چاپيره دى ددينه، او هغه كسان چه ايمان په آخرت لرى ايمان لرى پدے كتاب |
| وَهُمْ عَلٰى صَلَاتِهِمْ يُحَافِظُوْنَ ﴿۹۲﴾ |
| او دوى په مونځونو خپلو ساتنه كوى۔ |

**تفسير** : د تورات د صفت نه روستو د قرآن كريم صفت راوړى، او پدے كښې اشاره ده چه لكه څنګه چه الله تعالىٰ تورات د توحيد د حقانيت دپاره راليږلے وو، نو دغه شان قرآن ئے هم راليږلے دے، نو چه هغه منئ نو دا هم اُومنئ، او دا د الله تعالىٰ زاړهٔ سنت راروان دى چه هغه انسانانو ته كتابونه راليږى۔ نو پدے آيت كښې د قرآن كريم عظمت او صدق ذكر دے په پنځه صفاتو سره چه يو عظيم كتاب دے، (اَنْزَلْنٰهُ) الله راليږلے دے، مبارك دے (هر قسم خيرونه پكښې دى)، تصديق د مخكنو آسمانى كتابونو كوى۔

كِتٰبٌ : كښې تنوين د تعظيم دے۔ يعنى لوئى كتاب دے۔

مُبٰرَكٌ : قرآن كريم كښې ظاهرى بركات هم شته چه ددے په لوستلو سره شفاء د مرضونو ملاويږى۔ او باطنى بركات ئے دا دى چه پدے كتاب كښې الله تعالىٰ هر قسم احكام او اعمال او اخلاق ذكر كړيدى، نو ظاهر كښې يو كتاب ښكارى او په مينځ كښې د ټول عالَم د ضرورياتو د حل كولو لاره ده۔ هر فن او هر علم والا چه د كوم علم تحقيق كوى نو د قرآن نه پكښې استفاده كوى۔ او دنياوى او اُخروى فائدے پكښې دى، ددے په لوستو سره په بدن كښې هم بركت راځى، او انسان پرے په نورو خلكو باندے پورته كيږى او عزت ئے زياتيږى۔

**فائده:** که یو لاکهـ علماؤ تـه مختلف موضوعات په دیني او دنیاوي مسائلو کښې ورکړے شي او هغوي ته ووئیل شي چه تاسو خپله موضوع د قرآن نه ثابته کړئ نو ټول موضوعات به په قرآن کریم کښې وموندل شي۔ وبالله التوفیق۔

وَلِتُنذِرَ أُمَّ الْقُرَىٰ : یعني دے دپاره راغلے دے چه مکے والا او دغه شان د هغے ماحول -چه ټول عالَم دے ځکه چه مکه د دنیا مینځ دے- دوي پرے وېرولے شي او د الله د مخالفتونو نه بچ شي۔ او دا انذار به کله بالذات وي لکه صحابه کرام او قریشو ته شویدے او کله بالواسطه چه د صحابه کرامؓ او د امت د علماؤ په واسطه سره ئے ټول امت یرولے دے۔

مکے مکرمے ته ام القرئ پدے وجه وئیلے شویده چه هلته دا اولنے کور دے چه د انسانانو دپاره د الله په حکم سره جوړ شویدے، او د ټول جهان قبله او د حج ځاي دے۔

او دا دلیل دے چه رسول الله ﷺ د ټول عالَم نبي دے۔ په صحیحینو کښې د جابر بن عبد الله ؓ نه روایت شویدے چه نبي کریم ﷺ وفرمایل: «هر نبي به خپل قوم ته په خاص توګه رالیږلے کیدو، او زهٔ ټولو انسانانو ته رالیږلے شوے یم»۔ (بخاري: ۳۳۵) ومسلم (۱۱۹۱)

وَالَّذِينَ يُؤْمِنُونَ : پدے کښې د قرآن کریم اهل بیانوي چه څوك ایمان په آخرت لري او د مانځه پابندي کوي، دا د قرآن اهل دي۔

د قرآن کریم او د آخرت خپل مینځ کښې ډیر جوخت تعلق دے او ددے وجه دا ده چه کله یو تن د آخرت د عذابونو نه یریږي نو هغه ګرځي چه کوم شے به وي چه ما به د آخرت د عذابونو نه بچ کړي، نو کله چه قرآن واوري چه پدے کښې د آخرت د عذابونو نه د بچاؤ اسباب ذکر دي، نو هغه دے پورے کلك ونښلي چه پدے کښې خو زما مقصد ملاؤ شو بیا ئے د قرآن سره ډیره مینه پیدا شي، او دغه شان څوك چه د قرآن سره تعلق لري نو د هغه به د آخرت نه ډیره یره وي ځکه چه د آخرت عذابونه خو قرآن بیانوي۔

وَهُمْ عَلَىٰ صَلَاتِهِمْ يُحَافِظُونَ : یعني یو تن کښې چه کله په آخرت باندے یقین راشي او د قرآن سره ئے تعلق پیدا شي، نو په دهٔ کښې عملي تبدیلي هم پیدا شي هغه دا چه د مانځه سخت پابند شي ځکه چه مونځ هغه سبب دے چه انسان په آخرت کښې د عذابونو نه بچ ساتي۔ او مونځ د الله په نیز ډیر لوي عمل دے پدے وجه دا ډیر ذکر کوي۔ او مونځ نښه د ایمان ده۔

محافظت نه مراد د هغے لحاظ ساتل په خشوع او خضوع سره او په هغے باندے پابندي کول دي۔ او ددے نه دا معلومه شوه چه څوك صحیح طریقے سره مونځ کوي او ددے

پابندی کوی نو دا د قرآن کریم صحیح اهل دی، او چه څوك د مانځه پرواه نهٔ کوی او مونځونه پریدی نو دا نهٔ د قرآن اهل دی او نهٔ د آخرت صحیح منونکی دی۔

**فائده:** دلته بعض مُلیان د صَلَاتِهِمْ نه مراد بلنه اخلی یعنی بلنه د الله کوی نهٔ د غیر الله۔ دا معنیٰ دلته غلطه ده، تحریف دی او د مرجئو تفسیر دی۔

| |
|---|
| وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَوْ قَالَ اُوْحِيَ |
| او څوك دی لوئی ظالم د هغه چا نه چه جوړوی په الله باندی دروغ یا وائی وحی کړے شویده |
| اِلَيَّ وَلَمْ يُوْحَ اِلَيْهِ شَيْءٌ وَّمَنْ قَالَ سَاُنْزِلُ |
| ما ته او وحی نهٔ وی شوی هغه ته د هیڅ شی، او هغه څوك چه وائی زر دی چه نازل به کړم |
| مِثْلَ مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ ۭ وَلَوْ تَرٰٓى اِذِ الظّٰلِمُوْنَ فِيْ |
| په شان د هغے کتاب چه راليږلے دے الله تعالیٰ، او که وینے ته هغه وخت چه ظالمان به په |
| غَمَرٰتِ الْمَوْتِ وَالْمَلٰٓئِكَةُ بَاسِطُوْٓا اَيْدِيْهِمْ ۚ اَخْرِجُوْٓا |
| سختو د مرګ کښې وی او ملائك به اوږدونکی وی لاسونه خپل (وائی به) راوباسئ |
| اَنْفُسَكُمْ ۭ اَلْيَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُوْنِ بِمَا |
| ساه ګانے خپلے، نن ورځ بدله درکولے شی تاسو ته په عذاب د ذلت سره په سبب د هغے |
| كُنْتُمْ تَقُوْلُوْنَ عَلَى اللّٰهِ غَيْرَ الْحَقِّ وَكُنْتُمْ عَنْ اٰيٰتِهٖ تَسْتَكْبِرُوْنَ ﴿۹۳﴾ |
| چه جوړول تاسو په الله باندی ناحقه (د شرك او بدعت) خبرے او وئ تاسو چه د آیتونو د هغه نه مو لوئی کوله۔ |

**تفسیر:** پدے آیت کښې درے قسمه خلکو ته زورنه ورکړے شویده او هغوی ته ئے لوی ظالمان وئیلی دی، اول هغه خلك چه په الله باندے دروغ وائی او د هغه سره شریکان جوړوی او د اولادو نسبت ورته کوی، یا د خپل خان نه حلال حرام احکام جوړ وی۔ او دویم هغه خلق چه د نبوت د دروغو دعوے کوی، او وائی چه په مونږ باندے د الله د طرف نه وحی نازلیږی۔ لکه پدے امت کښې دغه شان ګنده خلك تیر شویدی لکه مختار بن ابی عبید الثقفی، اسود عَنْسِی، مُسَیلمة الکذاب، سَجَاح چه یوه تمیمیه ښځه وه، طلیحة

الاسدی، متنبیؔ، مرزا غلام احمد قادیانی۔ او پدے کښې اشاره ده دے ته چه محمد رسول الله ﷺ په خپلو خبرو او دعوو کښې دروغژن نهٔ دے، که دهٔ ته وحی نهٔ وے شوے او دهٔ دعوه کړے وے نو دا به په ظالمانو کښې شمار شوے وے او ظالمانو سره د الله تعالیٰ مدد نهٔ وی بلکه هغوی زر تر زره هلاکوی نو هر کله چه الله تعالیٰ خپل نبی ته وخت په وخت غلبه او نصرت ورکوی معلومیږی چه د الله تعالیٰ حق رسول دے۔

وَّمَنْ قَالَ سَاُنْزِلُ : اَیْ مِنْ مُّتْجِیْ۔ او دریم هغه خلق چه دعوی کوی چه دوی د قرآن په شان کلام پیش کولے شی۔ یعنی د خپلو دماغو نه ئے راکوزولے شم۔ لکه دا خبره بعض مشرکانو کړے وه په سورة الانفال (۳۱) آیت کښې راځی چه دا رسول الله ﷺ وزګار دے بل کار ئے نشته ځکه داسے کتاب جوړوی ﴿لَوْ نَشَآءُ لَقُلْنَا مِثْلَ هٰذَآ﴾ که مونږ وغواړو مونږ به هم داسے کتاب ووایو۔ لیکن مونږ دومره وزګار نهٔ وو، دوی د جوړه ولو نه عاجز وو نو دا بهانه ئے وکړه، دا د باطل پرستو طریقه وی۔

وَلَوْ تَرٰٓی اِذِ الظّٰلِمُوْنَ : اُوس د هغوی د قبر او د مرګ حالت بیانوی۔

الظّٰلِمُوْنَ : په ظالمانو کښې دغه درے قسمه خلك داخل دی، او قرطبیؔ وئیلی دی چه پدے کښې هغه صوفیاء هم داخل دی چه د قرآن او سنت او د طریقے د سلف صالحینو نه اعراض کوی او دا وائی چه ما ته خپل زړه دا وویل او ما ته خپل زړه خبر راکړو (احکام شرعیه په زړه سره معلوموی) او دا وائیؔ چه زمونږ زړونه د خیرو نه صفا دی پدے وجه علوم الٰهیه او حقائق ربانیه پدے باندے نازلیږی نو دوی د کُلیاتو په رازونو او په احکامو د جزئیاتو باندے پوهیږی او پدے سره د احکام شرعیه ؤ نه مستغنی کیږی او دا وائی چه دا احکام خو د عوامو دپاره دی او خواص دے نصوصو ته محتاج نهٔ دی، او دلیل نیسی په علم د خضر علیه السلام سره نو دا زندقت او کفر دے۔ آه۔

فِیْ غَمَرٰتِ الْمَوْتِ : اَیْ شَدَآئِدِ الْمَوْتِ۔ د مرګ سختیانی۔ غَمرة په اصل کښې د اُوبو ژوروالی ته وائی۔ کله چه انسان د اُوبو مینځ ته پریوځی نو ډیره سخته پړے راځی نو دلته ترے د مرګ سختیانی مراد دی، او دا د زنکدن حال دے۔

حافظ ابن کثیر رحمه الله لیکلی دی چه د کافرانو نه چه د روح وتلو وخت راځی او ملائك هغوی ته د اُور د عذاب او د رحمان د غضب خبر ورکوی، نو د هغوی روحونه به (په بدن کښې) اُوتختی، او د بهر وتلو نه به انکار کوی۔ ملائك به ئے وهی دے دپاره چه د دوی روحونه د دوی د جسمونو نه بهر اُوځی۔ په هغه وخت به ملائك وائی چه خپل روحونه :

خپلو جسمونو نه اُوباسئ، تاسو چه به د الله په باره کښې کومے ناحقه خبرے جوړولے نو نن ورځ به د هغې په بدله کښې تاسو ته د ذلت او رسوائی عذاب درکولے شی۔

بَاسِطُوْٓا اَيْدِيهِمْ : ۱- د هغوی د ارواحو د قبض کولو دپاره به ئے لاسونه اُوږده کړی وی۔ ۲- او د هغوی د وهلو دپاره۔ لکه سورة الانفال (۵۰) آیت کښې دی :

﴿وَلَوْ تَرٰٓى اِذْ يَتَوَفَّى الَّذِيْنَ كَفَرُوا الْمَلٰٓئِكَةُ يَضْرِبُوْنَ وُجُوْهَهُمْ وَاَدْبَارَهُمْ﴾

(او که ته ووینے هغه حال چه کافرانو لره ملائك وفات کوی چه د دوی مخونه او شاګانے به وهی) او داسے به ئے راکاږی لکه کونډه چه د لمدے وړئ نه راښکلے شی۔ او سورة محمد (۲۷) آیت کښې هم دی۔

اَخْرِجُوْٓا اَنْفُسَكُمْ : یعنی په وخت د مرګ کښې به روح ته ملائك آواز وکړی چه اے خبیث روحه ! راوځه د الله غضب ته چه هغه دریاندے سخت غصه او ناراضه دے نو هغه په بدن کښې وتښتی۔ یا معنیٰ دا ده : [خَلِّصُوْهَا مِنَ الْعَذَابِ اِنْ اَمْكَنَكُمْ] (قرطبیؒ) خپل روحونه د عذاب نه اُوباسئ که دا مو په وس کښې وی) او دا امر د توبیخ او تهکم دپاره دے۔

او اُخْرِجُوْهَا مِمَّا هِيَ فِيْهِ اِنِ اسْتَطَعْتُمْ] (المنان)۔

دا چه په کوم حال د تکلیف کښې دی ددے نه ئے وباسئ که وس مو وی۔

اَلْيَوْمَ : ددے نه مراد یا برزخ دے، یا عذاب د محشر دے۔

الْهُوْنِ : سپکونکے عذاب ځکه چه د دوی دا درے واړه دعوے د تکبر د وجه نه وے۔

غَيْرَ الْحَقِّ : دا اول دواړه قسمونو ته راجع دے او (وَكُنْتُمْ عَنْ آيٰتِهٖ) دریم قسم ته راجع دے۔

| وَلَقَدْ جِئْتُمُوْنَا فُرَادٰى كَمَا خَلَقْنٰكُمْ |
|---|
| او یقیناً راغلئ تاسو مونږ ته یواځے لکه څنګه چه پیدا کړی وئ مونږ تاسو |
| اَوَّلَ مَرَّةٍ وَّتَرَكْتُمْ مَّا خَوَّلْنٰكُمْ وَرَآءَ ظُهُوْرِكُمْ ج |
| اول ځل او پریخودو تاسو هغه چه درکړے وو مونږ تاسو ته روستو د شاګانو ستاسو نه |
| وَمَا نَرٰى مَعَكُمْ شُفَعَآءَكُمُ الَّذِيْنَ زَعَمْتُمْ |
| او نه وینو مونږ تاسو سره سفارشیان ستاسو هغه چه تاسو پرے ګمان کولو |

| أَنَّهُمْ فِيكُمْ شُرَكَٰٓؤُا ۚ لَقَد تَّقَطَّعَ بَيْنَكُمْ |
|---|
| چه بیشکه دوی ستاسو (په مال او اولاد) کې شریکان دي، یقیناً پریکړې شو تعلق ستاسو ترمینځ |
| وَضَلَّ عَنكُم مَّا كُنتُمْ تَزْعُمُونَ ﴿٩٤﴾ |
| او ورك شو ستاسو نه هغه څه چه تاسو به ګمان کولو۔ |

**تفسير**: سوال پیدا شو چه زمونږ معبودان شته هغوی به زمونږ سفارش کوی، او هغوی به مو د عذابونو نه خلاصوی؟ نو الله به ورته په برزخ کښې بیا په قیامت کښې وائی چه تاسو ته هیڅ أنداد او شریکان فائده نشی درکولې بلکه تن تنها ما ته راغلئ، نو نۀ به دوی سره مال وی، نۀ به اولاد، او نۀ به هغه بتان او د دوی د دروغو معبودان وی چه دوی به هغه سفارشیان ګنړل۔ د پیدائش په وخت کښې چه د دوی کوم حالت وو په همغه حالت کښې به راپورته کولې شی۔ ابن جریر طبرئ د عائشې رضی الله عنها نه روایت کړیدے چه هغوی کله دا آیت اُولوستلو نو وے وئیل اے د الله رسوله! څنګه د شرم خبره به وی چه په میدان محشر کښې به سړی او ښځې د یو بل عورتونو ته ګوری؟ نو رسول الله ﷺ اُوفرمایل چه په هغه ورځ به هر سړے په خپل حال کښې ورك وی، هیڅوك به هیچا ته نۀ ګوری۔ او پوره حدیث په صحیحینو کښې راغلے دے۔ (بخاری: ٦٥٢٧ ومسلم: ٧٣٧٧)

وَلَقَدْ جِئْتُمُونَا : أَیْ یُقَالُ لَهُمْ۔ یعنی دوی ته به وئیلے شی۔ او دا وینا به ورته په برزخ او په قیامت کښې کیږی۔

فُرَادٰی : أَیْ عَنِ الْأَمْوَالِ وَعَنِ الْأَنْدَادِ۔ یعنی نۀ تاسو سره مالونه شته او نۀ شریکان۔

مَّا خَوَّلْنٰکُمْ : یعنی کوم نعمتونه مے چه دنیا کښې درکړی وو هغه تاسو په دنیا کښې پریخودل، درنه پاتې شول په کوم باندے چه به تاسو نازیدئ او تکبر به مو کولو۔ لکه مالونه، اولاد، خادمان او عهدے وغیره۔

وَمَا نَرٰی مَعَکُمْ شُفَعَآءَ کُمْ : یعنی ستاسو دا ګمان وو چه دوی دپاره چه مونږ کوم عبادت او نذر او منښتے کوو نو پدے نیت چه دوی به زمونږ سفارش کوی؟

مشرکانو خو آخرت نۀ منلو؟ مګر د هغوی دوه حالته وو، یو دا چه دوی به وئیل چه که بالفرض قیامت راشی لکه څنګه ئے چه خلك وائی (خپله ئے پرے یقین نۀ وو) نو دا معبودان به زمونږ دپاره سفارش کوی، او د عذابونو نه به مو خلاصوی، دویم دوی د دنیا

په امورو کښې شفعاء (سفارشیان) نیولی وو لکه ﴿هٰؤُلَاءِ شُفَعَاؤُنَا عِنْدَ اللّٰهِ﴾ مطلب هم دا دے چه دوی په دنیاوی کارونو کښې زمونږ الله ته سفارش کوی ځکه چه مشرکانو سره د آخرت غم نهٔ وی بلکه کوم شرك چه کوی دا هم د دنیا دپاره کوی، یو مشرك به هم چرته یو بابا ته ددے دپاره نهٔ وی ورغلے چه هغه ته ووائی چه زهٔ دے له راغلے یم چه ما ته د تهجدو توفیق راکره، یا دا چه آخرت مے ښه شی او جنت ته لاړ شم، بلکه د ښځو او بچو دپاره او د نارینه اولاد دپاره او د دنیا مال زیاتوالی او د مرض ښه کیدو او د دشمن غلبے دپاره ورځی۔

او د آیت مطلب دا دے چه نهٔ ستاسو مالی طاقت شته او نهٔ شرکی (د معبودانو) طاقت۔

اَنَّهُمْ فِيْكُمْ شُرَكٰٓؤُا : یعنی دوی ستاسو په مال او اولاد کښې شریکان دی۔

لَقَدْ تَّقَطَّعَ بَيْنَكُمْ : د تقطع دپاره فاعل مصدر ددے فعل دے۔ اَیْ وَقَعَ التَّقَطُّعُ بَیْنَکُمْ۔

یعنی ستاسو ترمینځ جدائی راغله. او په یو قراءت کښې بَیْنُکُمْ په رفع (پیش) د نون سره فاعل د تقطع دے او بین په معنیٰ د وصلت او تواصل (یوځای والی) سره دے۔ (بغوی ۱۷۰/۳) یعنی تاسو خو د خپلو آلهو سره انبتی وئ خو اُوس درنه هغه جدا شو۔ د بینکم نه مراد د محبت او د نذر او منبتے او د پیریٔ مریدیٔ تعلقات دی۔

| اِنَّ اللّٰهَ فَالِقُ الْحَبِّ وَالنَّوٰى ؕ يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَمُخْرِجُ الْمَيِّتِ |
| --- |
| یقیناً الله چونکے د دانو او اَدوکو دے راوباسی ژوندے د مړی نه او ویستونکے د مړی دے |
| مِنَ الْحَيِّ ؕ ذٰلِكُمُ اللّٰهُ فَاَنّٰى تُؤْفَكُوْنَ ﴿۹۵﴾ |
| د ژوندی نه دا (صفتونو والا) الله دے نو کوم طرف ته گرځولے شئ تاسو۔ |

**تفسیر** : ربط : د مشرکانو په شرك دلیل نشته نو د الله په توحید دلیلونه بیانوی۔ دا عقلی دلیلونه دی او دا نعمتونه هم دی، او پدے باندے الله تعالیٰ ډیر خیزونه ثابتوی لکه ددے بیان په سورة البقره آیت (۲۲) کښې ذکر شویدے۔ دلته پکښې یو مقصد بیان د معرفت د الله تعالیٰ دے۔ نو پدے کښې بیان د عظمة د الله تعالیٰ او د هغه د کمال او د هغه د لطف او احسان او حکمة دے، لکه دا د قرآن طریقه ده چه د شرك رد وکړی نو د الله عظمت بیانوی۔ اوبل مقصد پکښې رد د شرك دے لکه روستو ئے تفریع د رد د شرك په طریقه کړیده۔ او کله پکښې مقصد جلب (راخکل) د عبادت د بندگانو وی چه ددے نعمتونو په مقابله کښې د الله بندگی وکړی، لکه دلته په دا مقصد هم راځی۔ (ذٰلِکُمُ اللّٰهُ رَبُّکُمْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا

هُوَ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ فَاعْبُدُوْهُ) - ځکه چه یو تن الله ویېژنی او دا ویېژنی چه هغه مستحق د عبادت دے، او بیا ورله بندګی نهٔ کوی نو دا نیمګړے شخص دے لکه یو تن تجارت او ګټه پیژندلے ده لیکن ګوټے نهٔ وروړی۔ او پدے کښې به مقصد اثبات د بعث بعد الموت هم وی۔

فَالِقُ الْحَبِّ : فالق د فَلَق نه دے اصل معنیٰ ئے ده چوول، څیری کول۔ او حاصل معنیٰ ئے ده خالق۔ (زاد المسیر)

اَلْحَبِّ : جمع د حَبَّةٌ ده، یعنی دانے۔

وَالنَّوٰی : جمع د نَوَاةٌ ده، زړی او هډوکی نه وانی۔

یعنی الله تعالیٰ په زمکه کښې دانے اُوچوی نو تازه تیغ، او د کجورے هډوکے اُوچوی نو تازه ونه راوباسی۔ د هغه د قدرت کاریګریٔ ته اُوګوره چه د مړی نه ژوندے راوباسی لکه د نطفے نه حیوان او د اُوچے دانے نه سرسبز او تازه ګل راوباسی۔ او د ژوندی نه مړے راوباسی یعنی د حیوان نه د هغه نطفه، یا انډه، او د بوټی نه دانه راوباسی۔ دا هر څه الله کوی، چه د عظیم الشان قدرتونو مالك او د عبادت د تمامو قسمونو تنها مستحق دے۔ بیا دا څنګه عجیبه خبره ده چه انسان د هغه لوی ذات په ځای د بل چا عبادت کوی۔

وَمُخْرِجُ : ئے صیغه د اسم فاعل راوړه دا خو یا عطف دے په (فالق) باندے ځکه چه (يُخْرِجُ الْحَيَّ) آه د (فَالِقُ) تفسیر وو، او مُخْرِجِ د (فالق) تفسیر نهٔ وو پدے وجه ئے دا په صیغه د اسم فاعل سره ذکر کړو، یا دا عطف دے په (يُخْرِجُ) باندے ځکه چه اسم فاعل مشابه دے د فعل مضارع سره، مګر هرکله چه حی اشرف وو د میت نه نو هغه ئے په لفظ د فعل سره ذکر کړو چه دلالت کوی په اهتمام د فاعل باندے۔ (الرازی واحسن الکلام)

یا راویستل د ژوندی د مړی نه په اول نظر کښې زر ښکاره کیږی، او اول په قدرت کښې د دویم نه ډیر ښکاره دے نو ددے وجه نه هغه لائق وو چه د هغے تصور وکړے شی او مقدم کړے شی لکه چه پدے تصویر باندے فعل مضارع دلالت کوی۔ (المنار)

اَلْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ : د اهل لغتو په نیز کوم شے چه نامی (غټیدونکے) وی هغه په منزله د حی (ژوندی) دے او کوم چه نامی نهٔ دے په منزله د میت دے، نو دے کښې داسے هم ونیلے شی چه تازه ګیاه (بوټی) د اُوچے دانے نه او وچه دانه د بوټی نه راوباسی۔ یا ژوندے انسان او حیوان د مړے نطفے یا هګۍ نه او مړه نطفه او هګۍ د ژوندی انسان او حیوان نه راوباسی۔ (قرطبیٓ)

یا معنوی حیاة او موت مراد دے یعنی مؤمن د مشرك نه او مشرك د مؤمن نه، نبی او

عالم د غير نبي او جاهل نه راوياسي۔
ذٰلِكُمُ اللّٰهُ : يعني د دغه كارونو كونكے خو صرف الله تعالىٰ دے، بل بابا او ولي او بزرگ او بت او معبود نشته چه دا كارونه وكړي۔ او دلته علامه قاسميؒ د دانو او د ميوه جاتو او هر قسم بوټو په راوتو كښې د الله د قدرت ډير دلائل او عجيب رازونه ليكلي دي كه د طوالت نه يره نۀ وے نو مونږ به نقل كړي وے، شوق لرونكے دِے هغے ته رجوع وكړي۔
فَاَنّٰى تُؤْفَكُوْنَ : افك كښې معنىٰ د دروغو ده يعني كومو دروغو طرفته اړولے شئ د الله د توحيد او د هغه د بندگئ او د هغه د ايمان بالبعث نه۔ (ابوحيان في البحر المحيط)

| فَالِقُ الْاِصْبَاحِ ۚ وَجَعَلَ الَّيْلَ سَكَنًا وَّالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ |
| --- |
| چونكے د صبا دے او كرځولے ئے ده شپه آرام والا او نمر او سپوږمئ |
| حُسْبَانًا ۭ ذٰلِكَ تَقْدِيْرُ الْعَزِيْزِ الْعَلِيْمِ ﴿٩٦﴾ |
| دپاره د حساب، دا اندازه د غالب ذات ده چه پو هه دے |

**تفسير** : مخكښې د زمكے احوال دليل وو اوس آسماني احوالو سره دليل بيانوي۔
فالق الاصباح : دلته مضاف حذف دے [اَيْ فَالِقُ ظُلْمَةِ الْاِصْبَاحِ]۔ يعني چونكے د تيارے دے د صباح نه خكه چه تيارۀ چوي او د هغے نه صبا راوخي۔ يا داسے تعبير دے : [فَالِقُ ظُلْمَةِ اللَّيْلِ بِالْاِصْبَاحِ] ۔ چونكے د تيارہ د شپے دے په صبا ښكاره كولو سره، نو دلته به اصباح په معنىٰ د مصدر سره وي۔ يا فالق په معنىٰ د مُظهر سره دے يعني راښكاره كونكے د صباح دے۔ او چونكه فلق (يعني چول) سبب د اظهار وو نو پدے وجه ئے د فلق لفظ ذكر كړو۔ (البحر المحيط)
الاصباح او صباح او صبح درے واړه يوه معنىٰ ده، ابتداء او شروع د ورځے (يعني صبا) ته وائي۔ (ليثؒ، زجاجؒ، فراءؒ– ابوحيانؒ) مجاهدؒ وائي : اصباح : د فجر رڼا ته وائي۔
او دا هم د الله عجيب قدرت دے چه سمدست رڼا نۀ راكاږي او نۀ سمدست تياره راولي خكه چه پدے سره په نفسونو باندے بوج راخي بلكه په آرام سره د يوے پرده د بل نه جدا كړي، پدے كښې د بندگانو دپاره فائدے دي۔ اول الله تعالىٰ صبا كاذب راوخيژوي چه هغه د ذَنَبُ السِّرْحَان (د شرمخ د لكئ په شان وي) بيا وروستو صبا صادق راوخيژي چه هغه د سهار د مانځه وخت وي۔

وَجَعَلَ الَّيْلَ سَكَنًا : شپه کښې دوه قسمه سکون وی، یو دا چه په هغې کښې خوب وکړے شی نو بدن نه چه کوم تحلیل شوے وی هغه په خوب سره بدن ته بیرته راواپس شی څکه چه دماغ پکښې بند شی نو صحت ئے برابر شی۔ او دے کښې سکون باطنی هم شته څکه چه د عامے دنیا شر شور ختم شی، او دماغ په آرام شی، کارونه شا ته شی، او بیا پکښې بندګی د الله تعالیٰ بیل سکون دے۔

حُسْبَانًا : ۱-لِلْحِسَابِ الْمُقَرَّرِ، (اَیْ لِاَجَلٍ مُّسَمًّى) یعنی ګرځی دوی په حساب مقرر سره چه هغه یوه خاص نیټه ده چه د هغے نه پس به قیامت وی۔ نو حسبانا د حساب په شان د مصدر صیغه شوه۔ (بغوی) ۲- یا دپاره د حساب د ورځو او میاشتو او کلونو۔

۳- یا دپاره د ویشتو د شیطانانو (رُجُوْمًا لِلشَّيَاطِيْنِ)۔ لیکن دا ئے حاصل معنیٰ ده۔

ذٰلِكَ تَقْدِيْرُ الْعَزِيْزِ الْعَلِيْمِ : پدے کښې اشاره ده چه دا تقدیر هیڅوك نشی بدلولے۔ او اشاره ده چه دا خپله په طبیعت او خاصیت سره نه دی پیدا شوی بلکه دا یو فاعل مختار پیدا کړیدی۔ (ابوحیان)

العزیز کښې اشاره ده چه دا هیڅ شے د هغه نه سر نشی اړولے، او علیم کښې اشاره ده چه الله تعالیٰ ددے په احوالو باندے هم عالِم دے۔

| وَهُوَ الَّذِىْ جَعَلَ لَكُمُ النُّجُوْمَ لِتَهْتَدُوْا بِهَا فِىْ ظُلُمٰتِ |
| --- |
| او الله هغه ذات دے چه ګرځولی ئے دی تاسو له ستوری چه لار موندهٔ کړئ پدے سره په تیارو |
| الْبَرِّ وَالْبَحْرِ ۚ قَدْ فَصَّلْنَا الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ﴿۹۷﴾ |
| د وچه او د دریاب کښې یقیناً په تفصیل سره بیان کړیدی مونږ دلیلونه هغه قوم لره چه پو هیږی |

**تفسیر** : دا بل عقلی دلیل دے۔

لِتَهْتَدُوْا بِهَا : د هدایت نه لغوی معنیٰ هم مراد ده (چه تاسو لارے مونده کړئ او معلومے کړئ پدے سره) یعنی د ستورو د وجه نه خلکو ته (او خاصکر عربو ته) په کشتو کښې لارے معلومیږی، او په وچه کښې هم کله انسان ګډوډ شی نو ستورو ته په کتو سره هغه معلوموی، او پخوانی خلك پدے ډیر ښه پو هیدل، پدے سره به ئے اَوقات د شپے، یا د کال معلومول، او مشرق او مغرب او جنوب او شمال او سمتِ قبله به ئے د ستورو نه معلومول۔ او پدے کښې د ستورو یوه فائده ذکر ده، او دوه نورے فائدے هم شته چه هغه د

آسمان زینت او د شیطانانو ویشتل دی کوم چه آسمانونو کښې ملائکو ته غوږ اږدی لکه په سورة الملك (٥) آیت کښې ذکر دی۔

علامه شوکانیؒ وائی که ددې درې فائدو نه علاوه څوك د ستورو په باره کښې د بلې کومې خبرې عقیده لري نو هغه به په الله تعالیٰ باندې روغ جوړوی۔

**فائده** : صاحب المنار د علماء الهیئة نه نقل کړیدی چه په آسمان کښې ستوري د شمار نه بهر دی او په ملیارونو دی مګر علماؤ هغه معلوم کړیدی کوم چه زمکې ته نزدې دی او زمونږ د نمر په شان رڼړا والا دی، دې دپاره چه پدې سره زمونږ د رب د علم او د بادشاهئ فراخي معلومه شي، هغه وئیلي دی چه د نور (رڼړا) رفتار د زمانې په اعتبار سره په یوه ثانیه (سیکنډ) کښې ( 86000) شپږ اتیا زره میله دې او په یو منټ کښې ( 51600000) پنځوس کروړه شپاړس لاکه میله، او په یو کال کښې ( 6000000000000) شپیته کرړه میله دې او په رصد سره دا خبره موندلې شویده چه مونږ ته چه کوم ستوري ډیر نزدې دی نو د هغې رڼړا مونږ ته په څلور نیم کاله کښې رارسیږي نو دغه ستوري زمونږ نه په څلور نیم نوري کلونو وړاندې دی۔ او بعض ستوري داسې دی چه د هغې رڼړا مونږ ته زر کاله یا ددې نه زیات کښې رارسیږي نو هغه ستورې چه د هغې نوم (النسر الواقع) دې د هغه رڼړا مونږ ته په دیرش کاله کښې رارسیږي ځکه چه د هغه وړاندې والې (180000000000000) میله دې، او د (السماك الرامح) ستوري رڼړا مونږ ته تقریباً په پنځوس کاله کښې رارسیږي ځکه چه هغه زمونږ نه ( 300000000000000) میله وړاندې دې او شعریٰ ستورې چه دا په کښې ډیرې رڼړا والا دې، دا زمونږ نه نهه نُوري کاله وړاندې دې او (اَلْعَیُوْق) ستورې زمونږ نه (۳۲) کاله وړاندې دې۔

پدې وجه ئې د آیت په تتمه کښې (لِقَوْمٍ یَّعْلَمُوْنَ) ذکر کړو چه پدې کښې ډیرو علمونو ته اشارې دی۔ (تفسیر المنار۷/۵۳۲)

| وَهُوَ الَّذِیْٓ اَنْشَاَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ فَمُسْتَقَرٌّ وَّ |
| --- |
| او الله هغه ذات دې چه تاسو ئې پیدا کړي یئ د نفس یو نه نو تاسو له ځای د وسیدو دې او |
| مُسْتَوْدَعٌ قَدْ فَصَّلْنَا الْاٰیٰتِ لِقَوْمٍ یَّفْقَهُوْنَ ﴿۹۸﴾ |
| ځای د امانت (قبر) یقیناً په تفصیل سره بیان کړیدی مونږ دلیلونه هغه قوم له چه پو هیږي۔ |

**تفسیر** : دا بل عقلی اَنْفُسِی دلیل دے۔ یعنی الله تاسو د یو نفس آدم ﷺ نه پیدا کړیٔ بیا هغه ته ددے انسان د ځایونو معلومات شته چه دے به چرته وسیږی او چرته به آرام کوی۔ نو دا د الله د قدرت لویه نښه ده۔

د ټولو انسانانو د یو نفس نه پیدا کولو کښې د الله د قدرت او د هغه په علم او حکمة او وحدانیت باندے ډیر ښکاره دلیلونه دی، او ددے په ذکر کولو کښې دا رهنمائی ده چه د هغه د نعمتونو شکر واجب دے، او یو بل پیژندل او یو بل سره مینه او تعاون کولو طرفته ترغیب دے او دے ته اشاره ده چه د دوی ډلو او قبیلو ته تقسیمول سبب د دشمنیٔ او د جګړو نهٔ دے۔ (المنار)

**فَمُسْتَقَرٌّ** : ددے خبر پټ دے اَیْ فَلَکُمْ مُسْتَقَرٌّ وَّمُسْتَوْدَعٌ) نو ستاسو دپاره ځای د قراری او ځای د امانت شته۔

## د مستقر او مستودع فرقونه

۱– مستقر (ځای د قراریٔ او وسیدو) په دنیا کښې دے لکه بقره کښې تیر شوی وو ﴿وَلَکُمْ فِی الْاَرْضِ مُسْتَقَرٌّ﴾۔ او مستودع په قبر کښې دے، ځکه قبر د انسان دپاره د امانت ځای دے۔ لکه دا د ﴿وَاللّٰهُ یَعْلَمُ مُتَقَلَّبَکُمْ وَمَثْوَاکُمْ﴾ (محمد :۱۹) په شان دے۔ او دا صاحب المنارؒ د ابن مسعودؓ نه نقل کړیدے۔ یعنی بعض نفسونه دنیا کښې وسیدونکی دی او بعض نفسونه په قبر کښې امانت کیخودلے شویدی۔

۲– مُسْتَقَرٌّ فِی الْاَرْحَامِ وَمُسْتَوْدَعٌ فِی الْقَبْرِ ۔ یعنی په رَحِم کښې وسیدل او په قبر کښې کیخودل۔ دا هم الله تعالیٰ ته معلوم دی۔ (قاله ابن مسعود ﷺ)

۳– مُسْتَقَرٌّ فِیْ اَصْلَابِ الآبَاءِ وَمُسْتَوْدَعٌ فِیْ اَرْحَامِ الْاُمَّهَاتِ ۔ بعض قراری والا وی په شاګانو د پلارانو کښې او بعض کیخودلے شوی وی په رحمونو د میندو کښې۔

٤– مستقر : کوم ځای چه د شپے پناهی حاصلوی او مستودع : کوم ځای چه مری۔ (زاد المسیر، والمنار)

۵– مستقر : هغه دے چه ډیره موده پورے ژوندے وی او مستودع هغه دے چه پیدائش سره زر وفات شی۔ اَیْ فَمِنْهَا ذُوْ اسْتِقْرَارٍ وَذُوْ اسْتِیْدَاعٍ۔ (المنار)

یعنی بعض نفسونه قرارے نیونکی وی ډیرے مودے پورے، او بعض هغه دی چه امانت کیخودے شی یعنی زر وفات شی۔

٦- صاحب المنارؒ وائي : د ټولو اقوالو د خلاصې نه روستو ما ته دا خبره ښکاره شویده چه د مستقر نه مراد روح دے (ځکه چه دا مذکر او مؤنث دواړه راځي) او مستودع بدن دے۔ او پدے جمله کښې ددے ټولو اقوالو ګنجائش شته۔ اول قول د نورو دلائلو په وجه راجح دے۔

**يَّفْقَهُوْنَ** : فقه ژور او باریك علم ته وائي لکه چه د یو شي په راز باندے پوهیدل نو پدے څیزونو کښې باریکي زیاته ده پدے وجه ئے دلته (يَفْقَهُوْنَ) ووئیل۔

امام راغبؒ وائي : اَلْفِقْهُ هُوَ التَّوَصُّلُ اِلٰى عِلْمٍ غَائِبٍ بِعِلْمٍ شَاهِدٍ فَهُوَ اَخَصُّ مِنَ الْعِلْمِ)۔

فقه : غائب علم ته په حاضر علم سره رسیدو ته وائي نو دا د علم نه خاص دے۔

| وَهُوَ الَّذِيْٓ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً ج فَاَخْرَجْنَا بِهٖ |
|---|
| او الله هغه ذات دے چه نازل کړی ئے دی د بره نه اُوبه نو راویستلے دی مونږ په هغے سره |
| نَبَاتَ كُلِّ شَيْءٍ فَاَخْرَجْنَا مِنْهُ خَضِرًا نُّخْرِجُ مِنْهُ حَبًّا |
| ګیاه د هر شي نو راویستلے دی مونږ د هغے نه شینکے، راوباسو مونږ د هغے نه دانے |
| مُّتَرَاكِبًا ج وَمِنَ النَّخْلِ مِنْ طَلْعِهَا قِنْوَانٌ دَانِيَةٌ وَّجَنّٰتٍ مِّنْ اَعْنَابٍ وَّ |
| لاندے باندے او د کجورو نه د کخوړو د هغے نه غونچکونه نزدے او باغونه د انګورو او |
| الزَّيْتُوْنَ وَالرُّمَّانَ مُشْتَبِهًا وَّغَيْرَ مُتَشَابِهٍ ط اُنْظُرُوْٓا |
| ښونه او انار چه یو شان دی (په پاڼو کښې) او نه دی یو شان (په میوه کښې)، وګورئ |
| اِلٰى ثَمَرِهٖٓ اِذَآ اَثْمَرَ وَيَنْعِهٖ ط اِنَّ فِيْ ذٰلِكُمْ |
| میوے د هغے ته کله چه میوه ونیسي او پخیدو د هغے ته، یقیناً پدے کښې |
| لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴿٩٩﴾ |
| خامخا ډیر دلیلونه دی هغه قوم لره چه ایمان لري۔ |

**تفسیر**: دا بل عقلي دلیل دے دیته وسطي دلیل وئیلے شي، او پدے کښې پنځه څیزونه د انسان د تربیت دپاره ذکر کیږي، حَب (دانے) دپاره د غذا، نخل دپاره د غذا او تفکه، اعناب دپاره د تفکه او د مشروباتو۔ زیتون دپاره د تیلو، انار دپاره د دوائي وغیره او دا د تربیت

اصول دی۔
د دلیل حاصل دا دے: الله تعالیٰ په مخلوقاتو باندے رحم کولو دپاره د وریځے نه اُوبه راوروی، په هغه اُوبو سره قسما قسم بوټی پیدا کوی، بیا هغه بوټی تازه او سرسبز ونه جوړوی، بیا په هغه ونو کښې د غونچکونو په شکل کښې ډیرے دانے پیدا کوی، لکه د غنمو او جوارو او وریژو غونچکونه۔ او د کجورو په ونو کښې کسورے پیدا کوی چه هغه په آرام آرام سره د غونچك شکل اختیاروی، او هغه یو بل سره نزدے وی او ځه لرے هم وی۔ دغه شان الله تعالیٰ د اُوبو په ذریعه د انګورو باغونه جوړوی۔ او زیتون او انګور پیدا کوی، چه د هغے نه بعض خو په شکل او هیئت او رنګ او ذائقه کښې د یو بل مشابه وی او بعض مشابه نهٔ وی۔ او د هغے نه لږ خو اُوګوره چه کله میوه راوځی نو څنګه کمزوری او بیکاره شان وی، او چه کله پخه شي نو څنګه فائده منه او خوندوره وی۔ یقیناً پدے ټولو څیزونو باندے د عبرت نظر انسان ته دعوت ورکوی چه هغه ددے د پیدا کونکی په عظیم قدرت باندے ایمان راوړی۔
مَآءً: یعنی سبب ئے یو دے چه اُوبه دی او مسببات (بوټی) جدا جدا دی، نو دا د الله د قدرت او د توحید لویه نښه ده۔
نَبَاتَ كُلِّ شَيْءٍ: یعنی هر قسم بوټی۔ عالَمُ النبات والا وائی چه په دنیا کښې اتیا زره نوعه بوټی دی۔
فَاَخْرَجْنَا مِنْهُ: (ه) ضمیر نبات ته راجع دے۔یا ماء ته یا کل شیء ته۔
خَضِرًا: یعنی شینکیانی او شنه بوټی، او شنه تیغونه۔
نُخْرِجُ مِنْهُ: (ه) ضمیر خضر (شین بوټی) ته راجع دے۔
حَبًّا مُّتَرَاكِبًا: یعنی دانے یو بل دپاسه لکه د غنمو او وریشو او جوارو وږی شو۔ دا د هغه وړوکو بوټو بیان شو چه پنډئ نهٔ لری۔
وَمِنَ النَّخْلِ: نخل جمع او مفرد دواړه استعمالیږی او جمع ئے نخیل ده۔ او دا خبر مقدم دے او (مِنْ طَلْعِهَا) د هغے نه بدل دے او روستو (قِنْوَانٌ) ئے مبتدا ده۔
طَلْعِهَا: طلع: (اَوَّلُ مَا يَطْلُعُ اَىْ يَظْهَرُ مِنْ زَهْرِهَا) اول هغه ګل چه راښکاره کیږی چه د هغے نه میوه پیدا کیږی، مراد ترے نه کسوړی دی چه دے ته کافور هم وئیلے شي۔ (المنار) او پدے سره ئے حفاظت کیږی۔
قِنْوَانٌ: جمع د قِنْوٌ ده، هغه غونچك ته وائی چه په هغے کښې میوه وی۔ او ددے تثنیه او

جمع په وزن کښې شریکه ده.

دَانِيَةٌ : يو بل ته نزدے، یا رانیونکو ته نزدے دی. او بل طرف (غَيْرُ دَانِيَةٍ) ئے نهٔ دے ذکر کړے، مقايسةً یعني بعض لرې دی. دا خبره ځینو مفسرینو کړیده لیکن دا خبره خطاء ده ځکه چه د کجورو ټولے میوے اصل النخل (د کجورے بیخ) ته نزدے وی او پدے باندے څه عقلي یا نقلي دلیل نشته.

وَجَنّٰتٍ : دا منصوب دے عطف دے په (حَبًّا) باندے أَیْ نُخْرِجُ مِنَ الْخَضِرِ جَنّٰتٍ . مونږ د دغه شین بوټی نه باغونه د انګورو راوباسو.

مُشْتَبِهًا وَّغَيْرَ مُتَشَابِهٍ : دا حال دے صرف د رُمان (انار) نه ځکه چه په هغے کښې بعض په صفاتو کښې د يو بل مشابه وی لیکن په خوندونو کښې نهٔ وی ځکه چه بعض انار خواږهٔ او بعض تراوهٔ او بعض ترخه دی. یا حال د مجموعه زیتون او رُمان نه دے.

او مفسرینو دلته مشتبه او متشابه یوه معنیٰ اخستے ده،

مګر غوره دا ده چه فرق شته، د [اِشْتَبَهَا] معنیٰ ده دوه څیزونه یو بل سره د سخت مشابهت په وجه ګډوډ کیدل او د تَشَابَهَا معنیٰ ده یو څیز د بل سره یو شان کیدل اګرکه په بعض وجوه او صفاتو کښې وی، نو دا عام دے د اول نه، او دا خبره یقیني ده چه بعض مذکوره څیزونه یو بل سره یو شان وی لیکن نهٔ ګډوډ کیږی او بعض یو بل سره داسے یو شان وی چه په بنده ګډوډالے راولی تردے چه په ماهر باغبان باندے هم راځی. (المنار۷/۵۳۵)

او دغه شان زیتون او رمان په پاڼو کښې یو شان دی چه نظر کونکی باندے اشتباه راولی او په میوه کښې مشابه نهٔ دی.

مُشْتَبِهًا فِي اللَّوْنِ وَغَيْرَ مُتَشَابِهٍ فِي الطَّعْمِ وَالْمَنْفَعَةِ . یعني یو بل سره په رنګ کښې مشابه دي او په خوند او فائده کښې مشابه نهٔ دی.

اُنْظُرُوْٓا : د عبرت او استدلال نظر مراد دے. ځکه چه بعض میوے په زمکه پیدا کوی او بعض په ونه کښې پورته. وجه دا ده چه بعض لوی وی چه که په ونه کښې وی او په انسان باندے راپریوځی نو میوه به هم ضائع شی او انسان ته به هم تکلیف ورسی.

اِلٰى ثَمَرِهٖٓ : (ه) ضمیر الله ته راجع دے. یا راجع دے هر یو ددے میوو ته.

اِذَآ اَثْمَرَ : کله چه میوه ونیسی.

وَيَنْعِهٖ اَیْ اِلٰی یَنْعِهٖ .(اَوْ اِلٰی حَالِ نُضْجِهٖ) او ددے پخیدو ته. یعني د هر یو ددے دواړو حالونو کښې سوچ وکړئ اول سر او بیا وخت د پخیدو ته، نو د الله قدرت او لطف او حکمة

به درته معلوم شی، ځکه ئې وریسے (لآیٰتٍ) ذکر کړل۔ او هره میوه کښې الله تعالیٰ یو خصوصیت پیدا کړیدے چه په بدن کښې د کمزورو موادو پوره والے کوی۔

یَنۡعِ د مصدر صیغه ده په معنیٰ د نَضۡج (پخیدو) سره او ضمیر مخکښې هر یو ته راجع دے۔ او د ابن الانباریؒ نه نقل دی چه یَنۡع جمع د یَانِع ده لکه رَکۡبٌ او رَاکِبٌ او تَجۡرٌ او تَاجِرٌ یعنی پخې میوے۔ (قرطبی ۵۰/۷)

لِّقَوۡمٍ یُّؤۡمِنُوۡنَ: یعنی بالفعل مؤمنانو دپاره پکښې د الله په عظمت ډیر لوی دلائل دی، او د ایمان اراده لرونکو دپاره هم ډیر لوی د الله د قدرت دلائل موجود دی۔ او هر چه نور خلك دی نو د هغوی نظر داسے دے لکه د ماشوم په شان اګر که د عالم النبات د رازونو نه خبردار وی لیکن د هغوی نظر خالق او مدبر طرفته نهٔ پورته کیږی۔ (المنار)

پدے آیتونو کښې د موجود بلاغت دپاره تفسیر المنار (۵۳۶/۷) ته رجوع وکړئ۔

| وَجَعَلُوۡا لِلّٰهِ شُرَكَآءَ الۡجِنَّ وَخَلَقَهُمۡ |
|---|
| او کرځولی دی دوی الله لره شریکان پیریان او پیدا کړی دی الله دوی |
| وَخَرَقُوۡا لَهٗ بَنِيۡنَ وَبَنٰتٍۢ بِغَيۡرِ عِلۡمٍ ؕ سُبۡحٰنَهٗ |
| او جوړ کړی دی دوی (په دروغه) الله لره ځامن او لونړهٔ بغیر د پوهے نه، پاك دے الله تعالیٰ |
| وَتَعٰلٰى عَمَّا يَصِفُوۡنَ ﴿۱۰۰﴾ |
| او اوچت دے د هغے نه چه دوی ئې ورله بیانوی۔ |

**تفسیر**: کله چه عُلوی او سفلی (یعنی پورته او ښکته) عالَم سره د الله په عظیم قدرت او حکمت باندے دلائل پیش کړے شو، او د هغه ورکړی قسماقسم نعمتونه ذکر شو او دا ثابته شوه چه د عبادت مستحق صرف هغه ذات دے، نو اُوس د مشرکانو زجر او توبیخ او د هغوی د شرکی اعمالو رد کیږی۔

چونکه مشرکانو د بتانو عبادت د جناتو په حکم سره کړے وو پدے وجه ګویا که دوی د جناتو عبادت کړیدے۔ حال دا چه د الله نه سوئ هیڅوك خالق نشته، نو بیشکه چه همدا بغیر د شرکت د بل چا نه د هر قسم عبادت مستحق دے۔ په راتلونکی آیت کښې د هغه خلقو ګمراهی بیان شویده چه د الله په باره کښې دروغ جوړوی او چا لره د الله ځوی یا لور

جوړوي، لکه چه يهوديانو عزير عليه السلام او نصاراؤ عيسى عليه السلام خوى ګنړلو ـ او د عربو مشرکانو به د ملائکو په باره کښې دا عقيده ساتله چه دا د الله لونړه دي. الله تعالىٰ د داسې قسم تمامو حوادثو او ناقصو صفاتو نه په يو ځل پاك دے.

**الْجِنَّ**: دا بدل دے د (شرکاء) نه او هغه مفعول د (جَعَلُوْا) دے.

نو پدے آيت کښې په مشرکين بالجن باندے رد دے لکه چه ډير خلك پيريان د الله سره شريکان جوړوي او د هغوى نه يرے کوي لکه څنګه چه د الله نه يره کيږي او د هغوى په نوم منښتے کوي او د مکے مشرکانو به د پيريانو نه مددونه غوښتل. اَعُوْذُ بِسَيِّدِ هٰذَا الْوَادِيْ مِنْ سُفَهَاءِ قَوْمِهٖ] ـ (پناه غواړم په سردار ددے وادى د بيوقوفانو د قوم د هغه نه). او اُوس هم عام جادوګر د پيريانو په واسطه جادو کوي او د هغوى نه پکښې مددونه غواړي.

عبد الله بن عباس رضى الله عنهما فرمائي: دا آيت د زنادقه ؤ په باره کښې نازل دے چه هغوى وائي (العياذ بالله) چه الله او ابليس دواړه وروڼه دي، نو الله خالق د انسانانو او حيواناتو او چارپيانو او د هر خير دے، او ابليس خالق د درنده ګانو، مارانو او لړمانانو او د هر شر دے. (تفسير الامام الطبرانیؒ والقاسمیؒ)

**وَخَلَقَهُمْ**: (هُمْ) ضمير جن ته راجع دے، يا مشرکانو ته. يعنى پيريان خپله مخلوق دے هغه د الله سره څنګه شريك کيدلے شي؟ يا تاسو خو د الله مخلوق يئ او شرك د هغه سره کوئ.

**وَخَرَقُوْا**: خرق په معنىٰ د بى اندازے او بى نظامه او بى فکره د دروغو وئيلو سره دے او په معنىٰ د ځيرى کولو دے. او امام راغبؒ وائي خرق: يو شے پريکول په طريقه د فساد په غير د اندازے او ترتيب نه. (او په غير د تدبر او فکر نه) او دا ضد د خلق دے چه هغه يو کار کول دى په اندازه او نرمئ سره، يعنى دوى الله لره د دروغو ځامن وئيلى دى.

**بِغَيْرِ عِلْمٍ**: يعنى دوى ته ددے وينا د حقيقت هيڅ معلومات نشته چه خطاء ده او که رسا بلکه اټکله خبره ده. او پدے کښې د خرق د معنىٰ تاکيد دے. او دا د قرآن کمال دے چه د يو شي معنىٰ په روستو کلماتو سره کوي. (کشاف)

| بَدِيْعُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ اَنّٰى يَكُوْنُ لَهٗ وَلَدٌ |
|---|
| ناشنا پيدا کونکے د آسمانونو او د زمکے دے، څرنګه کيدے شي هغه لره اولاد |

| وَلَمْ تَكُنْ لَّهُ صَاحِبَةٌ ؕ وَخَلَقَ كُلَّ شَيْءٍ ج وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿۱۰۱﴾ |
|---|
| او نشته هغه له ښځه او پیدا کړے ئے دے هر شے، او هغه په هر شي پو هه دے۔ |

**تفسیر**: اُوس د دغه مخکنو خلکو نور رد ذکر کوی په څلورو طریقو سره چه الله تعالیٰ آسمانونه او زمکه بغیر د اصل سابق نه پیدا کړیدی، هغه فاعل او مؤثر مطلق دے، هغه د هیڅ شی اثر نهٔ قبلوی، او پلار د ځوی عنصر (اصل) وی او منفعل کیدو سره د هغه اثر قبلوی، هله د ځوی ماده د هغه نه رامنتقل کیږی، پدے وجه د الله هیڅ ځوی نشته۔

۲- او پدے وجه هم د الله ځوی نشی کیدے چه د هغه کومه ښځه نشته، او بغیر د دوه همجنسو د ملاویدو نه هلك نهٔ پیدا کیږی او د الله هیڅ همجنس نشته۔

۳- او پدے وجه هم د هغه ځوی نشی کیدے چه الله تعالیٰ هر شے پیدا کړیدے، او د هغوی نه هغه شخص هم دے چه مشرکان ئے د الله ځوی جوړوی، او مخلوق د خالق ځوی نشی کیدے، ٤- او پدے وجه هم د هغه ځوی نشته چه د الله تعالیٰ علم تمام معلومات راګیر کړیدی، هیڅ شے د هغه نه پټ نهٔ دے۔ که د هغه ځوی وے نو هغه به هم پدے صفاتو سره متصف کیدے، هغه به هم د هر شی علم لرلے حال دا چه دا صفت د غیر الله نه بالاجماع منفی دے، (افاده ابو السعودؒ قاله القاسمیؒ)

| ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ ج لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ج خَالِقُ |
|---|
| دے (کارونو والا) الله دے، رب دے ستاسو، نشته لائق د عبادت سِویٰ د هغه نه، پیدا کونکے |
| كُلِّ شَيْءٍ فَاعْبُدُوْهُ ج وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ وَّكِيْلٌ ﴿۱۰۲﴾ |
| د هر شی دے پس بندګی خاص کړئ هغه لره، او هغه په هر شي باندے ذمه وار دے۔ |

**تفسیر**: پدے کښې نتیجه ده د مخکنو دلیلونو او پدے کښې اثبات د توحید د ربوبیت، الوهیت او خالقیت او د تصرف دے۔

**فَاعْبُدُوْهُ** : دا تفریع ده په ماقبل باندے چه هرکله الله تعالیٰ خالق دے او مستحق د عبادت دے نو خالص د هغه بندګی وکړئ۔

**وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ وَّكِيْلٌ** : یعنی د الله عبادت پدے وجه هم کول پکار دی چه د مخکنو صفاتو په وجه سره هغه په ذاتی طور باندے د معبود جوړیدو مستحق دے او

پدے وجه هم چه هغه د تمام مخلوق کارساز دے۔

هر کله چه په عبادت کښې انسان د الله مدد او توکل ته محتاج دے، نو دلته ئے د عبادت نه روستو توکل ذکر کړو۔ دارنګه لکه چه الله تعالیٰ خالق د اشیاؤ دے نو بیرته تصرف هم د هغه په کښې چلیږی، د بل چا واك نشته۔

**حکمة** : په سورة المؤمن آیت (۶۲) کښې ﴿خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ﴾ په ﴿لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ﴾ باندے مقدم ذکر دے ددے څه وجه ده؟ نو وجه دا ده چه دلته رد په مشرکانو شروع دے، نو پدے کښې کلمه د توحید مخکښې کول مناسب دی او په سورة المؤمن کښې بحث د الله د خلق (پیدائش) او د هغه د نعمتونو دے نو هلته خَلق مخکښې کول او توحید روستو کول مناسب دی ځکه چه توحید نتیجه ده د دغه نعمتونو۔ (المنار ۷/۵۴۳)

| لَا تُدْرِكُهُ الْأَبْصَارُ ز وَهُوَ يُدْرِكُ الْأَبْصَارَ ج |
|---|
| نشی راګیرولے هغهٔ لره نظرونه او هغه راګیروی نظرونو لره |
| وَهُوَ اللَّطِيفُ الْخَبِيرُ ﴿۱۰۳﴾ |
| او هغه باریك ځیزونو لره لیدونکے، خبردار دے۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښې د الله بل قسم تعارف او د هغه څلور صفتونه ذکر دی۔ او ددے دوه مطلبه بیان شویدی یو دا چه د تیر شوی آیت په آخری جمله کښې چه کومه خبره بیان شوه چه الله تعالیٰ د ټولو نګرانی کوی، نو د هغے تاکید پدے آیت سره کوی چه هغه تمام ځیزونه وینی، هیڅ شے د هغه نه پټ نهٔ دے، او پدے کښې مقصد د بندګانو یره ول دی، چه الله تعالیٰ لره اګر که ظاهری سترګے نشی لیدلے لیکن هغه هر څه وینی۔ پدے وجه د هغه نیولو نه بچ کیدل پکار دی۔

(۲) او دویمه معنیٰ دا ده چه الله تعالیٰ لره د دنیا والو سترګے نشی لیدلے نو بیا دا څنګه کیدے شی چه یو دنیاوی وجود لرونکے شخص د هغه څوی وګنړلے شی؟!۔

د آیت نه دا هم ثابته شوه چه په دنیا کښې الله تعالیٰ لره هیڅوك نشی لیدلے۔ د حدیث نه هم دا ثابته ده۔ بخاری او مسلم د عائشه رضی الله عنها نه روایت کړیدے چه څوك تا ته دا ووائی چه محمد (ﷺ) خپل رب لیدلے وو نو هغه دروغژن دے۔ دے نه روستو هغے دا آیت تلاوت کړو۔ لیکن دا خبره د رسول الله ﷺ نه په تواتر سره ثابته ده چه مؤمنان به الله

تعالیٰ لره د محشر په میدان کښې او په جنت کښې ویني۔

بخاریؒ او مسلمؒ د جریر بن عبد الله بَجَلی رضی الله عنه نه روایت کړیدے چه مونږ د نبی کریم ﷺ سره ناست وو چه هغه څوارلسمے سپوږمۍ طرف ته وکتل وے وئیل :

[اِنَّکُمْ سَتَرَوْنَ رَبَّکُمْ کَمَا تَرَوْنَ هٰذَا الْقَمَرَ] ) (بخاری : ٥٥٤) (مسلم : ١٤٤٦)

چه یقیناً تاسو به خپل رب داسے وینئ لکه څنګه چه دا سپوږمۍ وینئ)۔

ددے آیت نه معتزله ؤ استدلال کړیدے چه الله تعالیٰ هیڅکله نۀ لیدلے کیږی نۀ په دنیا کښې او نۀ په آخرت کښې، او دا غلطه عقیده ده څکه چه دا خو بیا عدمِ محض جوړیږی چه د هغه لیدل نا ممکن وی، او حال دا چه دلته الله تعالیٰ خپل عظمت او خپل کمال بیانوی لیکن د شیخ الاسلام ابن تیمیهؒ د وئیلے شوے قاعدے مطابق چه آیت کښې سوچ وکړے نو په همدے آیت کښې د دوی پدے دلیل باندے رد موجود دے او هغه دا چه دلته الله تعالیٰ [لَا تُدْرِکُهُ الْاَبْصَارُ] نۀ دے وئیلے چه سترګے الله تعالیٰ لره نشی لیدلے۔ بلکه (لَا تُدْرِکُ) ئے وئیلے دے او ادراک احاطے ته وائی یعنی د بندګانو دنیاوی نظر دومره لوی نۀ دے چه الله تعالیٰ په خپل نظر کښې راګیر کړی، د عبد الله بن مسعود رضی الله عنه نه تپوس وشو (وفی روایة عن عکرمة) چه دا څنګه کیدے شی چه یو شے به ښکاری او په نظر کښې به نۀ راګیریږی؟ نو هغه جواب ورکړو : [اَتَرَی السَّمَاءَ ؟] آیا تۀ آسمان وینے ؟ هغه ووئیل : آؤ، آیا تۀ دا ټول راالاندے کولے شے؟ هغه ووئیل : نۀ، نو الله خو ددے نه ډیر اجل او اعظم دے۔

نو د عدم احاطے نه عدم رؤیة نۀ لازمیږی لکه څنګه چه د عدم احاطے د علم نه عدم علم نۀ لازمیږی لکه الله فرمائی : ﴿ وَلَا یُحِیطُوْنَ بِهٖ عِلْمًا﴾ (طه : ١١٠)

بندګان الله تعالیٰ لره په خپل علم کښې نشی راګیرولے۔ نو ددے مطلب خو دا نۀ دے چه ګنے الله تعالیٰ باندے د بندګانو بیخی علم نشی راتللے۔

او لکه په حدیث کښې دی : [لَا اُحْصِیْ ثَنَاءً عَلَیْكَ] زۀ تا باندے ثناء نشم راګیرولے۔ نو ددے نه دا نۀ ثابتیږی چه ګنے د الله ثناء نۀ وئیلے کیږی۔ (تفسیر ابن کثیر٣/٣١٠)

بندګان آسمان لره وینی لیکن د هغے حقیقت او وزن او اندازه ورته نۀ ده معلومه نو الله خو خالق د کائناتو دے۔

صاحب المنارؒ وائی : ادراک کښې معنیٰ د لحوق (پیوسته کیدو) او د یو شی انتهاء ته د رسیدو ده، پدے وجه مفسرینو د ادراک معنیٰ په احاطے د رؤیة سره کړیده۔ نو دا جمله به د ﴿ وَلَا یُحِیطُوْنَ بِهٖ عِلْمًا﴾ په معنیٰ سره شی۔ او د آیت او د صحیح احادیثو د جمع او تطبیق

دا ډیره قوي طریقه ده چه د لغت نه خپله ثابته شوه۔
په دے کښې څینې مفسرین تاویلي معنے کوي لکه (۱) لَاتُدْرِكُهُ الْأَبْصَارُ اَیْ فِی الدُّنْیَا] په دنیا کښې ئے سترګے نشي لیدلے۔ (۲) یا الابصار کښې الف لام استغراقي دے۔ اَیْ جَمِیْعُ الْأَبْصَارِ۔ یعني ټول نظرونه ئے نشي راګیرولے، او بعض مؤمنان به ئے په آخرت کښې ویني۔ یا لا تدرکه الابصار سالبه مهمله ده په قوت د جزئیه کښې ده، نو معنیٰ دا ده چه (لَاتُدْرِكُهُ بَعْضُ الْأَبْصَارِ] یعنی بعض نظرونه الله تعالیٰ لره نشي لیدلے چه هغه د کافرانو نظرونه دي۔ (شرح المواقف والقاسمی)
(۳) یا د ابصار نه مراد عقول (عقلونه) دي۔ (ابن کثیر والمنان) اول قول اصح دے ځکه چه د لغت او شرع موافق دے۔
وَهُوَ يُدْرِكُ الْأَبْصَارَ : [اَیْ یَرَی الْعُیُوْنَ الْبَاصِرَةَ او قُوَی الْأَبْصَارِ الْمُوْدَعَةِ فِیْهَا رُؤْیَةَ اِدْرَاكٍ وَاِحَاطَةٍ] یعنی الله تعالیٰ سترګو لره او په سترګو کښې چه کوم د لیدلو طاقت کیخودلے شویدے هغه داسے ویني چه په لیدو کښې ئے راګیروي چه د هغے هیڅ حقیقت د هغه نه پټ نهٔ دے، انسانانو هر څومره د سترګے طبقات، او رطوبات او د هر یو وظائف او ډیر قدرتونه د الله تعالیٰ معلوم کړیدي لیکن د رؤیة (لیدلو) حقیقت او په دے کښې د رڼرا حقیقت او د لیدو د قوت حقیقت او د هغه کنکشن چه د لیدونکي او د لیدلے شوي شي ترمینځ دے هغه ئے نهٔ دے معلوم کړے۔لکه په لسان العرب کښې د ابو اسحاقؒ نه نقل دي چه الله تعالیٰ خبر ورکړیدے چه الله نظرونه ویني نو په دے خبر کښې دلیل دے چه مخلوق د لیدو راګیرول نشي کولے یعني دوي د سترګے حقیقت نهٔ پیژني او نهٔ دا پیژني چه دا څه شے دے چه انسان د هغے په ذریعه د سترګو نه لیدل کوي نهٔ د نورو اندامونو نه، آه۔ (المنان)۔
نو د الابصار نه مراد ظاهري سترګے او په هغے کښې دننه دید، دواړو ته وئیلے شي۔
ځکه ئے وروسے اللطیف الخبیر راوړیدے۔ لطیف هغه ذات ته وائي چه باریک څیزونه ویني، او خبیر هغه دے چه په باطني څیزونو عالِم وي۔ لطیف په بل مقام کښې مهربان ته هم وائي۔ یا لطیف : معنیٰ ده : نرمي کونکے دے د بندګانو سره، ۞ راویستونکے دے نرې څیزونو لره، ۞ او د هغے د حقیقتونو راښکاره کونکے دے۔

| قَدْ جَآءَكُمْ بَصَآئِرُ مِنْ رَّبِّكُمْ ج فَمَنْ |
| --- |
| یقیناً راغلي دي تاسو ته دلیلونه د عقل د طرفه د رب ستاسو نه پس چا |

| اَبۡصَرَ فَلِنَفۡسِهٖ ۚ وَمَنۡ عَمِیَ |
|---|
| چه پوهه حاصله کړه (ددې دلیلونو نه) نو فائده ئې د ځان دپاره ده، او څوك چهړوند شو |
| فَعَلَیۡهَا ؕ وَمَاۤ اَنَا عَلَیۡكُمۡ بِحَفِیۡظٍ ﴿۱۰۴﴾ |
| (ددې نه) نو وبال به په هغه باندې وی او نهٔ یم زهٔ په تاسو ساتنه کونکے۔ |

**تفسیر** : اُوس الله تعالیٰ دې مخکښو دلائل ته ترغیب ورکوی چه ددې نه عبرت واخلئ چه هر کله تاسو ته د الله تعالیٰ د طرفنه دلائل راغلل نو خپل الله وپیژنئ او د هغه سره شریکان مهٔ جوړوئ او د هغه خالصه بندګی شروع کړئ، که بصیرت در پکښ وی۔

بَصَآئِرُ مِنۡ رَّبِّكُمۡ : بصائر جمع د بَصِیۡرَةٌ ده۔ [اَیِ الۡآیَاتُ وَالدَّلَآئِلُ الَّتِیۡ تُبۡصِرُوۡنَ بِهَا الۡهُدٰی مِنَ الضَّلَالَةِ] (القاسمیؒ) یعنی د عقلمندئ دلیلونه چه بصیرت زیاتوی او تاسو پرې هدایت د ګمراهئ نه جدا وینئ۔

ابن کثیرؒ وائی : دلته د بصیرت نه مراد هغه دلائل او نخے دی چه هغه الله په قرآن کریم کښ او رسول الله ﷺ په خپل سنت مبارکه کښ بیان کړیدی۔ څوك چه ددې دلائلو نه فائده اُوچتولو سره د حق اعتراف او اقرار وکړی او پدې باندې ایمان راوړی نو د هغې فائده به دهٔ ته رسیږی او څوك چه په خپلو سترګو باندې پټئ اُوتړی او حق قبول نکړی، نو د هغې بد انجام به هغه ته رسیږی۔ دې نه روستو د رسول الله ﷺ په ژبه وویل شو چه زهٔ ستاسو نګران او نګهبان نهٔ یم چه تاسو د ګمراهئ نه بچ کړم، زهٔ خو صرف یرونکے یم۔ ستاسو عملونه خو الله لیکی، او تاسو ته به د هغې بدله درکوی۔

او بصیرت هغه دلیل ته وائی چه په یو شی باندې عقلمندی او علم ثابتوی۔ (القاسمیؒ)

او په اصل کښ نور القلب (د زړه رنړا) ته وائی۔ (فتح القدیر للشوکانیؒ)

فَمَنۡ اَبۡصَرَ : چا چه حق ولیدو پدې دلیلونو سره۔ نو د خپل ځان دپاره ئې ولیدل یعنی فائده به ئې دهٔ ته رسیږی۔ (القاسمیؒ)

فَلِنَفۡسِهٖ : فائده به ئې ځکه وشی چه د الله معرفت به ورته حاصل شی او دا ډیر اوچت شے دے او حق ته به ورسیږی۔

وَمَنۡ عَمِیَ : یعنی څوك چه ترې ړوند پاتې شو او د الله معرفت ئې پدې دلائلو ونکړو او حق او توحید ئې پرې ونهٔ پیژندو نو جهنمی شو۔

وَمَآ اَنَا عَلَيۡكُمۡ بِحَفِيۡظٍ : [اَیْ لِاَعْمَالِکُمْ وَاَقْوَالِکُمْ] : دا د رسول الله ﷺ بیان دے چه زه ستاسو نګهبان او ساتونکے د اعمالو او د خبرو نهٔ یم بلکه زما کار صرف بیان دے۔

۲– یا حفیظ په معنیٰ د ساتونکی د هلاکت او عذابونو نه۔

۳– یا راګیرونکے د عملونو په علم او په قدرت کښې۔ (ابن کثیر)

٤– وَكِيْلٌ مَسْئُوْلٌ۔ (ایسر التفاسیر) یعنی زهٔ ذمه وار او مسئول نهٔ یم۔

| وَكَذٰلِكَ نُصَرِّفُ الۡاٰيٰتِ |
| --- |
| او دغسے په تفصیل سره بیانوو مونږ آیتونه (دے دپاره چه خلق ترے هدایت واخلی) |
| وَلِيَقُوۡلُوۡا دَرَسۡتَ |
| او دے دپاره چه ووائی دوی تا لوستلے دے (د فلانی نه) |
| وَلِنُبَيِّنَهٗ لِقَوۡمٍ يَّعۡلَمُوۡنَ ﴿١٠٥﴾ |
| او دے دپاره چه بیان کړو مونږ دا دپاره د هغه قوم چه پو هیږی۔ |

**تفسیر** : پدے آیت او روستنی آیت کښې بیا قرآن کریم ته ترغیب دے۔ او ورسره د دریمے عقیے بیان دے۔

وَكَذٰلِكَ نُصَرِّفُ الۡاٰيٰتِ : دا جواب د سوال وو۔ الله تعالیٰ په قرآن کریم کښې خپل آیتونه او دلائل په مختلف انداز او ګڼرو طریقو سره بیان کړیدی، پدے باره کښې مشرکانو خبرے او اعتراضونه شروع کړل چه قرآن یوه خبره ولے بار بار بیانوی؟ نو ددے په جواب کښې الله تعالیٰ وفرمایل چه هغه خپل آیتونه په مختلف انداز کښې ددے دپاره بیانوی چه په مخالفینو باندے په پوره طریقے سره حجت قائم شی، او دے دپاره چه مشرکان او کافران دا ووائی چه اے محمده! تا دا هرڅه د اهل کتابو نه زدهٔ کړیدی۔

ابن عباس ﷺ وائی چه رسول الله ﷺ چه به کله مکے والو ته قرآن لوستلو نو وئیل به ئے چه تا دا تول د (یَسَار او جَبْر) دوه رومیانو نه زدهٔ کړیدی، او دعویٰ کوے چه دا د الله کلام دے۔

نو الله تعالیٰ خپل آیتونه په مختلف انداز کښې ددے دپاره هم بیانوی چه د حق طلبګارو دپاره دا قرآن صفا صفا بیان کړی دے دپاره چه هغوی د حق اتباع وکړی او د باطل نه ځان

وساتی۔
او د عـقبیے حاصل دا دیے چه کله یو داعی د حق بیان شروع کړی لکه رسول الله ﷺ چه کلـه قرآن کریم بیانول شروع کړل نو مشرکانو کله په یوه طریقه او کله په بله طریقه انکار کولو، نو کله به ئے دا وئیل چه دا چه کومے خبرے او مسئلے بیانوی نو دا دده خپلے خبرے نهٔ دی بلکه دائے د اهل کتابو نه زده کړیدی، د هغوی شاگرد دیے او الله ورته وحی نهٔ ده کړے او د اهـل کتـابـو اِزم او دین دلتـه راوړی، او زمـونږ د پـلار نیکه لاره او طریقه پرے خرابوی د خپـلے مشریٔ او عـزت دپاره (په رسول الله ﷺ باندے ئے دروغ او بدنامه لگوله چه دائے په مکه کښں د جَبر او یسار دوه هلکانو رومیانو نصرانیانو نه یاد کړیدیے— (ابن عباسؓ قرطبیؒ)
او کـلـه بـه ئے وئیـل چه په مکه کښں د یو رومی غلام نه ئے یاد کړیدیے چه هغه به توری جوړولے، او رسول الله ﷺ به د هغه خوا ته زیات ورتللو– المنار)
او دا طـریـقـه د ټـولـو بـاطل پرستو ده چه څوك حق بیانوی نو هغه باندے به دا اعـتـراض کیـږی چه تا دا علم د غلطو خلکو نه زده کړیدیے او تهٔ د وهابیانو شاگرد ئے، نو پدے طریقه د خلـکـو زړونـه د حق نه اړوی (ځکه پدے طریقه سره د خلکو په زړونو کښں شکونه پیدا کیـږی) نـو د دوی پـه مـقابله کښں حق همیشه بیانول پکار دی او دوی بـه خپل اعتـراضـونه کوی هیڅ پرواه ئے مهٔ لره۔
وَكَذٰلِكَ نُصَرِّفُ الْاٰيٰتِ : أَیْ لِمُرِیْدِی الْهِدَایَةِ ۔ یعنی دغه شان مونږ بار بار او قسماقسم بیـانـو و آیتـونـه دپاره د اراده لرونکو د هدایت۔ یا داسے تعبیر دیے [لِیَهْتَـدِیَ بِهَا الْمُسْتَعِدُّوْنَ لِلْاِیْـمَـانِ عَـلَی اخْتِلَافِ الْعُقُوْلِ وَالْاَفْهَامِ] (المنار) دیے دپاره چـه د ایـمـان اراده لرونکی ترے هدایت واخلی اګر که د هغوی عقلونه او فهمونه به مختلف وی۔
تصریف : یوه خبره او مضمون په مختلفو تعبیرونو او اندازونو سره کولو ته وائی۔
وَلِيَقُوْلُوْا : یـعـنـی یو غرض خو هدایت ته د خلکو دعوت دیے، او دیے دپاره چه په هغوی بـانـدیے حـجـت هـم قـائـم شی چه پـه خبره پو هه شی او بیا هم ایمان نهٔ راوړی نو الله به ئے راګیروی۔
او دویـم غـرض د قـرآن پـه رالیـږلـو کـښں دا دیے چـه خلك پرے امتحاناً ګمراه شی او پدے بانـدیے اعتـراضـونه وکړی۔ او دا عاقبتی غرض دیے چه خپله د فاسد فطرت والو نه راپیدا کیږی۔ نو په ولیقولوا کښں به لام د عاقبت وی۔
دَرَسْتَ : اَیْ تَـعَلَّمْتَ مِنْ اَهْلِ الْكِتَابِ وَلَيْسَ بِوَحْيٍ ۔ یعنی تا دا کتاب د اهل کتابو نه زده

کړيدے او دا وحی د الله د طرفنه نهٔ ده۔ (المنار)

علامه قرطبیؒ وائی : دا جمله عطف ده په پټه جمله باندے [اَیْ نُصَرِّفُ الآیَاتِ لِتَقُوْمَ الْحُجَّةُ عَلَیْهِمْ وَلِیَقُوْلُوْا دَرَسْتَ] ۔ یعنی مونږ بار بار آیتونه بیانوو دے دپاره چه په دوی باندے حجت قائم شی۔

وَلِنُبَیِّنَهٗ لِقَوْمٍ یَّعْلَمُوْنَ : یعنی علم والو دپاره ئے بیانوو چه هغوی ترے فائده واخلی او دا نور پرے اعتراضونه وکړی۔ او ددے مثال داسے دے لکه ﴿وَلَا یَزِیْدُ الظّٰلِمِیْنَ اِلَّا خَسَارًا﴾ (اسراء:۸۲) قرآن کریم د ظالمانو تاوان زیاتوی چه اعتراض پرے وکړی۔ ﴿یُضِلُّ بِهٖ کَثِیْرًا وَّیَهْدِیْ بِهٖ کَثِیْرًا﴾ (الله گمراه کوی پدے سره ډیر خلك او هدایت کوی پدے سره ډیرو ته)۔

صاحب المنار وائی : دا جمله رد دے په دغه معترضینو مشرکانو باندے چه هغوی وائی چه دا آیتونه تا د بل چا نه لوستلی دی نو دوی لوی جاهلان دی، ددے آیتونو په مقصد ئے ځان نهٔ دے پوهه کړے کوم چه الله په مختلفو طریقو ذکر کړیدی، او ددے په راز باندے نهٔ دی خبر په کوم باندے چه د دنیا ټول منافع قربانول پکار دی، او کوم خلك چه ددے آیتونو په مقاصدو پوهیږی او ددے نه د ښائسته هدایت اخستو په انجام پوهیږی نو هغوی پدے کښې سوچ کولو سره د قرآن کریم حقیقت پیژنی۔ (المنار)

لنبینه : (ه) ضمیر دغه آیات ته راجع دے په تاویل د قرآن یا قول یا مذکور سره۔

| اِتَّبِعْ مَآ اُوْحِیَ اِلَیْكَ مِنْ رَّبِّكَ ج لَآ |
| --- |
| تابعداری وکړه د هغه څه چه وحی شویده تا ته د طرف د رب ستا نه نشته |
| اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ج وَاَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِکِیْنَ ﴿۱۰۶﴾ |
| لائق د عبادت مگر هغه دے، او مخ واړوه د مشرکانو نه۔ |

**تفسیر** : یعنی هرکله چه دوی په تا باندے اعتراضونه کوی نو د دوی پرواه مهٔ کوه، بلکه د خپل رب د وحی تابعدار وسیره۔ پدے آیتونو کښې رسول الله ﷺ او مؤمنانو ته تعلیم او د دعوت آداب بیانوی۔

اِتَّبِعْ : یعنی په قرآن عمل کوه او د خلکو پرواه مهٔ ساته۔

لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ : دا په مینځ کښې ددے دپاره وائی چه د الله نه سِویٰ بل اِلٰه نشته نو بل څوك داسے کتاب نشی راليږلے او چه اهل کتابو ته ددے د جوړولو طاقت ملاؤ شو نو بيا

خو دوی د الله سره (العیاذ بالله) په طاقت کښې شریك شو۔ او د الله د وحی تابعداری ځکه پکار ده چه اُلوهیت صرف د الله دے نو خبره به هم صرف د هغه منلے کیږی۔

وَاَعۡرِضۡ عَنِ الۡمُشۡرِكِيۡنَ : ۱- اَیۡ عَمَّا یَدۡعُوۡنَكَ ۔ یعنی دوی چه تا ته کوم دعوت درکوی نو د هغے نه مخ واړوه۔

۲- بل مطلب ئے دا دے : لَا تَلۡتَفِتۡ اِلَیۡهِمۡ وَامۡضِ فِیۡ دَعۡوَتِكَ] یعنی د دوی د اعتراضونو پرواه مه ساته او خپل دعوت جاری ساته۔ ځکه چه دوی ډیر په اعتراضونو سره د کار نه وباسی۔ او کله چه داعی داسے خبرے واوری نو پریشانه شی او کار ترے پاتی شی۔ او دا مطلب نهٔ دے چه دعوت مه ورکوه۔

| وَلَوۡ شَآءَ اللّٰهُ مَآ اَشۡرَكُوۡا ؕ وَمَا جَعَلۡنٰكَ |
| --- |
| او که غوختے الله نو دوی به شرك نهٔ وے کړے او نهٔ ئے گرځولے مونږ ته |
| عَلَیۡهِمۡ حَفِیۡظًا ۚ وَمَآ اَنۡتَ عَلَیۡهِمۡ بِوَكِیۡلٍ ﴿۱۰۷﴾ |
| په دوی باندے څوکیدار، او نهٔ ئے ته په دوی باندے ذمه وار۔ |

**تفسیر** : د داعی په زړه کښې کله دا وسوسه پیدا شی چه هرکله د الله تعالیٰ شرك ډیر بدی شی نو بیا مشرکان ټول ولے په یو ځل نهٔ ختموی؟، نو دومره دشمنان د الله په زمکه وسیږی دا ولے نهٔ ختمیږی؟ نو د هغے حکمة بیانوی چه د مشرك او کافر د گمراه کولو حکمت الله ته معلوم دے، که هغه غوختلے نو ټول انسانان به ئے د هدایت په لاره راجمع کړی وے لیکن هغه د خپل مشیت او حکمت د تقاضے مطابق چا له چه غواړی هدایت ورکوی او چا له چه غواړی گمراه کوی۔ الله نه د هغه د افعالو په باره کښې تپوس نهٔ کیږی البته د بندگانو نه به د هغوی د اعمالو حساب اخستے کیږی۔

یعنی الله په خلکو په ایمان کښې زور نهٔ کوی او نهٔ ئے رسول الله ﷺ د دوی په ایمان راوړو مقرر کړیدے، او نهٔ د رسول الله ﷺ ذاتی زور شته چه خلك په زوره ایمان ته راولی نو بس پدے کښې د الله حکمة دے چه الله خپل بندگان په ابتلاء او امتحان کښې اچوی چه څوك خبره منی او څوك ئے نهٔ منی، خپل اختیار ته ئے پریخی دی۔

وَمَآ اَنۡتَ عَلَیۡهِمۡ بِوَكِیۡلٍ اَیۡ مِنۡ عِنۡدِ نَفۡسِكَ ۔ یعنی تا هم ددے ذمه واری نهٔ ده اخستے چه خلك به زهٔ په زوره دین ته راولم، او (وَمَا جَعَلۡنٰكَ عَلَیۡهِمۡ حَفِیۡظًا ) او الله هم نهٔ ئے مقرر کړے

چه خلك به په زوره ایمان ته راولي بلکه ته ئے صرف داعي مقرر کړے۔

حفیظ: یعني د نبي کریم ﷺ ذمه واري نۀ وه چه هغه د انسانانو اعمال او اقوال ولیکي او یا ورته هدایت وکړي۔ او نۀ هغه د دوی د روزئ او نورو کارونو ذمه وار وو۔

| وَلَا تَسُبُّوا الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ |
|---|
| او کنځل مۀ کوئ هغه کسانو ته چه رابلي ئے دوی سوئ د الله نه |
| فَيَسُبُّوا اللّٰهَ عَدْوًا بِغَيْرِ عِلْمٍ ۗ كَذٰلِكَ |
| پس کنځل به وکړي دوی الله تعالیٰ ته د وجه د دشمنئ نه په ناپوهئ سره۔ دغسے |
| زَيَّنَّا لِكُلِّ اُمَّةٍ عَمَلَهُمْ ۖ ثُمَّ اِلٰى رَبِّهِمْ مَّرْجِعُهُمْ |
| ښائسته کړیدي مونږ هر امت ته عملونه د دوی، بیا به رب د دوی ته واپسي وي د دوی |
| فَيُنَبِّئُهُمْ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۰۸﴾ |
| نو خبر به ورکړي دوی ته په هغه عملونو چه دوی ئے کوي۔ |

**تفسیر**: پدے کښې بل ادب د دعوت دے او دے ته نهي د ذرائعو هم واني۔

سب: په معنیٰ د نقصان بیانولو دے چه هغے کښې د یو شي د ذاتي شان کوتاهي او سپکاوے راځي نو دا کار د باطلو معبودانو په باره کښې جائز نۀ دے، البته د هغوی نه الوهي صفات نفي کول عیب نۀ دے لکه داسے ووئیل شي چه دوی لائق د بندګئ نۀ دي، او اختیارمند د نفع او د ضرر نۀ دي، او حاجت روا او مشکل کشا نۀ دي، او دوی لائق د تابعدارئ نۀ دي، نو دا کنځل او رد بد نۀ دي اګرکه مشرکان دا هم کنځلے ګنړي بلکه ددے بیان ضروري دے۔

او پدے کنځلو او ردو بدو کښې خپله غصه سړول وي او خپل نفس ته سکون ورکول وي او هدایت د خلکو مطلب نۀ وي، نو دا شخص د حق داعي نۀ دے، پدے وجه دا د دعوت آدابو خلاف دي، نو دا جائز نۀ دي چه څوك معبودانو ته کنځل وکړي، یا د چا مشران وي هغوی ته کنځل وکړي، پدے سره دغه مخالف په غصه کښې راځي نو بیا هغه د الله او د رسول بې ادبي کوي، نو تۀ به د الله او د رسول د بې ادبئ کولو ذریعه جوړه شے، نو دا کار هم حرام شو۔

نو کله چه د یو مباح کار نه فتنه وغیره پیدا کیږی نو د هغه مباح نه ځان بچ کول پکار دی. ددے نه معلومه شوه چه په باب د دعوت کښې به داعی د خولے (الفاظو) ډیر زیات حفاظت کوی، ورنه بیهوده کلماتو ویلو سره به د دعوت لاره بنده کړی.

نو د رد د تقلید دپاره به داعی د علماؤ او ائمه کرامو مدح او صفت بیان کړی، او بیا به حقیقت بیان کړی چه دا علماء کرام مبلغین د دین دی، او د الله او د رسول الله ﷺ تابعداری به د هیچا دپاره نشی پریخودلے، که چرته د دوی خبره د آیت یا د حدیث مخالفه وه نو هغه به سره د احترام د علماؤ نه پریخودلے شی. یا مثلاً یو تن بل ته د فقه حنفی یا بلے فقهے کمزورے او بی دلیله مسئلے وربنائی نو داسے به ورته نه وائی چه د فقه گندگی وګوره بلکه داسے وئیل به مناسب وی چه راشه د فقهے کمزورے او بی دلیله مسئلے وګوره.

السب : هُوَ تَنْقِيْصُ الشَّيْءِ بِمَا لَايَلِيْقُ بِشَانِهٖ . سب د یو شی تنقیص (نقصان) بیانول په هغه طریقه چه د هغه د شان لائق نه وی.

## شان نزول

امام عبد الرزاقؒ د قتادةؒ نه روایت کړیدے چه مسلمانانو به د کافرانو بتانو ته کنځلے کولے، نو هغوی منع شو، دے دپاره چه هغوی الله ته کنځل ونکړی. ابن جریرؒ او ابن ابی حاتمؒ وغیره د ابن عباس ﷛ نه روایت کړیدے چه مشرکانو ووئیل اے محمده ! (ﷺ) ته زمونږ معبودانو ته د کنځلو کولو نه منع شه، ورنه مونږ به هم ستا د رب بدی بیان کړو. نو الله تعالیٰ بتانو ته د کنځلو کولو نه مؤمنان منع کړل ځکه چه چرته د یوے لوئی بدئ دروازه کولاویدو خطره وی نو هلته به وړوکی نیکی پریخودے شی.

بخاریؒ وغیره د عبد الله بن عمر ﷛ نه روایت کړیدے چه د کبیره گناهونو نه دا دی چه سړے خپلو والدینو باندے لعنت ووائی. خلقو تپوس وکړو چه سړے په خپلو والدینو باندے څنګه لعنت وائی ؟ نو نبی ﷺ وفرمایل : چه دا د چا پلار ته کنځل وکړی نو هغه سړے ددهٔ پلار ته کنځلے وکړی، او دا د هغه مور ته کنځل وکړی نو هغه ددهٔ مور ته کنځل وکړی. (ذکره ابن کثیرؒ وصحیح بخاری : ۵۹۷۳) وصحیح مسلم رقم : ۲۷۳)

وَلَا تَسُبُّوا الَّذِيْنَ : الذین نه مراد معبودان او (یدعون) کښې فاعل ضمیر مشرکانو ته راجع دے او (هم) ضمیر پټ دے هغه معبودانو ته راجع دے.

كَذٰلِكَ زَيَّنَّا : پدے کښې الله خپل اصول بیانوی چه هر انسان چه په کوم عمل کښې

مصروف شي الله ورته هغه ښائسته ښکاره کوي نو د هغې نه دفاع هم کوي۔
حافظ ابن کثیرؒ ددې داسې معنیٰ کوي : لکه څنګه چه ما دې خلکو ته د دوی د بتانو محبت ښائسته ښکاره کړیدې چه د هغوی په سر جګړې او وکالت کوي نو دغه شان ما د هر تیر شوی ګمراه امت دپاره د هغوی بد عملونه ښائسته ښکاره کړیدي او پدې کښې د الله تعالیٰ حکمتونه دي۔ (ابن کثیرؒ)
او دا جمله هم علت دې د (لَا تَسُبُّوا) دپاره یعنی کنځل ځکه نۀ دي پکار چه هر شخص او هر امت ته خپل عمل اُوچت ښکاري، نو هغې ته رد بد وئیل نۀ برداشت کوي۔
او دا تزیین تقدیري او ابتلائي دې چه الله ورله په زړه کښې دغه شان اچولی دی، نۀ شرعي، او دا ابتلاء ده۔

## سوال وجواب

عَدْوًا بِغَيْرِ عِلْمٍ : سوال : مشرکانو خو الله تعالیٰ منلو او د هغه د عظمت عقیده ئې هم لرله نو هغوی به څنګه الله ته کنځل وکړي؟
مفسرینو ددې ډیر جوابونه کړیدي (۱) عِنْدَ الْغَضَبِ۔ یعنی د ډیرې غصې د وجه نه به ئې دماغ بند شي او الله ته به کنځل وکړي۔
(۲) یا به رسول الله ﷺ ته کنځل وکړي او هغه داسې دي لکه الله ته کنځل کول۔
(۳) اَلْمُجَادَلَةُ فِيْ تَوْحِيْدِهٖ وَوَصْفِهٖ بِمَا لَا يَلِيْقُ۔ (زاد المسیر والراغبؒ)
چه په توحید کښې به جګړه وکړي او الله ته به د هغه څه نسبت وکړي چه هغه د الله سره لائق نۀ دې۔ نو دا الله ته کنځل شو۔
(٤) يَسُبُّ مَنْ اَمَرَكُمْ بِهٖ ۔ یعنی تاسو ته چه چا ددې خبرو حکم کړیدې هغه ته به کنځل وکړي۔ (٥) ظاهر دا ده چه د مشرکانو نه دفاع نۀ ده پکار بلکه هغوی بې ادبه خلك دې، الله ته هم کنځل کوي او قرآن ته ئې هم کوي، آیت او حدیث هم نۀ مني کله چه ضد او دشمنئ کښې راشي ځکه دوی جاهلان دي۔ لکه روستو جمله (عَدْوًا بِغَيْرِ عِلْمٍ) پرې دلیل دې۔ دوی په عامو حالاتو کښې د قرآن او حدیث تعظیم هم لري لیکن د اهل حقو په دشمنئ کښې ددې هر څه نه ووځي او د احترام حدود کراس کوي۔

| وَاَقْسَمُوْا بِاللّٰهِ جَهْدَ اَيْمَانِهِمْ لَئِنْ جَآءَتْهُمْ اٰيَةٌ |
|---|
| او قسمونه کوي دوی په الله مضبوط قسمونه خپل که راغله دوی ته معجزه |
| لَّيُؤْمِنُنَّ بِهَا ۚ قُلْ اِنَّمَا الْاٰيٰتُ عِنْدَ اللّٰهِ |
| نو خامخا ایمان به راوړي په هغې، ته ووایه یقیناً د معجزو اختیار د الله سره دے |
| وَمَا يُشْعِرُكُمْ ۙ اَنَّهَآ اِذَا جَآءَتْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۰۹﴾ |
| او څه پوهیږئ تاسو، کیدے شي دا معجزے که راشي (دوی ته) نو دوی به ایمان نۀ راوړي۔ |

**تفسیر** : دا آیت دا اول د سورت سره لګی، د مکے مشرکانو د خپل عادت مطابق د رسول الله ﷺ نه د یوے نخے مطالبه وکړه او قسم خوړلو سره ئے ووئیل چه که دا نخے راشي نو مونږ به ضرور ایمان راوړو، لکه دوی ووئیل که تا د صفا غونډئ نه سرۀ زر جوړ کړل او ددے علاقے نه دے غرونه لرے کړل، یا دے په مکه کښې چینے روانے کړے نو مونږ به خامخا ایمان راوړو۔ (لکه دا د سیرت او تفسیري روایت دے) (البغوي والقرطبي وغیره)

او ابو الشیخ د ابن جُریج نه ذکر کړیدی چه دا آیت د مستهزئینو په باره کښې نازل وو چه هغوی د رسول الله ﷺ نه دغه مطالبے کړے وے۔ (المنار)

بیا د رسول الله ﷺ او د مؤمنانو دا تمنیٰ وه چه الله تعالیٰ دا معجزات راولیږی (الله ته څه ګرانه ده؟) کیدے شي چه دا خلك به ایمان راوړي؟ نو الله جبریل علیه السلام راولیږو او رسول الله ﷺ ته ئے اختیار ورکړو چه ستا خوښه ده چه دا معجزه به راشي، لیکن که دوی خبره ونۀ منله، نو سمدست عذاب به پرے راځي او که نه په خپل حال ئے پریږدو [يَتْرُكُهُمْ حَتّٰى يَتُوْبَ تَائِبُهُمْ] چه په دوی کښې به څیني کسان توبه وباسي؟، نو رسول الله ﷺ دا دویمه خبره غوره کړه، نو الله دلته مؤمنانو ته هم خطاب وکړو چه تاسو معجزات مۀ غواړئ چه دا دے راشي۔ ځکه چه الله ته معلومه ده چه د مشرکانو مقصد ایمان راوړل نۀ وو بلکه د رسول الله ﷺ او د الله د آیتونو پورے توقے کول وو۔ پدے وجه الله تعالیٰ نبي ﷺ ته حکم وکړو چه د دوی په جواب کښې دوی ته ووائي چه آیتونه او نخے د الله سره ډیرے دي۔ لیکن ستاسو د مرضئ مطابق د هغے راوړل زما په اختیار کښې نۀ دي۔

**جَهْدَ اَيْمَانِهِمْ** : دوی به مضبوط قسم هغے ته وئیلو چه صرف په الله به ئے کولو، امام قرطبيؒ وئیلی دي چه ددے زمانے جاهلان په الله باندے قسم معمولي ګنړي او په غیر الله

باندے قسم لوی او خطرناك گنړی (نو دوی پدے کار سره د زړو مشرکانو نه هم زیات گمراه دی)۔

وَمَا يُشْعِرُكُمْ : پدے کښ خطاب مؤمنانو ته دے۔ او اشعار او شعور په معنیٰ د پوهے سره دے۔ او ما استفهامیه انکاریه ده۔ یعنی تاسو څه پوهه کړی یئ چه کله معجزات راشی چه دوی به ایمان راوړی یعنی ایمان نهٔ راوړی۔

اِذَا جَآءَتْ لَا يُؤْمِنُوْنَ : سوال: پدے معنیٰ باندے خو بیا (یؤمنون) پکار دے؟

(۱) یو جواب دا دے چه دلته (لَا) مقحم (زائد) دے۔ او د تاکید د انکار دپاره راغلے دے۔ (قاله الکسائیؒ-بغویؒ) مگر د (لَا) زیادت ته زجاجؒ او نحاسؒ غلط او خطاء وئیلے دے۔

(۲) جواب : اَنَّهَا په معنیٰ د لَعَلَّ دے لکه حروف مشبه بالفعل کله نا کله د یو بل په معنیٰ سره راځی، او امام بغویؒ او قرطبیؒ وغیره ددے دپاره د عربو د اشعارونه مثالونه ذکر کړیدی۔ (قاله الخلیلؒ وسیبویهؒ) اَیْ لَعَلَّهَا اِذَا جَآءَتْ لَا يُؤْمِنُوْنَ۔

یعنی تاسو څه پوهه کړی یئ کیدے شی چه دا معجزے به راشی بیا به هم دوی ایمان رانهٔ وړی۔ (نو معجزے غوښتل خو په هغه صورت کښ پکار دی چه د خلکو د ایمان د راوړو یقین وی)

(۳) ځینی وائی چه دلته د (ما یشعرکم) دویم مفعول پټ دے : [اَیْ وَمَا يُشْعِرُكُمْ مَا فِی الْوَاقِعِ وَفِیْ عِلْمِ اللّٰهِ اَنَّهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ) یعنی تاسو ته څه پوهه درکړیده چه په واقع کښ به څه کیږی، او د الله په علم کښ دا ده چه دوی ایمان نهٔ راوړی)

(٤) نحاسؒ وغیره وئیلی دی چه دلته بل طرف پټ دے [اَیْ لَا يُؤْمِنُوْنَ اَوْ يُؤْمِنُوْنَ] یعنی چه دوی به ایمان رانهٔ وړی یا به ئے راوړی۔ (قرطبیؒ)

(٥) صاحب المنار دیر ښه تعبیر کړیدے [وَمَا يُشْعِرُكُمْ اَیْ لَيْسَ لَكُمْ شَیْءٌ مِنْ اَسْبَابِ الشُّعُوْرِ بِهٰذَا الْاَمْرِ الْغَيْبِيِّ الَّذِیْ لَا يَعْلَمُهٗ اِلَّا عَلَّامُ الْغُيُوْبِ وَهُوَ اَنَّهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ اِنْ جَآءَتِ الْاٰيَةُ]

یعنی تاسو څه پوهه کړی یئ (یعنی تاسو پدے غیبی کار باندے نهٔ پوهیږئ کوم باندے چه صرف علام الغیوب پوهیږی هغه دا دے چه دا معجزات که راشی نو دوی ایمان نهٔ راوړی۔ نو ځکه الله دغه معجزات نه نازلوی۔ صاحب المنار دغه بعض مخکنی توجیهات بعید گنړلی دی او ځینو ته ئے غفلت وئیلے دے او پدے صورت کښ به د (لَا) داخلیدل په خپل حال باندے صحیح وی۔

| وَنُقَلِّبُ اَفْئِدَتَهُمْ وَاَبْصَارَهُمْ كَمَا لَمْ يُؤْمِنُوْا |
|---|
| او اړه وو راړو زړونه د دوی او سترګې د دوی لکه څنګه چه ایمان نهٔ وو راوړے دوی |
| بِهٖۤ اَوَّلَ مَرَّةٍ وَّنَذَرُهُمْ فِیْ طُغْیَانِهِمْ یَعْمَهُوْنَ ﴿۱۱۰﴾ |
| په هغې اول ځل او پریدو مونږ دوی لره په سرکشئ د دوی کښې سرګردانه به وی۔ |

**تفسیر**: دا آیت دوه طریقو سره لګی، (۱) شیخ الاسلام ابن تیمیهؒ او صاحب المنار دے ته ترجیح ورکړیده چه دا عطف دے په (لَایُؤْمِنُوْنَ) بانددے، او مقصد به دا وی چه د آیتونو راتګ سره سره به الله تعالیٰ د دوی زړونه اوسترګې د هغې نه واړوی او ایمان به پرے رانهٔ وړی څکه چه دوی به د هغې دپاره قِسم قِسم تاویلات او خیالات راپیدا کړی لکه مخکښې چه دوی ته کوم معجزات راغلی وو او په هغې باندے د ایمان نهٔ راوړو قسماقسم بهانے کړے وے۔ څکه چه چا ته قرآنی عقلی او علمی دلیلونه قناعت ورنکړی نو هغه ته به حسی معجزات هیڅ قناعت ورنکړی بلکه دا به وائی چه زمونږ سترګې دوکه شویدی او مونږ باندے جادو شویدے۔ ﴿اِنَّمَا سُكِّرَتْ اَبْصَارُنَا بَلْ نَحْنُ قَوْمٌ مَّسْحُوْرُوْنَ﴾۔

(۲) دویم تفسیر چه هغه زیات راجح دے او هغه دا چه پدے کښې علت د عدم ایمان د دوی ذکر دے، یعنی دوی ته به معجزه هم راشی، مګر دوی به بیا هم ایمان نهٔ راوړی، وجه ئے دا ده چه دے خلکو اول کښې ضد وکړو چه الله حق راولیږلو او ښه واضحه وو خو دوی د (لَا نُسَلِّمُ) (یعنی نهٔ منو) په ډیرئ ودریدل نو دوی ته الله تعالیٰ دا سزا ورکوی چه دوی به اُوس ایمان نهٔ راوړی او د ایمان نه به ئے محرومه کوی څکه چه دا قانون دے چه کله بنده ته اوله کښې حق راشی او دے ئے سمدست رد کړی، او په باطل باندے کلک ودریږی، نو که روستو ورته ښه حق مخے ته هم راشی او واضحه هم شی او پو هه هم پرے شی لیکن بیا به هم ورته توفیق نهٔ ملاویږی لکه پدے خبره باندے تجربه شویده چه ډیرو باطل پرستو اول کښې د حق خلاف کړیدے که روستو ورته کتاب او سنت ښه ښکاره شویدی هم ورته توفیق نهٔ ملاویږی. او پدے باندے دلیل دا قول د الله تعالیٰ دے ﴿فَمَا كَانُوْا لِیُؤْمِنُوْا بِمَا كَذَّبُوْا مِنْ قَبْلُ كَذٰلِكَ یَطْبَعُ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِ الْكَافِرِیْنَ﴾ (اعراف ۱۰۱) یعنی دوی پرے مخکښې ایمان نهٔ وو راوړے نو څکه پرے الله تعالیٰ مهر ووهلو۔ او الله فرمائی: ﴿سَاَصْرِفُ عَنْ اٰیٰتِیَ الَّذِیْنَ یَتَكَبَّرُوْنَ فِی الْاَرْضِ بِغَیْرِ الْحَقِّ﴾ یعنی دوی د الله تعالیٰ د آیتونو نه تکبر کړے وو څکه ترے

الله تعالیٰ واړولې او د ایمان توفیق ئې ورنکړو۔ او ددې په شان نور آیتونه واخله۔
كَمَا لَمْ يُؤْمِنُوا : کاف تعلیلیه دې په معنیٰ د (إِذْ) سره۔

| وَلَوْ اَنَّنَا نَزَّلْنَآ اِلَيْهِمُ الْمَلٰٓئِكَةَ وَكَلَّمَهُمُ الْمَوْتٰى وَحَشَرْنَا |
|---|
| او که چرې مونږ راولیږو دوی ته ملائك او خبرې وکړي دوی سره مړي او راجمع کړو |
| عَلَيْهِمْ كُلَّ شَيْءٍ قُبُلًا مَّا كَانُوْا لِيُؤْمِنُوْٓا اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ |
| په دوی باندې هر شے مخامخ، نهٔ دي دوی چه ایمان راوړي مگر هغه وخت چه وغواړي |
| اللّٰهُ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ يَجْهَلُوْنَ ﴿۱۱۱﴾ |
| الله او لیکن زیات د دوی نه ناپو هه دي۔ |

**تفسیر** : پدې آیت کښې هم د مؤمنانو د سوال جواب دې، او هغوی ته تنبیه ده او پدې کښې ئې د مکې د مشرکانو په ډیره سختئ سره تکذیب کړېدې چه دوی په دې خبره کښې دروغژن دي چه نخې دې راشي مونږ به ایمان راوړو نو الله فرمائي چه دا خلق د یوې نخې خبره کوي، که مونږ دوی ته ملائك هم راولو لکه څنګه چه دوی ددې نه مخکښې مطالبه کړې وه چه ﴿لَوْلَا اُنْزِلَ عَلَيْنَا الْمَلَائِكَةُ﴾ (الفرقان: ۲۱) (په دهٔ باندې ملائك ولې نهٔ نازلیږي) او د قبرونو نه مړي راپورته شي او دوی سره خبرې هم وکړي لکه چه دوی ددې نه مخکښې دا سوال کړې وو چه ﴿فَأْتُوْا بِآبَائِنَا اِنْ كُنْتُمْ صَادِقِيْنَ﴾ (الدخان: ۳۶) (زمونږ پلاران راولئ که تاسو رشتینی يئ) ﴿اَوْ كُلِّمَ بِهِ الْمَوْتٰى﴾۔ (الرعد: ۳۱)

(یا پدې کتاب سره د مړو سره خبرې وشي)

او د دوی مخې ته د دنیا ټول حیوانات، نباتات او جمادات د نخې په توګه راجمع کړو نو هم دا خلق د خپلې سرکشئ او تَمَرُّد په وجه ایمان نهٔ راوړي، آؤ، که الله غواړي نو ایمان به راوړي۔ لیکن اکثر خلق ناپوهه دي، پو هیږي نهٔ چه د ایمان دولت د الله په مشیت سره ملاویږي، د خلافِ عادت نخو ښکاره کیدو سره نهٔ۔

اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ : دا څکه وائي چه د الله مشیت آزاد دې، هغه کولې شي چه د کاڼړي په شان سخت کافر ته هم د ایمان توفیق ورکړي۔ نو الله د دوی په ایمان قادر دې لیکن د دوی د ضد د وجه نه ئې ورته نهٔ ورکوي۔

علامه قاشانيؒ لیکلي دي چه د داسې ایمان د الله په نیز هیڅ اعتبار هم نشته چه د عادت

خلاف نخو لیدلو سره راوړے شي.

وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ يَجْهَلُوْنَ : نو د معجزاتو طلب کول د جهالت خبره ده، پدے سره نظام خرابیږي او که د دوی حق مطلب وي نو يوه معجزه هم کافي ده او که حق ئے مطلب نۀ وي او ضد کوي نو که د ټولے دنیا معجزے د دوی مخے ته راشي نو هم ایمان نۀ راوړي.

| وَكَذٰلِكَ جَعَلْنَا لِكُلِّ نَبِيٍّ عَدُوًّا شَيٰطِيْنَ الْاِنْسِ وَالْجِنِّ |
|---|
| او دغسے ګرځولي دي مونږ هر نبي له دشمنان شیطانان د انسانانو او د پیریانو نه |
| يُوْحِيْ بَعْضُهُمْ اِلٰى بَعْضٍ زُخْرُفَ الْقَوْلِ |
| وسوسے اچوي بعض د دوی بعضو ته د ښائسته کړے شوے خبرے (یا رنګدارے خبرے) |
| غُرُوْرًا ۚ وَلَوْ شَآءَ رَبُّكَ مَا فَعَلُوْهُ |
| دپاره د دهوکه کولو، او که اراده کړے وے رب ستا نۀ به وے کړے دوی دا کار |
| فَذَرْهُمْ وَمَا يَفْتَرُوْنَ ﴿۱۱۲﴾ |
| نو پریږدۀ دوی لره او هغه چه دوی ئې دروغ جوړوي. |

**تفسیر** : پدے آیت کښې رسول الله ﷺ ته تسلي ده، او بله عقبه ده چه په داعي باندے راځي او بیا روستو د مشرکانو دلیل ذکر کوي، بیا تر آخر د سورت پورے د حلال او حرام مسائلو بیان دے.

## د آیت مقاصد

۱- پدے آیت کښې تسلي ده رسول الله ﷺ ته ځکه چه د مکے مشرکانو په دشمنیانو او اعتراضونو سره به کله نا کله د رسول الله ﷺ زړۀ خفه شو، ځکه دے اعتراضاتو او پریشانیو ته تینګیدل ډیر ګران کار دے، نو الله تعالیٰ د وحي په ذریعه د هغه د زړۀ خیال وساتلو. او د تسلي حاصل دا دے چه هر نبي چه راغلے دے نو په مقابله کښې ئے انسي او جني شیطانان ودریدلي دي او د حق په مقابله کښې ئے ملا تړ کړیدے نو دا د الله مخکني اصول دي، نو ته خفګان مۀ کوه. بیا سوال پیدا کیږي چه الله تعالیٰ ولے د شیطانان دله په دنیا کښې پریخوستے ده؟ نو الله فرمائي چه پدے کښې هم زما ډیرے حکمتونه دي چه په (وَلِتَصْغٰى) او (لِيَرْضَوْهُ وَلِيَقْتَرِفُوْا) سره ئے بیان کړیدي.

۲- د الله تعالیٰ عادت دا دے چه هغه دوه دعوتونه روان کړیدی د پخوا (آدم علیه السلام د زمانې) نه یو دعوة الرحمن، بل دعوة الشیطان، او دواړه د الله په اراده روان دی، لیکن د شیطان د دعوت نه ئے منع کړیده او د رحمٰن دعوت ته ئے ترغیب ورکړیدے، نو دعوتِ رحمانی د انبیاؤ علیهم السلام طریقه ده، او دعوتِ شیطانی د شیطان طریقه ده، نو سوال پیدا شو چه شیطان ته الله تعالیٰ ولے توفیق ورکړیدے چه هغه لګیا دے خلك ګمراه کوی؟ نو الله فرمائی چه پدے کښې راز دا دے چه په انسانانو کښې دوه قسمه خلك دی، یو بصیرت والا او بل خباثت والا، نو زړه پرے خباثت والا ګمراه کوم دے دپاره چه جهنم دپاره یوه ډله تیاره شی، او بصیرت والا د رحمٰن د دعوت پسے روان شی نو جنتیان شی. بیا خبیثان څوك دی؟ نو فرمائی چه دا هغه خلك دی چه د الله د ملاقات منکر دی او په آخرت ایمان نهٔ لری، نو دوی باندے به د شیطان دعوت خوږ ولګی او هغه به ورله مزه ورکړی نو ګمراه به شی نو د جهنم خشاك به جوړ شی، او بعض خلك به د الله د ملاقات منکر نهٔ وی بلکه د هغے نه به یره کوی نو هغوی به د رحمٰن د دعوت پسے روان شی نو د جنت اهل به شی.

۳- د عقبیے حاصل داسے دے چه داعی کله دعوت کوی نو د هغه په مقابله کښې جنی شیطان راپورته شی، د هغه دعوت بندول غواړی نو هغه انسانانو ته وسوسه واچوی (د ملیانو په جامه کښې) نو هغه ددهٔ په مقابله کښې ودروی نو هغه شیطانان دے شیطانانو ته دلائل وربنائی او چالاکی ورزده کوی چه ددے حق پرست په مقابله کښې داسے خبرے وکړه چه هغے ته الله تعالیٰ زخرف القول وئیلے دے، نو هغه رنګدارے خبرے کوی او هغه پدے سره داعی خکته کول او پر کول غواړی لیکن چرته ئے نشی پر کولے، بلکه پدے کښې غرض دا دے چه نور بی دینه خلك ګمراه شی کوم چه آخرت نهٔ منی، نو دغه رنګدارو خبرو پسے روان شی لکه په مناظرو کښې دا کار ډیر کرته کیږی چه عوام د غلطو خبرو والو پسے ډیر ورځی او د حق پرست پسے لږ خلك ورځی، دا کار الله تعالیٰ د تمیز دپاره کوی. او دا مناظرے همیشه د حق پرستو سره شویدی، د رسول الله ﷺ سره هم شویدی، مشرکانو، یهودو او نصاراؤ کړیدی. قسماقسم اعتراضونه به هغه کیدل، نو نا اهله خلك به پرے ګمراه شو او اهل به نهٔ ګمراه کیدل. نو الله تعالیٰ د هغے مناظرے طریقه به دا بیانوی ﴿ أَفَغَيْرَ اللَّهِ أَبْتَغِي حَكَمًا ﴾ یعنی مونږ به بحث کوو لیکن فیصله کونکے به الله وی او د هغه فیصله به څنګه وی هغه دا ده چه ﴿ وَهُوَ الَّذِي أَنزَلَ إِلَيْكُمُ الْكِتَابَ مُفَصَّلًا ﴾ الله تعالیٰ قرآن رالیږلے دے. او د پخوانو اهل کتابو د علم نه به هم دلیل پیش کوو، نو حق پرست او

باطل پرست به معلومیږي.

## توضیحات

وَكَذٰلِكَ جَعَلْنَا: [أَيْ كَمَا جَعَلْنَا لَكَ عَدُوًّا كَذٰلِكَ جَعَلْنَا لِكُلِّ نَبِيٍّ عَدُوًّا]. یعنی موږ لکه څنګه چه ستا دښمنان پیدا کړیدي چه ستا مخالفت کښې لګیدلي دي، نو دغه شان موږ ستا نه مخکښې د تمامو انبیاؤ علیهم السلام هم دښمنان پیدا کړي وو، (د امتحان دپاره) چه د انسانانو او جناتو اشرار به وو، او چه د خلقو د دهوکې ورکولو دپاره به ئې ناحقه خبره او ناحق کار د حق په جامه کښې پیش کولو، پدې وجه ته مهٔ پریشانه کیږه. که الله غوختې نو دې شیاطین الجن والانس به ستا او د تیر شوي انبیاؤ مخالفت نهٔ وې کړې، ته دوي پریږده دې دپاره چه نور دروغ هم جوړ کړي. دوي ته به نزدې خپل بد انجام معلوم شي.

مجاهدؒ ددې آیت په تفسیر کښې وئیلي دي چه د جناتو کافران شیاطین وي. هغه انسانانو کافرانو یعنی شیاطین الانس ته ښائسته شوي خبرې خلقو ته د دهوکې ورکولو دپاره رسوي.

يُوْحِيْ: ایحاء او وحي دلته وسوسې ته وائي. یعنی ابلیس د انسان په زړهٔ کښې اعتراض واچوي چه پدې حق پرست باندې دا اعتراض وکړه، او دغه شان په انسانانو کښې مشر ملا کشرانو ته اعتراضونه ښائي.

زُخْرُفَ الْقَوْلِ : دولي کړې شوې خبرې. په قول کښې زخرف دې ته وائي چه ظاهر ئې ښائسته وي او باطن ئې خراب وي لکه خوشیانو (یا اُوسپنه او تانبې) لره د سرو زرو اُوبه ورکړې شي چه حقیقت ئې نشته، او ظاهر کښې سور ښکاره کیږي، خلکو له دهوکه ورکوي.

نو باطل پرست د عوامو د ذهن جوړولو دپاره خبرې لره رنګ ورکړې وي چه په ظاهره کښې ښائسته او حقه ښکاره کیږي لیکن په باطن کښې هغه دروغ وي. او دهر باطل پرست (مشرکان، یهود او نصاریٰ او مبتدعینو) خبرې همدغه شان وي.

### د زخرف القول مثالونه

۱- مجوسیانو مشرکانو ته د رسول الله ﷺ په خلاف دا خبره خودلې وه چه کومه کله اوبزهٔ چه تاسو ذبح کړئ هغه حلاله ګڼرئ او چه الله ئې د سرو زرو په توره ذبح کړي (یعنی

مرداره شوے) نو هغه تاسو حرامه ګڼئ او نهٔ ئے خورئ، آیا انسان ګنے د الله نه غوره شو ؟!
دا خبره په ظاهره کښ رنګداره ده، لیکن په مینځ کښ غلطه ده. که سوچ وکړے هغه دا
چه انسان چه ئے مړه کړی، نو پدے باندے د الله تعالیٰ نوم اخستے شوے وی، او بل ترے
مسفوح (ګنده) وینه بهیدلے ده نو ځکه حلاله ده او مرداره باندے بسم الله نهٔ ده وئیلے شوے
او ګنده وینه ترے نهٔ ده وتلے نو دغه الله وئیلی دی چه زما نوم پرے نهٔ وی اخستے شوی هغه
به نهٔ خورئ، د الله د حکم د وجه نه ئے مونږ نهٔ خورو.

۲– یهودیانو به وئیل، الله چه د انسانانو د هدایت دپاره یو شریعت راولیږی هغه بیا
څنګه منسوخ کړی؟ دا خو په جهالت باندے دلیل دے. نو دا خبره په عوامو اثر کوی، دا
رنګداره خبره ده. جواب دا دے چه په نسخ کښ ډیر فوائد دی، د انسانانو د مصلحت د
وجه نه دا کار کیږی او دا د الله په کمال دلیل دے چه په هره زمانه کښ د انسانانو د حال
مطابق احکام رالیږی.

۳– نصاراؤ به وئیل چه عیسیٰ ؑ ته په انجیل کښ ابن الله (د الله ځوی) وئیل شویدے
نو د هغے جواب دا دے چه ابن (ځوی) په انجیل کښ په معنیٰ د محبوب سره وو، او تاسو
ترے غلط مطلب واخستو.

٤– پدے امت کښ جهمیه ؤ د الله تعالیٰ د اسماء او صفاتو نه انکار کړیدے، او دے له ئے
بنه رنګ ورکړیدے چه مونږ د الله او د رسول خبرے منو، مسلمانان یو، لیکن اسماء او
صفات ډیرول د توحید منافی دی، پدے کښ تعدد د قدماؤ راځی. نو مونږ خالص
موحدین یو. نو ډیر علماء د جهمیه ؤ پدے غلطو شبهاتو باندے ګمراه شو. او ډیر اشاعره
او ماتریدیه هم ددے شبهاتو ښکار شو.

جواب دا دے چه تعدد د قدماؤ هله مُضر دے چه کله مستقل وی او صفات خو د الله د
ذات سره متعلق دی نو دا د الله په کمال باندے دلیل دے.

۵– شیعه ګانو به زخرف القول داسے کولو چه علی ؓ خو د رسول الله ﷺ زوم دے او
هغه ته دے خلافت نهٔ ورکړے کیږی او بل ځوك ئے اخلی، دا خو د رسول الله ﷺ د رشته
دارو سره ظلم کوی نو خلکو باندے به اثر وشو. جواب دا دے چه د ابوبکر ؓ په خلافت
باندے د رسول الله ﷺ اشارات موجود دی او دا کار په مشوره د صحابه کرامو شویدے.

٦– که ته ووائے چه اے خلکو ! تقلید مهٔ کوئ او د سنتو تابعداری شروع کړئ، نو
شیطانان به رنګدارے خبرے جوړی کړی چه مونږه د امام ابوحنیفةؒ چه تابعی دے هغه

پسے لاړ شو چه علم ئے هم زیات او د رسول الله ﷺ زمانے ته هم نزدې دے، او که ددے زمانے یو ملا چه علم ئے هم دومره نشته او د یوے روپئ سره کینې پاخي، او د ګناهونو نه ډک دے ددهٔ پسے روان شو؟۔ دا رنګداره خبره ده چه په عوامو بلکه په نیمګړی ملیانو هم دا خبره اثر کوی چه دا خو رشتیا ده۔ ددے جواب دادے چه مونږ تاسو ته داسے نهٔ وایو چه مونږ پسے روان شئ، یا زما استاذ پسے بلکه مونږ داسے وایو چه د رسول الله ﷺ د حدیثو پسے روان شه، که په یوه مسئله کښې د رسول الله ﷺ حدیث راغلو او د هغے په خلاف د امام ابوحنیفةؒ خبره راغله (لکه په مسئله د مُصراة کښې، د سجدهٔ شکر، د ماښام نه مخکښې دوه رکعاته نفل وغیره مسائل) نو دغه حدیث د ابوحنیفةؒ دپاره مهٔ پریده، دا زمونږ دعوت دے۔خو دوی زمونږ دعوت په ووان شکل کښې پیش کړی، دا شیطانی طریقه ده۔

۷– کله د اهل الحدیث والسنة دعوت پدے طریقه خرابوی چه ستاسو وحید الزمان دا لیکلی دی او نزل الابرار کښې ئے دا لیکلی دی، د هغوی غلطے خبرے (بالفرض) په مونږ باندے راچسپانوی، حال دا چه زمونږ دعوت کتاب او سنت ته دے او په هغے کښې هیڅ عیب نشته۔

۸– د زخرف القول لوی مصداقات د اُوکاړوی ګمراه هغه درے سوه اعتراضات دی چه د حق په خلاف ئے لیکلی دی، او تول بې ځایه د عوامو د ګمراه کولو دپاره دی۔ چه په مانځه کښې فرض او واجب او مستحب وښایئ، او د (نیا) سره د نکاح حرمت وښایئ، مقصد ئے دا دے چه دا تاسو نشئ خودلے نو بس ستاسو قرآن او حدیث نیمګړی شو، او راځئ زمونږ خلاصه کیدانی وغیره پسے روان شئ۔ د هغے لس جوابونه دی چه په خپله موقعه کښې بیانیږی۔ او زمونږ ورور حافظ زبیر علیزئ رحمه الله تعالیٰ د هغے په رد کښې جامع کتاب لیکلے دے ((امین اوکاړوی کا تعاقب))۔

۹– هغه دا هم لیکلی دی چه انسانان درے قسمه دی، حاکمان، رعیت او باغیان نو امامان حاکمان دی او مونږ (مقلدین) د هغوی رعیت یو او اهل حدیث باغیان دی۔ دا هم رنګداره خبره ده۔ جواب دا دے چه دا خبره سوچه غلطه ده بلکه خبره اُلټه ده، محمد رسول الله ﷺ حاکم دے او مونږ د هغه رعیت او تابعدار یو او مقلدین (ستاسو په شان) د رسول الله ﷺ نه باغیان دی۔

دوی د رسول الله ﷺ د سنتو نه بغاوت کړیدے او مونږ د اماماتو نه هیڅکله بغاوت نهٔ

دے کړے، بلکه د هغوی کمزورے خبرے مو پربنی دی او د هغے په ځای مو حدیثونه راټینګ کړیدی. او بیا دا چا ونیلی دی چه امامان حاکمان دی بلکه رسول الله ﷺ حاکم دے (فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتّٰى يُحَكِّمُوْكَ فِيْمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ).

نو هره خبره چه د رسول الله ﷺ نه اړول، او د الله د بندګئ نه پکښې اړول راځی دغه به زخرف القول کښې داخله وی.

۱۰ - پخوا به ئے ونیل تاسو چه د سنتو نه روستو په شریکه دعا نهٔ کوئ نو تاسو دعا نهٔ منئ. دا رنګداره خبره ده حال دا چه یو دعاء نهٔ منل دی، او بل دعاء په یو خاص مقام کښې نهٔ کول دی، دواړو کښې د زمکے او د آسمان فرق دے. د دعاء نه انکار خو کفر دے او په دغه خاص مقام کښې دعاء څکه نکوو چه رسول الله ﷺ نهٔ ده کړے، بدعت دے.

۱۱ - مشرکان وائی چه تاسو اولیاء نهٔ منئ، دوی د اولیاؤ منل دے ته وائی چه د هغوی بندګی شروع کړی.

۱۲ - صوفیان وائی چه تاسو تبلیغ نهٔ منئ حال دا چه تبلیغ د دین لویه برخه ده، لیکن په دغه ترتیب باندے تبلیغ کول او بیا د یو څو خبرو دعوت کول سره د خرافاتو بیانولو نه، او دعوه د ټول دین کول دا صحیح طریقه نهٔ ده.

د زخرف القول دومره مثالونه دی چه پدے باندے یو لوی مستقل کتاب لیکلے شی.

غُرُوْرًا : دا مفعول له دے، اَیْ لِلْغُرُوْرِ. یعنی د رنګدارو خبرو وسوسه ددے دپاره اِنسی شیطانانو ته اچوی چه خلك پرے دهوکه کړی.

وَلَوْشَآءَ رَبُّكَ : بیا الله تعالیٰ خپل مشیت بیانوی او جواب د سوال دے چه د پیغمبر په مقابل کښې رنګدارے خبرے څنګه کار ورکړی؟ نو الله فرمائی : [وَلَوْ شَاءَ رَبُّكَ اَیْ مَنْعَهُمْ] که ستا د رب اراده شوے او هغه د دوی منع کول غوښتلے نو دوی به دا کار نهٔ وے کړے لیکن الله ئے داسے پریدی دپاره د راتلونکو فائدو.

| وَلِتَصْغٰۤى اِلَيْهِ اَفْـِٕدَةُ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ |
|---|
| او دے دپاره چه مائل شی دے (دروغو) ته زړونه د هغه کسانو چه ایمان نهٔ لری په آخرت |
| وَلِيَرْضَوْهُ وَلِيَقْتَرِفُوْا مَا |
| او دے دپاره چه دوی خوښ کړی دا (دروغ) او دے دپاره چه وکړی دوی هغه څه |

هُمْ مُّقْتَرِفُوْنَ ﴿۱۱۳﴾

چه دوی ئے همیشه کونکی دی۔

**تفسیر** : وَلِتَصْغٰی : دا عطف دے په (غرورا) باندے او غرورا په معنیٰ د (للغرور) دے۔
انسی او جنی شیطانان پدے وجه هم د دهوکے بنائسته خبرو جوړولو نه کار اخلی چه کوم خلق په ورځ دآخرت ایمان نهٔ لری د هغوی زړونه هغوی طرف ته مائل شی، او دوی خپل امامان او پیشوایان اُومنی، او د خپل نفس د خواهشاتو مطابق چه څه غواړی، اُوکړی۔ نو څوك چه د آخرت منکروی هغه پداسے خبرو او غلط دعوت باندے گمراه کیږی۔ لکه الله تعالیٰ فرمائی :
﴿ وَمَا كَانَ لَهٗ عَلَيْهِمْ مِّنْ سُلْطَانٍ اِلَّا لِنَعْلَمَ مَنْ يُّؤْمِنُ بِالْاٰخِرَةِ مِمَّنْ هُوَ مِنْهَا فِيْ شَكٍّ ﴾ (سبا: ۲۰)
او نشته شیطان لره په مؤمنانو باندے څه زور مگر مونږ پرے ددے دپاره مقرر کړیدے چه مونږ ښکاره کړو چه څوك په آخرت ایمان لری او څوك د آخرت نه په شك کښې دی۔
وَلِيَرْضَوْهُ : یعنی چه مائل شی نو څه به وشی؟ نو فرمائی : چه هغه خبره به پسند او خوښ کړی، او داسے به ووائی چه زمونږ پیر او مُرشد او ملا صاحب خو ډیره ښه خبره وکړه۔ او هرکله چه دغه خبره ورته خوښه ښکاره شی، نو بیا به په دغه غلطه خبره کلك ودریږی (په شرك، په بدعت، په تقلید به د مُلا د خبرے د وجه نه کلك پاتی شی) نو بله نتیجه پرے دا مرتب شوه۔
وَلِيَقْتَرِفُوْا مَاهُمْ مُّقْتَرِفُوْنَ : دے دپاره چه وکړی هغه عملونه او شرکونه او بدعات چه دوی ئے د مخکښې نه کوی، بیا الله پرے دا شرکونه او گمراهیانے ولے کوی ؟ نو دا ددے دپاره چه جهنم دپاره ئے تیاروی۔ ای (لِيَزْدَادُوْا اِثْمًا) دے دپاره چه گناهونه ئے زیات شی او د جهنم خشاك ترے جوړ شی۔ لنډ مطلب دا شو چه د شیطان دعوت الله ولے جاری کړیدے ؟ نو دا ددے دپاره چه بی ایمانه خلك په هغې گمراه شی او جهنم ته ورسیږی۔
مُّقْتَرِفُوْنَ : اَیْ مُكْتَسِبُوْنَ ۔ یعنی هغه چه دوی ئے کوی۔ یعنی په گناهونو کښې ښه ورننوزی او د خپلو خواهشاتو مطابق کارونه وکړی۔

اَفَغَيْرَ اللّٰهِ اَبْتَغِيْ حَكَمًا وَّهُوَ الَّذِيْٓ اَنْزَلَ

آیا پس سیویٰ د الله نه طلب کړم فیصله کونکے، او الله هغه ذات دے چه رالیږلے ئے دے

| |
|---|
| اِلَيْكُمُ الْكِتٰبَ مُفَصَّلًا ؕ وَالَّذِيْنَ اٰتَيْنٰـهُمُ |
| تاسو ته کتاب ښه واضحه (تفصیلی)۔ او هغه کسان چه ورکړے دے مونږ هغوی ته |
| الْكِتٰبَ يَعْلَمُوْنَ اَنَّهٗ مُنَزَّلٌ مِّنْ رَّبِّكَ بِالْحَقِّ |
| کتاب پو هیږی چه بیشکه دا نازل شویدے د طرفه د رب ستا نه په رشتیا سره |
| فَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُمْتَرِيْنَ ﴿۱۱۴﴾ |
| نو مهٔ کیږه تهٔ د شك کونکو نه۔ |

**تفسیر**: پدے کښ رسول الله ﷺ او هر داعی ته یو ادب ورکوی۔ یعنی داعی وائی چه هرکله چه تاسو ما سره بحثونه کوئ نو زمونږ او ستاسو حاکم به د الله کتاب وی۔

اَفَغَيْرَ اللّٰهِ: دا استفهام انکاری دے، د مکے د بعض مشرکانو د رد دپاره د تپوس اسلوب او طرز اختیار شویدے۔ د آیت مطلب دا دے چه اے محمد (ﷺ) ! تهٔ مشرکانو ته اُووایه چه زهٔ خنګه لاره ورکه کړم او د الله نه سیوئ بل څوك د ځان او ستاسو ترمینځ فیصله کونکے اُومنم ؟!۔

په اصل کښ دا جواب وو د قریشو کافرانو د سوال چه اے محمده ! مونږ په خپلو بتانو باندے ستا د تنقیدونو نه تنګ راغلی یو۔ پدے وجه څوك زمونږ او ستا ترمینځ حَکَم او فیصله کونکے جوړ کړه چه زمونږ فیصله وکړی۔ (سمعانیؒ)

نو الله خپل نبی ته وائی چه تهٔ دوی ته جواب ورکړه چه آیا زهٔ د الله نه سیوئ بل کوم طاغوت خپل حَکَم (فیصله کونکے) اُومنم، حال دا چه الله ستاسو د هدایت دپاره هغه قران نازل کړیدے چه په هغے کښ حق او باطل او حلال او حرام هرڅه بیان شویدی نو بس د هغے منل به ضروری وی بل فیصله کونکی ته څه ضرورت دے، بل فیصله کونکے لټول خو ګمراهی ده۔

او اهل کتاب خو ښه پو هیږی چه دا کتاب د الله د طرف نه نازل شویدے، ځکه چه تمام تیر شوی انبیاؤ ددے قرآن بشارت او زیرے ورکړیدے، او ځکه چه دا قرآن د تورات او انجیل تصدیق کوی۔ پدے وجه اے نبی ! د قریشو کافرانو د انکار په وجه ته ددے قرآن د الله د طرفنه په نازلیدو کښ شك مهٔ کوه۔

مُفَصَّلًا : یعنی په قرآن کښ د عقائدو او ایمانیاتو او د هرے ضروری خبرے تفصیل

شویدي. نو بس قرآن چه کومې خبرې ته دعوت ورکړې وي هغه به حق وي او کومې نه ئې چه منع کړې وي، هغه به باطله وي نو ستاسو شرکيات او بدعيات او رسمونه خو الله رد کړیدي. او پدې کتاب کښې د الله تعالىٰ طريقې ذکر دي د اقوامو د عالَم سره چه هغوی کوم آيات طلب کړی وو او ايمان ئې رانهٔ وړو نو هلاك شو.

وَالَّذِيۡنَ : دا د پخوانو نيکانو اهل کتابونه دليل د حقانيت د کتاب الله راوړی چه اهل کتاب هم دا اقرار کوی چه دا کتاب رسول الله ﷺ د ځان نه نهٔ دې جوړ کړې بلکه د الله تعالىٰ د طرفنه راغلې دې.

مطلب دا شو چه قرآن هم شته او د پخوانو اهل کتابو تصديق هم شته، نو دا به زمونږ فيصله کوی. زمونږ په زمانه کښې ددې داسې مثال دې چه يو تن په مناظره کښې ووائي چه په دليل کښې به قرآن او حديث پيش کوو او ورسره د تائيد او تصديق دپاره به د مخکنو سلفو علماؤ اقوال هم پيش کوو.

فَلَا تَكُوۡنَنَّ مِنَ الۡمُمۡتَرِيۡنَ : دا خطاب رسول الله ﷺ ته دې او مراد ترينه امت دې. يعنی هرکله چه د الله کتاب شته نو بل چا ته فيصله وړل خو د الله په کتاب کښې شك کول دي نو بس حاکم به د الله تعالىٰ کتاب وي.

| |
|---|
| وَتَمَّتۡ كَلِمَتُ رَبِّكَ صِدۡقًا وَّعَدۡلًا ؕ |
| او پوره شويده خبره د رب ستا په رشتينوالي او په انصاف سره |
| لَا مُبَدِّلَ لِكَلِمٰتِهٖ ۚ وَهُوَ السَّمِيۡعُ الۡعَلِيۡمُ ﴿۱۱۵﴾ |
| نشته هيڅوك بدلونکې د خبرو د هغهٔ، او هغه آوريدونکې پوهه دې. |

**تفسير** : پدې آيت کښې د قرآن کريم د عظمتِ شان بيان دې. که يو سړې دا ګمان وکړی چه قرآن څنګه فيصله کونکې جوړ کړو، کيدې شي پدې کښې طرفداري شوې وي، يا پکښې د ظلم خبرې شوې وي، او پدې کښې به کيدې شي خطاء خبره وي؟ نو الله جواب کوی چه د الله خبرې پوره رشتيني او پوره د عدل نه ډکې دي.

صِدۡقًا : يعني د صدق او عدل په لحاظ سره.

كَلِمَتُ رَبِّكَ : د کلمې نه مراد (اَلۡكُتُبُ الۡمُنَزَّلَة) يعنی ټول آسماني کتابونه دي، اول پکښې قرآن داخل دې. نو هرکله چه قرآن صادق او عادل کتاب دې، نو دهٔ ته فيصله راوړل

پکار دی۔ یا د کلمے نه مراد وعدے د نصرت دی او وعیدونه (عذابونه) دی چه هغه رشتینی او عادل دی، عادل ځکه دی چه د کافرانو د کفر او عناد سره برابر دی، او دغه شان د مؤمنانو د ایمان سره برابر دی۔ (المنار)

کلمة جملے او د اقوالو یوے طائفے ته وائی چه د یو مقصد دپاره وی، لنده وی که اوږده۔ ددے وجه نه کوم خطیبان چه په یوه موضوع کښې خطبه وکړی یا لیکل وکړی نو هغے ته کلمه ونیلے شی۔

لَا مُبَدِّلَ لِكَلِمٰتِهٖ : دلته د کلمات نه مراد د الله تعالیٰ د طرف نه رالیږلے شوی خبرونه، احکام، وعدے او وعیدونه دی۔ هغه تمام خبرونه او وعدے او عیدونه انتهائی درجه رشتینی دی، او هغه تمام احکام او اَوَامر د عدل او انصاف انتهاء ته رسیدلی دی۔

هیڅوك دا نشی کولے چه د الله یوه وعده او خبره د رشتیاؤ نه دروغو ته او د عدل نه ظلم ته بدله ثابته کړی۔ لکه دلته الله تعالیٰ دا خبره وکړه چه قرآن صادق او عادل کتاب دے، نو هیڅوك نشته چه قرآن کاذب یا ظالم کتاب ثابت کړی۔ دارنګه الله وعده کړیده چه زهٔ به حق له غلبه ورکوم ﴿كَتَبَ اللّٰهُ لَاَغْلِبَنَّ اَنَا وَرُسُلِيْ﴾ (المجادلة: ۲۱)

(الله دا لیکلی دی چه خامخا زهٔ او زما رسولان به غالبه وی)

نو که ټوله دنیا راجمع شی او حق مغلوبه کول غواړی، نو نهٔ ئے شی کولے، لکه د رسول الله ﷺ په مقابله کښې ټوله دنیا ولاړه وه لیکن هغه ئے مغلوبه نکړو۔

نو ددے معنیٰ دا شوه چه د الله تعالیٰ د کتاب الفاظ او کلمات رشتینی او د عدل والا دی او دا مطلب نهٔ دے چه دے کښې څوك تحریف نشی کولے۔ (المنار) ددے جملے تفصیل مخکښې په آیت (۳٤) کښې بیرته وګوره۔

| وَاِنْ تُطِعْ اَكْثَرَ مَنْ فِي الْاَرْضِ يُضِلُّوْكَ عَنْ سَبِيْلِ |
|---|
| او که تهٔ تابعداری کوے د ډیرو د هغه چا چه په زمکه کښې دی وابه ړوی دوی تا لره د لارے |
| اللّٰهِ ؕ اِنْ يَّتَّبِعُوْنَ اِلَّا الظَّنَّ وَاِنْ هُمْ اِلَّا يَخْرُصُوْنَ ﴿۱۱۶﴾ |
| د الله نه، تابعداری نهٔ کوی دوی مګر د ګمان، او نهٔ دی دوی مګر اټکل کارونه کوی۔ |

**تفسیر**: د اهل حقو دلیل ذکر شو نو اوس د مشرکانو دریے دلیلونه ذکر کوی۔ او جواب دے د هغوی د دلیل چه مونږ ځکه په حقه یو چه مونږ زیات یو او که تاسو په حقه وئ نو

تاسو به کم نهٔ وے؟ نو الله جواب ورکوی۔

وَاِنْ تُطِعْ : هغه درے دلیلونه دا دی، (۱) اتباع د اکثریت، (۲) اتباع د ظن (۳) او خرص (توك) یعنی بی دلیله خبرو پسے تلل او هغه بیانول۔

د ظن تابعداری په عقیدو کښې وی او د خرص (اټکل) په عملونو کښې۔ دارنګه ظن د ګمراهانو عالمانو کار دے او خرص (بی دلیله) عملونه کول د مقلدینو طریقه ده۔ (احسن الکلام)

او خرص دے ته هم وائی چه د خان نه بعض اعمال او عقائد او آداب د بعضو نه غوره ګنړی په توك او بغیر د دلیل نه۔ او د خان نه اندازے لګوی چه فلانی بابا به داسے کارونه کول۔ امام راغبؒ وائی : خرص هغه تخمین (اندازے) ته وائی چه حس او دلیل ته مستند نهٔ وی۔

دا آیت دلیل دے چه اکثریت دلیل د حقانیت نښی ګرځیدے، بلکه که خبره برعکس کړے شی نو اکثریت دلیل د بطلان وی۔

مطلب د آیت : الله تعالیٰ پدے آیتِ کریمه کښې خپل نبی (ﷺ) خبردار کړیدے چه کثرت او ډیروالے ستا په نیز د حق دلیل کیدل نهٔ دی پکار، او صرف د کثرت په بنیاد باندے ستا د زمکے والو تابع کیدل نهٔ دی پکار، ورنه ته به د حقے لارے نه واوړے۔ دا کافران چه ډیر ګنړ شمار لری، پدے باطل ګمان کښې اخته دی چه د دوی پلاران او نیکونه په حقه وو، پدے وجه د هغوی تقلید کوی۔ د دوی سره سوئ ددے نه بل هیڅ دلیل موجود نهٔ دے چه د خلقو اکثریت په هغه دین دے کوم چه د دوی دین هم دے۔

دا خلك د الله په باره کښې د اټکل خبرے کوی، کله چا ته د الله ځوی وائی، نو کله بتان د الله په دربار کښې خپل سفارشیان ګنړی، او کله مردار او د غیر الله په نوم باندے پریخودلے شوی حیوانات حلال ګنړی۔

| اِنَّ رَبَّكَ هُوَ اَعْلَمُ مَنْ يَّضِلُّ عَنْ سَبِيْلِهٖ ۚ |
|---|
| یقیناً رب ستا هغه ښه پوهه دے په هغه چا چه اوړی د لارے د الله نه |
| وَهُوَ اَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِيْنَ ﴿۱۱۷﴾ |
| او هغه ښهٔ پوهه دے په هدایت موندونکو۔ |

**تفسیر** : مخکښې د دلیل په اعتبار سره د نیکانو او گمراهانو تقابل ذکر شو، نو اوس د هغوی امتیاز او فرق بیانوي په علم د الله تعالیٰ سره، او هرکله چه الله تعالیٰ په دواړو فریقینو عالِم دے نو هر یو ته به د هغوی د عمل مطابق جزاء او سزا ورکوي.

| فَكُلُوا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ اِنْ كُنْتُمْ |
|---|
| پس خورئ د هغے نه چه یاد شوے وي نوم د الله په هغے که یئ تاسو |
| بِاٰيٰتِهٖ مُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۱۸﴾ |
| په آیتونو د هغه ایمان لرونکي. |

**تفسیر : مضمون** : دا دویمه حصه د سورت ده چه په دے کښې د شرك عملي رد دے یعنې حلال او حرام به د ځان نه نهٔ جوړوئ بلکه د الله حلال خورئ او د حرامو نه ځان ساتئ. بیا ئے د هغے په (اَوَمَنْ كَانَ مَيْتًا) کښې مثال راوړیدے، او بیا بله عقبه ده په (۱۲۳) کښې، بیا په انکار د رسالت کښې د هغوی دلائل او په هغے باندے رد، بیا د انسانانو دوه قسمونه هدایت والا او غیر هدایت والا، او هدایت چا ته کیږي او چا ته نهٔ؟ بیا ئے قرآن ته ترغیب او د آخرت تفصیلي یره ئے ورکړیده، بیا ئے د رسولانو د رالیږلو حکمة بیان کړیدے، او مسئله د برائت تر (۱۳۵) آیت پورے، بیا د هغه ځای نه روستو د مشرکانو رواجونه ئے نقل کړیدی چه دوي به د ځان نه حلال حرام جوړول.

## ربط او مناسبت

۱– مخکښې د مشرکانو په باطلو دلیلونو رد وشو نو اُوس د هغوی په شرك فعلي رد کوي.

۲– هرکله چه د زمکے اکثر خلك د اټکل پسے روان دي او خپل تابعدار گمراه کوي، او الله په هدایت والا او گمراهانو باندے پوهه دے نو اُوس الله فرمائي چه په باره د ذبائحو او ټولو گناهونو پرېښودو کښې ددے رسول تابعداري وکړئ او د گمراهانو مخالفت وکړئ. (المنار)

۳– مخکښې آیت کښې الله تعالیٰ نبي کریم ﷺ د گمراه کافرانو د اتباع نه منع کړو. د هغوی یوه گمراهي دا وه چه هغوی به د خپل طرف نه د حلال او حرام حکم لګولو، او

مسلمانانو سره به ئې جګړې کولې چه الله کوم شے ذبح کړی نو هغه تاسو نۀ خورئ او خپله ذبح کړے شوے خورئ، لکه چه نسائیؒ د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت کړیدے (النسائی : ٤٤٣٧ وسنده صحیح)۔ پدے آیت کښې مسلمانانو ته حکم شویدے چه تاسو د کافرانو په خبره کښې راتلو سره د مردار حیواناتو خوراک شروع نکړئ، بلکه هغه حیوانات خورئ چه د هغې خوراک حلال وی او کوم چه د الله په نوم اخستلو سره ذبح شوی وی۔

او دوی ته د **جواب** حاصل دا دے چه دغه حیوان څکه حلال دے چه پدے بسم الله ونیل شویده، او په کوم حیوان باندے چه په وخت د ذبح کښې د الله نوم یاد کړے شی او هغه نذر د غیر الله نۀ وی نو د هغې خوراک جائز دے او مرداره باندے خو بسم الله نۀ وی ونیلے شوی۔

دارنګه هغوی به حلال حیوانات (چه بحیره او سائبه وو)، د ځان نه د خپلو باطلو معبودانو دپاره نذر کړل او په ځان به ئې حرام کړل، نو الله ورته وفرمایل چه دا په ځان مۀ حراموئ دا پاک او حلال حیوانات دی بلکه د الله نوم پرے واخلئ او ددے د خوراک نه یره مۀ محسوس کوئ او حرام ئې مۀ ګڼړئ۔

**فَكُلُوْا** : فاء ئې د عطف دپاره راوړه نو الله تعالیٰ د ذبائحو د خوراک مسئله د عقائدو د مسائلو سره پیوسته راوړه، پدے کښې ډیر اهتمام ته اشاره ده څکه چه عربو مشرکانو ذبائح د عباداتو د امورو نه ګرځولی وو، او دا ئې د دین په اصولو او اعتقاداتو کښې داخل کړی وو نو د خپلو آلهو دپاره به ئې ددے نذرونه کول او دا د الله سره شرک دے۔ (المنار)

**ذُكِرَ اسْمُ اللهِ** : ددے نه معلومه شوه چه کوم حیوان باندے د غیر الله نوم ذکر شی نو هغه حرام دے۔

**اِنْ كُنْتُمْ بِاٰيٰتِهٖ مُؤْمِنِيْنَ** : پدے کښې اشاره ده چه د ایمان علامه دا ده چه مؤمن به د جاهلیت والو پدے ګنده عادت کښې مخالفت کوی چه په هغې سره د الله د شریعت تبدیلی او تغییر راځی۔ (السعدیؒ)

| وَمَا لَكُمْ اَلَّا تَاْكُلُوْا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللهِ عَلَيْهِ |
|---|
| او څه وجه ده تاسو لره چه نۀ خورئ تاسو د هغې نه چه یاد کړے شی نوم د الله په هغې |
| وَقَدْ فَصَّلَ لَكُمْ مَّا حَرَّمَ عَلَيْكُمْ |
| او یقیناً هغه په تفصیل سره بیان کړی تاسو ته هغه څه چه حرام کړی ئې دی په تاسو |

| اِلَّا مَا اضْطُرِرْتُمْ اِلَيْهِ ؕ وَاِنَّ كَثِيْرًا لَّيُضِلُّوْنَ |
|---|
| مګر هغه چه مجبوره شئ تاسو هغې ته او يقيناً ډير خلق خامخا ګمراه کول کوي |
| بِاَهْوَآئِهِمْ بِغَيْرِ عِلْمٍ ؕ اِنَّ رَبَّكَ هُوَ اَعْلَمُ بِالْمُعْتَدِيْنَ ﴿۱۱۹﴾ |
| په خواهشاتو خپلو په ناپوهئ يقيناً رب ستا هغه ښه پوهه دے په زياتي کونکو (د حد نه). |

**تفسير** : پدے آيت کښ د مخکښ حکم تاکيد دے او مسلمانانو ته د هغه حيواناتو د خوراك دوباره ترغيب ورکړے شويدے چه هغه د الله په نوم سره ذبح شوی وی۔

وَقَدْ فَصَّلَ لَكُمْ : يعنى د کومو څيزونو خوراك چه حرام دے الله هغه بيان کړيدی۔ بعض مفسرينو وئيلی دی چه دا د سورة مائدے آيت (۳) ﴿حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ﴾ طرف ته اشاره ده۔ ليکن دا صحيح نۀ معلوميږی، ځکه چه مائده آخری مدنی سورت دے او انعام مکی سورت دے، بلکه کيدے شي چه اشاره ددے سورت آيت (۱۴۵) ﴿قُلْ لَّا اَجِدُ فِيْ مَا اُوْحِيَ اِلَيَّ مُحَرَّمًا﴾ طرف ته وی، يا مقصد دا دے چه مخکښ رسول الله ﷺ هغه احکام بيان کړی، نو دے نه روستو په قرآن کريم کښ د هغے سره متعلق آيت نازل شو۔ او ظاهر دا ده چه دا اشاره ده هغه خبرے ته کوم چه په سورة النحل (۱۱۵) آيت کښ ذکر ده۔

مَا اضْطُرِرْتُمْ : يعنى حرام بيان شويدی او ورسره په اضطراری حالتونو کښ د ځان بچ کولو دپاره حرام شے د حاجت په اندازه خوړلو اجازه هم ورکړے شويده۔

وَاِنَّ كَثِيْرًا : يعنى ډير خلق نورو لره ګمراه کوی او بغير د کوم شرعی دليل نه د خپلو خواهشاتو او شهواتو مطابق د حرام او حلال حکم جاری کوی۔ لکه عمرو بن لحی الخزاعی او د هغه مقلدينو دا کار کولو نو دوی لوی مُعتدين دی۔

بِغَيْرِ عِلْمٍ : اَیْ مِنَ الْمُضِلِّيْنَ وَالْمُضَلِّيْنَ ۔ يعنى نۀ د حرامونکو ګمراه کونکو سره څه دليل شته او نۀ د ګمراه کړے شوو سره۔

بعض مفسرينو لکه رازیؒ وغيره وئيلی دی چه په دين کښ په تقليدی طريقه سره يا د مذاهبو د عصبيت په طريقه سره خبرے کول حرام دی ځکه چه دا اتباع الاهواء ده بغير د علم او دليل نه، ځکه چه مقلد ته د دغه مسئلے دليل نۀ دے معلوم۔ (المنار)

بِالْمُعْتَدِيْنَ : دا اعتداء دوه قسمه ده، يو دا چه د حلالو نه تير شی (تجاوز وکړی) حرامو ته، يعنى د حلالو نه حرام جوړ کړی۔ او دويم دا چه په يو شی کښ دننه اعتداء وکړی چه د

حد د اعتدال نه اسراف ته ورسیږي۔ (المنار)

| |
|---|
| وَذَرُوْا ظَاهِرَ الْاِثْمِ وَبَاطِنَهٗ ؕ اِنَّ الَّذِيْنَ يَكْسِبُوْنَ الْاِثْمَ |
| او پرېږدئ ښکاره ګناه او پټه ګناه یقیناً هغه کسان چه کوي ګناه لره |
| سَيُجْزَوْنَ بِمَا كَانُوْا يَقْتَرِفُوْنَ ﴿۱۲۰﴾ |
| زر دے چه سزا به ورکړے شي دوي ته په سبب د هغه کارونو چه دوي ئے کوي۔ |

**تفسیر** : د عربو بل مرض دا وو چه د ځان نه حلال حرامو جوړولو سره به ئے بې حیائي هم کوله، په بربنډه به ئے طوافونه کول، او ځان بربنډول ئے عیب نهٔ ګڼړلو۔ نو کوم شے چه الله حلال کړے وو چه هغه پاك حیوانات (اُوښان، ګډے بزے) دي، هغه به ئے د معبودانو د وجه نه بد ګڼړل، او کوم شے چه حرام وو لکه بې حیائي نو هغے باندے به ئے هیڅ پرواه نهٔ کوله۔ نو الله په دوي رد کوي

ظَاهِرَ الْاِثْمِ وَبَاطِنَهٗ : د «ښکاره او پټه ګناه» په تفسیر کښې د علماؤ ډیر اقوال دي :

(۱) ابن زیدؒ وائي : ښکاره ګناه نه مراد ځان بربنډول دي په طواف کښې، او پټه ګناه زنا ده۔

(۲) د مجاهدؒ په نیز ددے نه مراد ښکاره او پټ ګناهونه دي۔

(۳) د قتادهؒ په نیز کم یا زیات، دارنګه پټ او ښکاره ګناهونه مراد دي۔

(٤) د سُدّيؒ او اکثرو مفسرینو په نیز د ظاهر نه مراد د زناکارو جنډو والا ښځو سره زنا او د باطن نه د یارانے او دوستانے والا ښځو سره زنا مراد ده۔

(۵) د عکرمهؒ او سعید بن جبیرؒ په نیز د ظاهر نه مراد هغه ښځو سره وادهٔ کول دي چه د هغوي سره وادهٔ کول حرام دي۔ او د باطن نه مراد زنا ده۔

(٦) کلبيؒ او د ابن عباسؓ نه نقل دي چه ظاهري ګناه زنا ده او باطني (المخالة) د زنا خیال کول دي۔ (ابن کثیر والبغوی) قصداً د زنا خیال کول او د هغے نه مزه اخستل هم ګناه ده۔

(۷) د ظاهر الاثم نه مراد هغه ګناهونه دي چه د ښکاره بدن سره تعلق لري، یا ښکاره کیړي او پدے کښې شرك فعلي داخل دے۔ او باطن هغه ګناهونه دي چه د عقیدے او د زړه سره تعلق لري یا پټ کیړي او پدے کښې شرك اعتقادي داخل دے۔ (المنار واحسن الکلام)

(۸) ظاهر هغه دي چه قباحت یا ضرر ئے عامو ته ښکاره وي اګرکه په پټه کیړي او باطن هغه دي چه د هغے ضرر پټ وي صرف خواصو ته معلومیږي، اګرکه هغه ښکاره کولے

شی۔ (المنار)

(۹) یا ظاهر هغه دی چه د ظاهری اندامونو سره تعلق لری او باطن هغه دی چه د زړه سره تعلق لری لکه نیتونه، کبر، عجب، حسد، او د شرونو سوچ او فکرونه کول۔ (المنار)

حافظ ابن کثیر رحمه الله وائی : صحیح دا ده چه د آیت مفهوم عام دے، لکه چه الله تعالیٰ په بل ځای کښې فرمایلی دی : ﴿قُلْ اِنَّمَا حَرَّمَ رَبِّيَ الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ﴾ (الاعراف: ۳۳) اُووایه چه زما رب ښکاره او پټ فواحش حرام کړیدی۔ پدے وجه روستو (يَكْسِبُوْنَ الْاِثْمَ) نه معلومیږی چه د (ظَاهِرَ الْاِثْمِ وَ بَاطِنَهٗ) نه تپول گناهونه مراد دی۔

امام احمدؒ او مسلمؒ د نواس بن سمعان ﷺ نه روایت کړیدے چه ما د رسول الله ﷺ نه د گناه په باره کښې تپوس وکړو نو هغه وفرمایل : [اَلْاِثْمُ مَا حَاكَ فِيْ صَدْرِكَ وَكَرِهْتَ اَنْ يَّطَّلِعَ عَلَيْهِ النَّاسُ] ((گناه هغه ده چه ستا په زړهٔ کښې پریشانی پیدا کړی او ستا خوښه نهٔ وی چه خلقو ته د هغے اطلاع اُوشی))۔ (صحیح مسلم رقم : ۲۵۵۳)۔

| |
|---|
| وَلَا تَأْكُلُوْا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ وَاِنَّهٗ |
| او مهٔ خورئ د هغه حیواناتو نه چه یاد نکړے شی نوم د الله په هغے او یقیناً دا (خوراک) |
| لَفِسْقٌ ؕ وَاِنَّ الشَّيٰطِيْنَ لَيُوْحُوْنَ اِلٰٓى اَوْلِيٰٓئِهِمْ |
| نافرمانی (د الله) ده۔او یقیناً شیطانان خامخا وسوسے اچوی دوستانو خپلو ته |
| لِيُجَادِلُوْكُمْ ۚ وَاِنْ اَطَعْتُمُوْهُمْ |
| دے دپاره چه جګړے وکړی تاسو سره او که تاسو تابعداری وکړه د دوی |
| اِنَّكُمْ لَمُشْرِكُوْنَ ﴿۱۲۱﴾ |
| یقیناً تاسو به خامخا مشرکان یئ۔ |

**تفسیر** : صاحب المنارؒ وائی چه ددے آیت تعلق د مشرکانو د هغو ذبائحو سره دے چه هغوی د خپلو باطلو معبودانو دپاره ذبح کړی وی، او د هغوی دپاره ئے نذر کړی وی ځکه چه هغے ته فسق ووئیل شو لکه بل آیت کښې دی ﴿اَوْ فِسْقًا اُهِلَّ لِغَيْرِ اللّٰهِ بِهٖ﴾ (انعام: ۱۴۵) او ددے نه مراد هغه ذبائح نهٔ دی چه مشرکان د هغے په ذبح تقرب د غیر الله نهٔ حاصلوی، بلکه د خپل ځان دپاره ئے ذبح کړی یا مرداره خوری ځکه چه دلته الله تعالیٰ روستو ﴿وَاِنْ

﴿اَطَعۡتُمُوۡهُمۡ اِنَّكُمۡ لَمُشۡرِكُوۡنَ﴾ وئیلے دے یعنی که تاسو د هغوی تابعداری وکړه نو تاسو به مشرکان شئ او د دغه روستنو حیواناتو په خوراك باندے څوك نهٔ مشرك کیږی، او نهٔ مشرکانو د مؤمنانو سره په دغه ذبائحو کښې جګړه کوله۔ (المنار)

او دا قول د عطاءؒ نه هم نقل دے چه ددے نه مراد نذر د غیر الله دے۔ (ابن کثیرؒ وابن جریرؒ) مګر د آیت الفاظ عام دی او د شان نزول نه هم معلومیږی چه پدے کښې مرداره هم داخلیږی۔

## شان نزول

ددے آیت په شان نزول کښې اصحاب السنن د ابن عباس ﷺ نه روایت کړیدے چه څه کسان د نبی کریم ﷺ خواته راغلل او وے وئیل چه کوم حیوانات مونږ قتل کړو (یعنی ذبح ئے کړو) هغه تهٔ خورے او کوم چه الله قتل کړی (یعنی مړ شی) نو هغه تهٔ نهٔ خورے نو ﴿فَكُلُوۡا مِمَّا ذُكِرَ اسۡمُ اللّٰهِ عَلَيۡهِ﴾ نه تر ﴿اِنَّكُمۡ لَمُشۡرِكُوۡنَ﴾ پورے نازل شو۔ مخکښې د نسائی روایت ذکر شو چه مشرکانو د مسلمانانو سره جګړه اُوکړه چه د الله ذبح کړی حیوان تاسو نهٔ خورئ او چه خپله ئے ذبح کړئ نو هغه خورئ۔ انتهیٰ۔ او بعض روایاتو کښې دی چه اهل فارس (مجوسیانو) مشرکانو ته دا اعتراض خودلے وو چه ددے آخری نبی او ددهٔ د ملګرو نه دا تپوس وکړئ۔ (ابن جریر وابن کثیر والمنار)

ابوداؤدؒ، ابن ماجهؒ او ابن ابی حاتمؒ په صحیح سند سره د ابن عباس ﷺ نه روایت کړیدے چه شیطانان خپلو ملګرو ته ښائی نو هغوی وائی چه اے مسلمانانو! تاسو د الله ذبح کړی حیوانات نهٔ خورئ او کوم چه خپله ذبح کړئ هغه خورئ؟ نو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو ﴿وَلَا تَاۡكُلُوۡا مِمَّا لَمۡ يُذۡكَرِ اسۡمُ اللّٰهِ عَلَيۡهِ﴾ چه په کوم باندے د الله نوم وانخستے شی هغه مهٔ خورئ۔

**مسئله** : چه کوم حیوان باندے بسم الله نهٔ وی وئیلے شوی آیا هغه جائز دے؟

کوم حیوان چه د الله په نوم اخستو سره ذبح نکړے شی برابره ده چه مشرك ئے ذبح کړی یا مسلمان، د هغے د حلت په باره کښې د علماؤ درے مشهور اقوال دی:

۱ – اول قول: داود ظاهریؒ، ابوثورؒ، ابن عمر رضی الله عنهما، نافعؒ، شعبیؒ، ابن سیرینؒ او د یو روایت مطابق مالكؒ او احمدؒ دے، چه کوم حیوان د بسم الله وئیلو سره ذبح نکړے شی د هغے خوړل جائز نهٔ دی۔ که قصداً ئے نهٔ وی لوستلی یا هیره شوی وی، اګرکه د نسیان په

صورت كښې به بنده ګناهګار نۀ وي ليكن حيوان مردار شو. او دے قول ته شيخ الاسلام ابن تيمية ترجيح وركړيده.

۱- دے كسانو ددے آيت د ظاهري الفاظو نه استدلال كړيدے.

۲- او د سورة المائدے د آيت (٤) نه چه په هغے كښې د ښكار شوي حيوان د خوړلو حكم بيان شويدے. ﴿ فَكُلُوا مِمَّا أَمْسَكْنَ عَلَيْكُمْ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللهِ عَلَيْهِ ﴾ چه كوم حيوانات ښكاري سپو ستاسو دپاره رانيولي وي هغه خورئ او په هغے باندے بسم الله وايئ.

۳- او د هغو احاديثو نه ئے هم دليل نيولے دے چه په هغے كښې د ذبح او ښكار په وخت د بسم الله وئيلو حكم راغلے دے. لكه چه په صحيحينو كښې نقل شويدي چه رسول الله ﷺ عدي بن حاتم او ابوثعلبه رضي الله عنهما ته وفرمايل : «كه تاسو خپل تعليم يافته سپے بسم الله وئيلو سره پريدئ نو هغه ښكار خورئ».

او په صحيحينو كښې د رافع بن خديج ﷺ نه روايت شويدے چه رسول الله ﷺ وفرمايل : «كومه آله چه د ذبح په وخت وينه اُوباسي او په هغے باندے د الله نوم اخستے شوے وي هغه خورئ او په غاښ او نوك سره ذبح مۀ كوئ». او په صحيح مسلم كښې د عبد الله بن مسعود ﷺ نه روايت شويدے چه رسول الله ﷺ جناتو ته وفرمايل : «ستاسو دپاره هر هغه هډوكے خوړل جائز دي چه په هغے باندے د ذبح په وخت د الله نوم اخستے شوے وي».

او په صحيحينو كښې د جندب بَجلي ﷺ نه روايت شويدے چه رسول الله ﷺ وفرمايل : «چا چه د اختر مونځ نه مخكښې ذبح كړيده، هغه دِے يو بل حيوان ذبح كړي، او چا چه د مانځه نه مخكښې ذبح نۀ ده كړے هغه دِے بسم الله وئيلو سره ذبح اُوكړي».

او د عائشه رضي الله عنها حديث دے، څه كسانو د رسول الله ﷺ نه تپوس اُوكړو چه خلق مونږ له غوښه راكوي او مونږ ته پته نۀ وي چه هغوي د ذبح كولو په وخت بسم الله وئيلے ده كه نۀ؟ نو نبي ﷺ اُوفرمايل : «بسم الله اُووايئ او خورئ». (بخاري رقم : ٥٥٠٧)، وابن كثيرؒ يعني صحابه كرامؓ پو هيدل چه د ذبح په وخت بسم الله وئيل ضروري دي.

۲- **دويم قول** : دا دے چه د ذبح په وخت بسم الله وئيل د مسلمان دپاره شرط نۀ دے، بلكه مستحب دي، پدے وجه كه يو مسلمان قصداً يا په هيره سره بسم الله پريدي، نو د هيڅ نقصان خبره نۀ ده. دا قول د امام شافعيؒ او د هغه د اصحابو دے، او د يو روايت مطابق د امام مالكؒ او احمدؒ هم دا قول دے. د ابن عباس، ابو هريره رضي الله عنهما او عطاءؒ نه هم دا روايت شويدے. دے كسانو آيت كريمه ﴿ وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللهِ عَلَيْهِ وَإِنَّهُ

لَفِسْقٌ ﴾ لره د غير الله دپاره په ذبح شوي حيوان محمول كړيدے. ځكه چه فسق هغه حيوان وي چه د غير الله په نوم سره ذبح شوے وي. د دوي په نيز ددے معنى تائيد د روستو راتلونكى آيت : ﴿ أَوْ فِسْقًا أُهِلَّ لِغَيْرِ اللهِ ﴾ نه كيږي چه هغه حيوان حرام دے چه د شرك په توګه د غير الله په نوم سره پريخوستے شوے وي.

ابن ابى حاتمؒ د عطاءؒ نه روايت كړيدے چه دا آيت د هغه حيواناتو په باره كښې نازل شوے وو چه هغه به قريشو د خپلو بتانو په نوم ذبح كولو، او د هغه حيواناتو په باره كښې چه هغه مجوسيان ذبح كړي. او ابوداود په ((مراسيل رقم :۳۷۸)) كښې د صَلت سَدُوسي نه روايت كړيدے چه رسول الله ﷺ اُوفرمايل : ((د مسلمان ذبيحه حلاله ده برابره ده بسم الله ووائي او كه نهٔ، كه هغه نوم اخلى نو صرف د الله اخلى )). (مګر دا روايت ضعيف دے يو خو مرسل دے او بل صلت سدوسي مجهول دے (نصب الرايه ۱۸۳/٤)

او ددے تائيد (د دوي په نيز) د ابن عباس رضى الله عنهما د قول نه كيږي چه هغه دارقطنيؒ روايت كړيدے چه كه مسلمان ذبح وكړي او د الله نوم واخلى نو هغه خوره ځكه چه د مسلمان په زړهٔ كښې د الله د نوم نوم نه يو نوم شته)). (الدارقطنى : ۲۹۵/٤) دے روايت ته حافظ ابن حجرؒ په فتح البارى (۵۳۹/۹) كښې صحيح موقوف ونيلے دے).

او د عائشه رضى الله عنها د تير شوي حديث نه ئے هم دليل نيولے دے چه په هغے كښې نبى كريم ﷺ د نوي مسلمانانو وركړے شوے غوښے په باره كښې وفرمايل چه ((تاسو بسم الله ووايئ او خورئ)). (بخارى)

دوي وائي چه كه بسم الله وئيل شرط وے نو ترڅو پورے چه د ذبح په وخت د هغے د وئيلو يقين نهٔ وے نو نبى ﷺ د هغے د خوراك اجازت نهٔ وركولو.

امام خطابيؒ وائي چه دا حديث دليل دے چه بسم الله لوستل د ذبيحے د حلاليدو دپاره شرط نه دے. ځكه كه شرط وے نو په مشكوك حالت كښې د ذبيحے خوړل نهٔ حلاليدل. دے كسانو د قرآن كريم د آيت ﴿ وَطَعَامُ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتَابَ حِلٌّ لَّكُمْ ﴾ ((او د اهل كتابو خوراك ستاسو دپاره حلال دے)) نه هم دليل نيولے دے، ځكه چه دا شك بهر حال باقى پاتے كيږي چه دوي به بسم الله وئيلى وي او كه نهٔ ؟.

**دريم قول** : د امام ابوحنيفةؒ او د هغه د اصحابو او د اسحاق بن راهويهٔ دے. او د امام مالكؒ او امام احمدؒ هم مشهور قول همدا دے چه كه ذبح كونكى نه بسم الله وئيل هير شى نو هيڅ حرج نشته، او كه قصداً بسم الله ونهٔ وائي نو خوراك به ئے جائز نهٔ وي. د

علیؓ، ابن عباسؓ، سعید بن المسیبؒ، عطاءؒ، طاؤسؒ، حسن بصریؒ، ابو مالکؒ، ابن ابی لیلیٰ ؒ، جعفر بن محمدؒ او ربیعه بن ابی عبد الرحمنؒ همدا قول دے۔

دے کسانو د ابن عباس ﷺ د روایت نه استدلال کړیدے چه هغه بیهقیؒ او دارقطني رقم (٤٨٠٨) مرفوعاً روایت کړیدے چه [اَلْمُسْلِمُ يَكْفِيهِ اسْمُهُ فَإِنْ نَسِيَ اَنْ يُسَمِّيَ حِيْنَ يَذْبَحُ فَلْيُسَمِّ وَلْيَذْكُرِ اسْمَ اللّٰهِ ثُمَّ لِيَأْكُلْ]

((د مسلمان نوم کافي دے، که د ذبح په وخت بسم الله وئیل هیر شي نو د الله نوم دے واخلي او خوري دے))۔

لیکن صحیح دا ده چه دا د ابن عباس ﷺ قول دے، دا مرفوع حدیث نهٔ دے۔ البته د دوی دلیل د قرآن دا آیت کیدے شي: ﴿رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَا إِنْ نَّسِيْنَا اَوْ اَخْطَاْنَا﴾ چه (اے الله! که مونږ نه هیر شي یا غلطي اُوشي نو مونږ مهٔ رانیسه))۔ او نبي کریم ﷺ فرمایلي دي:

((زما د امت نه غلطي او هیره معاف کړے شویده))۔

(ابن ماجه رقم: ١٦٦٢ والطبراني وسنده صحيح)۔

امام شوکانيؒ ظاهره کښې اولنۍ رائے نه ترجیح ورکړیده او حافظ ابن کثیرؒ دویمے رائے ته یعني د هغوی په نیز بسم الله وئیل مستحب دي، شرط نهٔ دي۔ صاحب د محاسن التنزیل (علامه قاسميؒ) هم دے رائے نه ترجیح ورکړیده۔

**لیکن** د احتیاط تقاضا دا ده چه که ذبح کوونکي قصداً بسم الله نهٔ وي وئیلي نو هغه دے ونهٔ خوړلے شي، ځکه چه د قرآن کریم ظاهري الفاظ په همدے دلالت کوي (چه په کوم حیوان باندے د الله نوم وانخستے شي نو هغه مهٔ خورئ، داسے حیوان خوړل فسق دے)

آؤ، که مسلمان ذبح کوونکي نه بسم الله وئیل هیر شي نو په قرآن او سنت کښې د موجود هغه دلائلو د وجه نه به د هغے خوړل جائز وي چه د هغے نه ثابتیږي چه الله د امت مسلمه نه غلطي او هیره معاف کړیده۔ او دا چه په قرآن کریم کښې راغلي دي چه د اهل کتابو ذبیحه خوړل حلال دي، نو دا یو جدا حکم دے چه د مسلمان د ذبیحے سره ئے یو ځای کول نهٔ دي پکار۔

او اول قول والا د غلطۍ او هیرے معافي کیدو نه دا جواب ورکوي چه دا په اعتبار د گناه سره ده، یعني دا هیره ونکے گناهګار نهٔ دے او هرچه ذبیحه ده نو په هغے بسم الله نهٔ ده وئیلے شوے، نو په خپل حرمت باندے باقي ده۔لکه په قتل خطاء کښې انسان گنهګار نهٔ دے لیکن دیت (تاوان) به ورکوي۔ اول قول راجح دے یو په هغے کښې احتیاط دے، دویم د

ظاهر د قرآن موافق دے او دا د باب د خطاب الوضع نه دے۔ انظر مجموع فتاوی ابن تیمیة۔

وَإِنَّهُ لَفِسْقٌ : یعنی دا خوراك وتل دی د الله د حکم نه، او دا فسق عملی دے۔ او د امام شافعیؒ د قول مطابق به معنیٰ دا وی : یقیناً دا نذر د غیر الله د دین نه وتل دی (یعنی پدے سره بنده مشرك کیږی) نو دا فسق اعتقادی دے۔

وَإِنَّ الشَّيٰطِينَ : دلته د شیاطین نه مراد د فارس والا مجوسیان وو، او د اولیاء نه مراد د مکے مشرکان وو۔

لَيُوحُونَ : ابن عباسؓ ته یو شخص ووئیل چه مختار بن ابی عبید وائی چه ما ته بیگاه شپه وحی شویده، نو هغه ووئیل چه صحیح وائی، راوی وائی (زما نفرت پیدا شو) چه ابن عباسؓ څنګه دا خبره کوی چه رشتیا ده، نو ابن عباسؓ وفرمایل :

[هُمَا وَحْيَانِ، وَحْيُ اللّٰهِ وَوَحْيُ الشَّيْطَانِ]

دا دوه وحی دی، یو وحی د الله ده محمد ﷺ ته او بله وحی د شیطان ده خپلو دوستانو ته۔ (ابن کثیرؒ)

لِيُجَادِلُوكُمْ : مجادله دے ته وائی چه هسے چالاکی کوی او هیڅ رشتینی دلیل ورسره نه وی۔

وَإِنْ أَطَعْتُمُوهُمْ : [أَيْ فِيمَا يَأْمُرُونَكُمْ بِهِ وَيَنْهَوْنَكُمْ عَنْهُ] (فتح القدیر) یعنی که د مشرکانو تابعداری مو د هغوی په امر او نهی کښې وکړه نو مشرکان به شئ۔

۲– فِيْ تَحْلِيْلِ مَا حَرَّمَ اللّٰهُ أَوْ تَحْرِيْمِ مَا أَحَلَّ] (قاسمی)

که تاسو د مشرکانو خبره ومنله په تحلیل او تحریم کښې، نو مشرکان به شئ څکه چه مشرکان مردارے ته حلاله وائی، او الله ورته حرامه وئیلے ده، نو څوك چه د مشرك دا خبره ومنی نو هغه به مشرك شی، څکه چه پدے کښې غیر الله ته د شارع صفت ورکول دی۔

۳– [أَيْ أَطَعْتُمْ أَوْلِيَاءَ الشَّيْطَانِ إِنَّكُمْ لَمُشْرِكُونَ لِأَنَّ طَاعَتَهُمْ طَاعَةٌ لِلشَّيَاطِيْنِ وَذٰلِكَ إِشْرَاكٌ] (البحر المحیط)۔ که تاسو د شیطانانو د دوستانو خبره ومنله نو تاسو به مشرکان شئ څکه چه د هغوی خبره منل د شیطانانو خبره منل دی او دا شرك دے۔ (کله چه ددے عقیده لری)۔

٤–[وَإِنْ أَطَعْتُمُوهُمْ فِيمَا يُجَادِلُونَكُمْ فِيهِ وَهُوَ الطَّعْنُ فِي الْإِسْلَامِ وَالشَّكُّ فِيْ صِحَّةِ أَحْكَامِهِ] (التحریر)۔ یعنی که تاسو ددے اولیاء الشیطان هغه خبره ومنله په کوم باندے چه تاسو سره جګړے کوی چه هغه په اسلام باندے تنقید کول او ددے په احکامو کښې شك کول دی نو

تاسو به خامخا مشرکان شئ؛ ځکه چه د شیطانانو پدے خبره کښ تابعداری کول اګرکه د الله سره نے شریکان نهٔ وی جوړ کړی هم شرك دے ځکه چه د اسلام احکام خطاء ګنړل د شرك سره برابر دی۔

لَمُشْرِكُوْنَ : زجاج وئیلی دی چه دا دلیل دے چه څوك حرام لره حلال وګنړی یا حلال لره حرام وګنړی یا نذر د غیر الله حلال ګنړی نو دا مشرك دے۔ (بغوی) خو پدے شرط چه دغه شے په قطعی دلیل سره ثابت وی۔ (التفسیر المظهری)

ترمذیؒ د ﴿ اِتَّخَذُوْٓا اَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ اَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ ﴾ په تفسیر کښ د عدی بن حاتم رضی الله عنه نه روایت کړیدے چه هغوی ووئیل، یارسول الله ! اهل کتابو خو د خپلو احبارو او رهبانو عبادت نهٔ وو کړے؟ نو نبی کریم ﷺ وفرمایل : چه احبارو او رهبانو به حلال حرام او حرام حلال کړل او خلقو به د هغوی اتباع وکړه نو همدا د هغوی عبادت وو۔

| اَوَمَنْ كَانَ مَيْتًا فَاَحْيَيْنٰهُ وَجَعَلْنَا لَهٗ نُوْرًا يَّمْشِيْ |
|---|
| آیا هغه څوك چه وی مړ پس ژوندے کړو مونږ هغه او وګرځوو هغه له رڼړا چه ګرځی په هغے سره |
| بِهٖ فِي النَّاسِ كَمَنْ مَّثَلُهٗ فِي الظُّلُمٰتِ |
| په خلقو کښ په شان د هغه چا کیدے شی چه د هغه صفت دا دے چه په تیارو کښ دے، |
| لَيْسَ بِخَارِجٍ مِّنْهَا ؕ كَذٰلِكَ زُيِّنَ لِلْكٰفِرِيْنَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۲۲﴾ |
| نهٔ دے وتونکے د هغے نه دغسے ډولی کړے شویدی کافرانو ته هغه عملونه چه دوی نے کوی۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښ د مؤمن او د کافر مثال راوړی، په مؤمن کښ دوه صفتونه دی، یو حیات او بل نور اوکافر کښ دا دواړه نشته، نو آیا دا دواړه ګنے برابریدے شی؟۔

**فائده** : د انسان کمال په دوو صفاتو کښ دے یو حیاة دویم نور، د حیاة نخه دا ده چه انسان د الله تعالی او د آخرت طلبګار شی او د نُور نخه دا ده چه د سنتو متبع شی، د دواړو صفاتو مثال د ګاړی دے چه یو سټارټ کیدو ته او بل لائټونو ته ضرورت لری، په یو کار نهٔ کیږی، نو دغه شان د انسان دپاره هم دغه دواړه صفات ضروری دی، دا ډیر عجیب مثال دے که چا سوچ وکړو،

په حیاة سره په یو شی کښ حرکت پیدا کیږی، او په نُور سره لاره واضحه کیږی، او پدے دواړو سره بنده مقصد ته رسیږی. لکه ګاړے چه سټارټ شی او بیا لائټونه ولګوی نو

مقصد ته به رسيږي او چه كاږے سټارټ شي او لاټينونه ئے نۀ وي، يا لاټينونه ولګوي ليكن ګاږے سټارټ نۀ وي نو انسان مقصد ته نشي رسيدلے.

نو د مؤمن دپاره حياتِ قلبي هم ضروري دے چه هغه د الله طلب او هغه طرفته رغبت او مينه پيدا كيدل دي، او نُور د وحي دے، نو كله چه د بنده په زړه كښې د الله سره مينه او توجه پيدا شي او بيا د وحي په رڼا روان شي نو سيده به جنت ته ورسيږي.

## مناسبت:

په انسان كښې حياتِ قلبي په څه سره راځي؟ نو هغه دا چه مردارے او حرام څيزونو نه ځان وساتي ځكه چه د حرامو په خوړلو سره زړۀ مري.

او پدے كښې اشاره ده چه هر كله چه مؤمنانو حرامے او مردارے پريخودے نو الله څنګه حياتِ قلبي ورکړو او مشركان مردارے خوري پدے وجه په تيارو كښې پراتۀ دي او توحيد طرفته نۀ راځي.

مَيْتًا : اَيْ بِـالْكُفْرِ وَالشِّرْكِ فَأَحْيَيْنَاهُ بِالْإِيْمَانِ. يعني مړ دے په دغه كفرونو او شركونو سره كوم چه مخكښې بيان شو نو مونږه ئے راژوندے كړو په ايمان سره.

وَجَعَلْنَا لَهٗ نُوْرًا : د نور نه مراد د وحي رڼا ده. (قتادة)

يا ميتا نه مراد فِيْ ظُلُمَاتِ الْكُفْرِ وَالْجَهْلِ وَالْمَعَاصِيْ (يعني د كفر او جهالت او د ګناهونو په تيارو كښې دے) او اَحْيَيْنَاهُ بِنُوْرِ الْاِيْمَانِ وَالْعِلْمِ وَالطَّاعَةِ دے

(يعني مونږه ئے د ايمان او علم او طاعت په رڼا سره راژوندے كړو). (السعدي).

يَمْشِيْ : ګرځي راګرځي، يعني ژوند تيره وي، اشاره ده چه اصلي ژوندے همدا دے.

مَثَلُهٗ فِي الظُّلُمٰتِ : يعني صفت د هغه دا دے چه په تيارو كښې پروت دے. نو پدے كښې اشاره ده چه نشي ګرځيدے ځكه چه حيات پكښې نشته او رڼا هم نشته.

لِلْكٰفِرِيْنَ : ددے نه معلومه شوه چه دا د كافر او د مؤمن مثال دے.

نو پدے آيتِ كريمه كښې الله تعالىٰ د مؤمن او كافر يو مثال بيان كړيدے، او مقصد مؤمنانو ته د كافرانو د اتباع نه يو نفرت وركول دي. انسان په كفر او ګمراهۍ كښې حيران وو او ګويا كه هغه مړ وو، نو الله د هغه زړۀ د ايمان په ذريعه ژوندے كړو، او هغه مؤمن شو، ليكن چا له چه الله د ايمان توفيق نۀ وركوي هغه به د كفر او شرك په تيارو كښې ګمراه پروت وي او ګويا كه هغه به د ژوند سره سره مړ وي، ځكه چه اصل ژوند د ايمان ژوند دے.

الله تعالىٰ د قرآن كريم په ګڼرو آيتونو كښ د (ايمان) نه په ژوند او رڼرا سره او د (كفر) نه په مرګ او تيارو سره تعبير كړيدے۔

كَذٰلِكَ زُيِّنَ : دا جواب د سوال دے چه چا كښ ذره برابر عقل وي هغه به دا حالت څنګه غوره كړي چه په تيارو كښ باقي پاتې وي؟ نو جواب وشو چه (زُيِّنَ لِلْكٰفِرِيْنَ) يعني چه شيطان كافرانو ته د هغوي بد عملونه ښائسته ښكاره كړيدي ترديے چه هغه د هغوي په زړونو كښ كور كړيدے، او مضبوط شويدي پدے وجه هغوي ته دغه بد عملونه غوره ښكاره شويدي۔ (السعديؒ)

| وَكَذٰلِكَ جَعَلْنَا فِيْ كُلِّ قَرْيَةٍ اَكٰبِرَ مُجْرِمِيْهَا |
|---|
| او دغسے ګرځولي دي مونږ په هر كلي كښ مشران، مجرمان د هغے |
| لِيَمْكُرُوْا فِيْهَا ۗ وَمَا يَمْكُرُوْنَ اِلَّا بِاَنْفُسِهِمْ وَمَا يَشْعُرُوْنَ ﴿۱۲۳﴾ |
| دے دپاره چه چل ول وكړي په هغے كښ او مكر نهٔ كوي دوي مګر په خپلو ځانونو او نهٔ پوهيږي۔ |

**تفسير** : پدے آيت كښ ۱–يو نبي كريم ﷺ ته تسلي وركړے شويده چه لكه څنګه چه مونږ په مكه كښ څه مشران (مجرمين) پيدا كړيدي چه خپلو تابعدارو ته دهوكه وركولو دپاره باطل ښائسته پيش كوي، او حق پټوي، دغه شان ستا نه مخكښ هم مونږ په هر كلي كښ څه غټان مجرمان پيدا كړي، چه هغوي د حق نه انكار كړيدے، او باطل ئے ښائسته رنګ والا جوړولو سره عامو خلقو ته پيش كړيدے، او هغوي ئے په دهوكه كښ اچولو سره د الله د نبي د اتباع نه منع كړيدي۔ او دا قانون اُوس هم دے چه د حق خلاف هميشه غټان خلك كوي۔

۲– او دا بله عقبه د دعوت هم ده۔ ۳– او پدے آيت كښ دغه مجرمانو ته تهديد (زورنه او دهمكي) هم ده۔ د عَقَبے حاصل دا دے چه كله يو تن د دين دعوت كوي، نو د هغه سره د مناظرو نه روستو به خلك راځي او حكومتونو او اقتدار والو ته به د داعي په خلاف رپوټونه كوي چه دلته يو شري پيدا شويدے او خلكو كښ اختلافات پيدا كوي، او چا ته به وائي چه ستاسو ووټونه خرابوي، نو هغوي به راشي، دهٔ ته به دهمكياني وركړي چه جيل ته دے اچوو، او د كلي نه دے شړو، او ددهٔ د دعوت د بندولو پروګرامونه به وكړي او مدرسے به ورله بندول شروع كړي، نو الله فرمائي چه پدے كار به صبر كوے او خپل دعوت

بـه نـهٔ پـریدی، دا په هره زمانه کښې د انبیاؤ او د حق د داعیانو سره شویدی۔ او مجرمانو ته دهـمـکـی داسـے ده چـه دا مـجـرمـان خـو د الله پـه مـقـابـلـه کښې ودریدل، د هغه دین ختمول غواړي، دا خو د داعی خپلے ذاتی خبرے نهٔ دی بلکه د الله دین دے نو دوی ځان تباه کوی۔

فِيْ كُلِّ قَرْيَةٍ : یعنی په هره علاقه او کلی کښې چه د حق دین دعوت کیږی نو دا کار به ضرور کیږی۔

اَكٰبِرَ مُجْرِمِيْهَا : اکابـر مـفـعـول اول او (مـجـرمیها) مفعول ثانی دے یعنی ما غټان او مشران خلك د کلی مجرمان گرځولی دی۔ لکه سورة بنی اسرائیل (۱۶) آیت کښې دی:

﴿ وَاِذَآ اَرَدْنَآ اَنْ نُّهْلِكَ قَرْيَةً اَمَرْنَا مُتْرَفِيْهَا فَفَسَقُوْا فِيْهَا ﴾ ۔

(او کـلـه چه مونږ وغواړو چه یو کلے هلاك کړو نو مونږ حکم وکړو د هغے مستانو ته نو هغوی فسق شروع کړی په دغه کلی کښې) یعنی مترف (مستان) خلك گمراه وی۔

او د دوی د گـمـراهـئ وجـه دا ده چه حق اکثر د خواهش خلاف وی، او پدے مشرانو کښې تـکـبر او د خواهش تابعداری او دنیا پرستی وی، نو ځکه دوی د حق خلاف کوی، ځکه که حـق ښـکـاره شی نو بیا خلکو ته د دوی غلا او فساد ښکاره کیږی۔ نو کله مال، شهرت او مشری هم امتحان گرځی۔

لِيَمْكُرُوْا فِيْهَا : ابن کثیر رحمه الله وائی چه د مکر نه مراد دا دے چه هغه مجرمانو خپلو منـونـکـو تـه د دهـوکـے په ښائسته خبرو سره دگمراهئ دعوت ورکړو، او انبیاء او رسولان علیهم السلام ئے پـه امتـحـانـاتو کښې اختـه کړل، لیکن آخر کښې انبیاؤ ته د الله نصرت حاصل شو او د هغه مجرمانو سازشونه ذره ذره پاتے شو۔

(لِيَمْكُرُوْا فِيْهَا ) ددے نـه روستـو جمله پټه ده اَیْ لِيُدْحِضُوْا بِهِ الْحَقَّ ۔ دے دپاره چه په هغے سره حق ته دیکه ورکړی او هغه ورك کړی۔

وَمَا يَمْكُرُوْنَ : دا تهـدیـد دے چـه دا خـلـك ځـان غـرق کوی ځکه چه د حق مقابله د الله مـقـابـلـه ده، او د الله مقابلے ته څوك ټینګیدے شی؟! ځکه چه د حق مقابله شروع کړی نو د هغوی ذلت او رسوائی او هلاکت شروع شی، یا ئے الله قتل کړی۔

| وَاِذَا جَآءَتْهُمْ اٰيَةٌ قَالُوْا لَنْ نُّؤْمِنَ حَتّٰى |
| --- |
| او کله چه راشی دوی ته څه نخه وائی دوی هیڅرے ایمان نهٔ راوړو مونږ تردے چه |

| نُؤْتٰى مِثْلَ مَآ اُوْتِىَ رُسُلُ اللّٰهِ ؔ اَللّٰهُ |
|---|
| راکړے شی مونږ ته په شان د هغے چه ورکړے شویدی رسولانو د الله ته، الله تعالیٰ |
| اَعْلَمُ حَيْثُ يَجْعَلُ رِسَالَتَهٗ ؕ سَيُصِيْبُ |
| ښه پیژنی هغه ځای چه ګرځوی (په هغے کښ) پیغام خپل، زر دے چه ویه رسی |
| الَّذِيْنَ اَجْرَمُوْا صَغَارٌ عِنْدَ اللّٰهِ وَعَذَابٌ شَدِيْدٌ |
| هغه کسانو ته چه جرم ئے کړیدے ذلت په نیز د الله تعالیٰ او عذاب سخت |
| بِمَا كَانُوْا يَمْكُرُوْنَ ﴿۱۲۴﴾ |
| په سبب د هغے چه دوی مکرونه جوړوی. |

**تفسیر** : اُوس د مشرکانو مجرمانو تکبر ذکر کوی. او دا هم د هغوی د مکرونو نه یو مکر دے.

## شان نزول

د ولید بن مغیره په باره کښ نقل شویدی چه هغه رسول الله ﷺ ته وونیل چه که نبوت رشتینے شے وے نو د هغے به زهٔ حقدار وے، ځکه چه زهٔ په عمر کښ مشر او زیات مالداره یم. او د ابوجهل په باره کښ نقل شویدی چه هغه وونیل چه قسم په الله، نهٔ به مونږ دا منو او نهٔ به ئے اتباع کوو، مګر دا چه په مونږ هم وحی نازله شی لکه څنګه چه په محمد (ﷺ) باندے نازلیږی. (تفسیر القرآن العظیم للامام الطبرانی)

الله تعالیٰ پداسے خلقو رد اُوکړو وے فرمایل چه د نبوت په رڼړا سره الله تعالیٰ هرڅوك نهٔ کامیابوی، الله پوهیږی چه ددے اهل څوك دے، او ددے امانت حفاظت څوك کولے شی.

په مسند احمدؒ او صحیح مسلم کښ د واثله بن الاسقع ؓ نه روایت شویدے چه رسول الله ﷺ وفرمایل : ((الله اول د ابراهیم ؑ د اولادو نه اسماعیل چانړ کړو بیائے د بنی اسماعیلو نه کنانه نه بیائے د کنانه قریش او بیائے د قریشو نه بنی هاشم چانړ کړل او بیائے د بنی هاشمو نه زهٔ غوره کړم)). (احمد : ۱۷۰۲۷ بسند صحیح علی شرط مسلم)

د مسند احمدؒ یو بل حدیث دے چه الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ لره د تمام مخلوقاتو د تمامو قبائلو او د تمامو خاندانونه چانړ کړو او بیائے نبی جوړ کړو.

نُؤْتٰى مِثْلَ مَآ اُوْتِىَ رُسُلُ اللّٰهِ : ددے نه مراد ملائك دی چه هغه دے مونږ ته راشی او

خبرے دیے وکړی چه دا د الله رسول دیے. لکه د سورة الفرقان (۲۱) آیت کښې دی: ﴿ وَقَالَ الَّذِيْنَ لَا يَرْجُوْنَ لِقَاءَ نَا لَوْلَآ اُنْزِلَ عَلَيْنَا الْمَلٰٓئِكَةُ اَوْ نَرٰى رَبَّنَا ﴾ (ابن کثیرؒ)

(او ووئیل هغه کسانو چه زمونږ د ملاقات امید نهٔ لری ولے نهٔ نازلیږی په مونږ باندے ملائك یا ولے نهٔ وینو رب خپل)

او ابن جریرؒ وائی ددے نه مراد دا دے چه دوی به وئیل چه دا نبی دے مونږ ته داسے معجزات راوړی لکه پخوانو رسولانو ته چه ورکړے شوی وو چه هغه موسیٰ علیه السلام ته د دریاب کولاویدل، او عیسیٰ علیه السلام ته د مړی ژوندی کول، او مورزادی ړوند او برگی بیمار روغول دی. صاحب المنار وائی اول مطلب د روستو جملے ( اَللّٰهُ اَعْلَمُ حَيْثُ يَجْعَلُ رِسَالَتَهٗ ) سره زیات مناسب دیے.

یو داعی ته الله عزت ورکړی نو مجرمان وائی چه مونږ ددهٔ پسے نهٔ ورځو، مونږه ته ولے داسے عزت نهٔ ملاویږی.

اَللّٰهُ اَعْلَمُ حَيْثُ يَجْعَلُ رِسَالَتَهٗ : یعنی دا پیغمبری څه داسے مصادفةً او په اټکل باندے چا ته نهٔ ملاویږی بلکه الله تعالیٰ ددے اهل او صلاحیت والا خلك پیژنی بیا پیغمبری ورکوی، او هر چا ته نشی ملاویدے، نو ابو جهل په شان خلك ددے چرته لائق کیدے شی.

عِنْدَ اللّٰهِ : ۱- یعنی په آخرت کښې. لکه د صحیح بخاری روایت دے چه د قیامت په ورځ به د هر دهوکه باز شا ته یوه جنډه ناله شی او وئیلے به شی چه دا د فلان بن فلان د دهوکے جنډه ده. (بخاری: ۶۱۷۸)

۲- یا عند الله په معنیٰ د (مِنَ اللّٰهِ) دے (فراءؒ) (یعنی د الله د طرفنه) نو بیا دا دنیا ته هم شامل دیے.

صَغَارٌ : ذلت، او سپکوالے. بیا دا قید څکه ولگیدو چه جزاء من جنس العمل وی، دوی تکبر وکړو نو الله تعالیٰ ذلیله کړل.

| فَمَنْ يُّرِدِ اللّٰهُ اَنْ يَّهْدِيَهٗ يَشْرَحْ صَدْرَهٗ لِلْاِسْلَامِ ۚ |
|---|
| پس چا له چه وغواړی الله چه هدایت وکړی هغه ته نو کولاوه کړی سینه د هغه اسلام ته |
| وَمَنْ يُّرِدْ اَنْ يُّضِلَّهٗ يَجْعَلْ صَدْرَهٗ ضَيِّقًا حَرَجًا كَاَنَّمَا |
| او چا له چه وغواړی چه گمراه کړی هغه نو وگرځوی سینه د هغه تنگه ډیره تنگه گویا که |

يَصَّعَّدُ فِي السَّمَآءِ ۚ كَذٰلِكَ يَجْعَلُ اللّٰهُ الرِّجْسَ عَلَى الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۲۵﴾

په زوره خیژي په بره طرف کښې دغسې ګرځوي الله پلیتي په هغه کسانو چه ایمان نهٔ راوړي۔

**تفسیر** : دا متعلق دے د مخکښې آیت سره چه دوه دعوته به روان وي، ته به هم د حق دعوت کوے، او اکابر مجرمان به هم دعوت کوي، نو د انسان شك پیدا شي چه مجرمان خو ډیر زورور دي، چالاکه هم دي، نفري ئے هم زیاته ده، او زهٔ خو یواځے یم هیڅوك راسره نشته، او دغه شان چالاکي مے هم نشته نو دوي خو به عوام الناس ټول زما نه واړوي او ګمراه به ئے کړي، نو الله تسلي ورکوي چه الله چه د چا د هدایت اراده وکړه هغه هیڅوك نشي ګمراه کولے، نو سره ددے غلط دعوت نه به بیا هم الله تعالیٰ هدایت عام کړي او په ډیرو انسانانو کښې به ئے راولي۔ او دا داسے آیت دے لکه سورة الفرقان (۳۱) آیت کښې دي :

﴿ وَكَذٰلِكَ جَعَلْنَا لِكُلِّ نَبِيٍّ عَدُوًّا مِّنَ الْمُجْرِمِيْنَ ۚ وَكَفٰى بِرَبِّكَ هَادِيًا وَّنَصِيْرًا ﴾۔

(او دغه شان مونږ د هر نبي دپاره د مجرمانو نه دشمنان جوړ کړیدي او ستا رب پوره هدایت کونکے او مددګار دے)۔

○ او دارنګه په دے آیت کښې الله تعالیٰ خپلو بندګانو ته خبر ورکړیدے چه هدایت او ګمراهي د هغه په اختیار کښې ده۔ چا له چه وغواړي په خپل رحمت سره ورته هدایت کوي او چا له چه وغواړي د عدل د تقاضا مطابق ئے ګمراه کوي۔ او هدایت او ګمراهي د هر دور یو مقرر رباني نظام دے، څوك چه هدایت غواړي او هغه رشتیني طلب ګار وي، نو الله تعالیٰ ورته د هغے لارے آسانوي، او ټول اسباب ورته برابروي، او د ایمان قبلولو او د اسلام د اتباع دپاره د هغه سینه کولاووي۔ او څوك چه ګمراهي غواړي او د هغے خواهش کوي نو د هغه دپاره الله تعالیٰ د ګمراهۍ تمامے دروازے کولاووي۔ او د هغه زړهٔ تنګ شي چه د ایمان داخلیدو دپاره په هغے کښې ګنجائش باقي نهٔ پاتے کیږي او د هغه حالت د هغه سړي په شان شي چه په تکلف سره آسمان طرف ته ختل غواړي، لیکن دغسے نشي کولے، یعني توحید او ایمان د هغه په زړهٔ کښې نهٔ داخلیږي۔

يَشْرَحْ صَدْرَهٗ لِلْاِسْلَامِ : یعني بیا د چا غلط دعوتونه په هغه باندے اثر نکوي، د دماغ او زړه فیوز ئے برابر شي نو رڼرا پکښې راشي۔

يَشْرَحْ صَدْرَهٗ : ددے ډیر مطلبونه بیان شویدي (۱) يَهْدِ قَلْبَهٗ لِلتَّوْحِيْدِ وَالْاِيْمَانِ] (ابن کثیر)

یعني زړه ته ئے د توحید او ایمان هدایت وکړي بیا پرے ایمان او توحید او نیك اعمال ښهٔ

لکی، او دې ته غاړه ږدي او د اسلام هر رکن ته تیاریږي، نو دا نښه ده چه الله دۀ ته هدایت کړیدے۔ (السعدي)

۲– يَجْعَلُ نَفْسَهُ مُهَيَّئَةً لِقَبُوْلِ الْحَقِّ۔ ددۀ نفس د حق د قبلولو دپاره تیار کړي۔

۳– علامه محمد رشید رضا وائي : د کوم انسان د زړه نه چه د حق د قبلولو دوه موانع ووځي چه هغه کبر او حسد دے، او فکر ئې د تقلید د پلارانو نه مستقل او آزاد شي، او اراده ئې مضبوطه شي کومه چه د مشرانو د اتباع نه اړونکے ده، نو څوك چه د الله په تقدیر سره د اسلام د دعوت قبلولو اهل جوړ شي نو په دغه وخت کښې دے په سینه کښې یو کولاؤ والے محسوس کړي او زړه کښې ئې خوشحالي او د قبلولو داعیه (باعث) پیدا شي ځکه چه موانع ختم وي نو دے صحیح سوچ وکړي نو د اسلام او د حق حقانیت ورته ښکاره شي او دا هغه رڼرا ده چه په ده باندے د قرآن نه راناز لیږي۔ نو دا آیت د مقابل مخکښې آیت شو چه په هغے کښې د مؤمن او د کافر مثال ذکر وو۔ (المنار)

٤– او په یو حسن حدیث کښې دي چه د رسول الله ﷺ نه د شرح صدر پوښتنه وشوه هغه وفرمایل : نُوْرٌ يَقْذِفُهُ اللّٰهُ فِيْ قَلْبِ الْمُؤْمِنِ فَيَنْشَرِحُ لَهٗ وَيَنْفَسِحُ ] . دا یوه رڼرا ده چه الله ئې کله د مؤمن زړه ته واچوي نو هغے دپاره کولاؤ او تازه شي۔ تپوس وشو : آیا ددے څه نښه شته ؟ وے فرمایل : [نَعَمْ، اَلْاِنَابَةُ اِلٰى دَارِ الْخُلُوْدِ وَالتَّجَافِيْ عَنْ دَارِ الْغُرُوْرِ وَالْاِسْتِعْدَادُ لِلْمَوْتِ قَبْلَ نُزُوْلِ الْمَوْتِ] ۔ آؤ، د آخرت دپاره انابت، او د دنیا نه اعراض او د مرګ دپاره د هغے د راتللو نه مخکښې تیاری کول دي۔ (البیهقی فی الاسماء والصفات ۱/۲۵۷) وابن جریر) ضعفه احمد شاکر وقواه ابن کثیر لتعدد طرقه)

یعني د آخرت فکر ورسره پیدا شي او دنیا ته شا واړوي او د آخرت عملونه شروع کړي۔

٥– او شرح د صدر دے ته هم وائي چه په توحید او سنت ئې پوهه کړي او د زړه نه ئې شکونه لرے کړي او د دین تکالیف ورته آسان کړي۔ (احسن الکلام)

٦– حاصل د شرح الصدر دا دے چه د الله تعالیٰ هر حکم منلو ته تیار شي، داسے نۀ وائي چه دا خو زمونږ مشرانو نۀ دي وئیلي، زمونږ مذهب کښې نشته، ما ندي آوریدلي۔

يَجْعَلْ صَدْرَهٗ ضَيِّقًا حَرَجًا : او څوك چه ګمراه کول غواړي نو توحید او سنت آوریدلو باندے دیر تنګیږي او بیا سخت غصه شي او ددے منل ورته دومره سخت ښکاره شي لکه په یو غر باندے خیژول۔

عمر فاروق ﷺ د یو اعرابي د بنو مدلج نه تپوس وکړو چه حَرِجَة څه ته وائي؟ نو هغه

وويل : [اَلشَّجَرَةُ تَكُوْنُ بَيْنَ الْاَشْجَارِ لَاتَصِلُ اِلَيْهَا رَاعِيَةٌ وَّلَا وَحْشِيَّةٌ وَّلَا شَيْءٌ] (بغوی، ابن کثیر)
چه هغې ونې ته وائی چه د نورو ونو په مینځ کښې وی چه هغې ته هیڅ حیوان او هیڅ شے نشي رسيدلے. ځکه چه ډيره اُوچته وی. نود حَرَجًا معنیٰ دا شوه چه ډيره تنګه وی چه د هدايت هيڅ خبرے ته نۀ فراخه کيږی او د ايمان او د خير هيڅ خبره هغې ته نۀ ننوزی.
(مجاهدؒ، عطاء الخراسانیؒ - ابن کثیرؒ)

كَاَنَّمَا يَصَّعَّدُ فِي السَّمَآءِ : ددے دوه مطلبه دی (۱) يو دا چه داسے مثال ئے دے لکه يو تن ته چه وويل شي چه بره غر يا ډيرئ ته وخيژه نو د هغه سينه به ځنګه تنګه وی او زړه به ئے مرئ ته راغلے وی نو دغه شان ددے سړی سينه ايمان او توحيد او د دين ټولو اعمالو ته تنګه وی او دا ورته مشکل او ګران کار ښکاری چه اُوس به پدے څوك عمل کوی، د خپل رواج او عادت نه مجبوره وی.

(۲) دويم مطلب دا دے چه (السماء) په معنیٰ د آسمان سره دے يعني لکه ځنګه چه سړے آسمان ته نشي ختلے نو دغه شان ددۀ زړه ته توحيد او ايمان نشي داخليدے، دا د ناممکن په درجه کښې شي. (ابن عباسؓ - ابن کثیرؒ)

او مشرکان او د سنتو مخالفينو ته وګورئ دا حالت به تاسو ته ښکاره شي. بهر به شراب خانه جوړه وی، ناټی خانه کښې به خلك ګيری خريوی، څوك به هيڅ نۀ وائی او په مسجد کښې به آمين وويل شي نو زړه به ئے تنګ شي او چغې او سورے به جوړی کړی او جنګ او فساد به خور کړی.

صاحب المنار وائی دا صفت د هغه کافر دے چه ددۀ فطرت د شرك او د اعمال شرکيه ؤ په وجه خراب شويدے او د حسد او تکبر په وجه ئے نفس ګنده شويدے نو دے تأمل او صحيح فکر ته او د داعی خبرے آوريدو ته نۀ پريدی، نو ددۀ باندے د تکبر او حسد د وجه نه دا ګرانه وی چه دا ځنګه د بل چا تابع شي حال دا چه دے خو د هغه نه په امامت او مشرئ ډير لائق دے نو ددۀ اراده سخته ضعيفه وی او تصرف ئے کمزورے وی، د اکثريت مخالفت ورته ګران وی.....الخ (المنار)

كَذٰلِكَ يَجْعَلُ اللّٰهُ الرِّجْسَ :

## د رجس مصداقات

رجس كُلُّ مُسْتَقْذَرٍ ته وائی يعني هر ګنده شے چه طبيعت ئے بد ګنړی.

۱– او دلته د رجس نه مراد عدم الایمان (یعنی کفر) دے۔ ۲– اَللَّعۡنَةُ فِی الدُّنۡیَا وَالۡعَذَابُ فِی الۡآخِرَةِ (په دنیا کښې لعنت او په آخرت کښې عذاب) (الزجاجؒ) (ذکره البغویؒ)

۳– ابن عباس ﷺ وائی چه دلته د رجس نه مراد شیطان دے۔ یعنی لکه څنګه چه الله تعالیٰ د کافر زړهٔ تنګوی او په هغے کښې د ایمان نور نهٔ داخلیږی، دغه شان الله تعالیٰ په هغه باندے شیطان هم مسلط کوی چه هغهٔ ئے همیشه ګمراه کوی او د حقے لارے نه ئے منع کوی۔

٤– او کُلُّ مَا لَا خَیۡرَ فِیۡهِ ته وائی یعنی هر هغه شے چه خیر پکښې نهٔ وی۔ (مجاهدؒ) (ابن کثیرؒ)

عَلَى الَّذِیۡنَ لَا یُؤۡمِنُوۡنَ : دلته د دغه رجس سبب بیانیږی هغه دا چه : رجس الله تعالیٰ په هغه چا وراچوی چه ایمان نهٔ لری او نهٔ د ایمان اراده لری، په ګندګئ کښې خوشحاله وی نو دا ګندګی د کفر او شرك پرے الله تعالیٰ وا چوی۔

**حکمة** : په سورة یونس (۱۰۰) کښې ئے (عَلَى الَّذِیۡنَ لَا یَعۡقِلُوۡنَ) ووئیل : څنګه چه بی عقله خلك بی ایمانه وی او بی ایمانه خلك بی عقله وی، دواړو ترمینځ ملازمه ده، دلته ئے (لَا یُؤۡمِنُوۡنَ) ووېل څکه چه دے سورت کښې د قرآن متعلق بحث ډیر دے، او سورة یونس کښې د ایمان بالله او په هغے دلائل ذکر کول دی نو څکه ئے هلته (لَا یَعۡقِلُوۡنَ) ووئیل، روستو ترے ﴿قُلِ انۡظُرُوۡا مَا ذَا فِی السَّمٰوٰتِ﴾ راغلے دے۔

| وَهٰذَا صِرَاطُ رَبِّكَ مُسۡتَقِیۡمًا ؕ قَدۡ فَصَّلۡنَا الۡاٰیٰتِ |
|---|
| او دا لاره د رب ستا ده نیغه، یقیناً په تفصیل سره بیان کړیدی مونږ آیتونه |
| لِقَوۡمٍ یَّذَّکَّرُوۡنَ ﴿۱۲۶﴾ لَهُمۡ دَارُ السَّلٰمِ عِنۡدَ رَبِّهِمۡ |
| هغه قوم لره چه نصیحت اخلی۔ د دوی دپاره کور د سلامتیا دے په نیز د رب د دوی |
| وَهُوَ وَلِیُّهُمۡ بِمَا کَانُوۡا یَعۡمَلُوۡنَ ﴿۱۲۷﴾ |
| او هغه مددګار د دوی دے په سبب د هغے عملونو چه دوی ئے کوی۔ |

**تفسیر** : اُوس قرآن ته ترغیب ورکوی چه د هدایت مزیداره او آسانه لاره شته، او په یو تن باندے بده لګی او پدے نهٔ روانیږی نو د هغه خپل جرم دے لکه څنګه چه د مؤمنانو

صفت کوی او زیرے ورکوی۔

ربط :

مخکښ شرح صدر ذکر شوه نو اُوس سبب د شرح صدر ذکر کوی چه هغه قرآن دے۔

وَهٰذَا : دا اشاره ده بیان او مضمون د قرآن ته، یا اشاره ده دین اسلام او قرآن کریم او توحید او ایمان طرف ته۔ نو پدے کښ الله تعالیٰ د گمراه شوی خلقو حال او د هغوی د طریقے بیانولو نه روستو د دین اسلام او د حقے لارے فضیلت بیان کړیدے۔

يَذَّكَّرُوْنَ : یعنی خبره رایادوی او عبرت اخلی۔

لَهُمْ دَارُ السَّلٰمِ : د ((دار السلام)) نه مراد جنت دے، یعنی په دین اسلام باندے تلونکی، خلقو ته به د قیامت په ورځ الله تعالیٰ جنت ورکوی، او دوی سره به محبت کوی، او د دوی حافظ او ناصر به وی۔ او دوی ته دار السلام ځکه ورکوی چه دوی د سلامتیا لاره اختیار کړیده۔

دار السلام: سلام یا د الله نوم دے۔ (حسن بصریؒ) یا مصدر دے په معنیٰ د سلامتیا د ټولو آفتونو نه۔ یا د سلام نه مراد تحیه ده یعنی کور د ډیرو سلامونو، چه د هر طرفنه به پرے سلامونه وئیلے کیږی۔

وَلِی نه مراد حافظ او ناصر او مُؤَیِّد دے (ابن کثیرؒ) او ولی دوست ته هم وائی نو ددے نه معلومه شوه چه ولایت د الله تعالیٰ، په صحیح عقیده او نیک عملونو حاصلیږی۔

| |
|---|
| وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ جَمِيْعًا ج يٰمَعْشَرَ الْجِنِّ قَدِ |
| او په هغه ورځ چه راجمع به کړی دوی لره ټول (وبه وائی) اے ډلے د پیریانو! یقیناً |
| اسْتَكْثَرْتُمْ مِّنَ الْاِنْسِ ج وَقَالَ اَوْلِيٰٓـؤُهُمْ مِّنَ الْاِنْسِ رَبَّنَا |
| ډیر گمراه کړیدی تاسو د انسانانو نه او وبه وائی دوستان د دوی د انسانانو نه اے ربه زمونږ! |
| اسْتَمْتَعَ بَعْضُنَا بِبَعْضٍ وَّبَلَغْنَآ اَجَلَنَا الَّذِيْٓ |
| فائدے اخستی دی بعضو زمونږ په بعضو سره او ورسیدو مونږ نیټے زمونږ هغے ته |
| اَجَّلْتَ لَنَا ط قَالَ النَّارُ مَثْوٰىكُمْ خٰلِدِيْنَ |
| چه تا مقرر کړے وه مونږ له، وبه وائی الله، اُور ځای د وسیدو ستاسو دے همیشه به یئ |

فِيهَآ إِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ ۚ إِنَّ رَبَّكَ حَكِيمٌ عَلِيمٌ ﴿۱۲۸﴾

په هغې کښې مگر هغه چه غواړي الله، يقيناً رب ستا حکمتونو والا پوهه دے۔

**تفسير** : مخکښې د شياطين الانس والجن بيان وشو په دنيا کښې نو اُوس د دوی حال په خپل مينځ کښې په آخرت کښې بيانيږي چه اے محمد (ﷺ) ! ته خلقو ته بيان کړه چه په کومه ورځ به مونږ جنی شيطانان او د هغوی تابعدار انسانان راجمع کړو، کومو چه به د هغوی عبادت کولو او د هغوی پورے به ئے پناه اخسته۔ په هغه ورځ به مونږ شيطانانو ته اُووايو چه تاسو انسانان ډير گمراه کړی وو او د هغوی نه مو ډير کسان خپل تابع جوړ کړی وو، نو نن ورځ ستاسو د ټولو انجام ستاسو د سترگو مخامخ دے۔

ددے په جواب کښې به د هغوی منونکی انسانان د خپلو گناهونو د اقرار کولو سره وائی چه اے زمونږ ربه ! په دنيا کښې مونږ ټولو د يو بل نه فائده پورته کړے وه، انسانانو د جناتو په ذريعه د بديانو او مصيبتونو نه پناه غوختله او د هغے په عوض به د جناتو تعظيم کيدو نو الله تعالیٰ به خپله فيصله صادره کړی چه نن ورځ د ټولو ځای د اُوسيدو جهنم دے۔

نو پدے آيت کښې د هغه خلکو حال واوره چه د شيطانانو پسے تلی وی او روستو آيت کښې به ووائی چه چا رسولان پريښی وی د هغوی حال هم واوره۔

قَدِ اسْتَكْثَرْتُم : أَىُ اسْتَضْلَلْتُمْ كَثِيرًا۔ تاسو ډير انسانان گمراه کړی وو څکه چه انسانان د پيريانو په وجه ډير گمراه کيږی، د هغوی نه مددونه اخلی، او د هغوی دپاره نذر او منبتے کوی۔

رَبَّنَا اسْتَمْتَعَ بَعْضُنَا بِبَعْضٍ : ۱ – حسن بصريؒ وائی ددے استمتاع معنیٰ دا ده چه جناتو امر کړيدے او انسانانو په هغے عمل کړيدے۔ (ابن کثيرؒ) ليکن دا خبره مجمله ده۔

۲ – د پيريانو استمتاع دا وه چه د هغوی طاعت به کيدو او د انسانانو استمتاع د پيريانو نه دا وو چه هغوی به په دوی سره دنياوی فائدے اخستلے لکه د عربو عادت دا وو چه صحراء کښې به روان وو او شپه به پرے راغله نو پيريانو ته به ئے آواز وکړو [أَعُوذُ بِسَيِّدِ هٰذَا الْوَادِىُ مِنْ سُفَهَاءِ قَوْمِهٖ] ددے علاقے په مشر پيرى باندے پناه غواړم چه د هغه د قوم بيوقوفان ما ته تکليف رانکړی۔ نو هغه به کشرانو ته وويل چه ما پورے ئے پناه طلب کړيده دۀ ته به ضرر نۀ ورکوئ، نو دۀ به په امن کښې شپه تيره کړه، نو پدے سره به پيرے په

تکبر کښې راغې چه انسانان مونږ نه پناه غواړي. او دا کار شرك وو ځکه چه د غیر الله نه مدد طلب کول وو په غیر د اسبابو نه. او ظاهر دا ده چه دې کښې تذلل او محبت پروت وو ځکه شرك شو.

دارنګه انسانانو به خپلې ګډې بزې پیریانو ته سپارلې بیا به د هغې حفاظت کیدو.

د استمتاع نور هم ډیر صورتونه کیدې شي، بعض خلك پیریان تابع کړي چه د هغې په وجه هغه ته ناشنا خبرونه راوړي او حالونه ورته وائي، بعض ورله دنیاوي مالونه راوړي، او بعض ددوی په وجه ډیرې پیسې وګټي، پیرې تابع کړي بیائې په چا کینوي یا پرې تعویذونه وکړي، نو هغه دې دمکرې لره راشي دائې ترې پاځوي، یا ورته ووائي چه تعویذونه راویاسه نو هغه بیا ددې شخص نه زرګونو روپۍ ووهي. پدې کښې د پیریانو فائده دا وشي چه خلك ګمراه شي او دې انسان ته دنیاوي مالونه حاصل شي او د پیریانو په ذریعه دا کار پدې زمانه کښې سخت زیات دې چه زنانو هم دې کارونو ته ګوتې اچولې دي، او په اخبارونو کښې او مختلفو اشتهاراتو کښې راځي چه فلانې عامل نجومي په یو منټ کښې حاجت پوره کوي، او هیڅ کار مشکل نهٔ دې،

او کله داسې اشتهار ورکوي (کون کہتا ہے کہ قرآن میں شفا نہیں) حال دا چه دا جادوګر وي. او کوم خلك چه پیریان وباسي هغوی اکثر دا کار کوي اګرکه په هر چا بد ګماني بنه نهٔ ده. او کله نا کله یو پیرې انسان ته د ګناه او بې حیایۍ ځایونه مهیا کوي،کله یو زنانه ته ووائي چه د فلانې خواله ورشه نو انسان د هغه زنانه نه فائده واخلي نو د پیرې د ګمراه کولو فائده وشي او ددې انسان خواهش پوره شي.

وَبَلَغۡنَآ أَجَلَنَا ٱلَّذِيٓ أَجَّلۡتَ لَنَا: مقصد پدې دواړو جملو کښې اقرارکول دي د خپلو جرمونو چه مونږ په دنیا کښې د یو بل نه فائدې اخستې دي، او دا دې اُوس ستا مخې ته د مرګ نیته پوره کولو سره راورسیدو نو مونږ چه څه کړي پدې پښیمانه یو، مونږ معاف کړه. نو ذکر د بلوغ الاجل دې او مراد ترې نه لازم دې چه هغه اظهار د افسوس او پښیمانتیا دې چه مونږ د دنیا په ژوند کښې ډیر تقصیر او کوتاهي کړیده او اُوس مجبوره یو چه د خپل رب مخې ته اقرار وکړو. (المنار)

صاحب المنارٓ وائي چه دلته د ضالین خبره ذکر شوه او د مُضلینو ذکر نشوه، ددې وجه چا دا ذکر کړیده چه دلته مضلین د جواب نه عاجزه شو نو ځکه غلي شو. مګر صحیح دا ده چه الله تعالیٰ مونږ ته د قیامت بعض احوال ذکر کوي په مختلفو آیتونو کښې دپاره د

عبرت او نصیحت اخستلو، او په بل خای کښې ئې فرمایلي دي: ﴿ثُمَّ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ يَكْفُرُ بَعْضُكُمْ بِبَعْضٍ وَّيَلْعَنُ بَعْضُكُمْ بَعْضًا﴾ (العنکبوت: ۲۵) بیا د قیامت په ورځ به ځینې ستاسو د ځینو نه انکار وکړي، او په یو بل باندې به لعنتونه وایي.

قَالَ: نو الله به جواب کښې وائي چه ستاسو معافي نشته بلکه اُور کښې به همیشه یئ.

اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ: یعنې جهنمیان به همیشه په جهنم کښې اُوسیږي سِوئ د هغه وخت نه چه الله دوی په هغې کښې ساتل نۀ غواړي. قتادةً وائي: [اَللّٰهُ اَعْلَمُ بِثُنْيَاهُ] الله د خپلې استثناء په مقصد ښه پوهیږي. بعضو ددې معنیٰ دا بیان کړیده (مګر هغه چه الله غواړي چه هغه د اُور نه علاوه نور عذابونه ورکول دي مثلًا د زمهریر (یعنې ډیر یخ عذاب ورکول غواړي) العیاذ بالله. او اکثر اهل علم وائي چه دا استثناء د زمانې د محشر ده، یعنې په زمانه د محشر کښې به اُور کښې نۀ وي او روستو به ئې اُور ته همیشه دپاره بوځي.

ځینې وائي: زمانه د قبر مراد ده. او ځینې وائي دا په اُور کښې زیادت ته اشاره ده یعنې هغه چه الله غواړي نو د دوی اُور به زیاتوي.

ځینې وائي: ددې نه مؤمنان ګنهګاران مراد دي چه دوی به اُور کښې همیشه نۀ وي.

او بعضو وئیلي دي چه پدې سره مقصد خالص د الله تعالیٰ کامل قدرت ښکاره کول دي، چه که الله غواړي نو کافرانو ته به عذاب نۀ ورکوي، د هغه په مرضئ کښې هیڅوك مداخلت نشي کولې. او همدا وجه ظاهره ده لکه دا د قرآن کریم عادت دې چه په داسې خایونو کښې (اِلَّا اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ) او (اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ) ذکر کوي.

حافظ ابن قیمؒ لیکلي دي: چه پدې آیت کښې هغه کسان ذکر دي چه په هغوی کشفونه، شیطاني احوال، او شیطاني کشفونه راځي او د بعض مغیباتو نه په ذریعه د مدد د پیریانو سره خلکو ته خبرونه ورکوي، او خلك ګمان کوي چه دا اولیاء الرحمٰن دي حال دا چه هغوی اولیاء الشیطان دي.

| وَكَذٰلِكَ نُوَلِّيْ بَعْضَ الظّٰلِمِيْنَ بَعْضًا |
| --- |
| او دغسې مسلط کوو (ملګري کوو) مونږ بعض ظالمانو لره په بعضو سره |
| بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ﴿۱۲۹﴾ |
| په سبب د هغې چه دوی ئې کوي. |

**تفسير** : دا شپږمه عقبه د داعي ده۔
نُوَلِّيْ : دا د ولايت نه دے په معنیٰ د تسلط او حاكم جوړولو سره ۔ ۱ – أَيْ نَجْعَلُهُ وَالِيًا۔ يعني مونږه بعض ظالمان په بعضو باندے د هغوی د بدو عملونو په وجه مسلط كوو۔ نو ددے ربط د مخكښې سره واضح دے چه شيطانان په بعض انسانانو ولے مقرروی؟ دا د دوی د ظلم د وجې نه، كه دوی صحيح موحدين وے نو الله به پرے شيطان نۀ مقررولے ځكه چه شيطان د مؤمن موحد نه يره كوی او تښتي، ليكن هر كله چه دۀ كښې بد عملونه راشي نو الله ددۀ د گمراه كولو دپاره شيطان په دۀ مسلط كړی۔
او ددے نه دا معلومه شوه چه ظالم په ظالم باندے مسلط كيږی، كله چه انسان كښې ظلم او گناهونه پيدا شي نو الله پرے كله شيطانان مقرر كړی، او كله پرے انسانان مقرر شي۔ تورات كښې الله ليكلی وو چه زۀ د منافقانو نه بدله په منافقانو باندے اخلم۔ او بيا د دواړو نه بدله اخلم۔ نو ددے نه عجيبه فائده راووته چه تۀ د ځان نه ظلم لرے كړه نو الله به درنه ظالمان واړوی۔ الله تعالیٰ هغه كسانو ته غلط استاذان وركوی چه هغه ظالمان او بی باكه وی، د دين هيڅ پرواه ورسره نۀ وی۔ يا مقتديانو ته غلط امام وركړی دا عذاب دے۔
او علامه قرطبیؒ وائي چه پدے آيت كښې ټول هغه خلك داخل دی چه د ځان سره ظلم كوی، يا د رعيت سره، يا تاجر د خلكو سره په تجارت كښې ظلم كوی يا غل وغيره۔
۲ – يا نُوَلِّيْ د ولايت نه دے په معنیٰ د دوستانے سره۔ [أَيْ نَجْعَلُ بَعْضَ الظَّالِمِيْنَ أَوْلِيَاءَ بَعْضٍ فِي الشَّرِّ وَالْفَسَادِ] يعني مونږ بعض ظالمان د بعضو دوستان جوړوو په شر او فساد كښې د دوی د بدو عملونو د وجه نه يعني كشران غلط عملونه شروع كړی، او شر او فساد پكښې وی، نو پدے وجه ئے الله تعالیٰ د مشرانو ظالمانو ملگری جوړ كړی۔ غلط خلك د غلطو ملگری كړی چه بيا به ترے په قيامت كښې براءت او بيزاری كوی۔ (قرطبیؒ)
او پدے معنیٰ باندے د عقبی حاصل دا دے چه كله داعی ته الله تعالیٰ دا امتحان رامخے نه كړی چه الله تعالیٰ بعض ظالمان د بعض ظالمانو ملگری كړی نو ټول مشركان او مبتدعين د يو بل ملگری او متفق شي او د حق پرست په خلاف ودريږی او ددۀ سره تعلقات پريدی۔ او د هر طرف نه ورته اذيتونه وركوی۔

| يٰمَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ اَلَمْ يَاْتِكُمْ رُسُلٌ مِّنْكُمْ يَقُصُّوْنَ |
|---|
| اے ډلے د پيريانو او انسانانو! آيا نۀ وو راغلی تاسو ته رسولان ستاسو نه چه بيانول ئے |

عَلَیۡکُمۡ اٰیٰتِیۡ وَیُنۡذِرُوۡنَکُمۡ لِقَآءَ یَوۡمِکُمۡ ہٰذَا ؕ قَالُوۡا

په تاسو آیتونه زما او یرول ئې تاسو د ملاقات د ورځې ستاسو نه چه دا ده وبه وائي دوی،

شَہِدۡنَا عَلٰۤی اَنۡفُسِنَا وَغَرَّتۡہُمُ الۡحَیٰوۃُ الدُّنۡیَا

ګواهي کوو مونږ په خپلو ځانونو او دهوکه کړې وو دوی لره ژوند دنیوی

وَشَہِدُوۡا عَلٰۤی اَنۡفُسِہِمۡ اَنَّہُمۡ کَانُوۡا کٰفِرِیۡنَ ﴿۱۳۰﴾

او ګواهي به کوي دوی په خپلو ځانونو چه بیشکه دوی کافران وو۔

**تفسیر** : اُوس د پیریانو او انسانانو نه حساب اخلی په باره د رسولانو کښې، او مخکښې هم تخویف وو او دا هم تخویف دے۔

ربط : په مخکښې آیت کښې جناتو ته زورنه ورکړے شوه چه دوی انسانان ګمراه کړل، او د قیامت په ورځ به د هیڅ کافر پیری او انسان د انکار جرأت نۀ وی، او تول به د خپل خپل کفر اقرار کوی۔ اُوس پدے آیتِ کریمه کښې دا بیانیږی چه الله تعالیٰ به د قیامت په ورځ ددے دواړو ډلو نه د زیات زجر او توبیخ په توګه تپوس کوی چه آیا تاسو ته زمونږ انبیاء او رسولان علیهم السلام نۀ وو راغلی؟۔

اَلَمۡ یَاۡتِکُمۡ رُسُلٌ مِّنۡکُمۡ : آیا په پیریانو کښې رسولان شته ؟

ابن جریرؒ د ضحاك بن مُزَاحِمؒ نه او بغویؒ د کَلْبِیؒ نه نقل کړیدی چه هغه ددے آیت نه دلیل نیولے دے او وئیلی ئې دی چه په جناتو کښې انبیاء او رسولان راغلی دی۔ لیکن د جمهورو امامانو د سلف او خلفو مذهب دا دے چه انبیاء او رسولان صرف په انسانانو کښې راغلی دی۔ حافظ ابن کثیر رحمه الله د قرآن کریم د ګڼړو آیتونو نه دلیل نیولو سره دا ثابته کړیده۔ الله تعالیٰ په سورة یوسف آیت (۱۰۹) کښې فرمایلی دی :

﴿وَمَاۤ اَرۡسَلۡنَا مِنۡ قَبۡلِكَ اِلَّا رِجَالًا نُّوۡحِیۡۤ اِلَیۡہِمۡ مِّنۡ اَہۡلِ الۡقُرٰی﴾ ستا نه مخکښې مونږ کلو والو نه چه څومره رسولان لیږلی هغه ټول انسانان وو چه هغوی ته به مونږ وحی لیږله)۔ د آیت نه معلومیږی چه انبیاء او رسولان صرف په انسانانو سړو کښې راغلی دی۔

او حافظ ابن کثیرؒ د ابن عباسؓ او بغویؒ د مجاهدؒ دا قول نقل کړیدے چه په بنیادمانو کښې رسولان راځی او په پیریانو کښې نُذُر (یره ورکونکے داعیان) راځی۔ بیا ئې دا آیت ﴿وَلَّوۡا اِلٰی قَوۡمِہِمۡ مُّنۡذِرِیۡنَ﴾ (احقاف : ۲۹) ولوستو۔ والله اعلم۔

او ددے وجه دا ده چه په انسانانو کښې خیر او په پیریانو کښې شر زیات دے۔
او ددے وجه نه ځینی مفسرینو دلته د رُسُل معنیٰ په مُبَلِّغِین سره کړیده نو انسانانو ته مبلغین رسولان وو او پیریانو ته مبلغین غیر رسولان دی۔ یا دلته چه رُسُل وئیل شویدی نو ددے مطلب دا دے چه انسانانو ته کوم رسولان راغلی نو دا د پیریانو دپاره هم رسولان دی خو د پیریانو د جنس نه رسولان نهٔ راغلی لکه زمونږ رسول محمد رسول الله ﷺ فرمائی : [وَبُعِثْتُ اِلَى الْاَحْمَرِ وَالْاَسْوَدِ] مجاهدؒ وائی د اَحمر نه مراد انسانان او د اَسود نه پیریان دی۔ یعنی زهٔ انسانانو او پیریانو ته رالیږلے شوے یم۔ (مسند احمد : ۲۱۳۳۷ وسنده حسن) وفی روایة : وَبُعِثْتُ اِلَى الْجِنِّ وَالْاِنْسِ) (شعب الایمان : ۱۴۰۳) مسند البزار : ۴۷۷۶) وسنن البیهقی (۴۴۳۹)۔ زهٔ پیریانو او انسانانو ته رالیږلے شوے یم۔
يَقُصُّوْنَ عَلَيْكُمْ : د پیغمبرانو دعوت څه وو؟ د الله آیتونه خلکو ته لوستل او د آخرت نه هغوی یرول، دا د ټولو رسولانو نصاب تبلیغ وو۔ او دلته بیا د الله کتاب او آخرت جمع شو د وجه د سخت مناسبت نه۔
قَالُوْا شَهِدْنَا عَلٰٓى اَنْفُسِنَا : دا خبره د اندامونو د ګواهئ نه روستو ده۔
وَغَرَّتْهُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا : دا مینځ کښې جمله معترضه ده د طرفه د الله نه، او علت د تکذیب دے یعنی کله چه دوی په خپلو ځانونو اقرار وکړی چه آؤ مونږ ته رسولان او مبلغین راغلی وو او په مونږه ئے حجت قائم کړے وو، لیکن مونږ مجرمان وو، نو الله به وفرمائی چه دوی څکه ددے رسولانو مخالفت کولو چه دوی د دنیا ژوند په دهوکه کښې اچولی وو۔
وَشَهِدُوْا : مخکښې ګواهی د رسولانو په راتللو وه او دا ګواهی د خپل کفر کولو ده۔
د قیامت په ورځ د کافرانو دا وینا هم مخکښې په دے سورت کښې په آیت (۲۳) کښې نقل شویده چه ﴿وَاللّٰهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِيْنَ﴾ مونږ په خپل رب قسم خوړلو سره وایو چه مونږ شرك نهٔ وو کړے)۔
امام شوکانیؒ ددے توجیه کړیده چه کافران د انتهائی درجه پریشانئ او د عقل او پوهے د ختمیدو په وجه به کله یو څه وائی او کله بل څه۔

| ذٰلِكَ اَنْ لَّمْ يَكُنْ رَّبُّكَ مُهْلِكَ الْقُرٰى بِظُلْمٍ |
| --- |
| دا پدے وجه چه نهٔ دے رب ستا هلاکونکے د کلو په ظلم (شرك) کولو سره |

وَّاَهۡلُهَا غٰفِلُوۡنَ ﴿۱۳۱﴾

چه وسیدونکی د هغې ناخبره وی۔

**تفسیر** : اُوس د رسولانو د رالیږلو حکمت بیانوی چه الله تعالیٰ یو قوم ته د هغوی د غفلت په حالت کښې عذاب نهٔ ورکوی اګرکه هغوی مشرکان او ګنهګار وی بلکه د رسولانو په رالیږلو او د کتابونو په نازلولو په هغوی حجت قائم کړی، چه هغوی ونهٔ منی نو بیا عذاب ورکوی، په دنیا کښې یا په آخرت کښې۔
دا داسې آیت دے لکه د سورة بنی اسرائیل (۱۵) آیت
﴿وَمَا كُنَّا مُعَذِّبِيْنَ حَتّٰى نَبْعَثَ رَسُوْلًا﴾۔
(مونږ عذاب نهٔ ورکوو تردے چه رسولان ولیږو) او خلك ئے خلاف وکړی۔
**ذٰلِكَ** : یعنی دا رسولان رالیږل۔ **بِظُلۡمٍ** : ۱ – اَیْ بِظُلْمِ اَهْلِهَا یعنی د هغوی په ظلم سره۔
۲ – بعض مفسرینو وائی (بِظُلْمٍ مِنَّا) که زهٔ په غفلت د خلکو کښې عذاب راولم بیا به ظلم شی او الله تعالیٰ د ظلم نه منزه دے نو ځکه عذاب نهٔ راولی۔
**وَّاَهۡلُهَا** : یعنی په داسې حال کښې چه د هغې وسیدونکی غافل وی۔
**غٰفِلُوۡنَ** : یعنی چه د انبیاؤ دعوت ورته نهٔ وی رسیدلے۔

وَلِكُلٍّ دَرَجٰتٌ مِّمَّا عَمِلُوۡا ؕ

او د هر یو دپاره مختلفې درجې دی د وجه د هغې عملونو نه چه دوی کړیدی

وَمَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ عَمَّا يَعۡمَلُوۡنَ ﴿۱۳۲﴾

او نهٔ دے رب ستا ناخبره د هغې نه چه دوی ئے کوی۔

**تفسیر** : یعنی هر یو د پیریانو او انسانانو نه که جنت والا دی او که جهنم والا، دوی دپاره مختلفې مرتبې دی، او د هر چا مرتبه د هغه د عمل مناسب ده، که په دنیا کښې وی او که په آخرت کښې۔ او اشاره ده چه مدار د جزا او سزا په عمل باندے دے۔
**وَلِكُلٍّ** : اَیْ لِكُلِّ اُمَّةٍ وَلِكُلِّ شَخْصٍ۔ /وَلِكُلِّ اَحَدٍ مِنَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ ۔ د هر امت او هر شخص دپاره/ او هر یو د پیریانو او انسانانو نه۔

| وَرَبُّكَ الْغَنِيُّ ذُو الرَّحْمَةِ ۚ إِنْ يَّشَأْ يُذْهِبْكُمْ |
|---|
| او رب ستا بے حاجته دے خاوند د رحمت دے، كه وغواړي هغه ختم به كړي تاسو |
| وَيَسْتَخْلِفْ مِنْۢ بَعْدِكُمْ مَّا يَشَآءُ كَمَآ |
| او ناثبان به كړي روستو ستاسو نه هغه څوك چه وغواړي لكه څنګه ئے |
| اَنْشَاَكُمْ مِّنْ ذُرِّيَّةِ قَوْمٍ اٰخَرِيْنَ ﴿۱۳۳﴾ |
| چه پيدا كړي يئ تاسو د اولادو د قوم نور نه۔ |

**تفسير** : پدے كښ د دنيا يره ده نۀ منونكو ته۔ الله تعالىٰ د خپل مخلوق نه بے نيازه دے، نۀ د هغوى د عبادت محتاج دے، نۀ د هغوى په ايمان سره هغه ته فائده رسى، او نۀ د هغوى كفر هغه ته نقصان رسوى۔ ليكن هغه د خپلے كاملے بے نيازئ سره په خپلو بندګانو رحم كونكے هم دے۔ د هغه بے نيازي په هغوى باندے د رحم كولو نه مانع نۀ ده، كه هغه وغواړي نو خپل نافرمان بندګان به تول هلاك كړي، او بو داسے قوم به راولى چه هغه به ډير مطيع او فرمانبردار وي، لكه څنګه چه هغه په تيرو شوو زمانو كښ قومونه ختم كړل او نور قومونه ئے راوستل۔

يُذْهِبْكُمْ : اَىْ يُهْلِكْكُمْ۔ يعنى هلاك به مو كړي۔

ذُرِّيَّةِ : نسل۔ نو پدے كښ دعوت دے مونږ ته چه ځانونه صحيح بندګان جوړ كړئ ګنے هلاك به شئ، د الله څه پرواه ده۔

| إِنَّ مَا تُوْعَدُوْنَ لَاٰتٍ ۙ |
|---|
| يقيناً هغه چه تاسو سره ئے وعده كيدے شي خامخا راتلونكے دے |
| وَّمَآ اَنْتُمْ بِمُعْجِزِيْنَ ﴿۱۳۴﴾ |
| او نۀ يئ تاسو عاجزه كونكښ (الله لره)۔ |

**تفسير** : دا هم يره ده نۀ منونكو ته۔

د ما توعدون : نه مراد قيامت او د هغے احوال دي، او مقصد د هغه خلقو ردكول دي چه دا عقيده لري چه بنده د مرګ نه روستو خاوري كيږي د هغے نه روستو هيڅ بل ژوند

نشته۔ او د دنیا عذاب هم مراد کیدے شي۔

وَّمَآ اَنۡتُمۡ بِمُعۡجِزِيۡنَ : د الله د عاجزه کولو صورت دا دے چه ته د الله نه منډه کړے او الله دربسے درځي لیکن ته تړے په منډه خلاص شے، نو د الله تعالیٰ په مقابله کښې داسے هیڅوك نشي کولے۔

| |
|---|
| قُلۡ یٰقَوۡمِ اعۡمَلُوۡا عَلٰی مَكَانَتِكُمۡ اِنِّیۡ عَامِلٌ ۚ |
| ووایه ! اے قومه زما ! عمل وکړئ په طریقه خپله یقیناً زهٔ عمل کونکے یم |
| فَسَوۡفَ تَعۡلَمُوۡنَ ۙ مَنۡ تَكُوۡنُ لَهٗ عَاقِبَةُ |
| نو زر دے چه پوهه به شئ تاسو چه څوك دے چه وي به هغه له انجام |
| الدَّارِ ؕ اِنَّهٗ لَا یُفۡلِحُ الظّٰلِمُوۡنَ ﴿۱۳۵﴾ |
| د کور د آخرت، یقیناً نهٔ کامیابیږي ظالمان۔ |

**تفسیر** : اُوس نه منونکو نه د براءت اعلان دے او مقصد پکښې سخته زورنه ده چه تاسو په خپل شرك او کفر باندے مضبوط اُودریږئ، زما هم ستاسو او ستاسو د کفر هیڅ پرواه نشته، زهٔ به هم په اسلام باندے ثابت قدم اُوسیږم۔ تاسو ته به زر پته اُولګی چه په حق باندے څوك دے، او په باطل باندے څوك، او فتح او نصرت او عزت او غلبه به ستاسو نصیب کیږی که زمونږ۔ نو الله د خپل رسول سره کړے وعده پوره کړه۔ فتح د مکے اُوشوه، د اسلام دشمنان ظالمان ذلیله شو، او د نبی ﷺ په ژوند کښې ټول جزیرة العرب د اسلام په کړئ کښې داخل شو، او د هغه د وفات نه روستو د خلفاؤ په ژوند کښې د فتوحاتو سلسله جاری پاتے شوه۔ تردے پورے چه فارس او روم او د هغے نه روستو د برصغیر پاك وهند زمکه د اسلام په شعلو رڼا شوه۔ بیا په داسے قسم دعوت کښې خلك حق طرفته متوجه کول وي او سوچ کولو ته دعوت وي۔

مَكَانَتِكُمۡ : اَیۡ طَرِیۡقَتِكُمۡ وَنَاحِیَتِكُمۡ ۔ یعنی په خپله طریقه عمل کوئ او په خپل طرف کښې وسیږئ۔

اعۡمَلُوۡا : دے کښې دا مقصد نهٔ دے چه تاسو خپل عمل کوئ دغه جائز دے، بلکه دے کښې دهمکی مقصد دے چه زهٔ به حق بیانوم او تاسو په شرك کلك ولاړ یئ نو داسے وخت به راشی چه پته به ولګی چه انجام به د چا ښه کیږی، نو پدے کښې د بندګانو متوجه کول

غرض وي چه دوی کښې عقلمند سوچ وکړي چه هر کله انجام راتللو والا دے، نو ولے داسے کارونه وکړو چه انجام مو خراب شي نو راځئ چه دا مخالفتونه پریدو او د حق تابع شو، نو دا د دعوت یوه طریقه شوه.

| وَجَعَلُوْا لِلّٰهِ مِمَّا ذَرَاَ مِنَ الْحَرْثِ وَالْاَنْعَامِ نَصِيْبًا |
| --- |
| او کرځوی دوی الله لره د هغے نه چه پیدا کړیدی هغه د فصلونو او د څاروو نه برخه |
| فَقَالُوْا هٰذَا لِلّٰهِ بِزَعْمِهِمْ وَهٰذَا لِشُرَكَآئِنَا ج |
| نو وائی دوی دا برخه د الله تعالیٰ ده په ګمان د دوی او دا برخه د شریکانو زمونږ ده، |
| فَمَا كَانَ لِشُرَكَآئِهِمْ فَلَا يَصِلُ اِلَى اللّٰهِ ج وَمَا كَانَ لِلّٰهِ |
| نو هغه چه د دوی د شریکانو ده، نو نۀ رسیږی الله ته او هغه چه د الله دپاره ده |
| فَهُوَ يَصِلُ اِلٰى شُرَكَآئِهِمْ ط سَآءَ مَا يَحْكُمُوْنَ ﴿۱۳۶﴾ |
| نو هغه رسیږی د دوی شریکانو ته، بده ده هغه فیصله چه دوی ئے کوی. |

**تفسیر** : ددے ځای نه روستو الله تعالیٰ د جاهلیت والو شرکونه او غلط رواجونه رانقل کوی، او بیا پرے ردونه کوی. او پدے کښې ایمان والو ته تنبیه ده چه تاسو د داسے کارونو نه ځان وساتئ. او اشاره ده چه کـه داسے کوم قِسم بیوقوف خلك د رسول الله ﷺ د راوړی حق مقابله کوی نو دا په حق کښې هیڅ قدح او عیب نۀ پیدا کوی ځکه چه ددے خلکو د حق په مقابله کښې هیڅ اهلیت او حیثیت نشته. (السعدی)

مناسبت :

۱ – ددے تعلق د (عَلٰى مَكَانَتِكُمْ) سره دے، یعنی مخکښې ئے ویل چه تاسو په خپله طریقه عمل کوئ نو دلته د مشرکانو طریقه بیانوی چه د هغوی دین څه شے دے ؟ صرف خرافات دی. ۲ – د مضمون د سورت سره ئے تعلق دا دے چه د الله تعالیٰ د نۀ معرفت د وجه نه خلك دا قسم جهالتونه کوی، که دوی الله تعالیٰ په حقیقی معنو سره پیژندلے وے نو دا کارونه به ئے نۀ کولے او د بتانو جانب به ئے د الله تعالیٰ په جانب نۀ غوره کولے.

د عبد الله بن عباس ﷺ نه نقل دی چه که ته غوارے چه د عربو د جاهلیت والو جهالت وپیژنے نو سورة الانعام د یوسل دیرش آیت نه اخوا ولوله. (بخاری – ابن کثیر) او دوی به

شرك فی التحلیل والتحریم کولو، او دا زمونږ په زمانه کښې هم په مختلفو طریقو موجود دی۔

مشرکانو په فصلونو، چارپیانو او خپلو بچو درے وارو کښې د الله سره شریکان جوړ کړی وو، نو دلته به درے واړه بیانیږی۔

. نو د مشرکانو د ایجاد کرده بدعاتو، دکفر او شرك او د الله په مقابله کښې د بتانو کوم اهمیت چه د هغوی په زړونو او دماغو کښې وو، هغه خبرے پدے آیت کښې بیان شویدی۔ مشرکانو به خپل زرعی پیداوار او حیواناتو کښې یوه حصه د الله دپاره او یوه حصه د بتانو او معبودانو دپاره مقرر کوله۔ د بتانو حصه به ئے په منجورانو او ملنګانو خرچ کوله او کله چه به هغه پوره خرچ شوه نو د الله حصه به ئے هم د بتانو دپاره خاص کوله او وئیل به ئے چه الله خو مالدار دے، نو کومه حصه چه به د بتانو وه هغه خو به الله ته په هیڅ حال کښې نۀ رسیدله (یعنی په صدقه او صله رحمی وغیره به نۀ خرچ کیده) او کومه حصه چه به د الله وه نو هغه به ئے هم په بتانو باندے خرچ کوله۔ (تیسیر الرحمن)

بِزَعْمِهِمْ : د الله دپاره خو حصه مقررول ګناه نۀ ده مګر دے کښې دوی دوه نقصانه کول، (۱) یو بدعت کول (بِزَعْمِهِمْ) چه الله به ورته هغه مقرره حصه نۀ وه خودلے او دوی به دا وئیل چه مثلًا دومره دانے چه نۀ کمے وی او نۀ زیاتے د الله دپاره خرچ کوم، نو دا د ځان نه تعیین دے او دے ته بدعت وئیلے شی۔ (۲) او دویم نقصان شرك وو: ﴿وَهٰذَا لِشُرَكَائِنَا﴾ هغه دا چه فصل او چارپیان الله پیدا کړیدی او دوی پکښې د خپلو معبودانو دپاره برخه وکړله او د هغوی دپاره به ئے نذر وکړو۔ د شرکاؤ نسبت ئے ځان ته وکړو ځکه چه دغه معبودان د دوی سره په فصلونو او مالونو کښې شریك وو، د الله سره شریکان نۀ وو۔ نو دوی شرك او بدعت دواړه جمع کړل۔

فَمَا كَانَ لِشُرَكَائِهِمْ : دا اُوس بل ظلم یو ځای کول دی چه هغه تَرْجِيْحُ جَانِبِ الْمَخْلُوْقِ عَلٰى جَانِبِ الْخَالِقِ ده۔ د مشرك طریقه دا ده چه د مخلوق جانب غوره ګنړی د خالق د جانب نه، د بابا نوم بی اودسه نۀ اخلی او د الله د نوم هیڅ پرواه نۀ کوی، د بابا دربار ته چه ورشی د سترګو نه ئے اُوښکی روانی وی او الله ته بنه بی ادبه ولاړ وی۔

علامه ناصر السعدیؒ فرمائی: پدے کار کښې دوی درے ناروا کارونه جمع کړی وو۔

(۱) یو دا چه دوی په الله باندے احسان کولو چه مونږ د هغه په نوم برخه مقرر کړیده سره ددے نه چه د دوی عقیده وه چه دا زمونږ د طرف نه تبرع (احسان) دے۔ (او په احسان کښې

زیادنه ناروا وی) (۲) د هغه شرکاؤ برخه مقررول چه هغوی دوی ته رزق نهٔ دے ورکړے او دوی له ئے دا یو شے هم نهٔ دے ورکړے۔ (یعنی د الله مال ئے د غیر الله دپاره صرف کړو)۔

(۳) او بیا ظالمانه کار دا وو چه د الله د برخے هیڅ پرواه نهٔ ساتل او د غیر الله د برخے اهتمام او حفاظت کول۔ (تفسیر السعدی ۱/ ۲۷٤)

فَلَا يَصِلُ اِلَى اللّٰهِ : ((د دوی د معبودانو برخه الله ته نهٔ رسی)) ددے ډیر صورتونه دی یو صورت ئے مخکښ بیان شو۔ (۲) دویم دا چه د دوی د معبودانو دپاره به کومه ډیره کیڼ د غنمو او د دانو او کجورو وغیره مقرر وه نو که د هغے نه به څه دانے د الله والا ډیری ته لاړے، چا به په خپه ووهل یا به هوا ورووړل نو هغه به ئے بیرته راجدا کوله او دا به ئے ویل چه زمونږ معبودان ډیر محتاج دی او الله خو غنی دے۔ او د الله دپاره به ئے چه کومه برخه مقرر کړے وه او په خطائی کښ به څه حصه د معبودانو والا ډیری ته لاړه نو دوی به ترے نهٔ جدا کوله او دا به ئے ویل چه الله غنی ذات دے۔ نو د الله جانب ئے مرجوح کولو۔

(۳) دریم دا چه کوم نذر چه به د باباګانو دپاره وو نو هغه به ئے صرف منجورانو ته ورکولو او عامو مسکینانو باندے به ئے نهٔ خرچ کولو، (لکه د نن زمانے مشرکان وائی دا د بابا او د میان صاحب، حق او قلنګ دے) او کومه برخه چه به د الله تعالیٰ په نوم وه نو هغه به ئے د الله په نوم مسکینانو او میلمنو ته هم ورکوله او منجورانو ته هم، نو د الله برخه به ئے دواړو ته تقسیموله او د معبودانو برخه به ئے صرف سَدَنه (منجورانو) ته ورکوله۔ دا هم بی انصافی وه۔

(٤) عبد الرحمن بن زید بن اسلمؒ وائی : دوی چه به کوم څاروے د الله دپاره ذبح کولو نو هغه به ئے نهٔ خوړلو تردے چه د خپلو معبودانو نوم به ئے ورسره (د ذبح په وخت) ذکر کړو او کوم چه به ئے د معبودانو دپاره ذبح کولو نو په هغے به ئے د الله نوم نهٔ اخستو۔(ابن کثیر)

(٥) کوم مال چه به د الله په برخه کښ وو که هغے نه به څه هلاك شو یا به کم شو نو په هغے به ئے څه باك نهٔ کولو او که د معبودانو د برخے نه به څه شے کم شو یا به هلاك شو نو هغه به ئے د الله والا د برخے نه پوره کوله۔ (البغویؒ)

سَآءَ مَا يَحْكُمُوْنَ : أَيْ سَاءَ حُكْمُهُمْ ۔ د دوی دا فیصله ډیره ناکاره ده۔ یو خو پدے کښ مخلوق د خالق نه غوره کول دی، بل دا چه څیزونه د الله وو او دوی د غیر الله دپاره وګرځول۔

| وَكَذٰلِكَ زَيَّنَ لِكَثِيرٍ مِّنَ الْمُشْرِكِينَ قَتْلَ أَوْلَادِهِمْ شُرَكَاؤُهُمْ |
|---|
| او دغسې ډولې کړېدې ډیرو د مشرکانو ته وژل د اولادو خپلو (محبت) د شریکانو د دوی، |
| لِيُرْدُوهُمْ وَلِيَلْبِسُوا عَلَيْهِمْ دِينَهُمْ ۖ وَلَوْ شَاءَ |
| دې دپاره چه هلاك کړي دوی لره او ګډوډ کړي په دوی باندې دین د دوی او که غوختې |
| اللَّهُ مَا فَعَلُوهُ ۖ فَذَرْهُمْ وَمَا يَفْتَرُونَ ﴿۱۳۷﴾ |
| الله تعالیٰ دوی به نهٔ وے کړے دا کار نو پرېږدهٔ دوی او هغه چه دوی ئخه دروغ جوړوی۔ |

**تفسیر** : دا په اولادو کښې د دوی شرك کول ذکر کوی او رد دے په نذر د غیر الله باندې چه اولاد د غیر الله په نوم منبنته کوی او د هغوی په نوم ئې ذبح کوی۔

**وَكَذٰلِكَ** : یعنی لکه ځنګه چه په تیر شوی تقسیم کښې شیطانانو شرك ښائسته ښکاره کولو سره د دوی مخې ته پیش کړو، او دوی هغه قبول کړو، نو دغه شان دغه شیطانانو یو بل لوئې جرم د مشرکانو په نظرونو کښې ښائسته او جائز ښکاره کولو سره پیش کړو۔

د رزق د تنګئ په یره سره د اولادو قتل، او د شرم او پیغور په یره سره ئې لونړه په خاورو کښې ژوندئ ځخول رواکړل۔ او مشرکانو د شیطانانو اتباع اُوکړه او هغه ئې قبول کړل۔ او پدې طریقه شیطانانو مشرکانو لره په شرك او د اولادو په وژلو کښې اخته کړل، او هلاکت طرف ته ئې دیکه کړل، او د باطل افکارو او نظریاتو په ترویج سره ئې دوی د حق دین نه واړول په کوم باندې چه د دوی مشر بزرګ اسماعیل علیه السلام ولاړ وو، او دوی باندې ئې صحیح دین ګډوډ کړو۔

**شُرَكَاؤُهُمْ** : سوال دا دے چه شرکاؤ (معبودانو) خو دوی ته دا نهٔ دی وئیلی چه زمونږ په نوم اولاد ذبح کړئ نو هغوی ځنګه ورته د دوی قتل ښائسته ښکاره کړو؟ ددې تاویلی تفسیر دا دے چه دلته مضاف پټ دے [مَحَبَّةُ شُرَكَائِهِمْ] یعنی د شرکاؤ محبت پدے کار باندې مجبوره کړیدی۔ لکه دا کار اُوس هم مشرکان کوی چه د یو بابا سره ئې مینه زیاته وی نو خپلې لونړه د هغوی منجورانو او نمسو ته بخښی او په نکاح ئې ورکوی نو دا شرك دے او دا نکاح فاسده ده۔ (احسن الکلام)

(۲) مصداق : د شرکاء نه مراد سَدَنَةُ آلِهَتِهِمْ دی، یعنی د دوی د معبودانو منجوران۔

یعنی منجورانو به ورته دا تلقین کولو چه ددے بابا په نوم څوك خپل بچے ذبح کړی نو په مال او بچو کښې به ئے دومره دومره برکت راشی لکه شیعه ګانو ته دا کار خپلو مشرانو ښائسته کړیدے چه د محرم په لسم باندے ځان ډیر ووهه او وینه وباسه نو حسین ؓ به ډیر خوشحاله شی نو تهٔ به سیده جنت ته لاړ شے۔ او کوم څاڅکے وینه چه درنه پریوزی نو دومره دومره ثوابونه ملاویږی او دغه شان د متعے په باره کښې وائی۔

(۴) مصداق : شرکاء نه مراد شیطانان دی چه دوی به کله نا کله په دغه بتانو کښې ننوتو سره راښکاره کیدل او آوازونه به ئے کول چه راشه زما په نوم بچے ذبح کړه او ما نه فلانے مدد وغواړه۔ نو د چا عقیده چه کمزوری وی شیطانان ورته راښکاره کیږی او د چا چه مضبوطه وی بیا ورته نهٔ راښکاره کیږی، ډیرو مشرکانو به د شیطانانو آوازونه آوریدل او اُوس هم مشرکانو ته د قبرونو نه آواز وشی، کله ورته د قبر نه لاس راښکاره شی او کله ورته د سپین ګیری په شکل تحفه ورکړی، نو دے وائی چه بابا دا کار وکړو او په مینځ کښې هغه شیطان وی۔ دے دپاره چه ددهٔ عقیده نوره هم خرابه شی، او دا کارونه د تصوف والو سره ډیر کیږی، هغه دا کرامت ګنړی، تهٔ به د دوی په کتابونو کښې دا قسم واقعات ډیر ګورے چه کله به وائی چه ما ته الله آواز وکړو، او کله به وائی چه نبی ﷺ په جسد عنصری سره د دیوبند مدرسے ته راغلے وو۔

لِيُرۡدُوۡهُمۡ : یعنی دا کار د دوی د هلاکولو دپاره کوی۔ او پدے کښې درے هلاکتونه جمع دی یو خو ئے بچے مړ کړو (ظلم ئے وکړو) الله به ترے تپوس کوی۔ دویم شرك ئے وکړو چه سبب د اُور دے۔ دریم تاوان ئے وکړو چه بچے ئے ضائع شو او هیڅ فائده ونشوه۔

وَلِيَلۡبِسُوۡا عَلَيۡهِمۡ دِيۡنَهُمۡ : ۱ – د دین نه مراد دین ابراهیمی دے او د ګډوډ کولو صورت دا وو چه دا دلیل به ئے ورکولو چه ولے ابراهیم عليه السلام کنړے اسماعیل عليه السلام د الله دپاره نهٔ ذبح کولو؟

نو دغه شان مونږ له هم پکار دی چه ذبح وکړو۔ نو دا څومره غلطه خبره وه ځکه چه هغه ئے خو د الله په امر باندے ذبح کولو او الله بیا ذبح نهٔ کړو او تاسو ئے د باباګانو دپاره ذبح کوئ نو څومره فرق دے، دعوه د شرك کوی او دلیل ورله توحید پیش کوی، دا د مشرکانو او باطل پرستو طریقه ده۔ (کله به دلیل د الله د رسول او د صحابه کرامؓ د تابعدارئ ورکوی او دعوه به ئے د تقلید د یو خاص امام وی، یا به د اتباع او اقتداء الفاظ په تقلید چسپانوی)۔

۲ – یا د دین نه مراد د رسول الله ﷺ دین (دین اسلام) دے چه دوی په هغے فطری پیدا

شویدی خکه چه دا قانون دے چه څوك په یو بدعت او شرك روان شو نو هغه باندے به حق ګډوډ کیږی. لکه دا سورت به ئے روستو (فَتَفَرَّقَ بِكُمْ عَنْ سَبِيلِهِ) کښې ووائی. نو په باطل چه روان شوے نو د حق نه به خامخا محروم کیږے او حق به درته ګډوډ ښکاره کیږی.

وَلَوْ شَآءَ اللهُ: یعنی الله وائی چه زهٔ دوی ددے شرکونو نه منع کولے شم لیکن نهٔ ئے منع کوم دپاره د امتحان په دوی باندے، نو پدے وجه ته د دوی په هلاکت او بربادئ باندے هیڅ غم مهٔ کوه او دوی په خپل حال پریده، الله به ورسره ګوری.

| وَقَالُوْا هٰذِهٖٓ اَنْعَامٌ وَّحَرْثٌ حِجْرٌ ق صلے لَّا يَطْعَمُهَآ اِلَّا مَنْ |
|---|
| او وائی دوی دا چارپیان دی او فصلونه دی بند دی، نهٔ به خوری دے لره مګر هغه څوك |
| نَّشَآءُ بِزَعْمِهِمْ وَاَنْعَامٌ حُرِّمَتْ ظُهُوْرُهَا |
| چه غواړو مونږ په ګمان د دوی او نور چارپیان دی چه حرام شویدی شاګانے د هغے |
| وَاَنْعَامٌ لَّا يَذْكُرُوْنَ اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهَا افْتِرَآءً عَلَيْهِ ط |
| او نور چارپیان دی چه نهٔ یادوی نوم د الله په هغے باندے، دروغ جوړول دی په الله |
| سَيَجْزِيْهِمْ بِمَا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ﴿۱۳۸﴾ |
| زر دے چه سزا به ورکړی دوی ته په سبب د هغے چه دوی څه دروغ جوړوی. |

**تفسیر**: اُوس د چارپیانو متعلق تفصیل ذکر کوی. او دا تحریمات د غیر الله دی او درے قسمه ئے ذکر کړیدی.

د عربو مشرکانو عادت وو چه هغوی به ډیر احکام خپله وضع کول او هغه به ئے الله طرف ته منسوب کول، خاصکر د خپلو بتانو په باره کښې به ئے ډیر شرکی عقائد او اعمال خپل مینځ کښې رائج کول او هغه به ئے الله طرف ته منسوب کول.

نو پدے آیتِ کریمه کښې د مشرکانو هغه بعض عقائد او اعمال بیان شویدی. کله به ئے داسے کول چه د بعض حیواناتو او د زرعی پیداوار په باره کښې به ئے په خپل ګمان ونیل چه دا صرف زمونږ د بتانو دپاره دی، د بل چا دپاره ددے خوراك ممنوع دے. دا به هغه خلق خوری چه کوم مونږ اُوغواړو او د دوی مقصد به دا وو چه دا به صرف د بتانو

خدمتګار او منجوران خوري۔ او کله به ئې څه حیوانات د خپلو بتانو په نوم پرېخودل او وئیل به ئې چه په دوی باندې سورلی کول ممنوع دی۔ لکه سائبه او حام شو چه هغه مخکښې په سورة المائده آیت (۱۰۳) کښې ذکر شویدی۔

او کله به ئې څه حیوانات د بتانو په نوم ذبح کول او د الله نوم به ئې نهٔ اخستو او په الله باندې به ئې دروغ جوړول او وئیل به ئې چه همدا د الله شریعت دے۔ الله د دوی په اعمالو انکار اُوکړو وے فرمایل چه هغه به دوی ته د دوی د دروغو جوړولو بدله زردے چه ورکړی۔

حِجۡرٌ : یعنی بند او ممنوع دی۔ دا لفظ مفرد او جمع او مؤنث او مذکر تولو دپاره یو شان استعمالیږی۔

مَنۡ نَّشَآءُ : ددے نه مراد سړی او منجوران دی لکه روستو آیت کښې هم راځی۔

لَّا یَذۡکُرُوۡنَ اسۡمَ اللّٰهِ عَلَیۡهَا : یعنی په وخت د ذبح کښې د الله نوم پرے نهٔ یادوی۔ یا دا چه حج به ئې په هغې نهٔ کولو۔

او دا به هغه ځاروی وو چه د بابا او معبود دپاره به ئې نذر کړی وو چه که زهٔ چرته د بیماریٔ نه روغ شوم نو دا اُوښ به د فلانی بابا په نوم ذبح کوم، نو بیا به ئې پرے د الله نوم نهٔ اخستو۔ بلکه (بِسۡمِ اللَّاتِ وَالۡعُزّٰی) به ئې وئیل۔

افۡتِرَآءً عَلَیۡهِ : اَیۡ یَفۡتَرُوۡنَ اِفۡتِرَاءً عَلَیۡهِ۔ دروغ جوړوی په الله باندے په دروغ جوړولو سره۔ یعنی الله تعالیٰ ته به ئې ددے بد عمل نسبت کولو چه هغه مونږ ته ددے حکم کړیدے۔

| |
|---|
| وَقَالُوۡا مَا فِیۡ بُطُوۡنِ هٰذِهِ الۡاَنۡعَامِ خَالِصَةٌ |
| او وائی دوی هغه څه چه په خیټو ددے چارپیانو کښې دی (بچی او اولاد) یوائې دی |
| لِّذُکُوۡرِنَا وَمُحَرَّمٌ عَلٰۤی اَزۡوَاجِنَا ۚ وَاِنۡ یَّکُنۡ |
| د نارینو زمونږ دپاره او حرام کړے شویدی په ښځو زمونږ او که وو به دا (بچے) |
| مَّیۡتَةً فَهُمۡ فِیۡهِ شُرَکَآءُ ؕ سَیَجۡزِیۡهِمۡ |
| مړ پیدا شوے نو دوی به په هغې کښې شریك وو، زردے چه بدله به ورکړی دوی ته |
| وَصۡفَهُمۡ ؕ اِنَّهٗ حَکِیۡمٌ عَلِیۡمٌ ﴿۱۳۹﴾ |
| د غلط بیان د دوی یقیناً الله حکمتونو والا پوهه دے۔ |

**تفسیر** : دا د دوی بله بیوقوفی بیانوی چه د ځان نه به ئے پابندیانی لګولے او دا به ئے وئیل چه ددے څاروو (مثلاً د بحیرے) که بچے پیدا شو او ژوندے وو نو دا به صرف زمونږ نارینه خوری او زنانه به ئے نهٔ خوری، ځکه چه هغوی ته پدے سره ضرر رسی، او که هغه به مردار پیدا شو نو بیا به د زنانو او سړو تولو دپاره حلال وو۔

نو پدے کښې دوه ناروا جمع وو، یو به ئے د ځان نه حرامول او حلالول کول، او بل به ئے مردارے په شریکه خوړلے۔ او وضعی قوانینو کښې اکثر دغه شان ګرانوالے وی۔

زمونږ په امت کښې هم ډیرو خلکو دغه شان پابندیانی لګولی دی، چا غسلونه، چا حلواګانے، چا غوړی، چا ماستهٔ، او چا جامے او چا په یو خاص وخت کښې سفرونه په ځان بند کړیدی۔ لکه بعض زنانه وائی چه د جُمعے په ورځ غسل نهٔ ووځی، څوك وائی چه شنے جامے مهٔ اچوئ، پدے کښې ضرر دے۔ څوك وائی، دا ونه مه شو کوئ بابا ترے لاندے ناسته کړیده۔ څوك وائی : دا ځای مه جارو کوئ مسافر مری، څوك وائی: چرګه چه اذان وکړی حلاله ئے کړئ۔ څوك خپلے لونړه پیرانو ته ورکوی وغیره دا تول شرك او خرافات دی۔

سَيَجۡزِيهِمۡ وَصۡفَهُمۡ : وصف بیان ته وائی یعنی الله به ددے غلط بیان سزا ورکړی چه دوی حلال ته حرام او حرام ته حلال ووئیل او د شرع مقابله او مخالفت ئے وکړو۔ (سعدیؒ)

| قَدۡ خَسِرَ الَّذِينَ قَتَلُوٓاْ أَوۡلَٰدَهُمۡ سَفَهَۢا بِغَيۡرِ عِلۡمٖ |
|---|
| یقیناً تاوانیان دی هغه کسان چه وژلی ئے دی اولاد خپل په کم عقلتیا بغیر د علم نه |
| وَحَرَّمُواْ مَا رَزَقَهُمُ ٱللَّهُ ٱفۡتِرَآءً عَلَى ٱللَّهِۚ |
| او حرام کړی ئے دی هغه څه چه ورکړیدی دوی ته الله تعالیٰ، دروغ جوړول دی په الله، |
| قَدۡ ضَلُّواْ وَمَا كَانُواْ مُهۡتَدِينَ ﴿١٤٠﴾ |
| یقیناً ګمراه شو دوی او نهٔ دی دوی هدایت موندونکی۔ |

**تفسیر** : د عربو مشرکانو د رزق د تنګئ په یره سره ځامن او د شرم او پیغور په یره سره لونړهٔ قتل کړل او الله تعالیٰ چه د کومو حیواناتو غوښه خوړل د هغوی دپاره حلال کړی وو نو دوی د خپل خود ساخته شریعت په ذریعه هغه په ځانونو حرام کړل او پدے طریقه ددنیا او د آخرت د هر تاوان مستحق شو۔ په دنیا کښې ئے اولاد ختم شو او د الله د نعمتونو نه

محروم پاتے شو او په آخرت کښې په الله باندے د دروغو جوړولو په وجه د دردناك عذاب مستحق شو۔

قَدْ خَسِرَ : صاحب المنارؒ وائي : د اولادو قتل ته ئے ځکه خسران ووئیلو چه دا مستلزم دے تاوان د هغه فوائدو لره چه د اولادو نه د هغے امید ساتلے کیږی لکه عزت، نصرت (مدد)، بر (احسان) صله رحمي، فخر، زینت، سرور (خوشحالي) او غبطه (پسخیدل د خلکو) لکه څنګه چه پدے کښې د قاتل پلار تاوان دے چه د هغه نه د پلاروالی عاطفه او شفقت ختم شو او ددے په وجه ئے په زړه کښې قسوت او سختي او بې رحمي په شانِ بد اخلاق پیدا شو چه په هغے سره د دنیا ژوند تنګیږی او په آخرت کښې پرے عذاب مرتب کیږی۔ ددے وجه نه دے ته ئے سفاهت (بیوقوفي) او جهالت ووئیل چه هغه د فائدو او ضرورنو نه ناخبری ده۔ (المنار)

سَفَهًا : ددے مصداق نذر د غیر الله دے۔ دے ته ئے سفاهت ځکه وئیلے دے چه پدے کښې نهٔ د دنیا څه فائده شته او نهٔ د آخرت اجر، نو دا لویه بیوقوفي ده۔ او د شرك ضرر هم دغه دے۔ او دارنګه د قتل د اولاد سره هم لګی لکه د منار په عبارت کښې ذکر شو۔

بِغَيْرِ عِلْمٍ : یعني د نفع او د ضرر او د حسن او قبح نه ناخبره دی۔ (المنار)

قَدْ ضَلُّوْا : ګمراه ځکه شو چه بې دلیله او بې علمه کارئے وکړو او په هدایت ځکه نشو چه په الله ئے افتراء کړیده۔

وَهُوَ الَّذِيْٓ اَنْشَاَ جَنّٰتٍ مَّعْرُوْشٰتٍ وَّغَيْرَ مَعْرُوْشٰتٍ وَّالنَّخْلَ

او الله هغه ذات دے چه پیدا کړی ئے دی باغونه چتونو والا او بے چتونو او کجورے

وَالزَّرْعَ مُخْتَلِفًا اُكُلُهٗ وَالزَّيْتُوْنَ وَالرُّمَّانَ مُتَشَابِهًا

او فصلونه چه مختلف دی میوے د هغے او ښونه او انار یو بل سره مشابه دی (په شکل کښې)

وَّغَيْرَ مُتَشَابِهٍ ۭ كُلُوْا مِنْ ثَمَرِهٖٓ اِذَآ اَثْمَرَ وَاٰتُوْا حَقَّهٗ

او نهٔ دی مشابه (په خوند کښې) خورئ د میوو د الله نه کله چه میوے ورکړی او ورکړئ حق د الله

يَوْمَ حَصَادِهٖ ڮ وَلَا تُسْرِفُوْا ۭ اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الْمُسْرِفِيْنَ ؁١٤١

په ورځ د راشوکولو د هغے او اسراف مهٔ کوئ یقیناً الله نهٔ خوښوی اسراف (شرك) کونکی۔

**تفسیر** : دا عقلي دلیل دے دپاره د رد د شرك فعلي او دا شرك اکثر په فصلونو او خاروو کښې وي، نو د هغے متعلق دلیلونه هم راوړي او دا آیت تمهید هم دے د روستو راتلونکو مختلفو حیواناتو د غوښے د حلالوالي او حراموالي متعلق احکامو دپاره کوم چه روستو بیانیږي، او په آیت کښې د الله تعالیٰ معرفت هم بیان شویدے.

خلاصه : الله هغه ذات دے چه هغه په څپرونو او په زمکو باندے د خوریدونکي ونو او بوټو باغونه، د کجورو ونے، مختلف قسم فصلونه، د زیتون او د انار ونے پیدا کړیدي. زمکه یوه وي، خاوره یوه وي، لیکن د فصلونو د میوو رنګونه، مزه، بوټي، فائده او حُجم کښې د یو بل نه مختلف وي. دغه شان د زیتون او انار ونے پاڼړے په رنګ او شکل کښې یوشان وي لیکن په مزهٔ کښې د یو بل نه مختلف وي. دا ټول د الله د قدرت کاریګري ده. د هغه ذات باري تعالیٰ نه سوئ څوك پدے خبرو قادر دے ؟!.

اَنْشَأَ : اِیْجَادُ الْاَحْیَاءِ وَتَرْبِیَتُهَا . انشاء د ژوندو پیدا کول او د هغے تربیت کولو ته وائي. (المنار)

مَّعْرُوْشٰتٍ : یعني څپرونو او چهتونو والا وي چه په زمکه غوړیدلي وي او خلك هغے ته چهت ورکوي لکه د انګورو بعض قسمونه وغیره یا کدو، او خټکے وغیره.

۲- یا معروشات (اَیْ مَزْرُوْعَاتٍ) هغه چه انسانانو کرلي وي، او هغوي پورته کړي وي.

غیر معروشات : چه په زمکه نهٔ وي غوړیدلي بلکه پنډئ لري لکه کجوره او فصلونه او عامے ونے. یا (غَیْرَ مَزْرُوْعَاتٍ) هغه چه الله راخیژولي وي په صحراوونو او غرونو کښې په غیر د کرونده د خلکو. (دواړه قولونه د ابن عباسؓ دي -قرطبي والبغوي)

۳- یا معروشات معنیٰ ده (مَرْفُوْعَاتٍ ) یعني هغه چه د زمکے نه اُوچت وي او غیر معروشات (غَیْرَ مَرْفُوْعَاتٍ) یعني هغه چه په زمکه پراته وي. لکه بادرنګ، خټکے او هندوانه اوخربوزه وغیره.

وَّالنَّخْلَ : دا په غیر معروشات کښې داخله وه لیکن د زیاتو فوائدو د وجه نه ئے جدا ذکر کړه. چه دا د غذا، او فواکهو او شربتونو او هرڅه دپاره استعمالولے شي او ددے هډوکي د حیواناتو خوراك دے، او ددے پټونه د چهتونو او بالختونو او بسترو ډکولو دپاره دي.

مُخْتَلِفًا اُکُلُهٗ : ضمیر راجع دے صرف زرع ته یا راجع دے نخل او زرع ته په تاویل د کُلُّ وَاحِدٍ سره.

کُلُوْا مِنْ ثَمَرِهٖٓ : یعني دا خورئ او حرام ئے مهٔ ګڼرئ. بعضو ونیلي دي چه د مال نه د

الله د حق ویستلو نه مخکښې دهغې نه د خوراك اباحت بیانول مقصود دي۔

مخکښې دا خبرې په طریقه د دلیل بیان شوې چه الله ویپیژنئ او دلته ئې د رد د شرك د پاره بیانوي نو پدې وجه تکرار نشته۔

وَآتُوا حَقَّهُ : د (حقه) ضمیر الله تعالیٰ ته راجع دې، یا ثمر ته، اول زیات ظاهر دې۔

ددې نه نفلي صدقه مراد ده یعنی دمیوې او فصل د پریکولو په ورځ د هغې نه غریبانو او د هغه خلقو حق اُوباسئ چه هلته موجود وي۔ د عطاءؒ په نیز ددې نه مراد زکاة نهٔ دې، بلکه د پریکولو په وخت چه کوم خلق راشي نو هغوی ته څه ورکول دي۔ ځکه چه دا سورت مکي دې او زکاة په مدینه کښې فرض شوې وو۔

د حسن بصريؒ هم تقریباً همدا قول دې۔ او د ابن عباسؓ، انس بن مالكؓ، طاؤسؒ، قتادةؒ او ابن جریجؒ وغیره قول دې چه ددې نه مراد زکاة دې۔

دریم قول دا دې چه د اسلام په ابتداء کښې د فصل د پریکولو په وخت د حال مناسب حصه غریبانو ته ورکول واجب وو۔ دې نه روستو الله تعالیٰ په عُشر (یعنی لسمه حصه که زمکه باران سره خړوبه کیږي) یا نیم عشر (یعنی شلمه حصه که زمکه د کوهي یا نهر وغیره په اُوبو سره خړوبه کیږي) واجبولو سره دغه حکم منسوخ کړو۔ ابن جریرؒ د ابن عباسؓ او ابراهیم نخعيؒ همدا قول نقل کړیدې او دیته ئې ترجیح ورکړیده۔

## د اسراف مصداقات

وَلَا تُسْرِفُوْا : اسراف په لغت کښې مُجَاوَزَةُ الْحَد (د حد نه تیروتو) ته وائي لکه دا معنیٰ د اعتداء هم ده۔ (المنار) او دا په ډیرو طریقو سره کیدې شي۔

١ - بالشرك۔ لوی اسراف شرك دې، لکه آیت کښې دي ﴿وَكَذٰلِكَ نَجْزِيْ مَنْ اَسْرَفَ وَلَمْ يُؤْمِنْ بِاٰيٰتِ رَبِّهٖ﴾ (طه : ١٢٧) یعنی که د غیر الله په نوم دا ورکړي نو دا به شرك وي۔

٢ - بِتَجَاوُزِ الْحَلَالِ اِلَى الْحَرَامِ۔ (السعدي والمنار)

اسراف مهٔ کوئ چه د حلالو نه حرامو طرفته تجاوز وکړئ۔

٣ - [لَا تُنْفِقُوْا فِي الْمَعْصِيَةِ] یعنی د الله په معصیت کښې ئې مه خرچ کوئ۔ (الزهريؒ- نقله البغوي)

٤ - یا دا چه په صدقه ورکولو کښې داسې فضول خرچي وکړي چه انسان د هغې نه روستو فقیر شي، یعنی ټول مال ولګوي۔ (سُديؒ -بغويؒ والقاسميؒ)

٥ - لَا تَتَجَاوَزُوا الْحَدَّ فِي الْبُخْلِ وَالْاِمْسَاكِ حَتّٰى تَمْنَعُوا الْوَاجِبَ مِنَ الصَّدَقَةِ] (سعید بن

المسیبؒ-بغوی وابن کثیرؒ په بخل او لاس بندولو کښې د حد نه تجاوز مه کوئ چه بیا فرض زکاة او ضروری صدقه هم منع کړئ.
۶– نفس اولاد ضائع کول هم اسراف دے.
۷– عطاءؒ او ابن جریرؒ وائی چه دا نهی عام ده شاملیږی اسراف ته په خوراك کښې او یا په صدقه کولو کښې. (المنار)
۷– حافظ ابن کثیرؒ او صاحب المنارؒ وائی چه د آیت د سیاق نه ظاهر دا ده چه دا نهی د اسراف فی الاکل نه ده یعنی په خوراك کښې د اسراف او فضول خرچی نه ځان وساتئ ځکه چه پدے سره جِس او عقل دواړو ته نقصان رسیږی لکه چه الله تعالیٰ په سورة الاعراف آیت (۳۱) کښې فرمایلی دی:
﴿ كُلُوْا وَاشْرَبُوْا وَلَا تُسْرِفُوْا ﴾ چه ((خورئ او څکئ او فضول خرچی مه کوئ))
او امام بخاری رحمه الله په کتاب اللباس کښې تعلیقاً روایت کړیدے چه نبی کریم ﷺ وفرمایل: ((خورئ او څکئ او اغوندئ او صدقه ورکوئ، بغیر د فضول خرچی او بغیر د کبر او غرور نه)). حافظ وائی: د آیت الفاظ ټولو ته شاملیږی. (ابن کثیر ۳/ ۳۵۰)

| وَمِنَ الْاَنْعَامِ حَمُوْلَةً وَّفَرْشًا ؕ كُلُوْا مِمَّا |
| --- |
| او (پیدا کړی ئے دی) د چارپیانو نه بار وړونکی او چیت قد والا، خورئ د هغے نه |
| رَزَقَكُمُ اللّٰهُ وَلَا تَتَّبِعُوْا خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ ؕ |
| چه درکړی تاسو ته الله تعالیٰ او مه روانیږئ د قدمونو د شیطان پسے |
| اِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ﴿۱۴۲﴾ |
| یقیناً هغه تاسو له دشمن ښکاره دے. |

**تفسیر**: دا د (اَنْشَاَ) د لاندے دے، او پدے کښې هم رد د شرك فعلی دے، او ددے تعلق د مخکنی آیت سره دے، پدے کښې الله تعالیٰ د حیواناتو د حلت او حرمت په باره کښې د مشرکانو خود ساخته احکام رد کړیدی.
حَمُوْلَةً وَّفَرْشًا: حیوانات څو قسمه دی، د ابن عباس رضی الله عنه په نیز د ((حَمُوْلَة)) نه مراد هغه لوی څاروی دی چه بارونه وړی، او د ((فرش)) نه مراد واړهٔ واړهٔ څاروی دی چه د هغے

غوښه خوړلې شي، او بار نشي وړې لکه ګډې بزې وغيره. دې ته فرش ځکه وائي
١-لِاِفْتِرَاشِهَا عِنْدَ الذَّبْحِ. چه دا په وخت د ذبح کښې په زمکه څملولې شي. ٢-لِاِفْتِرَاشِ
جُلُوْدِهَا. د هغې څرمنې خلك په زمکه اچوي.
٣-لِقُرْبِهَا مِنَ الْفِرَاشِ. دا زمکې ته نژدې (يعنې ټيټ) وي.
كُلُوْا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللّٰهُ : يعنې الله تاسو ته قِسماقسم ميوې، زرعي پيداوار او څاروی د
رزق په توګه درکړيدی، دا تاسو د خپلو جسمونو او روحونو د حفاظت دپاره خورئ، او
ګورئ چه د هغې د حلت او حرمت په باره کښې د شيطان د اوامرو او احکامو اتباع ونکړئ
ځکه چه هغه ستاسو دشمن دې. نو د غير الله په نوم هغه مه نذر کوئ.

| ثَمٰنِيَةَ اَزْوَاجٍ ۚ مِنَ الضَّاْنِ اثْنَيْنِ وَمِنَ الْمَعْزِ اثْنَيْنِ ۗ قُلْ ءٰٓالذَّكَرَيْنِ |
|---|
| (پيدا کړي ئې دي) اته جوړې، د ګډانو نه دوه او د بزو (چيلو) نه دوه ته ووايه آيا دوه نارينه |
| حَرَّمَ اَمِ الْاُنْثَيَيْنِ اَمَّا اشْتَمَلَتْ |
| (ګډ او چيلې) حرام کړيدي الله که دوه مادې (ګډه او بيزه)، که هغه شے چه راګير کړيدی |
| عَلَيْهِ اَرْحَامُ الْاُنْثَيَيْنِ ۗ نَبِّـُٔوْنِيْ بِعِلْمٍ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿١٤٣﴾ |
| هغې له رحمونو (بچه دانو) د ميندو، خبر راکړئ ما ته په دليل سره که يئ تاسو رښتينې. |

**تفسير**: ثَمٰنِيَةَ : دا هم د (اَنْشَأَ) مفعول دې.
ددې تعلق هم د مخکښنې آيت سره دې يعنې الله تعالیٰ د انسانانو د خوراك دپاره اته
قسمه چارپيان پيدا کړيدي، د هغې نه څلور دوه مذکر او دوه مؤنث ګډان، او دوه مذکر او
دوه مؤنث چيلئ دي، او ددې ټولو خوراك ئې حلال کړځولې دې، ليکن مشرکانو د ځان نه د
جوړ شوي شريعت په ذريعه ددينه بعض اقسام (چه هغه مخکښې ذکر شويدي او کوم له
چه قرآن بحيره، سائبه او وصيله وغيره نوم ونه ورکړيدی) په خپل ځان حرام کړي وو، الله
تعالیٰ په دوي باندې د رد کولو دپاره وفرمايل چه ما ته اوښايئ چه ددې ګډاتو او چيلو نه
الله دواړه مذکر حرام کړيدي او که دواړه مؤنث؟، يا هغه بچي چه د دواړو مؤنثو په خيټو
کښې پرورش موندہ کوي؟. يوه داسې خبره خو اوښايئ چه د هغې بنياد په علم او يقين
باندې وي ؟!.
يا مطلب دا دې چه ددې د حرمت سبب به يا ذکورت وي يا به انوثت وي او يا به اشتمال

(راګیـرول) د رَحِـم وی او حال دا چه دا یو هم وجه د حرمت نهٔ کرځی ځکه چه دا خو په ټولو حیـوانـاتـو کښې جاری کیږی، او د هغې نه ډیر تاسو نهٔ حراموئ. نو څلورمه وجه به کیـدے شی چـه دا وی چـه تـاسـو تـه بـه د الله د طرفـنـه د رسول په واسطـه خبر راغلے وی چـه دا حیـوانـات حـرام دی او هغـه هم نشته نو ځکه ترے تپوس کوی چه ﴿نَبِّـُٔونِی بِعِلۡمٍ﴾ یـعنی په عـلـم او دلـیـل سره خبره پیش کړئ چه یو رسول تاسو ته خبر درکړے وی چه دا حرام دی. نو هـر کـلـه چه دا یو سبب هم نشته نو بیا تاسو دا په څه وجه په ځانونو حراموئ؟. (د علم نه مراد هغه حکم دے چه معلوم وی په وحی سره).

اَزۡوَاجٍ : د ازواج نـه مـراد افـراد دی. او عـرب هـر هـغـه شے چه بل ته محتاج وی هغے ته زوج وائی لکه مذکر تـه هم زوج او مؤنث ته هم زوج وائی. (قرطبیؒ)

الۡاُنۡثَیَیۡنِ : یعنی د ګډو او بزو.

| |
|---|
| وَمِنَ الۡاِبِلِ اثۡنَیۡنِ وَمِنَ الۡبَقَرِ اثۡنَیۡنِ ؕ قُلۡ ءٰٓالذَّکَرَیۡنِ حَرَّمَ |
| او د اُوښانو نه دوه او د غوایانو نه دوه تهٔ ووایه آیا دوه نارینه (اُوښ او غوئے) حرام کړیدی الله |
| اَمِ الۡاُنۡثَیَیۡنِ اَمَّا اشۡتَمَلَتۡ عَلَیۡهِ اَرۡحَامُ الۡاُنۡثَیَیۡنِ ؕ اَمۡ کُنۡتُمۡ |
| که دوه مادے (اُوښه او غوا) یا هغه شے چه راګیر کړیدی هغې لره رحمونو د مینڈو آیا وئ تاسو |
| شُهَدَآءَ اِذۡ وَصّٰکُمُ اللّٰهُ بِهٰذَا ۚ فَمَنۡ اَظۡلَمُ |
| حاضر کله چه حکم کولو تاسو ته الله تعالیٰ پدے سره نو څوک دے لوئی ظالم |
| مِمَّنِ افۡتَرٰی عَلَی اللّٰهِ کَذِبًا لِّیُضِلَّ النَّاسَ |
| د هغه چا نه چه جوړوی په الله تعالیٰ باندے دروغ دے دپاره چه ګمراه کړی خلق |
| بِغَیۡرِ عِلۡمٍ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا یَهۡدِی الۡقَوۡمَ الظّٰلِمِیۡنَ ﴿۱۴۴﴾ |
| بے د علم نه، یقیناً الله تعالیٰ هدایت نهٔ ورکوی قوم ظالمانو (عنادیانو) ته. |

**تفسیر** : دغـه شان الله تعالیٰ دوه اُوښان مذکر او مؤنث او دوه غواګانے پیدا کړیدی (دا د مـخـکښې سره مـجـمـوعـه اته جوړیږی) او ددے ټولو خوراک ئے حلال ګرځولے دے، لیکن مشرکانو ددے نه د بعض ښاروو خوراک په خپل ځان حرام کړے وو.

الله تـعـالیٰ دوباره د هغوی ددے بد فعل رد وکړو او د هغوی دروغ ئے ښکاره کړل. او ددے

رد او انکار زیات تاکید دپاره ئے وفرمایل چه کله الله تاسو ته حکم درکړے وو چه تاسو د خپل ځان نه د جوړ شوی شریعت په ذریعه بعض حلال او بعض حرام ګرځوئ نو آیا تاسو په هغه وخت کښې موجود وئ؟ مطلب دا دے چه دا ټول هر څه د الله په باره کښې دروغ جوړول دی۔ الله خو اته واړه (۸) قسمونه د تماموانسانانو دپاره حلال کړی وو او تاسو د خپل منګړت شریعت په ذریعه کله یو څه حرام کړی او کله بل څه۔

أَمْ كُنتُمْ شُهَدَآءَ : مخکښې ئے د دوی نه مطالبه وکړه چه د یو رسول په واسطه د الله نه کوم دلیل درسره شته؟ نو اُوس وائی چه آیا تاسو ته الله تعالیٰ رابنکاره شویدے چه دا خبر ئے خپله درکړے وی چه آؤ، ما دا څیزونه حرام کړی دی۔ څکه چه د علم هم دغه دوه لارے دی۔ نهٔ درته الله وئیلی دی او نهٔ درته رسول الله ﷺ وئیلی دی۔ نو معلومه شوه چه تاسو دروغ جوړونکی یئ نو تاسو ډیر لوی ظالمان یئ چه د خپلو پلارانو د تقلید په وجه دا حرام ګنړئ۔ (المنار)

فَمَنْ أَظْلَمُ : دا زورنه ده هغه مشرك ته چه خپله هم ګمراه وی، او نور خلك هم شرك ته رابلی او اول پدے کښې عمرو بن لحی الخزاعی داخل دے چه هغه عربو ته اول دا شرکونه راوړی وو۔ (ابن کثیرؒ) نو دهٔ دوه جرمونه وکړل یو ئے په الله باندے دروغ جوړ کړل او بل ئے خلك ګمراه کړل۔

خطیب شربینیؒ او خازنؒ لیکی چه پدے وعید کښې هر هغه څوك داخل دے چه د الله په دین کښې هغه شے داخل ګنړی کوم چه د هغے نه نهٔ وی آه۔ یعنی بدعات پیدا کوی، او د ځان نه بی دلیله د حلالو او حرامو فتوے ورکوی، کله وائی دا شے حرام دے او دا حرام دے۔ او هغه الله او رسول نهٔ وی حرام کړے۔ (الخازن۲/۱٦٦)

افْتَرَىٰ : فِي التَّحْلِيلِ وَالتَّحْرِيمِ۔ په حلال او حرام جوړولو کښې دروغ جوړوی۔

لِيُضِلَّ النَّاسَ بِغَيْرِ عِلْمٍ : یعنی نهٔ د ګمراه کونکی علم شته او نهٔ د ګمراه کړے شوو خلکو۔

بغیر علم کښې (علم) نکره ده یعنی نهٔ نقلی دلیل شته او نهٔ عقلی، او نهٔ په مصالحو او مفاسدو پوهیږی یعنی هیڅ قِسم علم ورسره نشته، او نفی د هر قسم علم ئے وکړه پدے کښې د دوی ډیر لوی جهالت ته اشاره ده، او د مفتری ډیره لویه بد نیتیٔ ته، چه ددهٔ سره د علم هیڅ شے باقی نهٔ دے او نهٔ ئے د هدایت او د خیر د څه شی اراده شته۔ او ددهٔ مقلدین بی عقله او بی هدایته ددهٔ روند تقلید کوی۔ (المنار)

اِنَّ اللّٰهَ لَا یَهْدِی الْقَوْمَ الظّٰلِمِیْنَ : یعنی حق او عدل ته ئې هدایت نهٔ کوی، نهٔ په وحی سره او نهٔ په علم سره ځکه چه څو پورې چه دوی په ظلم اخته وی نو ظلم به ئې د عقل د استعمال نه منع کوی، نو حق ته به نهٔ راځی. نو کله چه دا حال د ظالمانو شو نو د اَظلم به څه حال وی چه نور خلک گمراه کوی. (المنار)

| قُلْ لَّآ اَجِدُ فِیْ مَآ اُوْحِیَ اِلَیَّ مُحَرَّمًا |
|---|
| ته ووایه ! نهٔ موندهٔ کوم په هغه وحی کښې چه شویده ما ته حرام کړې شوې (د هغې نه |
| عَلٰی طَاعِمٍ یَّطْعَمُهٗٓ اِلَّآ اَنْ یَّکُوْنَ مَیْتَةً اَوْ دَمًا |
| چه تاسو ئې حرام گنړئ) په یو خوړونکی چه خوری هغې لره مگر دا چه وی مرداره یا وینه |
| مَّسْفُوْحًا اَوْ لَحْمَ خِنْزِیْرٍ فَاِنَّهٗ رِجْسٌ اَوْ فِسْقًا اُهِلَّ |
| بهیدلې شوې یا غوښه د خنزیر نو یقیناً دا پلیت دی یا وی (یو شے) نافرمانی چه آواز شوې وی |
| لِغَیْرِ اللّٰهِ بِهٖ ۚ فَمَنِ اضْطُرَّ غَیْرَ بَاغٍ |
| په هغې سره د نذر د غیر الله دپاره پس څوک چه مجبوره شو چه نهٔ دې طلب کونکې د خوند |
| وَّلَا عَادٍ فَاِنَّ رَبَّكَ غَفُوْرٌ رَّحِیْمٌ ﴿۱۴۵﴾ |
| او نهٔ دې زیاتې کونکې د حد نه نو یقیناً رب ستا بخونکې رحم کونکې دې. |

**تفسیر** : أوس ورته وائی چه دغه څیزونه چه تاسو ئې حرام گنړئ دغه حرام نهٔ دی بلکه حرام هغه دی چه الله حرام کړی وی او هغه تاسو حلال گنړئ لکه مرداره، خنزیر، وینه او د غیر الله په نوم نذر، نو دا څو مره لوی ظلم دې او د الله په خلاف او ضد چلیدل دی.

ربط :

۱ – حرام او حلال به په وحی سره معلومولې شی، نهٔ په خپله رایه سره. (بغوی)

۲ – د حیواناتو د تحلیل او تحریم په باره کښې د عربو مشرکانو د ځان نه جوړ شوی شریعت او د هغوی د افتراء اتو بیانولو نه روستو الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ ته حکم وکړو چه هغه څیزونه بیان کړی چه هغه الله د بندگانو دپاره حرام کړیدی.

مُحَرَّمًا : اَیْ مِمَّا تُحَرِّمُوْنَ ۔ یعنی په وحی کښې ستاسو دغه حرام کړده څیزونه حرام نهٔ دی. (ابن کثیر)

دَمًا مَّسْفُوْحًا : هغه وينه چه د حيوان نه په حالت د ژوند كښې وبهيږي يا په وخت د ذبح كښې نو دا وينه حرامه او نجس ده. (خازن)

فَإِنَّهُ رِجْسٌ : (اِنَّهٗ) ضمير صرف لحم الخنزير ته راجع دے لکه دا قول بعض علماؤ غور كړيدے (التفسير الثمين والبحر المحيط) يا درے واړو ته راجع دے په تاويل د مذكور سره (التحرير والسعدي والمنان) او همدا ظاهر دے ان شاء الله تعالىٰ.

اَوْ فِسْقًا : اَیْ اَوْ یَکُوْنُ الْمَاْکُوْلُ ذَا فِسْقٍ. يا وى دغه خوړلے شوے شے فسق والا. يعنى د الله نافرمانئ والا، او د فسق نه اعتقادى فسق مراد دے يعنى ددے نه مراد هغه ځاروے دے چه د بتانو په نومونو ذبح كړے شوے وى، او د غير الله په نوم اخستو سره ذبح كړے شوى وى. قرآن كريم د داسے ځاروى نه په فسق سره پدے وجه تعبير كړيدے، چه د فسق معنىٰ د قرآن كريم په اصطلاح كښې د اسلام نه خارجيدل دى، او د غير الله په نوم باندے ذبح كولو سره سړے د اسلام د دائرے نه خارجيږى.

فَمَنِ اضْطُرَّ : يعنى كه څوك په اضطرارى حالت كښې د ځان بچ كولو دپاره ددے څلورو محرّماتو نه د ضرورت په اندازه استعمال كړى نو الله تعالىٰ به هغه نهٔ رانيسى. يعنى دغه څلور حرام دى مګر هغه هم د اضطرار په وخت كښې جائز دى.

## سوال :

دلته نه معلومه شوه چه د الله په وحى كښې صرف همدغه څلور څيزونه حرام دى، او حال دا چه په دين كښې نور ډير څيزونه حرام ذكر شويدى؟ لکه زمرى، ګيدړان، شرمخان، سپى، كورنى خرهٔ، شراب، جوارى، هر نشائى ماده، حشرات، وزغ (ځيرمبنكئ)، ماران، لړمانان، او نوكونو والا حيوانات، پنجے والا مارغان، چندخان، تيغكه، كارغه، تپوس، هدهد، شاتو مچئ، ميږئ لکه دا په احاديثو كښې ذكر دى. نو پدے وجه پدے آيت باندے چه د كومو علماؤ ذهن نهٔ دے كولاؤ شوے نو هغوى وئيلى دى چه دغه څيزونه جائز دى لکه دا يو قول د امام مالك دے چه په فقه مالكى كښې ذكر دے، او حال دا چه عام امت دے ته حرام وائى.

امام شوكانىؒ وائى چه د ابن عباس، ابن عمر او عائشه رضوان الله عليهم اجمعين قول دے چه حرام صرف هغه څيزونه دى چه د هغے ذكر پدے آيت كښې راغلے دے. ليكن دا قول د اعتبار لائق نهٔ دے، ځكه چه پدے سره بغير د كوم دليل نه د قرآن كريم د هغه آيتونو اهمال او اسقاط لازميږى كوم چه ددے نه روستو نازل شويدى او د هغه احاديثو هم چه په

مدنی ژوند کښې راغلی دی۔ (فتح القدیر ۲/ ۴۹۰)
او د جابر بن عبد الله ﷜ دا قول چه د علم دریاب ابن عباس ﷜ ددې آیت د مخه کورنی خرۀ حلال ګڼرلی، لکه امام بخاریؒ روایت کړیدې، نو دا خبره د اعتبار لائق نۀ ده، ځکه چه هرکله د رسول الله ﷺ د حدیث نه حرمت ثابت شو نو د صحابیؓ په قول باندې عمل کول به صحیح نۀ وی، دا به د هغه اجتهاد وی۔
**جواب** : ۱- ځینو علماؤ دا جواب ورکړیدې چه دا آیت مکی دې او په ابتداء د اسلام کښې صرف دغه څلور ځیزونه حرام وو او ددې عموم نه روستو تخصیصات شویدی لکه په مدینه کښې سورة المائده نازله شوه، چه په هغې کښې مُنخنقه، مَوقوذه، مُتردیه او نَطیحه حرام شول چه د هغې تفصیل د هغه سورت په تفسیر کښې تیر شویدې۔ او د نبی کریم ﷺ په صحیح احادیثو سره دغه مخکښې ذکر شوی ځیزونو حرمت ثابت شو۔ پدې وجه ددې آیتِ کریمه د نازلیدو نه روستو (کوم چه مکی دې) د قرآن کریم یا د رسول الله ﷺ د سنت په ذریعه د کومو حیواناتو حرمت ثابت شوې هغه هم په اسلام کښې حرام دی۔ نو دا آیت عام مخصوص البعض شو۔
۲-**جواب** : بل جواب دا دې چه دلته پدې آیت کښې قصر قلب دې په نسبت سره د مشرکانو محرماتو ته۔ یعنی اے مشرکانو! تاسو چه څه شے حراموئ دغه زما په وحی کښې حرام نۀ دی بلکه تاسو چه کوم دغه ځیزونه حلال ګڼرئ هغه زما په دین کښې حرام دی نو د آیت نه نۀ ثابتیږی چه نور حرام نشته صرف څلور دی۔
**فائده** : او ابن الجوزیؒ لیکی د مجاهدؒ او طاووسؒ نه نقل کوی:
لَاأَجِدُ فِيمَا أُوحِيَ إِلَيَّ مُحَرَّمًا مِمَّا كُنْتُمْ تَسْتَحِلُّونَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ الا هذا (زاد المسیر)
یعنی تاسو چه به په جاهلیت کښې کوم ځیزونه حلال ګڼرل نو ما ته ددې نه سوئ نور حرام نۀ دی معلوم۔ نو دا ډیر بنه قید دې۔

| وَعَلَى الَّذِينَ هَادُوا حَرَّمْنَا كُلَّ ذِي ظُفُرٍ ج وَمِنَ الْبَقَرِ |
|---|
| او په هغه کسانو چه یهودیان دی حرام کړیدې مونږ هر یو نوک والا ځاروې او د غواګانو |
| وَالْغَنَمِ حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ شُحُومَهُمَا إِلَّا مَا حَمَلَتْ |
| او ګډو بزو نه حرام کړیدی مونږ په دوی باندې وازدې د هغوی مګر هغه چه پورته کړی وی |

ظُهُوْرُهُمَآ اَوِ الْحَوَايَآ اَوْ مَا اخْتَلَطَ بِعَظْمٍ ؕ ذٰلِكَ جَزَيْنٰهُمْ

شاګانو د هغې یا کولمے یا هغه چه یو ځای وی د اډوکښ سره، دا سزا ورکړه مونږ دوی ته

بِبَغْيِهِمْ زصلے وَاِنَّا لَصٰدِقُوْنَ ﴿۱۴۶﴾

په سبب د ظلم د دوی او یقیناً مونږ رشتینی یو۔

**تفسیر** : دا جواب د سوال دے چه تاسو وایئ د دغه څلورو څیزونو نه علاوه څیزونه د الله په وحی کښ حرام نهٔ دی نو بیا په تورات کښ الله تعالیٰ د اُوښانو غوښے او د غواګانو او ګډو بزو وازدے حرامے کړے نهٔ وے څه؟ د هغے جواب کوی چه دا حکم د هغوی پورے خاص وو، دغه څیزونه صرف په یهودیانو باندے حرام وو نهٔ په بل چا باندے، او دا د هغوی د ظلمونو د وجه نه، نو په هغے باندے به استدلال نشی کیدے، او د تخصیص دلیل تقدیم د معمول (عَلَى الَّذِيْنَ) دے په عامل (حَرَّمْنَا) باندے۔ (المنار)

ربط :

د مسلمانانو دپاره چه کوم څیزونه حرام شویدی د هغے بیانیدو نه روستو اُوس د هغه څیزونو بیان کیږی چه صرف په یهودیانو باندے حرام شوی وو۔

ذِىْ ظُفُرٍ : د ((نوك والا)) نه مراد (غَيْرُ مُنْفَرِجَةِ الْاَصَابِعِ) دی یعنی هر هغه حیوان دے چه د هغه ګوتے څیری (کولاوے) نهٔ وی۔ ددے تعریف مطابق پدے کښ هر هغه حیوان داخلیږی چه بندو پنجو والا وی، پدے وجه اُوښ، شترمرغ، بطخه، او هر هغه مارغه داخلیږی چه د هغه پنجے وی، ددے تمامو حیواناتو غوښه په یهودیانو باندے حرامه وه۔ د هغوی دپاره د هغه حیواناتو غوښه حلاله وه، چه د هغے ګوتے کولاوے وے لکه چرګه او مرغئ وغیره۔

او د ((مِنَ الْبَقَرِ وَالْغَنَمِ)) نه معلومیږی چه د هغوی دپاره د غوا او چیلئ غوښه په خاص توګه حلاله شوے وه، صرف د هغو وازدهٔ حرامه کړے شوے وه، سویٰ د هغه وازدے نه چه د هغوی شاګانو پورے انختی وی یا د هغوی د کولمو پورے پیوسته شوی وی، یا کومه چه د هډوکی سره پیوسته شوی وی لکه هغه وازدهٔ چه د لکئ، خپو، پښتئ، سر او سترګو سره پیوسته وی نو دا جائز وه، او دا ټول د هغوی د سرکشئ او د الله د احکامو نه د نافرمانئ په وجه شوی وو۔ او د الله د دوی سره دا سلوك ډیر عادلانه وو۔

إِلَّا مَا حَمَلَتْ : دا د (حَرَّمْنَا) نه استثناء ده۔
ظُهُورُهُمَا : د شا پورے او کولمو او هډوکو پورے انښتے وازدے جدا کول لړ گران وو پدے وجه ورله دا جائز شو۔
مـکر يهوديانو به پدے حکمونو کښې هم غلا کوله او وازدے به ئے ويلی کولے او بيا به ئے خرڅولے او پيسے به ئے خوړلے چا به ورته ووئيل دا خو حرامے دی، هغوی به وئيل چه مونږ خو وازدے نـهٔ دی خوړلی پيسے مو خوړلی دی۔ دغـه يهودی خويونـه زمونـږ ډيرو مسلمانانو حيله گرو ته هم رانقل شويدی۔
بخاریؒ او مسلمؒ د ابو هريره ﷜ نه روايت کړيدے چه رسول الله ﷺ وفرمايل : ((الله دِے په يهـوديـانو لعنت وکړی کله چه وازدهٔ په هغوی حرامه کړے شوه نو دوی به ويلی کولو سره هغه خرڅوله او د هغے قيمت به ئے خوړلو)) (صحيح بخاری: ۲۲۳۶)۔
بِبَغْيِهِمْ : عـلامه بغویؒ د کَلْبیؒ نه نقل کړيدی چه يهوديانو به کله يوه لويه گناه وکړه نو الله به پرے پاك طعام حرام کړو۔ ﴿فَبِظُلْمٍ مِنَ الَّذِينَ هَادُوا حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ طَيِّبَاتٍ﴾ (النساء: ١٦٠)
وَإِنَّا لَصَادِقُونَ : پـه دے کښې اشاره ده چه يهودو وئيل چه د اُوښ غوښه په دين ابراهيم ﷺ کښې حرام وه نو دا دروغ وائی۔ او د عربو عـادت وو چه کله به ئے ووئيل چه زهٔ پدے خبره کښې رشتينی يم نو خلکو به د هغه تصديق کولو۔
صـاحب المنار وائی : ددے جملے راوړو وجه دا ښکاره کيږی چه رسول الله ﷺ او د هغه امت اُميين دی، نو هغه چه د موسیٰ ﷺ د شريعت نـه خبر ورکوی نو کيدے شی چه يهود د هغے تکذيب وکړی نو ځکه ئے دا خبره په دے جمله سره مؤکده کړه چه مونږه پدے اخبار کښې رشتينی يو۔ (المنار)

| فَإِنْ كَذَّبُوكَ فَقُلْ رَبُّكُمْ ذُو رَحْمَةٍ وَاسِعَةٍ ج |
| --- |
| پس که دوی دروغژن ووائی تا ته نو ووايه ! رب ستاسو خاوند د رحمت دۓ فراخه |
| وَلَا يُرَدُّ بَأْسُهُ عَنِ الْقَوْمِ الْمُجْرِمِينَ ﴿١٤٧﴾ |
| او نهٔ شی واپس کيدے عذاب د هغه د قوم مجرمانو نه۔ |

**تفسیر** : پـدے آيت کـښې تـرغيب او ترهيب دے او نبی کريم ﷺ ته تسلی ورکوی چه کـه مشرکان او يهوديان ستا تکذيب کوی او وائی چه د تحليل او تحريم متعلق تاسو چه د

کومو احکامو نسبت الله طرف ته کړیدے، په هغے کښې تاسو رشتینی نهٔ یئ، نو صبر کوه او دا ورته ووایه چه الله ډیر رحم کونکے دے چه ستاسو په نافرمانیو باندے تاسو ته په عذاب درکولو کښې جلتی نهٔ کوی، لیکن دا خبره تاسو د ذهنونو نه مهٔ وباسئ چه ستاسو نه د عذاب روستو کولو هیچرے دا مطلب نهٔ دے چه د جرم کونکو قومونو نه به د الله عذاب روستو کیږی ځکه چه الله قهر او غضب والا هم دے۔ د الله د علم مطابق کله چه د هغے وخت راشی نو هغه هیڅوك نشی روستو کولے، یا دا مطلب دے چه که دنیا کښې عذاب نهٔ راځی نو په آخرت کښې به د مجرمانو نه هیڅ عذاب نهٔ نشی روستو کیدے۔

ذُوْ رَحْمَةٍ وَّاسِعَةٍ : دا ترغیب دے چه راشئ ایمان راوړئ الله به دریاندے رحم وکړی ورنه سزا ته انتظار کوئ۔

| |
|---|
| سَيَقُوْلُ الَّذِيْنَ اَشْرَكُوْا لَوْ شَآءَ اللّٰهُ |
| زر دے چه وائی به هغه کسان چه شرك ئے کړیدے که چرے غوختے الله |
| مَآ اَشْرَكْنَا وَلَآ اٰبَآؤُنَا وَلَا حَرَّمْنَا مِنْ شَيْءٍ ؕ كَذٰلِكَ |
| شرك به نهٔ وے کړے مونږ او نهٔ پلارانو زمونږ او نهٔ به حرام کړے وے مونږ هیڅ شے، دغسے |
| كَذَّبَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ حَتّٰى ذَاقُوْا |
| دروغژن گنړلے دے (توحید لره) هغه کسانو چه مخکښې د دوی نه دی تردے چه وڅکلو هغوی |
| بَاْسَنَا ؕ قُلْ هَلْ عِنْدَكُمْ مِّنْ عِلْمٍ فَتُخْرِجُوْهُ لَنَا ؕ |
| عذاب زمونږ ته ووایه ! آیا شته تاسو سره څه پوهه پس چه راوباسئ تاسو هغه مونږ ته |
| اِنْ تَتَّبِعُوْنَ اِلَّا الظَّنَّ وَاِنْ اَنْتُمْ اِلَّا تَخْرُصُوْنَ ﴿۱۴۸﴾ |
| تابعداری نهٔ کوئ تاسو مگر د گمان او نهٔ یئ تاسو مگر اټکل کوئ۔ |

**تفسیر** : د مشرکانو څلور دلیلونه مخکښې ذکر شو، اتباع الاکثریة، اتباع الظن، اتباع الخرص، اتباع الآباء، اُوس پنځم دلیل بیانوی چه هغه استدلال دے په مشیت د الله۔ او دا ناشنا زور دلیل دے۔ او دا په قرآن کریم کښې درے ځایه ذکر دے یو دلته او بل په سورة النحل (۳۵) او بیا سورة الزخرف (۲۰) آیت کښې۔

د استدلال (او شبهے) حاصل دا دے چه په دنیا کښې هر شے د الله په اراده کیږی او هر هغه

شے چه الله ئے اراده وکړی نو الله په هغے رضا وی نو مونږ چه کوم شرکونه کوو نو پدے الله راضي دے، ولے که الله پرے راضي نهٔ وی، نو بیا ئے اراده ولے کوی؟ او بیا به ئے زمونږ لاسونه نیولی وے او زمونږ سترګے او غوږونه به ئے ددے نه بند کړی وے او خپے به ئے زمونږ ماتے کړے وے؟۔

ځینی وائی: دا ئے مؤمنانو ته الزامًا وئیل چه تاسو وایئ [كُلُّ شَيْءٍ بِمَشِيئَةِ اللّٰهِ] هر شے د الله په اراده کیږی نو بیا خو به مونږ هم دا شرك د الله په اراده کوو نو ولے غلط شو؟۔

ددے جواب دا دے چه د الله دوه قسمه ارادے دی (۱) اراده کونیه (۲) اراده شرعیه۔ په اراده کونیه کښې د الله رضا شرط نهٔ دے کله به ورسره د الله رضا ملګری وی او کله نهٔ، او په اراده شرعیه کښې د الله رضا شرط وی، زنا، قتل وغیره ګناهونه د الله په اراده کونیه سره کیږی که انسانان دا کارونه کوی نو الله ورله توفیق ورکوی مګر رضا پرے نهٔ دے بلکه انسان ئے ترے منع کړیدے۔ او اراده شرعیه هغه ده چه الله د بندګانو نه د هغے مطالبه کړی وی چه ایمان راوړئ، مونځ، زکاة، روژه ادا کړئ نو پدے الله راضي دے۔

نو که ستاسو په شرك الله راضي وے نو بیا الله پیغمبران او کتابونه په رد د شرك کښې ولے رالیږل؟ نو د شرك نه چه الله منع کړیده دا دلیل دے چه الله پرے راضي نهٔ دے۔

ابن الجوزیؒ لیکی: فَعَلَى الْعَبْدِ اِتِّبَاعُ الْاَمْرِ وَلَيْسَ لَهُ اَنْ يَّتَعَلَّلَ بِالْمَشِيْئَةِ بَعْدَ وُرُوْدِ الْاَمْرِ (زاد المسیر)

په بنده باندے لازم دی چه د الله تعالیٰ د امر تابعداری وکړی او دهٔ لره جائز نهٔ دی چه د امر د راتللو نه روستو په مشیئت باندے ځان قلار کړی۔

او دلته الله جواب ورکوی: كَذٰلِكَ كَذَّبَ الَّذِيْنَ آه۔ یعنی که الله پدے رضا وی نو بیا پخوانی مشرکان او تکذیب کونکی په څه باندے تباه شو؟ که دوی د الله د رضا مطابق کار کولے نو بیا الله ولے هلاکول؟۔ او دا بیا بیله خبره ده چه یو مشرك ته الله تعالیٰ څه زمانه صبر کړیدے (ځکه چه هغه ذُوْ رَحْمَةٍ وَّاسِعَةٍ دے) عذاب پرے لا نهٔ راولی کیدے شی چه توبه وباسی نو دا صبر دلیل د الله د رضا نهٔ دے۔

نو د جواب دوه جزونه شو، یو خو هره اراده مرادفه د رضا نهٔ ده، او بله دا چه د شرك نه الله منع کړیده او عملًا ئے مشرکانو ته سزاګانے ورکړیدی۔

سَيَقُوْلُ: سین د تاکید دپاره دے، یعنی مشرکان به دا خبره په ډیر تاکید سره کوی۔ یا سین د استقبال دے او دا پیشنګوئی ده، او ددے وقوع په سورة النحل او زخرف کښې ذکر

ده. (خو دا هله چه سورة النحل ددې سورت نه روستو نازل شوې وي او كه مخكښې نازل وي نو بيا به معنىٰ دا وي چه دوی به دا خبره او دا بهانه دوباره كوي. (التحرير والتنوير)

او په آخرت كښې دا وينا نهٔ ده مراد لكه بعض تفاسيرو كښې ليكلي چه آخرت كښې به ئې د تمنا په طريقه ووائي. (التسهيل). دا تفسير كول ډير بعيد دي.

مَآ اَشۡرَكۡنَا : يعني شرك اعتقادي او ﴿ حَرَّمۡنَا مِنۡ شَيۡءٍ﴾ شرك فعلي دې. مطلب ئې دا وو چه دا مونږ چه كوم شے كوو نو دا شرك نهٔ دې بلكه دا تقرب الى الله دې او دا وسيله ده.

كَذٰلِكَ كَذَّبَ الَّذِيۡنَ : ددې نه مطلب مخكښې واضح شو، او په كَذَّبَ كښې اشاره ده چه پيغمبرانو د شرك نه منع كړيده، ليكن مشركانو هغه دروغژنه كړيده چه مونږه ئې نهٔ منو. دويم مطلب دا دې چه د همدې شبهې د وجه نه ډير خلق مخكښې هم گمراه شويدي، او دا انتهائي لچر دليل دې، كه ستاسو خبره صحيح وې، نو الله تعالىٰ تاسو په عذاب كښې ولې اخته كولې؟. نو دواړه جوابونه ورته وشو.

قُلۡ هَلۡ عِنۡدَكُمۡ : دا بل جواب او رد دې چه كه تاسو وايئ چه الله پدې راضي دې، نو آيا كه تاسو سره پدې خبره څه يقيني دليل (عقلي يا نقلي) وي نو هغه راښكاره كړئ؟ نشته، نو معلومه شوه چه تاسو د ظن او تخمين پسې روان يئ چه پلارانو داسې كړيدي او كيدې شي چه الله پرې راضي وي. په الله باندې دروغ وايئ.

مِّنۡ عِلۡمٍ : دا دليل دې چه يقيني دليل هغه دې چه ظن او تخمين نهٔ وي. (السعدي)

اِلَّا الظَّنَّ : يعني ستاسو دغه دليل په گمان بناء دې چه مونږ ته الله عذاب نهٔ راكوي نو كيدې شي چه الله زمونږ نه رضا وي، نو دا هسې تخمين دې.

| قُلۡ فَلِلّٰهِ الۡحُجَّةُ الۡبَالِغَةُ ج |
| --- |
| تهٔ ووايه! پس خاص الله لره دليل دې پوره (ځاى ته رسيدونكې)، |
| فَلَوۡ شَآءَ لَهَدٰكُمۡ اَجۡمَعِيۡنَ ﴿۱۴۹﴾ |
| نو كه غوښتې الله تعالىٰ خامخا هدايت به ئې كړې وې تاسو ټولو ته. |

**تفسير** : ۱–پدې كښې د الله د طرفنه په توحيد باندې يقيني دليل بيانيږي، يعني تهٔ ووايه چه د الله دليل كامل دې او ځاى ته رسيدونكې دې او بالغة معنىٰ دا هم ده چه عذرونه د بندگانو ختموي، او هغه دا چه هغه رسولان راليږلي او كتابونه ئې نازل كړيدي او

مشرکانو ئې هلاك کړيدي، نو د رد د شرك دپاره او د اثبات د توحيد دپاره دا پوره دليل شو۔ او هر چه د الله اراده او کلام دے نو هغه غيب دے، بنده په هغے نه خبريږي مگر الله ئې بعض رسولانو ته خبر ورکوي۔ (بغويؒ والقرطبيؒ)

او بالغة مؤکد او مُحکم ته هم وائي لکه (حِکْمَةٌ بَالِغَةٌ) (اِيْمَانٌ بَالِغَةٌ) او بالغه معنیٰ ده اَلَّتِيْ بَلَغَ بِهَا صَاحِبُهَا اِلٰى صِحَّةِ دَعْوَاهُ۔ چه د هغے په وجه بنده د خپلے دعوے صحت ته رسيږي۔ (قاسميؒ)

فَلِلّٰهِ الْحُجَّةُ الْبَالِغَةُ : دلته لِلّٰهِ (خبر) مقدم شو دپاره د تخصيص، او مطلب دا چه د مشرکانو سره هيڅ داسے دليل نشته چه هغه کامل وي او مدعیٰ پرے ثابته شي او خاص د الله دپاره کامل حجت دے۔ ددے وجه نه د ربيع بن انسؒ او ضحاكؒ نه نقل دي چه د هغه چا سره چه د الله نافرماني (او شرك) کوي په الله باندے هيڅ حجت نشته بلکه الله تعالیٰ لره حجت کامله دے په بندگانو خپلو۔ (ابن کثيرؒ)

۲– حافظ ابن کثيرؒ ددے آيت داسے مطلب بيان کړيدے چه د چا په هدايت او د چا په گمراه کولو کښ د الله پوره حکمت او کامل حجت دے هغه کولے شي چه ټول انسانان هدايت ته راولي لکه مخکښ آيت (۳۵) کښ تير شو: ﴿وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَجَمَعَهُمْ عَلَى الْهُدٰى﴾ (او که الله غوختلے نو ټول خلق به ئې په هدايت راجمع کړي وے)۔ ليکن دا کار نه کوي د وجه د دغه حکمتونو نه۔ (ابن کثيرؒ)

فَلَوْ شَآءَ : مفعول د شاء (هِدَايَتَكُمْ) دے لکه روستو (هَدٰكُمْ) پرے دليل دے او تعلق د فعل المشية د مفعول پورے غريب نه دے پدے وجه مفعول حذف شويدے۔ (تلخيص المفتاح)

او پدے کښ هم په مشرکانو رد دے چه الله په چا زور نکوي چه ايمان او هدايت ته ئې په زوره راولي او ايمان ورله زړه ته ورننباسي، ځکه که زور وکړي بيا خو به ټول خلك مؤمنان شي بيا به امتحان رانشي او الله خو دنيا د امتحان دپاره پيدا کړيده۔

| قُلْ هَلُمَّ شُهَدَآءَكُمُ الَّذِيْنَ يَشْهَدُوْنَ اَنَّ اللّٰهَ حَرَّمَ هٰذَا ج |
|---|
| ته ووايه! راولئ علماء خپل هغه کسان چه بيان وکړي چه بيشکه الله حرام کړيدي دا |
| فَاِنْ شَهِدُوْا فَلَا تَشْهَدْ مَعَهُمْ ج وَلَا تَتَّبِعْ |
| نو که دوي بيان وکړو (بے دليله) نو بيان مه کوه ته د دوي سره او تابعداري مه کوه |

| اَهْوَآءَ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا وَالَّذِيْنَ |
|---|
| د خواهشاتو د هغه کسانو چه دروغژن گڼړی آیتونه زمونږ او هغه کسان |
| لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ وَهُمْ بِرَبِّهِمْ يَعْدِلُوْنَ ﴿١٥٠﴾ |
| چه ایمان نهٔ لری په آخرت او دوی د خپل رب سره نور برابروی۔ |

**تفسیر:** دا هم د مشرکانو د رد دپاره بل دلیل دے، هغه دا چه تاسو دا وایئ چه الله زمونږ په شرك راضی دے نو پدے باندے گواه راوړل پکار دی، صرف د الله صبر او د هغه د حِلم نه دلیل نیول صحیح نهٔ دی بلکه په حلال او حرامو به د الله د طرفنه دلیل راوړئ، نو پدے آیتِ کریمه کښې د مشرکانو د لاجواب کولو طرز اختیار شویدے۔

نبی کریم ﷺ ته فرمائی چه تهٔ دوی ته ووایه چه تاسو خپل گواهان پیش کړئ چه واقعی الله دا څیزونه حرام کړیدی، کوم چه تاسو حرام گڼړئ (حال دا چه الله پو هیږی چه دوی سره هیڅ گواه نشته) که فرض کړو چه څوك د هغوی په تائید کښې گواهی ورکوی چه هغه به خالص دروغ او د تعصب په بنیاد وی نو تهٔ د دوی تصدیق مهٔ کوه، او نهٔ د هغه خلقو د خواهشاتو تابعداری کوه کوم چه د الله آیتونه دروغژن گڼړی، او په آخرت باندے ایمان نهٔ لری، او بتان د الله سره شریکوی۔ نو د خواهش پرستانو گواهی هم د دروغو نه ډکه وی۔

هَلُمَّ : دا کلمه د حجازینو په نیز د مفرد او جمعے تهولو دپاره یو شان استعمالیږی۔ او مفسرین وائی چه پدے کښې تعجیز دے د اقامت د شهداؤ نه۔ یعنی دوی عاجز دی ددے نه چه گواهان پیش کړی، او که گواه پیدا شی نو هغه به دروغژن وی او دا په بیان کښې ډیره مبالغه ده۔

شُهَدَآءَكُمُ : ددے نه مراد علماء او دارنگه عام گواهان دی۔

حَرَّمَ هٰذَا : یعنی دغه مذکوره بحیرے او سائبے وغیره۔

يَعْدِلُوْنَ : یعنی نور خلك د رب سره برابروی۔

| قُلْ تَعَالَوْا اَتْلُ مَا حَرَّمَ رَبُّكُمْ عَلَيْكُمْ |
|---|
| تهٔ ووایه ! راشئ چه بیان کړم هغه چه حرام کړیدی رب ستاسو په تاسو باندے چه |

اَلَّا تُشْرِكُوْا بِهٖ شَيْئًا وَّبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا ۚ وَلَا تَقْتُلُوْٓا اَوْلَادَكُمْ

شریك مهٔ ګڼرئ د هغه سره هیڅ شے او د مور او پلار سره نیکي کوئ او مهٔ وژنئ اولاد خپل

مِّنْ اِمْلَاقٍ ؕ نَحْنُ نَرْزُقُكُمْ وَاِيَّاهُمْ ۚ وَلَا تَقْرَبُوا الْفَوَاحِشَ

د وجے د لوږے نه، مونږ رزق درکوو تاسو ته او دوی ته او مهٔ نزدے کیږئ بے حیایانو ته

مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ ۚ وَلَا تَقْتُلُوا النَّفْسَ الَّتِيْ حَرَّمَ

هغه چه ښکاره دی د دینه او هغه چه پټ دی، او مهٔ وژنئ نفس هغه چه حرام کړیدے

اللّٰهُ اِلَّا بِالْحَقِّ ؕ ذٰلِكُمْ وَصّٰكُمْ بِهٖ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ﴿۱۵۱﴾

الله تعالیٰ مګر په حق، دا مضبوط حکم کوی الله تاسو ته په دے، دے دپاره چه عقل نه کار واخلئ

**تفسیر**: سوال پیدا شو چه هر کله د مشرکانو دغه محرمات حرام نشو نو بیا کوم څیزونه حرام دی؟ نو الله جواب ورکوی چه دا لس څیزونه دی چه شپږ حرام څیزونه او پنځه حکمونه دی (چه د هغے خلاف کول حرام دی)۔

(لکه ډیر مبتدعین وائی چه تاسو هر شے منع کړو، جُمعه، چهیله، کلیزه، د مړو شپه، د اولے ورځے خیرات، اسقاط، نو بیا څه شے جائز شو؟ نو مونږ ورته وایو چه تاسو صحیح دین نهٔ دے پیژندلے او خرافات مو زده کړیدی، نو کله چه ستاسو په خرافاتو رد وشی نو تاسو وایئ چه تول دین ئے ختم کړو)

نو دلته لس احکام بیان شویدی چه دے ته د حکمة احکام وائی چه انسان پرے حکیم جوړیږی۔ او روستو به ووائی چه دا لس احکام د ټولو انبیاؤ اتفاقی دی، نو تاسو اتفاقی خبرے نهٔ منئ او د ځان نه مو چه څه جوړ کړیدی هغے پسے روان یئ۔

## ربط

تاسو چه کوم څیزونه حرام ګڼرئ دغه حرام نهٔ دی بلکه راشئ چه هغه محرمات درته بیان کړم چه الله تعالیٰ واقعی حرام کړیدی او د کومو د حرمت علم چه د انسانانو دپاره ضروری دے۔ او دا هغه څیزونه دی چه مشرکانو به ئے پرواه نهٔ لرله۔

تَعَالَوْا: دے کښې اشاره ده چه دا حکمونه منل سبب د علو او رفعت دے۔ او علامه قرطبیؒ وائی چه په ټولو علماؤ باندے ددے محرماتو بیانول لازم دی، او ابن ابی حاتمؒ

مرفوع روایت نقل کړیدے چه رسول الله ﷺ به په دے درے آیتونو باندے د صحابه کرامؓ نه بیعت اخستلو ۔ آه او دا لس وصیتونه په تورات کښې هم ذکر شویدی۔

(فتح القدیر للشوکانی)

اَتْلُ مَا حَرَّمَ : سوال : اَلَّا تُشْرِكُوْا د حَرَّمَ دپاره مفعول دے نو معنیٰ دا ده چه په تاسو باندے نۀ شرك کول حرام دی او شرك کول درله جائز دی او دا معنیٰ خو صحیح نۀ ښکاری ؟ دارنګه د والدینو سره احسان هم حرام نۀ دے؟ نو مفسرینو دلته ډیر توجیهات کړیدی۔

(۱) ځینې وائی چه په آیت کښې تقطیع ده او خبره په (اَتْلُ مَا حَرَّمَ رَبُّكُمْ) باندے پوره ده او روستو (عَلَيْكُمْ) د اِغراء (یعنی تیزولو) دپاره دے، او اسم فعل دے په معنیٰ د لزوم سره۔ (اَیْ عَلَيْكُمْ اَلَّا تُشْرِكُوْا وَبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا) په تاسو لازم دی چه شرك به نکوئ او د والدینو سره به احسان کوئ۔ دا بعید دے او د بلاغت خلاف دے۔

(۲) جواب : حَرَّمَ همیشه د حرام په معنیٰ سره نۀ وی بلکه په معنیٰ د (اَوْجَبَ او فَرَضَ) سره دے لکه ﴿ وَحَرَامٌ عَلٰى قَرْيَةٍ اَهْلَكْنٰهَا اَنَّهُمْ لَا يَرْجِعُوْنَ ﴾ (الانبیاء: ۹۵) یعنی واجب او لازم دی۔

او تعبیر ئے په حرامو سره وکړو سره ددے نه چه پدے کښې خو عام وصیتونه ذکر دی څه حرام او څه حلال، یو د ماقبل د مناسبت د وجه نه، ځکه چه مشرکانو دا حرام نۀ ګنړل۔ دویم پدے وجه چه کله اصول د محرماتو بیان شی نو دا دلیل وی په حلت د ماسوئ ددے باندے ځکه چه اصل په اشیاؤ کښې حل دے او ددے عامو حلالو نه ئے په اصول د واجبو باندے تصریح وکړله۔ (المنار ۸/۱۶۲)

(۳) د حَرَّمَ دپاره مفعول (مُخَالَفَةً) پټ دے او د (اَلَّا تُشْرِكُوْا) نه مخکښې (هُوَ) پټ دے۔ یعنی حرام کړے ئے دے په تاسو باندے مخالفت د هغے هغه دا چه شرك به نۀ کوئ او د والدینو سره به احسان کوئ۔

(٤) صاحب المنارؒ وائی دے اشکالاتو او جواباتو ته ضرورت نشته بلکه آیت چه په ظاهر باندے پریخودے شی، نو هم معنیٰ مراده ترے جدا جدا صحیح فهمیږی نو تحقیقات د سعد او حل د اشکالاتو د ابوحیانؒ ته ضرورت نۀ پاتی کیږی۔ هغه دا چه دلته معنیٰ دا ده چه راشئ چه زۀ تاسو ته ولولم هغه څیزونه چه تاسو باندے ربّ حرام کړیدی یا ئے تاسو ته په هغے باندے وصیت کړیدے لکه آخر د آیت کښې (وَصّٰكُمْ) راغلے دے، اول د هغه محرماتو نه دا ده چه شرك به نکوئ یا اول د هغه وصیتونو نه دا ده چه شرك به نکوئ۔ (المنار ۸/۱۶۲)

### هغه کارونه او وصیتونه دا دي :

اَلَّا تُشۡرِكُوۡا : ١- د الله سره بل چا لره شریك جوړول : په مسند احمد، ترمذی او دارمی وغیره کښ د ابوذر ﷺ نه حدیث قدسي روایت شوېدے چه الله تعالیٰ وائی : «ایے د آدم څویه ! ته که ما رابلے او ما نه امید ساتے نو زۀ به تا ته معافي کوم اګرکه تا نه کومه ګناه شوې وی او زۀ پرواه نۀ کوم، او که ډکه زمکه ګناهونه ما ته راوړے نو د هغے برابر به تا ته بخښنه اُوکړم پدے شرط چه تا ما سره څوك شریکان نۀ وی جوړ کړی».

(ترمذی : ٣٥٤٠) احمد (٢١٥١٠) بسند صحیح)

٢- د والدینو نافرمانی : ځکه چه والدینو سره احسان نۀ کول حرام دی نو احسان کول لازم شو. الله تعالیٰ د قرآن کریم په ډیرو آیتونو کښ خپل طاعت او بندګی او والدینو سره ښائسته سلوك یو ځای بیان کړیدی.

په صحیحینو کښ د ابن مسعود ﷺ نه روایت شوېدے چه ما د رسول الله ﷺ نه تپوس وکړو، چه کوم عمل د تولو نه غوره دے؟ نو هغه وفرمایل : «په وخت باندے مونځ کول»، ما ووئیل، بیا کوم ؟ نو وے فرمایل : «والدینو سره ښائسته سلوك». ما ووئیل : بیا کوم ؟ نو وے فرمایل : «د الله په لاره کښ جهاد کول». (بخاری : ٥٢٧) مسلم (٢٦٤)

٣- اولاد قتلول : چه دا په هیڅ حال کښ جائز نۀ دی. د جاهلیت په دور کښ به عرب خلق د غربت او محتاجئ نه یریدل او خپل اولاد به ئے قتلول. او جینکئ به ئے د شرم او پیغور په یره سره ژوندئ خښولے. په صحیحینو کښ د ابن مسعود ﷺ نه روایت شوېدے، هغوی د رسول الله ﷺ نه تپوس وکړو چه کومه ګناه د تولو نه لویه ده ؟ نو نبی ﷺ وفرمایل : «چه تۀ د الله سره څوك شریك جوړ کړے په داسے حال کښ چه تۀ هغه پیدا کړے ئے ؟». ما ووئیل : بیا کومه ؟ وے فرمایل : [أَنۡ تَقۡتُلَ وَلَدَكَ خَشۡيَةَ أَنۡ يُطۡعَمَ مَعَكَ] (چه ته اولاد په دے یره قتل کړے چه هغه به تاسره خوراك وکړی). الحدیث. (صحیح بخاری : ٤٧٦١)

او الله تعالیٰ پدے آیتِ کریمه کښ فرمایلی : چه تاسو او هغوی ته مونږ روزی درکوو، ځکه چه د غلامانو روزی د هغوی د آقا او مولیٰ په ذمه وی.

د قتل الاولاد ډیر صورتونه دی (١) ظاهراً وژل لکه لونړه ښخول وغیره طریقے.

(٢) اسقاط حمل. (حامله زنانه خپل بچے ګوزار کړی نو دا هم د الله په نیز قاتله ده، بعض زنانو ته ډاکټر ووائی چه ستا بچے په رَحِم کښ کوږ یا اُلټه دے، یا کمزورے دے نو دے

ئے گوزار کړی، نۀ بلکه پدے باره کښې په الله باندے توکل لازم دے)

(۳) پدے کښې منصوبه بندی هم داخل دہ، ډیر خلك منصوبه بندی د اقتصاد د خرابۍ په یره سره کوی۔ البته ددے نه په شریعت کښې د خاص معذورو خلکو دپاره استثناء ات شته۔

(٤) امام راغبؒ وائی : حِرْمَانُهُمْ مِنَ الدِّيْنِ ۔ بچی د دین نه محروموِل۔ ډیر خلك په خپلو بچو باندے د وروکوالی نه انګریزی تعلیمونه کوی تردے چه بیا کالجونو او یونیورستیانو ته بیا بهر ملکونو ته د اعلیٰ تعلیم دپاره لاړ شی نو تول ژوند ئے په دنیاوی تعلیم کښې تیر شی، د دین د هیڅ مسئلے نه خبر نۀ وی، دا بیا د ملك مشر شی نو خلك ددۀ نه د اسلام طمع کوی حال دا چه هغه د اسلام نه خپله هم خبر نۀ دے۔

٤- د فحش ګناهونو کول : مفسرینو لیکلی دی چه ددے نه مراد بالخصوص زنا دہ۔ په صحیحینو کښې د مغیره بن شعبه ﷺ نه روایت شویدے چه سعد بن عباده ﷺ ووئیل :که زۀ د خپلے بی بی سره یو پردے سړی اُووینم نو هغه به په توره وژنم، کله چه رسول الله ﷺ ته دا معلومه شوه نو وے فرمایل : ((آیا تاسو د سعد په غیرت باندے تعجب کوئ؟ قسم په الله، زۀ د سعد نه زیات غیرتمند یم، او الله ما نه زیات غیرت والا دے، پدے وجه خو هغه ښکاره او پټه زنا او د فواحشو تمام قِسمونه حرام کړیدی))۔ (بخاری : ٦٨٤٦)

(د حدیث مطلب دادے چه که یو تن خپلے ښځے سره یو سړے په زنا مشغول وینی نو هغه به نۀ وژنی تردے چه څلور ګواهان راوړی، الله تعالیٰ ګواهان ضروری کړیدی، که ګواهان نۀ وی نو د سړی دپاره د دغه زناکار وژل صحیح نۀ دی بلکه د ښځے سره به لعان وکړی او هغه به تر یے همیشه دپاره جدا شی لکه تفصیل دپاره شرح ابن بطال او فتح الباری وغیره وګورئ)

٥- د بی ګناه سړی قتل : په صحیحینو کښې د ابن مسعود ﷺ روایت نقل شویدے چه رسول الله ﷺ وفرمایل :

((د هیڅ مسلمان سړی وینه حلاله نۀ دہ چه ګواهی ورکوی چه د الله نه سوا هیڅوك حقدار د بندګئ نشته او زۀ د الله رسول یم، سویٰ د درے قسمه انسانانو نه : وادۀ کړے زنا کار، د نفس په بدله کښې نفس، او د الله دین پریخودلو سره د جماعت (د مسلمانانو) نه جدا کیدونکے انسان))۔ (صحیح بخاری : ٦٨٧٨) ومسلم (٤٤٦٨)

نو نفس عام دے کافر، معاهد، اهل الذمه تول وژل تیك نۀ دی صرف حربی کافر وژل دی۔

| وَلَا تَقْرَبُوا مَالَ الْيَتِيمِ إِلَّا بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ حَتَّى |
|---|
| او مهٔ نزدے کیږئ مال د یتیم ته مګر په هغه طریقه چه هغه ښائسته وی تردے |
| يَبْلُغَ أَشُدَّهُ ج وَأَوْفُوا الْكَيْلَ وَالْمِيزَانَ بِالْقِسْطِ ج |
| چه ورسیږی ځوانئ خپلے ته او پوره کوئ پیمانه او تول (وزن) په انصاف سره، |
| لَا نُكَلِّفُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا ج وَإِذَا |
| تکلیف نهٔ ورکوو مونږ هیڅ نفس ته مګر په اندازه د وس د هغے، او کله چه |
| قُلْتُمْ فَاعْدِلُوا وَلَوْ كَانَ ذَا قُرْبَى ج وَبِعَهْدِ اللهِ أَوْفُوا ط |
| خبره کوئ تاسو نو انصاف کوئ اګرکه هغه خپلوان وی، او په لوظ د الله پوره والے کوئ |
| ذَٰلِكُمْ وَصَّاكُمْ بِهِ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ ﴿١٥٢﴾ |
| دا مضبوط حکم کوی الله تاسو ته پدے سره، دے دپاره چه تاسو نصیحت واخلئ۔ |

**تفسیر**: پدے آیت کریمه کښې نور څلور محرمات یا وصیتونه ذکر شویدی:

۱- د یتیم په مال کښې ناجائز تصرف کول: د یتیم نګران او ذمه وار ته دا حکم شویدے چه د هغه د مال حفاظت اُوکړی، او د تجارت په ذریعه په هغے کښې د زیاتوالی کوشش اُوکړی، او کله چه بالغ شی نو د هغه مال هغه ته حواله کړی۔

حَتَّى يَبْلُغَ أَشُدَّهُ: دا د پټ (وَاحْفَظُوا) پورے متعلق دے یعنی ددے مال حفاظت کوئ۔ دا ورسره څکه وائی چه کله یتیم بالغ شی، نو بیا ترے څوک مال نشی خوړلے څکه طاقتور شی، او دا مطلب نهٔ دے چه تر بلوغ پورے د یتیم مال ته مهٔ نزدے کیږئ او روستو ورته نزدے کیدے شئ۔ او عربو به د یتیمانو مالونه خوړل او اُوس هم ډیر خلک دا کار کوی چه یتیمانانو ته میراثونه نهٔ ورکوی۔

۲- په ناپ تول کښې کمے کول: الله تعالیٰ په سورة مطففین کښې فرمایلی دی: ﴿وَيْلٌ لِلْمُطَفِّفِينَ﴾ (تول کښې کمی کونکو دپاره ویل (یعنی هلاکت او بربادی ده))۔

لَا نُكَلِّفُ نَفْسًا: څوک به وائی چه دا احکام خو به ډیر ګران وی نو الله پدے باندے د عمل کولو دپاره ترغیب ورکوی چه دا آسان احکام دی او د هر شخص د طاقت نه زیات او بهر نهٔ دی۔

یا دا ددے نزدے سره متعلق دے او معنیٰ دا ده چه که یو شخص د حق په ادا کولو او خپل حق اخستو کښې د عدل او انصاف پوره کوشش وکړی او د هغے نه روستو هم د هغه نه کومه غلطی په ناپوهئ سره وشی نو الله تعالیٰ به هغه نهٔ راګیروی۔ (السعدی)

۳- په وینا او حکم کښې زیاتی یا نقصان: ډیر انسانان په خبرو او فیصلو کښې د عدل نه کار نهٔ اخلی بلکه د خپلولئ، قبیلے او د ډلے او یارانے او دوستانے رعایت کوی، او مذاهبو والا د خپل مذهب رعایت کوی چه په ټولو مسئلو کښې ترجیح خپل مذهب ته ورکوی حال دا چه مذهب ئے کمزورے وی، دا ډیر زیاتے دے او لوی لوی ملیان دا کار کوی۔ او د اهل الحدیث والسنة دے بې عدلئ ته ضرورت نهٔ راځی بلکه هغه کتاب او سنت ته ترجیح ورکوی که د هر مذهب والا سره وی۔

او مخکښې په سورة النساء آیت (۱۳۵) کښې فرمایلی دی: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُونُوا قَوَّامِينَ بِالْقِسْطِ شُهَدَاءَ لِلَّهِ وَلَوْ عَلَىٰ أَنفُسِكُمْ أَوِ الْوَالِدَيْنِ وَالْأَقْرَبِينَ﴾ چه (اے ایمان والو! په عدل او انصاف باندے کلك اُوسیدونکی او د الله د خوشحالولو دپاره رشتینی ګواهی ورکونکی جوړ شئ اګرکه هغه ستاسو په خلاف وی یا د خپل مور او پلار یا خپلوانو)۔

۴- لوظ او عهد ماتول: د عهد الله نه مراد ټول اوامر او نواهی دی، ځکه چه څوك ایمان راوړی هغه د الله سره پدے کښې لوظ وکړو، او دارنګه برابره ده که دغه لوظونه د الله سره وی یا د یو انسان سره۔

| |
|---|
| وَأَنَّ هَٰذَا صِرَاطِي مُسْتَقِيمًا فَاتَّبِعُوهُ ۖ وَلَا تَتَّبِعُوا |
| او بیشکه دا (قرآن) لاره زما ده نیغه نو تابعداری کوئ ددے او تابعداری مهٔ کوئ |
| السُّبُلَ فَتَفَرَّقَ بِكُمْ عَن سَبِيلِهِ ۚ ذَٰلِكُمْ وَصَّاكُم |
| د نورو لارو پس ګډوډ به کړی تاسو د لارے د الله نه، دا مضبوط حکم کوی الله تاسو ته |
| بِهِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ﴿۱۵۳﴾ |
| پدے سره، دے دپاره چه تاسو ویریږئ (د الله نه)۔ |

**تفسیر**: پدے آیت کښې لسم حکم دے یعنی امر په قرآن او منع د بدعاتو نه۔ او هغه دا چه د اسلام نه سوئ نورو دینونو او مذاهبو او افکارو او نظریاتو اتباع ونکړئ۔

وَاَنَّ : ددے عامل پټ دے اُیْ وَاَمَرَکُمْ۔ او الله تعالیٰ تاسو ته حکم کړیدے چه دا زما لاره ده۔
هٰذَا: اشاره قرآن او اسلام دواړو ته ده چه مطلب ئے یو راوځی۔
صِرَاطِیْ : یعنی دا ما ته رارسیدونکے لاره ده، او رب ته رسیدل پوره کامیابی ده، او د هغے نه بغیر کامیابی نشته نو اتباع د قرآن او اسلام فرض شوه۔

امام احمدؒ او حاکمؒ د عبد الله بن مسعود ﷺ نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ زمونږ مخے ته یوه کرخه راځکله او وے وئیل چه دا د الله لاره ده، بیا ئے د هغے ښی او ګس طرف ته لکیرخے راځکلے او وے فرمایل چه ددے لارونه په هره لاره یو شیطان ولاړ دے چه پدے باندے تلونکی ته دعوت ورکوی، بیا ئے دا آیت اُولوستو : ﴿ وَاَنَّ هٰذَا صِرَاطِیْ مُسْتَقِیْمًا﴾الآیة۔ (احمد : ٤١٤٢) وابن ماجه (رقم : ١١) مستدرك (٢٩٣٨) بسند صحیح)

او جابر بن عبد الله ﷺ فرمائی : مونږ د نبی کریم ﷺ سره ناست وو نو هغه یوه لکیرخه راځکله او دوه لکیرخے ئے د هغے ښی طرفته او دوه لکیرخے ئے د هغے ګس طرفته راځکلے بیا ئے په مینځنئ لکیرخه لاس کیخودو او وے فرمایل : همدا د الله لاره ده، بیا ئے دا آیت ولوستلو ﴿ وَاَنَّ هٰذَا صِرَاطِیْ مُسْتَقِیْمًا فَاتَّبِعُوْهُ ﴾ ۔ دے حدیث کښې یوه اشاره دا ده چه حق یو دے او هغه سیده الله ته رسیدلے دے او ښی او ګس طرفونو ته چه کومے لارے کړے شویدی هغه ټولے باطلے لارے دی۔ او پدے کښې (والله اعلم) مذاهب اربعهؒ ته هم اشاره کیدے شی کله چه خلك پدے کښې تعصب کوی، نو دا هم الله تعالیٰ ته رسیدلے لارے نشی کیدے۔

(دا روایت ابن ماجه او مسند احمدؒ وغیره راوړیدے او پدے کښې مجالد بن سعیدؒ راوی باندے کلام دے، عامو علماؤ ورته ضعیف وئیلے دے او امام نسائیؒ ورته یو کرته ضعیف او بل کرته ثقه وئیلے دے۔ او ابن عدیؒ وائی : کله چه هغه شعبیؒ عن جابر وائی نو بیا ئے روایت صحیح دے، او دلته ئے د شعبی عن جابر نه نقل کړیدے۔ (سیر اعلام النبلاء ٢٨٦/٦ والتهذیبین) پدے وجه شیخ البانیؒ ورته صحیح وئیلے دے۔ (صحیح ظلال الجنة رقم ١٦ وصحیح سنن ابن ماجه رقم : ١١)

حافظ ابن کثیر او قاسمی رحمهما الله وائی چه پدے آیت کښې د اسلام دپاره ئے لفظ د سبیل مفرد راوړیدے۔ او د نورو مذاهبو او فرقو دپاره ئے ((سبل)) جمع راوړے ده، ځکه چه حق یو دے او تقلیدی مذاهب او د عقیدو فرقے ګنړے او قسماقسم دی۔

د سبل مصداقات

ابن عطیة او بغوی وائی چه د سُبُل لفظ یهودیت، نصرانیت، مجوسیت او نورو تمامو ملتونو، بدعتونو او گمراهیانو ته شامل دے کوم چه اهل الاهواء او خواهشاتو والا پیدا کړیدی. دغه شان د علم کلام هغه تمامے فرقے پدے کښ داخلیږی چه خامخا په تفصیلاتو کښ داخلیږی. قتادة وائی چه پو هه شه چه لاره صرف یوه ده، او د هدایت والو جماعت او د هغوی انجام جنت دے، او ابلیس مختلف لارے پیدا کړیدی، چه د گمراهیو جماعتونه دی او د هغوی انجام جهنم دے.

عبد الله بن عباس ﷺ د السبل نه مراد (الضلالات) ټولے گمراهیانے او د کتاب او سنت نه اوړیدلے لارے مراد کړیدی. (فتح القدیر)

د بدعاتو تردید د مشکاة باب الاعتصام والسنة او کتاب السنة د لالکائیؒ او الابانة د ابو الحسن الاشعریؒ کښ او کتاب البدع والنهی عنها د ابی وضاح القرطبیؒ کښ وګوری.

حسان بن عطیة وائی: [مَا ابْتَدَعَ قَوْمٌ بِدْعَةً فِی دِیْنِهِمْ اِلَّا نَزَعَ اللّٰهُ مِنْ سُنَّتِهِمْ مِثْلَهَا ثُمَّ لَا یُعِیْدُهَا اِلَیْهِمْ اِلٰی یَوْمِ الْقِیٰمَةِ] (الدارمی رقم: ۹۸ باسناد صحیح – حسین سلیم).

یو قوم چه په دین کښ بدعت پیدا کړی الله تعالیٰ د هغوی نه د هغے په شان سنت طریقے وباسی بیا ورته د قیامت د ورځے پورے نهٔ راواپس کوی. دا د بدعت سپیرهٔ والے دے.

د عبد الله بن مسعود ﷺ او حسن بصریؒ او ایوب سختیانیؒ نه نقل دی: (بالفاظ متقاربة): [مَا ازْدَادَ الْمُبْتَدِعُ اجْتِهَادًا اِلَّا ازْدَادَ مِنَ اللّٰهِ بُعْدًا]

بدعتی چه څومره په بدعت کښ کوشش کوی هغومره به د الله نه ورلرے کیږی.

(ځکه لاره ئے غلطه اختیار کړیده) (البدع واسرها السیء فی الامة ص: ۳۹)

او دا آیت ټولو عقیدوی او عملی بدعاتو ته شاملیږی.

دا آیت دلیل دے چه د امت مسلمه اتحاد صرف په یو صورت کښ موجودیدے شی چه هغوی ټولے فرقے او مذهبونه پریدی، او صرف د صحیح اسلام متبعین جوړ شی، چه هغه صرف د قرآن او سنت نوم دے. ددے نه بغیر د مسلمانانو متحد کیدل محال دی، لکه چه د امام مالك رحمة الله علیه وینا ده چه دا امت په هره زمانه کښ هم په هغه لاره باندے روانیدو سره اصلاح والا کیدے شی کومه چه صحابه کرامؓ خپله کړے وه او اصلاح والا گرځیدلی وو.

او دا آیت دلیل دے چه څوك د محمد رسول الله ﷺ نه بغیر د بل چا پسے ځان وتړی نو خامخا به د رسول الله ﷺ د لارے نه خرابیږی.

**فائده:** د تقلید لاره خامخا د محمد رسول الله ﷺ د اتباع نه د اوړیدو لاره ده که څوك پو هیږي او که نۀ. په السبل کښې د صوفیاؤ، مقلدینو، متکلمینو، خوارجو، معتزله، روافض، بریلویه، دیوبندیه ټول داخلیږي، څوك د رسول الله ﷺ د لارې نه لرې او څوك ډیر اوړیدلي دي، والعیاذ بالله.

صاحب المنار وائي: تفرق په دین کښې دا دے چه خلك د دین نه ډیر مذهبونه جوړ کړي او ددے دپاره ډله بازي شروع کړي چه د خپلے ډلے دپاره تعصب کوي او ددے مخالف ته د خطائي نسبت کوي، او ددے مخالفینو ته د جهالت او ګمراهۍ او کفر او بدعت نسبتونه کوي، او دا سبب ګرځي د دین د ضائع کیدو ځکه چه پدے طریقے سره طلب د حق پاتے کیږي ځکه چه هره ډله د خپل مذهب تائید کوي، او دا ممکن نۀ ده چه د الله د طرفنه حق په یو معیّن عالِم باندے بند شي یا د هغه په تابعدارو باندے، بلکه هر بحث کونکے عالم خطاء کیدے هم شي او حق ته هم رسیدے شي. او دا خبره یقیني ده په عقل او نقل او اجماع سره ثابته ده. لیکن ټول متعصبین د مذاهبو ددے مخالف دي او څوك چه داسے وي نو هغه به د الله د لارے تابعدار نۀ وي کوم چه یو حق دے. الی آخر ما قال (المنار).

په تیر شوي درے آیتونو کښې چه کوم لس محرمات ذکر شویدي، په حقیقت کښې دا د اسلام لس وصیتونه دي، چه په دے باندے د اسلام دارومدار دے، او چه پدے باندے عمل کولو سره انسان د دنیا او آخرت سعادت حاصلولے شي، پدے وجه عبد الله بن مسعود ؓ به وئیل چه څوك د رسول الله ﷺ هغه وصیت لیدل غواړي په کوم باندے چه د هغه مهر لګیدلے دے، نو دا درے آیتونه دے ولولي: ﴿ قُلْ تَعَالَوْا اَتْلُ مَا حَرَّمَ رَبُّكُمْ عَلَيْكُمْ اَلَّا تُشْرِكُوْا بِهٖ شَيْئًا﴾ نه تر ﴿ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ ﴾ پورے. (قاسمیؒ)

## لطیفة:

اول ئے (تَعْقِلُوْنَ) بیا ئے (تَذَكَّرُوْنَ) بیا ئے (تَتَّقُوْنَ) ذکر کړو، پدے کښې نکته دا ده چه انسان اول فکر کوي بیا نصیحت اخلي او خبره رایادوي او چه کله خبره رایاده کړي نو د محارمو نه ځان ساتي. (قاسمیؒ)

| ثُمَّ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ |
| --- |
| بیا (دا هم واورۀ چه) ورکړے وو مونږ موسیٰ (علیه السلام) ته کتاب |

| تَمَامًا عَلَى الَّذِيٓ أَحْسَنَ وَتَفْصِيلًا لِّكُلِّ شَيْءٍ |
|---|
| دپاره د پوره کولو (د نعمت) په هغه چا چه نیکی ئے کړے وه او تفصیل د هرے خبرے (د دین) |
| وَهُدًى وَّرَحْمَةً لَّعَلَّهُمْ بِلِقَآءِ رَبِّهِمْ يُؤْمِنُونَ ﴿۱۵۴﴾ |
| او هدایت وو او رحمت وو دے دپاره چه دوی په ملاقات د رب خپل ایمان ولری۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښې الله تعالیٰ د تورات او د موسیٰ ؑ صفت کوی ددے دوه مناسبته دی یو د مخکښې سره لګی چه دا احکام په تولو ادیانو کښې راغلی دی لکه دا احکام په تورات کښې هم موجود وو۔ ابن کثیرؒ وائی چه کله الله د قرآن تذکره کوی نو تورات هم ذکر کوی۔ دویم د روستو سره لګی چه روستو د قرآن صفت کوی نو اول د تورات تذکره کوی چه دا ناشنا مهٔ ګنړئ چه الله څنګه قرآن راولیږلو؟ نهٔ بلکه الله دغه شان کتابونه رالیږی۔

او دا دلیل نقلی دے د موسیٰ ؑ نه په دغه اوامرو او نواهیو۔

**ثُمَّ** : دا د ترتیب ذکری دپاره دے۔ یعنی اے زما نبی ! ته د تلاوت په ذریعه د خپل رب دا خبره هم دوی ته ووایه چه مونږ موسیٰ علیه السلام ته یو کتاب ورکړے وو چه په هغے سره مونږ خپل نعمت په هغه باندے تمام کړے وو، او چه په هغے کښې د بنی اسرائیلو دپاره د عقائدو او عباداتو او نورو تمامو خاصو او عامو احکامو تفصیل موجود وو چه هغه د هدایت ذریعه او د رحمت باعث وو، او د عدل او انصاف دعوت ئے ورکولو۔

**تَمَامًا** : أَيْ نِعْمَةً تَامَّةً۔ دا پوره نعمت وو۔ یا تَمَامًا لِّلنِّعْمَةِ عَلٰى مُوْسٰى۔ دپاره د پوره کولو د نعمت په هغه شخص چه نیکی ئے کړیده چه هغه موسیٰ ؑ دے۔ یا تَامًّا كَامِلًا یعنی پوره تمام کتاب وو۔

**الَّذِيٓ أَحْسَنَ** : ددے درے تفسیره دی : ۱– موسیٰ ؑ مُحسِن انسان وو۔ نو پدے کښې اشاره ده چه که تاسو کښې احسان پیدا شی نو ددے کتاب په شان نعمت به درنصیب کړی۔

۲– **الَّذِيٓ أَحْسَنَ** : أَيِ الَّذِيْ أَحْسَنَ مِنْهُمْ۔ نو (الذی) نه مراد څینی بنی اسرائیل دی چه په هغوی کښې دا احسان ماده وه۔ په هغوی ډیر احسانات شوی وو، یو په هغے کښې تورات وو۔ (سعدی)

۳– یا الذی نه مراد طریقه ده أَيْ تَمَامًا لِّلْأَحْكَامِ عَلَى النَّهْجِ الَّذِيْ أَحْسَنَ۔ یعنی پوره کتاب

وو د احکامو دپاره په هغه طریقه چه ښائسته ده۔ یعنی په ښائسته طریقه په کښې احکام بیان شوې وو لکه څنګه چه په قرآن کښې بیان شویدی۔ اوله معنیٰ زیاته ظاهره ده۔

لِّكُلِّ شَيْءٍ : یعنی ضروری شیان۔

لَّعَلَّهُمْ بِلِقَاءِ رَبِّهِمْ : بیا د الله کتاب او آخرت جمع کوی اشاره ده چه د الله کتاب سره تعلق ساتل په آخرت باندے د ایمان د مضبوطوالی سبب دے۔

| وَهٰذَا كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ مُبٰرَكٌ فَاتَّبِعُوْهُ |
|---|
| او دا کتاب دے چه نازل کړیدے مونږ، برکت والا دے، نو تابعداری وکړئ ددهٔ |
| وَاتَّقُوْا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ﴿۱۵۵﴾ |
| او ویریږئ دے دپاره چه په تاسو رحم وکړے شی۔ |

**تفسیر :** پدے کښې قرآن کریم ته ترغیب او معرضینو ته رټنه ذکر کوی۔ او اشاره دودے خبرے ته چه اګرکه په تورات کښې هغه صفات وو کوم چه مخکښې ذکر شو، لیکن قرآن د هغے نه زیات جلیل القدر، عظیم المرتبة او د دنیاوی او اُخروی منافعو په اعتبار سره زیات برکت والا کتاب دے، پدے وجه اے مسلمانانو ! اُوس ددے اتباع کوئ او ددے د مخالفت نه ځان اُوساتئ !۔ او روستو آیت کښې وائی چه د آخرت ورځ راروانه ده جلتئ وکړئ پدے کتاب منګولے ولګوئ۔

فَاتَّبِعُوْهُ وَاتَّقُوْا : اتباع دا ده چه پدے عمل وکړئ، او تقویٰ دا ده چه ددے د حرامو نه ځان وساتئ۔ یا وَاتَّقُوْا مُخَالَفَتَهٗ۔ یعنی ددے د مخالفت نه ځان وساتئ۔

| اَنْ تَقُوْلُوْٓا اِنَّمَآ اُنْزِلَ الْكِتٰبُ عَلٰى طَآئِفَتَيْنِ مِنْ قَبْلِنَا ۪ |
|---|
| (دے دپاره چه) ونهٔ وایئ چه بیشکه نازل کړے شوے وو کتاب په دوه ډلو مخکښې زمونږ نه |
| وَاِنْ كُنَّا عَنْ دِرَاسَتِهِمْ لَغٰفِلِيْنَ ﴿۱۵۶﴾ اَوْ تَقُوْلُوْا لَوْ اَنَّآ اُنْزِلَ عَلَيْنَا |
| او یقیناً وو مونږ د لوستلو د هغوی نه ناخبره۔ یا ونهٔ وایئ چه که نازل شوے وے په مونږ باندے |
| الْكِتٰبُ لَكُنَّآ اَهْدٰى مِنْهُمْ ۚ فَقَدْ جَآءَكُمْ بَيِّنَةٌ |
| کتاب خامخا وے به مونږ ډیر هدایت والا د دوی نه، نو یقیناً راغلو تاسو ته ښکاره بیان |

| مِّنۡ رَّبِّکُمۡ وَ هُدًی وَّ رَحۡمَةٌ ۚ فَمَنۡ اَظۡلَمُ مِمَّنۡ |
|---|
| د طرف د رب ستاسو نه او هدایت او رحمت پس څوك دے لوئی ظالم د هغه چا نه |
| کَذَّبَ بِاٰیٰتِ اللّٰهِ وَ صَدَفَ عَنۡهَا ؕ سَنَجۡزِی |
| چه دروغژن گنړی آیتونه د الله او مخ اړوی د هغے نه، زر دے چه بدله به ورکړو مونږ |
| الَّذِیۡنَ یَصۡدِفُوۡنَ عَنۡ اٰیٰتِنَا سُوۡٓءَ الۡعَذَابِ بِمَا کَانُوۡا یَصۡدِفُوۡنَ ﴿۱۵۷﴾ |
| هغه کسانو ته چه اوړی د آیتونو زمونږ نه بد عذاب په سبب د هغے چه دوی اوړی. |

**تفسیر:** پدے آیت کښ د قرآن کریم د رالیږلو مقصد بیانوی چه دا الله ددے دپاره رالیږلے دے چه د بندگانو عذرونه زائل کړی نو پدے آیتونو کښ مقصد الزام د خصم او قطع د حجت د مخالفینو ده.

اَنۡ تَقُوۡلُوۡآ : دا متعلق دے د پټ (اَنۡزَلۡنَاهُ) سره یعنی مونږ دا قرآن نازل کړو او د (اَنۡ تَقُوۡلُوۡا) نه مخکښ (لَا) یا (کَرَاهِیَةَ) لفظ پټ دے یعنی چه ونهٔ وایئ.

مطلب دا دے چه الله تعالیٰ په نبی کریم ﷺ باندے قرآن نازل کړو، او خلقو ته ئے ددے د رسولو حکم وکړو دے دپاره چه د عربو کافران د قیامت په ورځ ونهٔ وائی چه د الله کتاب خو په یهود او نصاراؤ نازل شوے وو، (که الله دوی ته ووائی چه د یهودو نصاراؤ نه به مو زدهٔ کړے وے) نو دوی به وائی چه مونږ د هغے نه خبر هم نهٔ وو چه پدے دواړو کتابونو کښ څه دی؟ ځکه چه هغه د هغوی په ژبو کښ وو، او بله دا چه د یهودو او نصاراؤ دا عادت وو چه هغوی به عربو ته د تورات او انجیل دعوت نهٔ ورکولو. نو دوی به وائی چه مونږ د هغوی د درسونو نه غافله وو.

یا دا ونهٔ وائی چه که په مونږ باندے د الله کتاب نازل شوے وے نو مونږ به ددے یهود او نصاراؤ نه زیات هدایت موندونکی وے. لکه دا قسم عذر د دوی په سورة الاعرف آیت (۱۷۲) کښ هم راغے. الله تعالیٰ وفرمایل چه اُوس ستاسو عذر ختم شو او دے رسول دا کتاب راوړو چه د الله ښکاره نخه او د هدایت چینه او سراسر رحمت دے.

لَکُنَّآ اَهۡدٰی : دوی ځان ته ډیر هدایت والا پدے وجه ووئیل چه ځانونه ډیر عقلمند، تیز ذهنونو والا او فکر والا گنړی. لیکن د دوی دا بهانه هم دروغژنه شوه لکه سورة الفاطر (۴۲) کښ راغلی دی ﴿ فَلَمَّا جَآءَهُمۡ نَذِیۡرٌ مَّا زَادَهُمۡ اِلَّا نُفُوۡرًا ﴾ هرکله چه راغلو دوی ته یره

ورکونکي، زیات نهٔ کړو هغه دوی لره مګر نفرت۔

بَیِّنَةٌ : دا د قرآن نوم دے یعني واضح کتاب او واضح بیان۔ چه تَوَهُّم د سحر پکښې نهٔ کیږي، یا ښکاره حجت۔ (القاسمیؒ)

وَهُدًی : بِإِقَامَةِ الدَّلَائِلِ وَرَفْعِ الشُّبَهِ۔ هدایت دے چه دلائل ذکر کوي او شبهات ختموي۔ (قاسمیؒ)

وَّرَحْمَةٌ : قرآن څکه رحمت دے چه پدے سره د الله رضا حاصلیږي، جنت حاصلیږي، د زړونو د خوشحالۍ ذریعه ده، د مرضونو د شفاء چینه ده، اشرف الکمالات ته بندګان رسوي نو څکه پدے رحمت باندے خوشحالي پکار ده۔

وَصَدَفَ عَنْهَا: أَيْ أَعْرَضَ غَيْرَ مُتَفَكِّرٍ فِيهَا۔ یعني مخ اړوي چه پدے کښې هیڅ فکر نکوي۔

صدف لازم او متعدي دواړه راځي لیکن ابن کثیرؒ دلته متعدي معنیٰ غوره کړیده یعني خلك اړوي ددے نه۔ صاحب المنارؒ وائي چه لازم او متعدي دواړه معنے دلته صحیح دي څکه چه په کُبراء د قریشو وغیره کښې دواړه کارونه موجود وو۔ چه خلك به ئے د قرآن د آوریدو نه منع کول او رسول الله ﷺ به ئے د تبلیغ د رسالت نه منع کولو او خپله به هم د هغے نه منع کیدل۔ نو د لازم او متعدي ترمینځ دلته تلازم دے څکه چه څوك بل د قرآن نه منع کوي نو خپله به ترے په طریق اولیٰ مخ اړوي۔ (المنار)

| هَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّآ اَنْ تَأْتِيَهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ اَوْ يَأْتِيَ رَبُّكَ اَوْ يَأْتِيَ بَعْضُ |
| --- |
| انتظار نهٔ کوي دوی مګر ددے چه راشي دوی ته ملائك یا راشي رب ستا یا راشي بعض |
| اٰيٰتِ رَبِّكَ ؕ يَوْمَ يَأْتِيْ بَعْضُ اٰيٰتِ رَبِّكَ لَا يَنْفَعُ |
| نخے (د عذاب) د رب ستا، په هغه ورځ چه راشي بعض نخے د عذاب د رب ستا فائده به نهٔ ورکوي |
| نَفْسًا اِيْمَانُهَا لَمْ تَكُنْ اٰمَنَتْ مِنْ قَبْلُ اَوْ كَسَبَتْ |
| هیڅ نفس ته ایمان راوړل د هغے چه نهٔ ئے وي راوړے ایمان مخکښې ددے نه یا ئے نهٔ وي کړے |
| فِيْٓ اِيْمَانِهَا خَيْرًا ؕ قُلِ انْتَظِرُوْٓا اِنَّا مُنْتَظِرُوْنَ ﴿۱۵۸﴾ |
| په حال د ایمان خپل نیکي، ته ووایه ! انتظار کوئ یقیناً مونږه انتظار کونکي یو۔ |

**تفسیر** : اُوس تخویف بیانوی چه دوی ایمان نهٔ راوړی نو د څه خبرے په انتظار کښی دی؟ هله به دوی ایمان راوړی چه الله ورله عذاب ورکړی او کله چه عذاب راشی بیا به دوی ایمان راوړی لیکن هغه به فائده ورنکړی، ځکه ایمان بالمشاهده فائده نهٔ ورکوی بلکه راشئ ایمان بالغیب راوړئ۔

ربط :

مخکښی الله تعالیٰ د دین اسلام د راتللو نه روستو په خپل وحدانیت او د شرك په بطلان او د نبی کریم ﷺ په رشتینوالی باندے حجت قائم کړو۔ دلائل ئے راولیږل، او آیتونه ئے نازل کړل، ددے باوجود د بتانو عبادت کونکی که د دین اسلام او د خاتم النبیین مخالفت کوی نو آیا اُوس ددے انتظار کوی چه ملائك د دوی روحونه قبض کړی، یا الله تعالیٰ قیامت راولی او د دوی د ختمولو دپاره د دوی مخے ته راشی، یا د قیامت بعض نخے راښکاره شی، هغه نخے چه د هغے د راښکاره کیدو نه روستو به د توبی دروازه بنده شی او هیڅ ایمان او عمل به په کار نهٔ راځی۔

تَاْتِيَهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ : د الله د عذابونو دغه درے طریقے دی یا ئے خپله ورکوی یا ملائك رالیږی یا مرگ راځی۔

الملائکة : یعنی ملائك د دوی د روحونو اخستو دپاره راشی، یا د عذاب استیصالی ملائك راشی چه بیخ ورله وباسی، او دا آخری عذاب د پخوانو امتونو دپاره وو۔ (المنار)

اَوْ يَاْتِيَ رَبُّكَ : د الله اتیان (راتلل) د متشابهاتو نه دی چه لفظی معنیٰ ئے معلومه ده او کیفیت ئے الله ته معلوم دے۔ عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائی : چه دا اتیان به په قیامت کښی وی۔ او ځینی وائی چه دا اتیان عبارت دے د هغه وعدو د مدد نه چه الله نبی کریم ﷺ سره کړے وے او د هغه دشمنانو سره ئے د دنیاوی عذاب وعدے کړے وے لکه د یهودیانو بنو نضیرو په باره کښی ئے وئیلی دی : ﴿ فَاَتٰىهُمُ اللّٰهُ مِنْ حَيْثُ لَمْ يَحْتَسِبُوْا ﴾ (الحشر : ۲) (المنار) (الله راغلو دوی ته د هغه ځای نه چه د دوی گمان هم نهٔ وو)

لیکن دا تاویل به هله کول صحیح وی چه د الله اتیان منی۔

او نور تاویلی تفسیرونو ته ضرورت نشته لکه چه د اتیان نه مراد امر او عذاب د هغه مراد اخلی، یا ټول آیتونه د رب مراد اخلی۔

## د بعضو نخو راتللو مصداقات

۱- کله دنیاوي استیصالي عذاب راشي، او په هغې کښې د مرګ زیات خطر وي چه انسان په ځان پوهه شي چه زۀ مرم.

۲- طُلُوْعُ الشَّمْسِ مِنْ مَّغْرِبِهَا - لکه امام بخاري رحمة الله علیه ددې آیت په تفسیر کښې د ابو هریره ؓ نه روایت کړیدې چه رسول الله ﷺ وفرمایل: «ترڅو پورې چه نمر د مغرب د طرف نه راونۀ خیژي قیامت به نۀ راځي، کله چه خلق دا ووینی نو ټول زمکې والا به ایمان راوړي، او دا به هغۀ وخت وي چه یو داسې سړي ته به ایمان راوړل فائده نۀ ورکوي چه مخکښې نه مؤمن نۀ وي».

۳/۴- مسلمؒ او ترمذيؒ د ابو هریره ؓ نه روایت کړیدې چه رسول الله ﷺ وفرمایل: «درې څیزونه چه کله رابښکاره شي نو د هیچا ایمان به فائده مند نۀ وي چه مخکښې ئې ایمان نۀ وي راوړې، د مغرب نه د نمر راختل، دجال او د زمکې حیوان (دابة الارض)». (صحیح مسلم: ۴۱۷)

صاحب المنارؒ وائي چه پدې باندې اشکال دا دې چه په نورو صحیح احادیثو کښې دا راغلي دي چه کله عیسیٰ ؑ راشي نو ټول خلك به ایمان راوړي. نو پدې حدیث کښې کیدې شي په اعتبارِ د معنیٰ سره تبدیلي شوې وي، او دا روایت بالمعنیٰ وي اګرکه سند ئې صحیح دې. (المنار۸/۱۸۶) صحیح دا ده چه عیسیٰ ؑ باندې چه خلك ایمان راوړي نو هغه ټول نۀ دي بلکه څه به د دجال ملګري کیږي، په عیسیٰ ؑ به ظاهراً ایمان راوړي د یرې نه.

۵- یا وخت د زنکدن دې چه ساه مرئ ته راورسي یعني وخت د غرغرې.

لَمْ تَكُنْ اٰمَنَتْ مِنْ قَبْلُ: یعني که کوم کافر د مغرب د طرف نه د نمر راختلو نه مخکښې ایمان نۀ وي راوړې نو د هغې نه روستو به ایمان د هغه دپاره فائده مند نۀ وي، او که مؤمن د هغې نه مخکښې نیك عمل نۀ وي کړې نو ددې نه روستو به نیك عمل هغه ته فائده نۀ ورکوي.

نو د (اَوْ كَسَبَتْ فِيْٓ اِيْمَانِهَا خَيْرًا): تقدیر د عبارت به داسې شي: [وَلَا يَنْفَعُ نَفْسًا كَسْبُهَا الْخَيْرَ لَمْ تَكُنْ كَسَبَتْ فِيْٓ اِيْمَانِهَا خَيْرًا] - یعني یو سړې مؤمن دې خو نیك عمل ئې نۀ دې کړې نو ددې علاماتو د رابښکاره کیدو نه روستو نیك عمل شروع کوي نو دا نیك عمل به

ورته فائده ورنکړي ځکه دا ایمان بالمشاهده شو نۀ ایمان بالغیب۔ او دا ایمان اضطراري شو نۀ اختیاري۔ د دواړو مطلب به دا راوځي چه یو کافر نوے مسلمانیږي یا یو فاسق بزرګ کیږي نو دے له به اعتبار نۀ وي۔ او دا مطلب امام ابن جریر طبريؒ او حافظ ابن کثیرؒ ذکر کړیدے۔

۲– دویم مطلب چه علامه صدیق حسن خان القنوجيؒ ذکر کړیدے او هغه د اهل سنتو مذهب هم دے چه ایمان د درے څیزونو نه مرکب دے، تصدیق بالجنان، (په زړه باندے تصدیق او یقین) عمل بالارکان، (په اندامونو باندے عمل) اقرار باللسان، (په ژبه باندے اقرار کول) نو دلته الله دوه حالته بیانوي چه د یو تن بیخي تصدیق قلبي نشته او اوس تصدیق جوړوي نو دا هم نۀ قبلیږي، یا د یو سړي تصدیق قلبي وو لیکن عملونه ئے نۀ وو نو دغه ایمان ئے هم الله ته قبول نۀ دے ځکه چه ایمان بلا عمل الله ته نۀ قبلیږي کله چه ټول عملونه نۀ کوي ځکه چه ددے اهل سنتو په نیز تارك د ټولو اعمال کافر دے لکه ددے دلائل په خپل ځای کښې بیانیږي۔ نو معنیٰ به دا وي: لَمْ تَكُنْ آمَنَتْ مِنْ قَبْلُ : یعني مخکښې نه ئے تصدیق نۀ وو اوس تصدیق قلبي پیدا کوي، نو دے له به اعتبار نۀ وي۔

اَوْ كَسَبَتْ فِيٓ اِيْمَانِهَا خَيْرًا : یا کوي په زور ایمان کښې نیك عمل لره چه مخکښې ئے نیك عمل نۀ وو نو دا ایمان ئے هم الله ته قبول نۀ دے۔ پدے اوسني عمل باندے ددۀ مخکنے ایمان نۀ قبلیږي۔

او د بعض اهل سنتو مذهب دا دے چه که د یو تن مخکښې ایمان (یعني تصدیق قلبي وي) لیکن عمل نۀ کوي نو بیا هم ورته ایمان فائده ورکوي لیکن ناقصه فائده۔ نو دلته به معنیٰ دا وي چه کامله فائده به ورنکړي یو نفس ته ایمان د هغه کله چه هغه په دغه ایمان کښې عمل نۀ وي کړے۔ او کامله فائده دا ده چه په غیر د عذاب نه جنت ته داخل شي۔ والصحیح ما قاله القنوجيؒ۔

مسلمؒ د ابو هریره ﷺ نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ وفرمایل: «څوك چه د مغرب د طرف نه د نمر راختلو نه مخکښې توبه وباسي، الله تعالیٰ د هغه توبه قبلوي»۔ (صحیح مسلم: ۶۹۳۵)

قُلِ انْتَظِرُوْٓا : پدے کښې کافرانو ته سخته دهمکي ده، چه جلتي وکړئ سوچ وکړئ او خپل عملونه برابر کړئ ګنے د الله عذابونه دریاندے راروان دي۔ نو پدے دهمکئ سره دوي خپله ایمان ته مجبوره کیږي۔ او پدے آیت کښې سخت وعید دے هغه خلقو ته چه

ایمان او توبه هغه وخت ته روستو کوی چه ایمان او توبه به ورته فائده نهٔ ورکوی، او هغه به د مغرب نه د نمر راختلو وخت وی۔

| اِنَّ الَّذِيْنَ فَرَّقُوْا دِيْنَهُمْ وَكَانُوْا شِيَعًا لَّسْتَ |
|---|
| یقیناً هغه کسان چه ټکړے کړے ئے دے دین خپل او شویدی ډلے مختلفے، نهٔ ئے ته |
| مِنْهُمْ فِيْ شَيْءٍ ؕ اِنَّمَآ اَمْرُهُمْ اِلَى اللّٰهِ |
| د دوی نه په هیڅ کښې، یقیناً کار د دوی سپارلے شویدے الله ته |
| ثُمَّ يُنَبِّئُهُمْ بِمَا كَانُوْا يَفْعَلُوْنَ ﴿۱۵۹﴾ |
| بیا به خبر ورکړی دوی ته په سبب د هغے چه دوی ئے کوی۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښې تخویف دے یهودو او نصاراؤ او هر هغه چا ته چه د الله او د رسول الله ﷺ د لارے نه اوړی او مختلفے ډلے جوړیږی۔

ربط : د مشرکانو د حال بیانیدو نه روستو اُوس د اهل کتابو حال بیانیږی۔

اِنَّ الَّذِيْنَ فَرَّقُوْا : دا څوك دی ؟ نو اول دا مشرکان او یهود او نصاریٰ دی۔ مشرکانو د ابراهیم علیه السلام دین تس نس کړو او جدا دین ئے جوړ کړو۔ او دغه شان یهود او نصاراؤ د انبیاؤ علیهم السلام صحیح لارے پریخودے او خپل بدعات ئے ایجاد کړل۔ لکه د هغوی تفریق په سورة البینه (۴) آیت او سورة النساء (۱۵۰) آیت کښې ذکر دے۔

بعضو وئیلی دی چه دا آیت تمامو کافرانو او هر هغه شخص ته شامل دے چه په دین کښې یوه نوے خبره ایجاد کړی چه د هغے حکم الله تعالیٰ نهٔ وی کړے۔

امام شوکانیؒ لیکی چه صحیح همدا ده چه پدے حکم کښې اهل کتاب او د مشرکانو تمامے ډلے او د مسلمانانو هغه ټول جماعتونه داخل دی چه هغوی په اسلام کښې بدعتونه ایجاد کړی او په مختلفو فرقو او جماعتونو کښې تقسیم شول۔

حافظ ابن کثیر رحمه الله لیکی چه پدے آیت کښې هر هغه شخص داخل دے چه هغه د الله دین پریخودو او د هغه مخالفت ئے وکړو، دا دین یو دے، پدے کښې هیڅ اختلاف او افتراق نشته، کومو خلقو چه اختلاف پیدا کړے او په مختلفو فرقو کښې تقسیم شو لکه چه مبتدعین او گمراه ډلو وکړل، الله خپل رسول د هغوی نه بری کړخولے دے۔

ابوداوٴد د معاویه رضی الله عنه نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ وفرمایل : ((اهل کتاب په دوه

اویا (۷۲) فرقو کښې تقسیم شوی وو، او دا امت به په درې اویا (۷۳) فرقو کښې تقسیمیږی، د دوه اویا (۷۲) ځای به جهنم وی او د یو ځای به جنت وی، او هغه به جماعت وی». او ترمذی د عبد الله بن عمرو رضی الله عنهما نه روایت کړیدے چه خلقو تپوس وکړو، یارسول الله ! هغه به څوك وی؟ نبی ﷺ وفرمایل : [مَا أَنَا عَلَيْهِ وَأَصْحَابِيْ] (کوم خلق چه په هغه لاره وی چه په هغې باندې زهٔ او زما صحابه دی)۔ (ترمذی: ۲٦٤۱ بسند حسن–البانی) نو دې روایت د مخکښې «جماعت» تشریح وکړه۔

لَسْتَ مِنْهُمْ فِيْ شَيْءٍ : ددې جملې دوه فائدې دی۔ (۱) اَیْ مِنْ عِقَابِهِمْ ۔ یعنی دوی ته سزا مهٔ ورکوه بلکه ما ته ئې پریده۔ (۲) زیات ظاهر دا دے چه اَنْتَ بَرِيْءٌ مِنْهُمْ وَهُمْ بُرَءَاءُ مِنْكَ ۔ یعنی تهٔ د دوی نه بری او بیزاره ئې او دوی ستا نه بیزاره دی، او رسول الله ﷺ چه د چا نه بیزاره شو هغه تباه شو نو دا لوی وعید دے دغه خلکو ته چه رسول الله ﷺ به د دوی نه بیزاری کوی۔ (بغوی)

(۳) یا دا چه ستا نه به د دوی په باره کښې تپوس نشی کیدے۔ (احسن الکلام)

| |
|---|
| مَنْ جَآءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهٗ عَشْرُ اَمْثَالِهَا ج |
| چا چه راتلل وکړل په نیك عمل سره نو وی به هغه له لس چنده ثواب د هغې |
| وَمَنْ جَآءَ بِالسَّيِّئَةِ فَلَا يُجْزٰٓى اِلَّا مِثْلَهَا |
| او چا چه راتلل وکړل په بدیٔ نو بدله به نشی ورکیدے هغه ته مګر په مثل د هغې |
| وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ﴿۱٦۰﴾ |
| او دوی باندې به ظلم نشی کیدے۔ |

**تفسیر:** ربط او مناسبت

۱– مخکښې د اعمالو د خبر ورکولو بیان وشو اُوس د هغې تفصیل بیانوی چه پدې طریقه به الله خبر ورکوی۔

۲– په تیر شوی آیت کښې د الله تعالیٰ د اوامرو مخالفت کونکو ته دهمکی ورکړے شویده، پدې وجه اُوس د الله اطاعت کونکو دپاره لوئی اجر بیانیږی، او دا اجر به دوی ته د قیامت په ورځ ملاویږی۔ او دلته کم نه کم اجر مراد دے، ځکه چه په احادیثو کښې د بعض

اعمالو اجر اويا چنده او د بعضو اُوه سوه چنده او بعض بے حسابه خودلے شویدے۔

امام احمدؒ او مسلمؒ د ابوذر ﷺ نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ وفرمایل ((الله تعالیٰ وائی چه څوك نيکی وکړی نو هغه ته به لس چنده یا زیات اجر ملاویږی او څوك چه بدی وکړی، نو هغه ته به همغه ملاویږی یا به ئے زهٔ معاف کوم، او څوك چه ما ته یو لویشت رانزدے کیږی نو زهٔ به هغه ته د دوه لاسونو د اُوږد والی برابر نزدے کیږم، او څوك چه ما ته پیدل راروان وی نو زهٔ به هغه طرف ته په منډه راځم))۔ الحدیث۔ (مسلم: ۷۰۱۰)

او په یو روایت کښ دی: چه د نیکئ په اراده باندے هم اجر ملاویږی۔ (بخاری: ٦٤٩١) (مسلم: ۳٥٤)

مَنْ جَآءَ: لفظ د جَاءَ کښ اشاره ده چه نیکی کول آسان دی، دا هر څوك کولے شی اګرکه منافق هم وی لیکن د نیکئ آخرت ته وړل (او هغه محفوظ ساتل تر مرګه پورے) ډیر ګران کار دے۔ او ډیر کرته انسان نیك عمل وکړی نو د غیبت او بهتان په وجه ئے ترے بل تن واخلی، یا د نیك عمل پسے روستو بد عمل وکړی لکه کفر او ارتداد۔ یا نیك عمل وکړی لیکن ریاء او سمعت پکښ وکړی نو برباد شی۔

فَلَا يُجْزٰٓى اِلَّا مِثْلَهَا : او په حدیث کښ دی [أَوْ يَغْفِرُهَا] یا به ئے الله معاف کړی، نو ځکه چه رسول الله ﷺ وروپسے وفرمایل: [وَلَا يَهْلِكُ عَلَى اللهِ اِلَّا هَالِكٌ] اُوس چه څوك هلاك کیږی نو هغه به لوی بد بخته وی۔ ځکه چه د نیکئ بدله په لس چنده ده او د ګناه په یو چند اوبیا هم د بنده ګناه د نیکئ نه زیاتیږی نو دا په رښتیا هلاك دے۔ (البخاری ومسلم: ۳٥٦) باب اذا هم العبد بحسنة، رقم الباب (٦١) والنسائی) ابن کثیرؒ

| قُلْ اِنَّنِىْ هَدٰىنِىْ رَبِّىْٓ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ۚ دِيْنًا قِيَمًا مِّلَّةَ |
|---|
| ته ووایه یقیناً هدایت کړے ما ته رب زما لارے نیغے ته چه دین پوخ دے، ملت |
| اِبْرٰهِيْمَ حَنِيْفًا ۚ وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿۱٦۱﴾ |
| د ابراهیم (علیه السلام) دے چه کلك وو په توحید او نهٔ وو د مشرکانو نه۔ |
| قُلْ اِنَّ صَلَاتِىْ وَنُسُكِىْ وَمَحْيَاىَ وَمَمَاتِىْ |
| ته ووایه! یقیناً مونځ زما او قربانی (عبادت مالی) زما او ژوند زما او مرګ زما |

| لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿١٦٢﴾ لَا شَرِيْكَ لَهٗ ج |
|---|
| خاص الله تعالیٰ لره دے چه پالونکے د مخلوقاتو دے. نشته هیڅ شریك هغه له |
| وَبِذٰلِكَ اُمِرْتُ وَاَنَا اَوَّلُ الْمُسْلِمِيْنَ ﴿١٦٣﴾ |
| او پدے سره حکم شویدے ما ته او زۀ اول یم د منونکو نه۔ |

**تفسیر** : په آخره کښې د رسول الله ﷺ بیان دے او دا ددے سورت د مضمون سره انتهائی مناسب دے او دا هم طریقے د دعوت دی چه نبی ﷺ د خپل عقیدے اظهار هغوی ته وکړی۔

او دا جواب د سوال دے چه د نبی ﷺ کوم دین دے چه مونږ په هغے روان شو؟ او خلك د کوم دین نه واوړیدل چه هلاك شول ؟ نو اُوس د هغۀ د صحیح دین بیان کوی چه صراط مستقیم دے، په ملت ابراهیمی روان دے، او په دین کښې ئے هیڅ قسم شرك نشته او هر بدنی او مالی عبادت، او ژوند او مرګ ئے د الله دپاره دے. دا حق دین دے چه چا اختیار کړو کامیاب دے۔

بل دا آیتونه په جواب د دعوت د مشرکانو کښې راغلی دی چه هغوی ووئیل : راشه زمونږ د آلهو یو کال عبادت وکړه. نو د هغے جواب دا دے چه الله ما ته نیغه لاره راخودلے ده نو زۀ څنګه شرك وکړم، توحید پریدم او په ګډوډو روان شم۔

دارنګه پدے آیتِ کریمه کښې د مکے مشرکانو او د یهودو او نصاراؤ رد شویدے چه هغوی پدے باطل ګمان کښې پراتۀ وو چه دوی په دین ابراهیمی باندے قائم دی. الله تعالیٰ رسول الله ﷺ ته حکم وکړو چه تۀ دوی ته ووایه چه ستاسو دعویٰ غلطه ده، دین د ابراهیم علیه السلام خو دین اسلام دے چه الله د خپلو مخلصو بندګانو دپاره خوښ کړیدے، او په کوم باندے چه زۀ ولاړ یم۔

امام احمدؒ د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ نه تپوس وشو : (اَىُّ الْأَدْيَانِ اَحَبُّ اِلَى اللّٰهِ ؟ قَالَ : اَلْحَنِيْفِيَّةُ السَّمْحَةُ) چه کوم دین د الله په نیز زیات خوښ دے ؟ نو نبی ﷺ وفرمایل : دین حنیفی چه په هغے کښې تنګی نشته. (یعنی دین اسلام).

(احمد ٢١٠٧) بسند صحیح لغیره)

امام احمدؒ د عائشه رضی الله عنها نه یو حدیث روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ زما

زنه په خپلو دوارو اوګو باندے کیخوده دے دپاره چه زهٔ د حبشو لوبے ته وګورم، تردے چه زهٔ ستړے کیدو سره واپس شوم۔ عائشه رضی الله عنها وئیل، رسول الله ﷺ په هغه ورځ وفرمایل : [ لِتَعْلَمَ يَهُوْدُ اَنَّ فِيْ دِيْنِنَا فُسْحَةً اِنِّيْ اُرْسِلْتُ بِحَنِيْفِيَّةٍ سَمْحَةٍ ] ((یهودیان دے پوهه شی چه زمونږ په دین کښ فراخی ده، زهٔ په دین حنیفی رالیږلے شوے یم چه په هغے کښ فراخی ده))۔ (احمد : ۲٤۸۹۹) حدیث قوی وهذا سند حسن)

دِيْنًا : دا بدل دے د محل د صراط مستقیم نه۔ یا (اَتَّبِعُ) فعل پټ دے یعنی زهٔ تابع یم د داسے دین الخ۔

قِيَمًا : ۱- یعنی مُسْتَقِيْمًا ثَابِتًا ۔ یعنی نیغ دین چه افراط او تفریط پکښ نهٔ وی۔ او مضبوط دین۔ ۲- هُوَ الدِّيْنُ الَّذِيْ يَصْلُحُ وَيَقُوْمُ بِهٖ اَمْرُ النَّاسِ فِي الْمَعَاشِ وَالْمَعَادِ ۔ دا هغه دین دے چه پدے باندے د خلکو کار په ژوند او آخرت کښ برابریږی۔ (المنار)

مِلَّةَ : اَيْ اَعْنِيْ مِلَّةَ۔ یعنی زهٔ قصد کوم ملت۔ یا اِلْزَمُوْا۔ (لازم ونیسئ ملت ابراهیمی)۔

حَنِيْفًا : چه مائل دے د ټولو شرکیاتو او باطل، او کږلیچ او ګمراهئ نه او کلك ولاړ دے په دین توحید باندے۔

قُلْ اِنَّ صَلَاتِيْ : دا تشریح ده د ملت ابراهیمی۔ نو مخکنی آیت کښ د دین بنیادی عقیدوی خبرے ته اشاره ده، او پدے آیت کښ بعض عملی جزئیات ذکر شویدی۔ (المنار)

او نبی کریم ﷺ ته حکم شویدے چه هغه مشرکانو ته ووائی کوم چه د غیر الله عبادت کوی او د غیرو په نوم ذبح کوی چه زهٔ ستاسو په تمامو شرکی خبرو کښ ستاسو مخالف یم، او زما مونځ، زما قربانی او زما ژوند او زما مرګ ټول د رب العالمین دپاره خاص دی۔

صَلَاتِيْ: عبادت بدنی۔

وَنُسُكِيْ : ۱-عبادت مالی، ۲- یا نسك جمع د نَسِيْكَةٌ ده، ذبحے ته وائی۔ (مجاهدؒ، ضحاكؒ، وسعید بن جبیرؒ) ۳- نسك : كُلُّ مَا يُتَقَرَّبُ بِهٖ اِلَى اللّٰهِ۔ هر عبادت چه په هغے سره الله ته نزدیکت کیږی۔ ٤- یا ددے نه ټول اعمال د بِرّ او طاعات دی۔ (قرطبیؒ) او دا دوه عبادتونه ئے خاص ذکر کړل ځکه چه دا اشرف او افضل دی، او دا دواړه د الله په محبت او اخلاص او تقرب باندے دلالت کوی۔ او څوك چه پدے دوارو کښ اخلاص وکړی نو هغه به په باقی اعمالو کښ هم اخلاص کوی۔ (السعدیؒ)

او یا پدے وجه چه دا هغه لوی عبادتونه دی چه شرك پدے کښ ډیر شویدے۔ (المنار)

او رازیؒ دا مطلب کمزورے اخستے دے چه [صَلَاتِيْ وَنُسُكِيْ بِقَدَرِ اللّٰهِ وَقَضَائِهٖ] زما مونځ

او قربانی د الله په تقدیر ده او د الله مخلوق ده. ځکه چه دا خو په ټولو عباداتو کښې ده او پدے کښې خو مشرك او موحد ټول برابر دی. بیا خصوصیت څه شو. (المنار)

وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِيْ : دا دواړه مصدر میمی دی. په معنیٰ د حیات او موت سره. اَیْ مَا آتِيْهِ فِيْ حَيَاتِيْ وَمَا يُجْرِيْهِ اللّٰهُ عَلَيَّ، وَمَا يُقَدِّرُ عَلَيَّ فِيْ مَمَاتِيْ (السعدی).

یعنی کوم کارونو ته چه زهٔ په ژوند کښې راتلل کوم او په ما باندے چه الله کوم کارونه په وخت د مرګ کښې راولی دا ټول به د الله دپاره وی. ۲– یا هغه عملونه چه زهٔ ئے په ژوند کښې کوم او هغه چه زهٔ په هغے باندے پس د وفات نه وصیت کوم. (قرطبی)

۳– یا هغه کارونه چه زهٔ ئے په ژوند کښې کوم او هغه ایمان او عمل صالح چه زهٔ پرے مرم (کشاف) ٤– یا هغه عملونه چه زما دپاره صدقه جاریه ګرځی لکه نیك کارونه او تصانیف چه خلك ترے فائده اخلی. نو دا آیت جامع شو ټول اعمالو صالحه ؤ لره چه هغه د مؤمن غرض دے د ژوند نه او ذخیره وی د هغه د مرګ دپاره دا ټول به د الله دپاره کوی. (المنار)

صاحب المنار وائی : ددے مطلب دا دے چه ما خپل مخ متوجه کړیدے او نیت مے راټینګ کړیدے او عزم مے مضبوط کړیدے په ټول ژوند کښې د الله د طاعت او د هغه رضا دپاره. او دا ژوند به زهٔ خرچ کوم د الله په لاره کښې تردے چه په ما مرګ راشی د الله د رضا دپاره.

یعنی الله دپاره به ژوند تیروم او د الله دپاره به مرم. نو هرکله چه مؤمن ددے خبرے یاد دهانی وکړی چه زما ژوند او مرګ د الله دپاره دے، نو په ټولو اعمالو کښې خیر تلاش کوی او د ځان دپاره پکښې کمال لټوی او کوشش کوی چه ددهٔ مرګ پداسے حال کښې راشی چه الله ترے راضی وی نو دا په ژوند باندے په ذاتی طور سره حرص نکوی او د مرګ نه یره نکوی چه یره ئے د جهاد فی سبیل الله نه منع کړی کوم چه د احقاق د حق او د ابطال د باطل او اقامت د عدل او ظالمانو د مخنیوی او د امر بالمعروف او نهی عن المنکر دپاره کیږی. (المنار).

وَبِذٰلِكَ : یعنی په دغه اخلاص.

وَاَنَا اَوَّلُ الْمُسْلِمِيْنَ : یعنی زهٔ ددے امت اولنے مسلمان یم.

قُلْ اَغَيْرَ اللّٰهِ اَبْغِيْ رَبًّا وَّهُوَ رَبُّ كُلِّ شَيْءٍ ۭ وَلَا تَكْسِبُ

تهٔ ووایه ! آیا سوئ د الله نه طلب کړم رب لره او هغه رب د هر شی دے، او نهٔ کوی

| |
|---|
| كُلُّ نَفْسٍ اِلَّا عَلَيْهَا وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ |
| هيڅ نفس مكر وبال به ئې په هغه وي او نهٔ پورته كوي پورته كونكې (ګنهګار) |
| وِّزْرَ اُخْرٰى ۚ ثُمَّ اِلٰى رَبِّكُمْ مَّرْجِعُكُمْ فَيُنَبِّئُكُمْ |
| بوج د بل چا، بيا رب ستاسو ته واپس كيدل ستاسو دى نو خبر به دركړي |
| بِمَا كُنْتُمْ فِيْهِ تَخْتَلِفُوْنَ ﴿۱٦٤﴾ |
| په هغې چه تاسو په هغې كښې اختلاف كولو۔ |

**تفسير** : مخكښې د توحيد الوهيت بيان وشو اُوس توحيد ربوبيت بيانيږي چه د الوهيت دليل دے۔ او مشركانو نبي كريم ﷺ ته د خپلو بتانو د عبادت دعوت وركړو نو الله تعالىٰ هغه ته وفرمايل چه ته دوى ته ووايه چه آيا زهٔ د الله نه سوئ بل كوم رب ونيسم چه هغه د الله په عبادت كښې شريك كړم، زهٔ د الله نه سوئ نهٔ په بل چا توكل كوم او نهٔ بل چا طرف ته رجوع كوم، ځكه چه الله د هر شي خالق او مالك دے، د هغه په لاس كښې هر څه دي۔

وَلَا تَكْسِبُ كُلُّ نَفْسٍ : دا جواب د سوال دے چه هغوى ووئيل چه آزار او ګناه دې ئې زمونږ په غاړه وي خو ته د جوړ جاري دپاره زمونږ سره شرك وكړه ـ عبد الله بن عباس ﷺ فرمائي: وليد بن مغيره ووئيل : [اِتَّبِعُوْا سَبِيْلِيْ اَحْمِلُ عَنْكُمْ اَوْزَارَكُمْ] (بغوى)

زما خبره ومنئ زهٔ به ستاسو نه بوجونه پورته كړم۔ نو جواب وشو چه د هر عمل جزا او سزا به كونكي ته وركړے كيږي او په بل چا باندے د هغه بوج نشي اچولے۔ نو كه ما شرك وكړو نو تاسو ما د الله نه نشئ خلاصولے۔

يا بغير د سوال وجواب نه هم صحيح دے۔ او دا يوه قاعده او شرعي قانون دے چه د هر كسب كونكي جزا او سزا به د هغه په سر راځي يعني كه زهٔ شرك وكړم نو په قيامت كښې به هر انسان ته جزا او سزا ملاويږي نو الله به ما ته د هغې سزا راكوي، نهٔ تاسو ته، نو ولے داسے عمل وكړم چه صبا ما ته په هغې سزا راكړے كيږي۔ ځكه چه دا بل قانون دے چه (وَلَا تَزِرُ) يعني يو تن د بل چا د ګناه بوج نشي پورته كولے۔ بلكه هر سړے به د خپل ځان په غم اخته وي۔ او دا جزا او سزا به كوم ځاى ملاويږي؟ نو فرمائي چه دا به هله ملاويږي چه بنده خپل رب ته په قيامت كښې واپس شي، هغه به بندګانو ته د اعمالو بدلے وركوي،

او هیڅ یو سړی به د بل چا په کار نهٔ راځي۔ او پدې قانون کښې رد د شرك هم دے چه مشرکان پدے وجه د معبودانو عبادت کوي چه دوی دا گمان لري چه دوی به په قیامت کښې د دوی نه بوجونه د گناهونو پورته کوي یا به ئې په الله باندې معاف کوي۔ (المنار)

| |
|---|
| وَهُوَ الَّذِىْ جَعَلَكُمْ خَلٰٓئِفَ الْاَرْضِ وَرَفَعَ |
| او الله هغه ذات دے چه گرځولي ئې يئ تاسو نائبان د زمکے او پورته کړي ئې دي |
| بَعْضَكُمْ فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجٰتٍ لِّيَبْلُوَكُمْ |
| بعض ستاسو دپاسه د بعضو په درجو (د علم او مال کښې) دے دپاره چه امتحان وکړي په تاسو |
| فِىْ مَآ اٰتٰكُمْ ؕ اِنَّ رَبَّكَ سَرِيْعُ الْعِقَابِ ۖ ز صلے |
| په هغے کښې چه درکړي ئې دي تاسو ته، يقيناً رب ستا زر عذاب ورکونکے دے |
| وَاِنَّهٗ لَغَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۶۵﴾ |
| او يقيناً هغه خامخا بخونکے رحم کونکے دے۔ |

**تفسیر** : په آخری آیت کښې بَیَانُ اِبْتِلَاءِ اللهِ عَلَی الْخَلْق دے۔ یعنی الله تعالیٰ دا انسانان د امتحان دپاره پیدا کړیدي، او پدے خبر کښې ډیرے فائدے دي، یو دا چه کله انسان پدے پوهه شي چه زهٔ د امتحان دپاره پیدا یم نو بیا په ژوند کښې ډیر احتیاط کوي۔ او کله چه ناخبره وي نو هغه کښې تکبر او فساد راځي۔

او په اوله حصه د آیت کښې رد دے په مشرکانو چه دوی ته الله تعالیٰ د علاقے مشري ورکړه او د مالونو او رزقونو فراخي ئې پرے راوسته، نو دوی په تکبر کښې راغلل او گمان ئې راغے چه دنیا زمونږ جاگیر دے، او همیشه به دا مزے کوو لکه اکثرو حُکامو ته چه کله حُکومت ملاؤ شي دا گمان کوي چه بس دا بادشاهي زما ده او زما به وي او د مخکنو نه عبرت نهٔ اخلي نو الله دا ذهن سازي کوي چه اے انسانه! تهٔ به پدے زمکه کښې همیشه نهٔ یې یو وخت پورے راغلے ئې د امتحان دپاره۔

وَهُوَ الَّذِىْ : او دا جمله ئې په ماقبل عطف کړه ځکه چه دا هم د توحید د سیاق سره مناسبه ده ځکه چه پدے کښې د مشرکانو د خرافاتو رد دے۔

الله تعالیٰ انسانانو لره زمکے ته رالیږلي دے دپاره چه دوی د یو بل نه روستو آباد کړي او

یو مړ شي نو بل د هغه وارث شي، او کله چه هغه مړی نو د هغه اولاد د هغه وارثان کړي۔ معلومه شوه چه انسانانو لره همیشوالے نشته نو فکر وکړه، فناء دربانديے راروانه ده۔

وَرَفَعَ بَعْضَكُمْ فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجٰتٍ : او د دوي ترمینځ ئے د مراتبو فرق کړيے، او یو له ئے په بل باندیے په مختلفو اعتبارونو سره فوقیت ورکړيے، دا درجات عام دي په ارزاقو، اخلاقو، محاسن، مساوي، مناظر، اشکال، الوانو، او قوت او عافیت، مالداری، او غریبی، جهل او علم، عقل او حُمق (کم عقلتیا) او عزت او ذلت کښ فرق دیے۔ (بغوی، ابن کثیر، قرطبی، المنار)

نو پدیے کښ دا مقصد نهٔ دیے چه انسان به تکبر کوی بلکه دا ددیے دپاره چه په دوی امتحان وکړي، چه بندګانو کښ څوك د الله بندګی کوی او د هغه سره شرك نهٔ کوی او څوك د هغه مخالفت کوی او د هغه سره شرك کوی۔ نو پدیے کښ بندګانو ته دعوت دیے چه راشئ د الله صحیح بندګی وکړئ۔

اِنَّ رَبَّكَ سَرِيْعُ الْعِقَابِ : پدیے کښ مخالفت کونکو ته یره ورکول او خپل بندګی کونکو ته ترغیب دیے یعنی بیشکه ستا رب ډیر جلت سزا ورکونکے دیے هغه خلقو ته چه د هغه نافرمانی او د هغه د رسول مخالفت کوی، او څوك چه د هغه او د هغه د رسول اطاعت کوی نو د هغه مغفرت کوی او په هغه باندیے رحم کوی۔ اَللّٰهُمَّ ارْحَمْنَا يَا رَحْمٰنَ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَأَدْخِلْنَا دَارَكَ دَارَ النَّعِيْمِ بِأَمْنٍ وَسُكُوْنٍ، آمین۔

## امتیازات او خصوصیات د سورت

۱– پدیے کښ د شرك د ټولو انواعو رد دیے۔
۲– شپږ عقبات پکښ خصوصي ذکر دي۔
۳– د جهل العرب تذکره پکښ خصوصي ده۔
٤– لس احکام د حکمة پکښ ذکر دي۔
(۵) او د الله تعالیٰ د معرفت عجیب تفصیل پکښ ذکر دیے۔
٦– محاجة المشرکین۔ (د مشرکانو سره بحث او مناظره) پکښ ذکر ده۔
(۷) انواع (اقسام) د مشرکینو۔
(۸) توحید العبادة ته هدایت ونیلے شویدیے۔
(۹) په فِرقو باندیے رد۔

(۱۰) د عذاب قبر او د حساب اثبات په مثال سره شویدے۔

(۱۱) حشر الحیوانات۔ (د حیواناتو آخرت ته راجمع کیدل)

(۱۲) د الله تعالیٰ علم محیط او په دنیا او آخرت کښې د هغه د قدرت تامه بیان په ﴿ وَمَا مِنْ دَابَّةٍ فِي الْأَرْضِ﴾ کښې شویدے۔

(۱۳) د (وَلِيًّا، حَكَمًا، رَبًّا) تذکره پکښې ناشنا شویده۔

(۱٤) د نمر د مغرب نه د راختو او د دابة الارض تذکره۔

(۱۵) د رسول الله ﷺ براءت د هغه چا نه چه د هغه د سنتو خلاف کوی۔ او دغسے نور۔

## ختم شو تفسیر د سورة الانعام

په خصوصی رحم او کرم د رب العالمین سره، ولله الحمد والمنة وله الثناء الحسن وسبحانك اللهم وبحمدك لا اله الا انت استغفرك واتوب اليك وصلى الله عليه وسلم على نبينا محمد ﷺ وعلى اله وصحبه اجمعين۔

د رمضان د څلیریشتم روژه ماتی نه روستو۔

المرقوم : ساعت : ۳۹ : ۸ تاریخ : ۱٤۳۵ هجری رمضان۔

الموافق ۲۲/۷/۲۰۱٤ء لیلة الاربعاء۔

اسریت – کالام روډ سوات۔ بید الفقیر ابی زهیر سیف الله عفی عنه۔

قال الشیخ ابو محمد امین الله حفظه الله : زهٔ د تصحیح نه فارغ شوم په یوم الاحد صفر (۷) ۱٤۳٦ هـ، په دمام سعودی عرب کښې عند هجرتی هناك۔

❁❁❁❁

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ ـ

| آیاتها (۲۰۶) | (۷) سورة الاعراف مکیة (۳۹) | رکوعاتها (۲٤) |
| --- | --- | --- |

## تفسیر سورة الاعراف

**نوم :** ددې سورت همدا یو نوم دې او بعض وائي چه دې ته (المص) هم وائي، اعراف ورته ځکه وائي چه پدې کښې د اعراف والو ناشنا واقعه ذکر ده، نو پدې نوم سره هغه دعوت ته متوجه کول مقصد دې چه د هغې تفصیل روستو راځي۔

**فضیلت :**

عائشه رضی الله عنها د نبی کریم ﷺ ارشاد نقل کوی :

[مَنۡ اَخَذَ السَّبۡعَ الۡاَوَّلَ مِنَ الۡقُرۡاٰنِ فَهُوَ حَبۡرٌ]

دا سورت په هغه سَبع طِوَال (اُوه اوږدو) سورتونو کښې داخل دې، څوک ئې چه یاد کړی نو په علماؤ کښې شمارلے کیږي۔

(احمد : ۲٤٥۷٥ و ۲٤٤۸۷) واسناده حسن، والحاکم ۱/۵٦٤) وقیام اللیل لابن نصر ص (٦۹) ومشکل الآثار للطحاوی (۲/۱۵۳/۱۵٤) والصحیحة (۵/۳۸۵)

**د نزول زمانه:** د اتو آیتونو نه سِوئ ټول سورت مکي دې۔ هغه اته آیتونه د ﴿وَاسۡئَلۡهُمۡ عَنِ الۡقَرۡیَةِ﴾ نه تر ﴿وَاِذۡ نَتَقۡنَا الۡجَبَلَ فَوۡقَهُمۡ﴾ پورې دی۔ (بغوی)

ابوداودؒ او نسائيؒ روایت کړیدے چه نبی کریم ﷺ به دا سورت د ماښام په دوه رکعتونو کښې لوستلو۔

### مناسبت

۱– مخکښې سورت کښې د شرك فی التحلیل والتحریم رد وشو نو پدې سورت کښې یوه بله نوع د دغه شرك ده چه هغه په بربنډه طواف کول او د بعض حلالو څیزونو حرامول دی د حج په ورځو کښې۔

۲– مخکښې سورت کښې د الله تعالیٰ تعارف بیان شو نو دلته حکم کوی په اتباع د ما

اُنْزِلَ. یعنی هرکله چه الله ډیر وپیژندو نو اُوس به د هغه د کتاب او وحی تابعداری کوئ.

۳- مخکښی سورت کښی عقلی دلیلونه زیات وو په مسئله د توحید باندے او پدے سورت کښی نقلی دلیلونه زیات دی.

٤- زمونږ شیخ محترم (رستمیؒ) فرمائی : مخکښی سورت کښی اثبات د توحید وشو په تفصیل سره نو پدے سورت کښی د منکرینو احوال ذکر کوی په دولس نمونو د عذاب سره چه هغه اُوه تیر شوی قومونه دی او بل ابلیس او هغه قوم چه په خپلو اصنامو (بتانو) باندے منجوران شوی وو او د سخی عبادت کونکی او د قول شرعی بدلونکی او سبت (خالی) والا او (وَالَّذِیْ آتَیْنَاهُ آیٰتِنَا) (یعنی هغه ملا چه آیتونه ورکړے شوی وو، بیا هغه گمراه شو) په ټولو باندے مختلف عذابونه راغلی وو. (احسن الکلام)

## مقصد او موضوع د سورت :

پدے سورت کښی غټ درے مقاصد دی چه د یو بل مُمد (مدد کونکی) او تاکید دے.

(١) اَلْاِنْذَارُ. بندگانو ته د انکار او تکذیب نه یره ورکول چه د پخوانو قومونو په شان عذابونه به دریاندے راشی. (٢) وَالتَّذْکِیْرِ. مؤمنانو ته نصیحت او ترغیب ورکول چه تاسو ته به نجات ملاویږی لکه پخوانو مؤمنانو ته چه ملاؤ شوے وو.

(٣) مقصودی موضوع پکښی دعوت دے اتباع د مَا اُنْزِلَ ته. یعنی تاسو ته چه د کتاب او سنت په شکل کښی کومه وحی راغی ددے مطابق ژوند تیر کړئ. او چا چه د مَا اُنْزِلَ تابعداری نهٔ ده کړے نو د هغوی قباحتونه او پریشانیانی بیانوی لکه ابلیس ونکړه نو تباه شو، فرعونیانو، عادیانو، ثمودیانو، قوم لوط او قوم شعیبؑ ونکړه نو هلاك شو. بنی اسرائیلو اول کښی تابعداری وکړه لیکن روستو ئے مخالفت شروع کړو نو الله تعالیٰ هغوی هم ذلیله کړل. یو مُلا ته الله آیتونه ورکړی وو نو هغه دنیا غوره کړه او هغه ئے پریخودل نو الله د شیطان تابع کړو.

پدے وجه پدے سورت کښی به (کَذَّبُوْا بِآیٰتِنَا) (وَکَانُوْا عَنْهَا غٰفِلِیْنَ) الفاظ زیات راځی. نو د الله د آیتونو فضائل او د هغے نه د اعراض بیان به ډیر کوی او ورسره په هغے باندے شکر کول به بیانوی. او دا درے واړه موضوعات په دویم او دریم آیت کښی راغلی دی.

## خلاصه :

د سورت په اول کښې ترغیب دے قرآن کریم ته بیا دغه دوه موضوعات بیا په دریم آیت کښې اتباع د مَا اُنْزِلَ، بیا په (٤) کښې تخویف چه دا هغه انذار دے، بیا د قیامت تخویف چه د وحی په باره کښې به د رسولانو او قومونو نه تپوس کیږی، او د اعمالو وزن بیانوی چه په اتباع د ما اُنزل سره به حساب کیږی۔ بیا د چا وزن چه سپك شو نو هلاك شو او په (١٠) آیت کښې شکر طرفته ترغیب دے چه ددے نعمتونو په مقابله کښې د الله وحی نۀ منل ناشکری ده، بیا ئے واقعه د آدم علیه السلام راوړے ده د ډیرو مقاصدو دپاره یو مقصد پکښې اتباع د مَا اُنْزِلَ ته دعوت دے، د واقعے نه روستو په هغے باندے په درے ځل (یَا بَنِیْ آدَمَ) سره څلور تفریعات کوی او بل په (قُلْ مَنْ حَرَّمَ) سره کوی، بیا تخویف او بشارت دے په (٣٥) آیت کښې۔ بیا ئے د آخرت سخت تخویفات او حالات تر (٥٤) (اِنَّ رَبَّكُمُ اللّٰهُ) پورے بیان کړیدی۔
بیا په یو رکوع کښې الله خپل تعارف کړیدے چه د هغے مناسبت به هلته راځی ان شاء الله تعالیٰ۔ د هغے نه روستو واقعات الانبیاء (نقلی دلیلونه) ئے پدے خبرو باندے پیش کړیدی چه د هغے فوائد به په خپل خپل مقام راځی تر نهمے سیپارے پورے، بیا د هغے نه روستو ئے پدے واقعاتو باندے تعقیب کړیدے او د هغے نه روستو ئے تفصیلی واقعه د موسیٰ علیه السلام بیان کړیده بیا ئے په هغے باندے تفریعات کړیدی بیا ئے په آخری رکوعاتو کښې رد د شرك ذکر کړیدے بیا په آخر د سورت کښې د تبلیغ او دعوت لس طریقے او آداب خودلی دی۔ دا وو ددے سورت اجمال۔

| |
|---|
| الٓمّٓصٓ ﴿١﴾ كِتٰبٌ اُنْزِلَ اِلَيْكَ |
| الله پوهه دے په معنیٰ ددے حروفو، دا کتاب دے نازل کړے شویدے تا ته |
| فَلَا يَكُنْ فِيْ صَدْرِكَ حَرَجٌ مِّنْهُ لِتُنْذِرَ بِهٖ |
| نو نۀ دی وی په سینه ستا کښې تنگسیا ددے نه، دے دپاره چه یره ورکړے پدے سره |
| وَذِكْرٰى لِلْمُؤْمِنِيْنَ ﴿٢﴾ |
| او یاداشت دے دپاره د ایمان والو۔ |

**تفسیر : الٓمّٓصٓ :** د حروف مقطعاتو تفصیل مخکښې تیر شویدے، دلته ورسره (ص) زیات شو اشاره ده چه پدے سورت کښې به رازونه زیات وی او اشاره ده ډیرو قصو ته۔
او پدے کښې مجازی معنیٰ عبد الله بن عباس او سعید بن جبیرؒ داسے کړیده چه [اَنَا اللّٰهُ،

اَعْلَمُ وَاَفْصِلُ] زۀ الله یم، عالِم یم، او تفصیل درته کوم) (ابن جریرؒ وابن کثیرؒ والبغویؒ)

صاحب المنارؒ فرمائی : په اوږدو سورتونو کښې حروف مقطعات راغلی دی ځکه چه دا سورتونه به په مکه کښې په مشرکانو او په مدینه کښې په اهلِ کتابو لوستلے کیدل نو پدے حروفو کښې اشاره وه اثبات د نبوت او کتاب ته۔

او پدے حروفو کښې اشارات دی مُعَیَّنو معنو ته چه بعضو خلکو ته ښکاره کیږی نۀ بعضو ته، یا غیر مُعَیَّنو معنو ته چه په هغے کښې د خلکو ذهنونه مختلف طرفونو ته لاړ شی او د هغے نه علم او عبرت حاصل کړی خو پدے شرط چه د قرآن د هدایت سره به متفق وی، پدے وجه بعض سلفو مفسرینو دا حروف د الله نومونو ته اشاره ګنړلے ده، یا د کلام جملے ئے جوړے کړیدی، محمد بن کعب القرظیؒ وائی : الف، الله او میم الرحمن او صاد صمد ته اشاره ده۔ (ابن ابی حاتمؒ وابو الشیخؒ)

ابو الشیخ د ضحاکؒ نه نقل کړیدی چه دا اشاره ده (اَنَا اللّٰهُ الصَّادِقُ) ته یعنی زۀ الله یم چه رشتینی بیان کوم۔ یا دا نومونه د سورتونو دی۔ (المنار)

او ابن رَوْقؒ او قُطربؒ وائی چه کافرانو به وئیل چه دے قرآن ته غوږ مۀ ایږدئ او پدے کښې شور کوئ نو الله اراده وکړه چه د دوی اصلاح وشی او قرآن ته غوږ کیږدی نو د سورتونو په اول کښې ئے داسے ناشنا الفاظ راوړل دے دپاره چه کفار ورته په تعجب کښې پریوځی او دا سبب جوړ شی د غوږ کیخودو نو بیا به پرے نور قرآن ولوستلے شی)

(تفسیر الرازی والمنار)

مطلب د آیت : نبی کریم ﷺ ته وئیلے کیږی چه دا کتاب ستا د رب د طرف نه نازل شویدے، پدے وجه ته پدے یره زړۀ مۀ تنګوه چه دا مشرکان تا دروغژن ګنړی، ستا خبره نۀ منی، او تا ته تکلیف دررسوی۔ تۀ د صبر او استقامت نه کار واخله، الله په هر حال کښې ستا حمایت کونکے او مرسته کونکے دے۔

کِتٰبٌ : دا خبر د مبتدا دے (هُوَ، یا هٰذَا) او کتابٌ ئے نکره راوړه اشاره ده تعظیم او تفخیم ته۔

اُنْزِلَ : دا ئے مجهول راوړه، اشاره ده ادعاء د ظهور د فاعل ته۔ یعنی نازلونکے ئے هر چا ته معلومیدل پکار دی ځکه چه دا بل څوك نشی نازلولے سوئ د الله نه۔

اُنْزِلَ اِلَیْكَ : دا صفت د کتاب دے او پدے کښې تعظیم او قدر د قرآن او د رسول ته اشاره ده۔ (المنار)

فَلَا یَکُنْ فِیْ صَدْرِكَ حَرَجٌ مِّنْهُ : ۱–اَیْ مِنْ اِبْلَاغِهٖ ۔ یعنی ددے د بیانولو او تبلیغ نه

سینه مهٔ تنګوه چه دا خو ګران کار دے او پدے کښې به د خلکو مخالفتونه مخے ته راځي۔
۲- أَيْ عَنْ عَدَمِ إِيْمَانِهِمْ۔ یعنی که دا کافران پرے ایمان نهٔ راوړی نو زړه ورته مهٔ تنګوه۔
۳- حرج په معنیٰ د شك سره دے۔ (ابن عباسؓ ومجاهدؒ وقتادةؒ)
یعنی ستا په زړهٔ کښې دے دا شبهه او شك تیر نشی چه قرآن د الله کلام دے، بلکه یقین کوه چه دا د الله کلام دے۔ (الدر المنثور وابن کثیر)
**فائده ۱۵** : حافظ ابن القیمؒ په بدائع التفسیر او الصواعق المرسله کښې ډیر مزیدار کلام لیکلے دے چه څوك د الله کتاب (وحی) نهٔ منی نو ددهٔ سینه تنګه ده، څوك چه د الله وحی منی او بیا وائی چه پدے کښې پوره احکام نشته نو ددهٔ سینه هم تنګه ده، څوك چه دا وائی چه د قرآن ظاهر مخالف دے د صریح معقول (عقل) نه نو ددهٔ سینه ډیره تنګه ده ځکه چه د سړی چه څومره عقل زیاتیږی نو د قرآن نه ئے د سینے تنګوالے وړاندے کیږی۔
څوك چه وائی قرآن الله په خپل رسول نازل کړیدے لیکن دا اقرار نهٔ کوی چه دا د الله کلام دے چه پدے باندے ئے تکلم کړیدے بلکه دا ئے مخلوق ګڼړلے دے نو ددهٔ په سینه کښې هم تنګوالے دے، او څوك چه وائی چه په معانیو ئے تکلم کړیدے نهٔ په الفاظو، ددهٔ هم ددے مناسب سینه تنګه ده، او څوك چه دا ګمان لری چه قرآن په معرفة د حق کښې کافی نهٔ دے بلکه بندګان ددے سره معقولاتو او آراؤ او قیاسونو او منطقی قواعدو او عقلی مباحثو ته محتاج دی نو ددهٔ په سینه کښې د تولو نه زیات حرج دے۔
او څوك چه وائی چه قرآن کښې بعض هغه خبرے دی چه د صریح عقل خلاف دی، ددهٔ سینه خو ډیره تنګه ده، څوك چه عقیده لری چه د قرآن آیتونو نه علم او یقین نهٔ حاصلیږی نو ددهٔ سینه ډیره تنګه ده،
څوك چه وائی چه قرآنی خطاب جمهوری دے چه عوامو ته د فائده منو ځیزونو خیال وراچوی او ددے په نفس الامر کښې هیڅ حقیقت نشته نو ددهٔ په سینه کښې د تولو نه لوی حرج دے۔ څوك چه دا وائی چه پدے کښې د الله اسماء او صفات (کوم چه اُوچت او اشرف توحید دے) تول مجازات او استعارات او تشبیهات دی او حقائق ئے نهٔ دی مراد (یعنی پدے کښې تحریفات او تاویلات کوی) نو ددهٔ په سینه کښې لوی حرج دے۔
دارنګه څوك چه قرآن پریدی او پدے باندے بل کتاب دپاسه کوی نو ددهٔ سینه تنګه ده او دا ګمان لری چه په قرآن کښې پوره هدایت نشته۔ نو ددے تولو خلکو په سینو کښې د قرآن نه حرج او شك موجود دے او د دوی په حق کښې نهٔ هدایت دے، نهٔ شفاء او نهٔ رحمت

دے او نۀ دوی لره کافی کتاب دے، دا ددوی په خپل ځان گواهی ده۔ نو مسلمان به قرآن ته سینه فراخه کوی او دا به وائی چه پدے کښې هر شے او هر خیر شته او تول هدایت دے، دارنګه د بیان او د تبلیغ نه به ئے هم سینه نۀ تنګوی۔ (الصواعق المرسلة ۱۵۱۹/٤)

**فائده۲** : امام راغبؒ وائی : دا جمله یا دعاء ده (یعنی ستا سینه دِے الله تنګه نکړی) یا نهی ده (یعنی خپله سینه پدے سره مۀ تنګوه) او دا ئے پدے وجه وئیلے ده چه دا مقام ډیر لوی دے نو دا ګمان کیدے شو چه د رسول الله ﷺ په سینه کښې تنګی پیدا شی ځکه چه د قرآن نازلیدل څه وړه خبره نۀ ده او دا ذمه واری سرته رسول ډیر مشکل کار دے مګر که الله د بنده سره تائید او مدد ملګرے کړی، رسول الله ﷺ باندے به په سخته یخه ورځ کښې وحی نازلیدله نو هغه به خُوَله شو، د الله کلام ته کوم زړه تینګیدے شی کله چه د الله تعاونِ او مدد ورسره نۀ وی۔ (نقله فی المنار)

**لِتُنْذِرَ بِهٖ** : انذار معنیٰ مخکښې تیره شویده اَلْاِعْلَامُ مَعَ التَّخْوِیْفِ ۔ یعنی خلکو ته داسے خبر ورکړه چه د هغے سره یره ملګرے وی یعنی خلکو ته ووایه چه که دا کتاب نۀ منئ نو داسے عذاب به دریاندے راشی لکه په عادیانو او ثمودیانو چه راغلے دے۔

**وَذِكْرٰى** : ۱- د مؤمنانو دپاره یاداشت شی ځکه چه هغوی به خبره رایاده کړی چه پخوانو مؤمنانو طاعت کړے وو نو الله ورله ښه انجام ورکړو نو مونږ له به ئے هم راکړی۔

۲- پخوانی قومونه د مخالفت کولو سره هلاك شو که مونږه ئے وکړو دغه شان به هلاك شو۔ نو مؤمن به د مؤمنانو او د کفارو دواړو د حال نه فائده اخلی۔

راغبؒ وائی : ذکریٰ زیات ذکر (یادولو) ته وائی نو دا د ذکر نه أبلغ (ډیر کامل) لفظ دے۔

| اِتَّبِعُوْا مَآ اُنْزِلَ اِلَیْكُمْ مِّنْ رَّبِّكُمْ |
| --- |
| تابعداری وکړئ د هغه څه چه نازل کړے شویدی تاسو ته د طرف د رب ستاسو نه |
| وَلَا تَتَّبِعُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ اَوْلِیَآءَ ۚ قَلِیْلًا مَّا تَذَكَّرُوْنَ ﴿۳﴾ |
| او تابعداری مۀ کوئ سوئ د هغه نه د نورو دوستانو، لږ شان نصیحت اخلئ تاسو۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښې د قرآن د رالیږلو حکمة بیانیږی۔ او دا د انذار یو صورت دے۔ الله تعالیٰ تول عالَم ته خطاب کوی فرمائی : اے خلقو! تاسو د هغه شی تابعداری وکړئ چه ستاسو د رب د طرف نه ستاسو دپاره نازل شویدے، او هغه قرآن او سنت دے، (کما قال

القرطبيؒ والشوكانيؒ) لكه چه الله تعالىٰ په سورة النجم آيت (٤/٣) كښې فرمايلي دي: ﴿وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوٰى اِنْ هُوَ اِلَّا وَحْيٌ يُّوْحٰى﴾ يعنى نبى كريم ﷺ د خپل نفس د خواهش مطابق خبرے نۀ كوى بلكه دا خو وحى ده چه په دۀ نازليږى).

وَلَا تَتَّبِعُوْا مِنْ دُوْنِهٖۤ اَوْلِيَآءَ : اَلَّذِيْنَ يَدْعُوْنَكُمْ اِلَى الْكُفْرِ وَالشِّرْكِ وَاتِّبَاعِ الْبِدَعِ وَالْاَهْوَاءِ الْفَاسِدَةِ] يعنى څوك چه تاسو كفر او د بتانو عبادت او بدعاتو او د نفس د خواهشاتو تابعدارئ ته راغوارى نو د هغوى خبره مۀ منئ. (خازن ١٨١/٢)

څكه څوك چه د چا عبادت كوى يائے طاعت كوى نو د هغه سره ئے دوستى وى نو الله فرمائى چه زما نه په غير بل داسے دوست مۀ نيسه چه تۀ ورله عبادت وكړے يا ورله مطلقاً اطاعت وكړے. (قرطبيؒ)

[وَلَا تَتَّخِذُوْا مَنْ عَدَلَ عَنْ دِيْنِ اللّٰهِ وَلِيًّا].

يعنى څوك چه د الله د دين نه واوړيدو نو هغه دوست مۀ جوړوئ. (قرطبيؒ)

نو كوم ملا يا پير وغيره چه ددے نه خلاف وى نو د هغه تابعدارى مۀ كوئ.

دا آيت اشارةً دلالت كوى چه كوم امامان، مجتهدين، محدثين، او مفسرين (كوم چه د الله اولياء دى) د دوى خبره چه كله د كتاب او سنت خلاف راشى نو د هغے منل نشته. او د هغے نه الله تعالىٰ منع وفرمائيله.

مِنْ دُوْنِهٖۤ : كښې ضمير (ما) ته هم راجع كيدل صحيح دى، معنىٰ به دا وى: [وَلَا تَتَّبِعُوْا مِنْ دُوْنِ كِتَابِ اللّٰهِ اَوْلِيَاءَ تُقَلِّدُوْنَهُمْ فِىْ دِيْنِكُمْ] . تاسو د الله د كتاب نه سوئ د نورو دوستانو پسے مۀ روانيږئ چه تاسو په دين كښې د هغوى تقليد كوئ او د هغوى حلال او حرام منئ. (فتح القدير للشوكانيؒ).

صاحب المنار جامع اُوږد تعبير كوى: [مِنْ دُوْنِهٖ اَوْلِيَاءَ : تَتَّخِذُوْنَهُمْ مِنْ اَنْفُسِكُمْ وَلَا مِنَ الشَّيَاطِيْنِ الَّذِيْنَ يُوَسْوِسُوْنَ لَكُمْ بِمَا يُزَيِّنُ لَكُمْ ضَلَالَ تَقَالِيْدِكُمْ وَالْاِبْتِدَاعَ فِىْ دِيْنِكُمْ فَتُوَلُّوْنَهُمْ اُمُوْرَكُمْ وَتُطِيْعُوْنَهُمْ فِىْ وَضْعِ اَحْكَامِ الْحَلَالِ وَالْحَرَامِ زَاعِمِيْنَ اَنَّهٗ يَجِبُ عَلَيْكُمْ تَقْلِيْدُهُمْ لِاَنَّهُمْ اَعْلَمُ مِنْكُمْ اَوْ لِلْاِقْتِدَاءِ بِمَا كَانَ عَلَيْهِ آبَاؤُكُمْ ٢- وَلَا اَوْلِيَاءَ تَتَّخِذُوْنَهُمْ لِاَجْلِ اِنْجَاءِكُمْ مِنَ الْجَزَاءِ عَلٰى ذُنُوْبِكُمْ وَجَلْبِ النَّفْعِ لَكُمْ اَوْ رَفْعِ الضُّرِّ عَنْكُمْ زَاعِمِيْنَ اَنَّهُمْ بِصَلَاحِهِمْ يُقَرِّبُوْنَكُمْ اِلَيْهِ زُلْفٰى، اَوْ يَشْفَعُوْنَ لَكُمْ عِنْدَهٗ فِى الْآخِرَةِ اَوِ الدُّنْيَا]

يعنى تاسو د الله نه سوئ دوستان مۀ نيسئ چه د ځان نه ئے مقرر كړئ او نۀ د شيطانانو نه دوستان نيسئ چه هغوى تاسو ته ستاسو گمراه تقليدونه او په دين كښې بدعات

ښائسته ښکاره کوی دے دپاره چه تاسو هغوی ته خپل دینی کارونه وسپارئ او د احکامو په جوړولو کښ د هغوی تابعداری وکړئ پدے گمان چه په تاسو باندے د دوی تقلید واجب دے ځکه چه دوی ستاسو نه ښه پوهه دی یا پدے وجه چه تاسو د خپل پلارانو اقتداء کوئ. ۲– دارنگه داسے دوستان هم مه نیسئ چه تاسو دا گمان لرئ چه دوی به تاسو د گناهونو د سزا نه بچ کوی او فائده به درکوی او ضرر به درنه دفع کوی پدے گمان چه دوی نیکان دی چه تاسو به الله ته په مرتبه کښ نزدے کوی یا به د الله په دربار کښ ستاسو په دنیا یا آخرت کښ سفارش کوی. آه. (المنار ۲۷۲/۸)

قَلِيْلًا مَّا تَذَكَّرُوْنَ: حقیقت دا دے چه تاسو ډیر کم نصیحت اخلئ، د الله حق دین پریدئ او د نفس د خواهش او د باطلو دینونو او نظریاتو تابعداری کوئ.

| وَكَمْ مِّنْ قَرْيَةٍ اَهْلَكْنٰهَا فَجَآءَهَا بَأْسُنَا |
|---|
| او ډیر د کلو والو نه هلاک کړیدی مونږ هغه نو راغے هغوی ته عذاب زمونږ |
| بَيَاتًا اَوْهُمْ قَآئِلُوْنَ ﴿٤﴾ فَمَا كَانَ دَعْوٰهُمْ اِذْ جَآءَهُمْ |
| په وخت د شپه کښ یا به دوی د غرمے اُودهٔ وو. نو نهٔ وو آواز د دوی کله چه راغے دوی ته |
| بَأْسُنَآ اِلَّآ اَنْ قَالُوْآ اِنَّا كُنَّا ظٰلِمِيْنَ ﴿٥﴾ |
| عذاب زمونږ مگر دا چه وئیل به ئے یقیناً مونږ وو ظلم کونکی. |

**تفسير** : دا د مخکنی انذار بیان دے. یعنی کوم خلق چه د الله د طرف نه د نازل شوی کتاب او سنت تابعداری نهٔ کوی، هغوی ته دهمکی ورکړے شویده چه ستاسو نه مخکښ هم ډیرو کلو والو زمونږ د رسولانو مخالفت کړے او د هغوی تکذیب ئے کړے، نو زمونږ عذاب هغوی ته د شپے په خوب حالت کښ راغے (لکه د لوط ﷺ د قوم سره وشو) یا په ورځ کښ د غرمے د آرام کولو په وخت راغے (لکه چه د شعیب ﷺ د قوم سره وشو). په هغه وخت دوی د خپلو گناهونو اقرار کولو او وئیل ئے چه مونږ پخپله په خپلو ځانونو ظلم کړیدے، او مونږ ددے عذاب مستحق یو، لیکن وخت تیر وو. لکه د سورة انبیاء (۱۵) آیت کښ هم دغسے راغلی دی. نو پدے کښ ترغیب دے چه د عذاب د راتللو په وخت به چغے وهئ نو راشئ مخکښ نه اتباع د مَآ اُنْزِلَ وکړئ چه د عذابونو نه خلاص شئ.

فَجَآءَهَا : فاء تفصیلیه ده او دا تفصیل او بیان دے د (اَهْلَكْنَا) دپاره. فاء تفریعیه نهٔ ده چه

اشکال پیدا شی چه اول هلاك شو بیا روستو عذاب راغے؟۔ او کوم علماء چه فاء د تفریع دپاره گرځوی نو هغوی (اَهْلَكْنَا) په معنی د اراده د هلاکولو اخلی۔

بَيَاتًا : اَیْ بَائِتِيْنَ : یعنی کله ئے چه شپه تیره وله۔

قَـآئِلُوْنَ : دا د قَيْلُوْلَةٌ نه دے، د غرمے خوب ته وائی او دا دواړه وختونه کنایه ده د غفلت نه۔

| فَلَنَسْئَلَنَّ الَّذِيْنَ اُرْسِلَ اِلَيْهِمْ |
|---|
| نو خامخا تپوس به کوو مونږ د هغه کسانو نه چه لیږل شوی وو هغوی ته |
| وَلَنَسْئَلَنَّ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿٦﴾ فَلَنَقُصَّنَّ |
| او خامخا تپوس به کوو د لیږلے شوو (پیغمبرانو) نه۔ نو خامخا بیانوو به مونږ |
| عَلَيْهِمْ بِعِلْمٍ وَّمَا كُنَّا غَآئِبِيْنَ ﴿٧﴾ |
| په دوی باندے په عِلم خپل سره او نهٔ یو مونږ غائب (د دوی د عملونو نه)۔ |

**تفسیر** : اُوس د آخرت تخویف بیانوی۔

ربط :

اَلْحِسَابُ وَالْوَزْنُ حَقٌّ فَلِذٰلِكَ يَجِبُ عَلَيْكُمْ اِتِّبَاعُ مَآ اُنْزِلَ۔

یعنی حساب او وزن حق دے نو پدے وجه د مَا اُنْزِلَ اتباع واجب ده۔

د اقوامو نه به دا تپوس کیږی (مَاذَا اَجَبْتُمُ الْمُرْسَلِيْنَ؟) تاسو د پیغمبرانو څومره خبره منلے ده؟، آیا هغوی چه کوم کتابونه راوړی وو او د الله د توحید او د هغه د بندگئ دعوت ئے ورکړے وو دا مو منلی دی او که نه؟۔ او د رسولانو نه به دا تپوس کیږی چه تاسو دین بیان کړیدے او که نهٔ؟ نو پدے کښې تیزی ده پدے خبره چه اے خلکو! د ځان غم وکړئ، تاسو نه به د رسول الله ﷺ په باره کښې تپوس کیږی او دا تپوس په سورة الحجر (۹۲) آیت کښې هم راغلے دے ﴿فَوَرَبِّكَ لَنَسْئَلَنَّهُمْ اَجْمَعِيْنَ عَمَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ﴾ ۔ او بل طرفته په سورة القصص (۷۸) آیت ﴿وَلَا يُسْئَلُ عَنْ ذُنُوْبِهِمُ الْمُجْرِمُوْنَ﴾ او سورة الرحمن (۳۹) آیت ﴿فَيَوْمَئِذٍ لَّا يُسْئَلُ عَنْ ذَنْبِهٖٓ اِنْسٌ وَّلَا جَآنٌّ﴾ کښې تپوس نه کول راغلی دی نو د هغے جدا مطلبونه دی چه د استعلام (یعنی د معلومات) تپوس به نهٔ کیږی چه آیا تا دا گناه کړیده او که نهٔ؟۔

او دلته د توبیخ او زورنے تپوس دے چه دا کار ډیر ولے کړے او دا فلانے کار (طاعت) ډیر ولے نهٔ دے کړے؟۔ او د حجت قائمولو او د عدالت ښکاره کولو دپاره به دا تپوس وی او د کافرانو او سرکشانو جهنم ته د داخلولو نه مخکښ د زجر او توبیخ دپاره به وی۔

فَلَنَقُصَّنَّ عَلَيْهِمْ : یعنی الله تعالیٰ به دوی ته د دوی د ښکاره او پټو اعمالو خبر ورکوی او هغه خلك به هیڅ عمل هم نشی پټولے، ځکه چه د الله تعالیٰ نه هیڅ شے پټ نهٔ دے۔

د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت شویدے چه د قیامت په ورځ به یو کتاب راوړے شی نو هغه به خلکو ته د عملونو خبر ورکوی۔ (ابن کثیر)

وَمَا كُنَّا غَائِبِينَ : یعنی مونږ د دوی د عملونو نه غائب نهٔ یو۔ ځکه چه الله د بره عرش نه ټولو انسانانو ته گوری او د هغه نه هیڅ حرکت د زړه او عمل د انسان پټ نهٔ دے۔ او غائب په معنیٰ د غافل سره هم دے۔

| |
|---|
| وَالْوَزْنُ يَوْمَئِذِنِ الْحَقُّ ۚ فَمَنْ ثَقُلَتْ مَوَازِينُهُ |
| او تول (د عملونو) په دغه ورځ حق دے پس هغه څوك چه درانهٔ شو تلے د عملونو د هغهٔ |
| فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴿٨﴾ وَمَنْ خَفَّتْ مَوَازِينُهُ |
| نو دغه کسان هم دوی کامیاب دی۔ او هغه څوك چه سپك شو تلے د عملونو د هغهٔ |
| فَأُولَٰئِكَ الَّذِينَ خَسِرُوا أَنْفُسَهُمْ بِمَا |
| نو دا هغه کسان دی چه تاوان کښ ئے اچولی دی نفسونه خپل پدے وجه |
| كَانُوا بِآيَاتِنَا يَظْلِمُونَ ﴿٩﴾ |
| چه وو دوی چه په آیتونو زمونږ ئے ظلم کولو۔ |

**تفسیر** : ربط : هرکله چه د قیامت په ورځ اعمال تللے کیږی نو عمل به په څه وزنی کیږی او په څه بے وزنه کیږی؟ نو هغه په اتباع د مَا اُنْزِلَ باندے، که د حق او وحی تابعداری نهٔ وی نو د غرونو هومره اعمال به د وړئ نه هم زیات سپکیږی۔

د اعمالو د خبر ورکولو نه روستو به الله تعالیٰ د قیامت په ورځ میزان (تله) قائموی، دے دپاره چه د بندګانو عملونه وزن کړی، د چا د نیکیانو تله چه درنه شی او خکته لاړه شی نو هغه به د جهنم نه نجات موندو کوی او جنت ته به داخلیږی، او د چا تله چه د نیکیانو د

کمي او د ګناهونو د ډیر والي په وجه سپکه شي او پورته لاړه شي نو هغه به جهنم ته ارتولے شي۔

مَوَازِيْنُهُ : جمع د میزان ده، تلې ته وائي یا جمع د موزون ده عملونو ته وائي۔

## په قیامت کښې د عملونو د تول بیان

تله یوه ده لیکن جمع ئے پدے وجه راوړیده چه د هر چا د عملونو بیل بیل تول به کیږي۔ د قیامت په ورځ د بندګانو عملونه په تله باندے تلل حق دي، او دا د اهل سنت والجماعة مذهب دے سویٰ د معتزله ؤ نه چه هغوی ئے نهٔ مني۔

او په حدیث کښې راغلي دي چه [لَهٗ لِسَانٌ وَّكِفَّتَانِ] ددے به یوه ژبه او دوه چابړې وي۔

(شعب الایمان للبیهقي والدر المنثور)

او یو یو چابړے ئے دومره غټ دے لکه د آسمان او د زمکے په مقدار او هغے ته به جبریل علیه السلام ولاړ وي، او دا به د پل صراط په سر باندے وي چه دلته عمل وتللے شي او دغلته به په صراط ورتیریږي او دا ډیر سخت وختونه دي چه انسانان اګرکه نیکان وي سم به رېږي چه اُوس به څه کیږي۔ ددے وجه نه په عمل کښې وزن پیدا کول پکار دي۔

## په عمل کښې وزن په څه سره پیدا کیږي؟۔

١– یو په توحید سره لکه په حدیث د تِسْعَ وَّتِسْعُوْنَ سِجِلًّا کښې راغلي دي۔

(احمد ٢/٢١٠)، ترمذی (٥/٢٤) (٢٦٣٩) ابن ماجه (صحیح الجامع : ١٧٧٦)

٢– په اتباع الرسول ﷺ سره۔

٣– په اتباع الحق سره، سیدنا ابوبکر صدیق ؓ سیدنا عمر فاروق ؓ ته وصیت کښې وفرمایل : [اِنَّمَا ثَقُلَتْ مَوَازِيْنُ مَنْ ثَقُلَتْ بِاتِّبَاعِهِمُ الْحَقَّ وَحُقَّ لِمِيْزَانٍ يُّوْضَعُ فِيْهِ الْحَقُّ اَنْ يَّثْقُلَ] (بغوي)

د چا تلې چه درنیږي نو دا پدے وجه چه د حق تابعداري کوي او لائق ده د هغه تلے سره چه په هغے کښې حق کیخودے شي چه هغه به درنیږي۔ او دغه شان خبره ئے د باطل په باره کښې وکړه چه هغه به سپکیږي۔

٤– حُسْنُ الْخُلُقِ۔ (ښائسته اخلاق) ٥–الصمت۔ (غلے او چُپ کیناستل)۔

٦– سبحان الله والحمد لله ولا اله الا الله) کلماتو سره ذکر کول۔

۷– اَلْوَلَدُ الصَّالِحُ یَتَوَفّٰی لِلْمَرْءِ الْمُسْلِمِ۔ نیك عمله بچے چه د مسلمان مړ شي۔
۸– سبحان الله وبحمده سبحان الله العظیم ونیلو سره۔ لکه د بخاری آخری حدیث دے۔
او په هر نیك عمل باندے درنیږی پدے شرط چه اخلاص او اتباع د سنت پکښې وی۔
او پدے وزن کښې یو مقصد اظهار د عدل او بل احسان کول دی۔ څکه چه په دے وزن کښې به یو طرف ته نیکی وی او بل طرفته گناه، نو که د چا گناه کمه شوه او نیکی ئے زیاته شوه نو بس کامیاب شو۔ نو دا د الله احسان شو چه د زیاتو نیکیو په مقابله کښې گناهونه ختموی۔

## وزن به څنګه کیږی؟

د اهل سنتو په کیفیت د وزن کښې اختلاف دے، بعض وائی چه د اعمالو صحیفے به په حقیقی معنو کښې وزن کولے شی لکه چه په صحیح حدیث کښې راغلی دی چه د «لا اله الا الله» پرچه به د نهه نوی رجسترو نه درنیږی۔ دا حدیث امام احمدؒ او ابن ماجهؒ او حاکمؒ وغیرهم روایت کړیدے۔ شوکانیؒ دے ته ترجیح ورکړیده۔
بعضو ونیلی دی چه خپله اعمال به وزن کولے شي، اګرکه هغه جسم نهٔ لری لیکن الله به په هغه ورځ هغے ته جسم ورکړی دے دپاره چه د هغے وزن وشی لکه چه د قرآن کریم په باره کښې په سنن ابن ماجه کښې په روایت شوی صحیح حدیث کښې راغلی دی چه دا به د قیامت په ورځ د ښائسته ځوان په شکل راځی۔
بعضو ونیلی دی چه د عملونو والا شخص به تللے کیږی لکه چه په صحیح بخاری کښې د ابو هریره ﷺ نه روایت شویدے چه د قیامت په ورځ به یو چاق سړے راوستے شی چه د الله په نیز به د ماشی د وزر هم برابر نهٔ وی۔
حافظ ابن کثیر رحمه الله وائی چه ډیره ممکن ده چه د وزن دا ټول صورتونه صحیح وی۔ کله به د اعمالو وزن وی، نو کله به د صحیفو (عملنامو)، او کله به خپله د عمل کونکو۔
الله تعالیٰ په هر شی قادر دے، او د پیمائش او وزن جدید او سائنسی وسائل او ذرائعو ته نظر کولو سره اُوس خو انسانی عقل ددے د قبلولو دپاره بیخی تیار دے۔ اُوس خو هواګانے، فضاګانے، یخنی، ګرمی او تبه او نور په نظر نهٔ راتلونکی څیزونه وزن کیږی نو د کائناتو د خالق او قادر مطلق دپاره دا کومه د تعجب خبره ده چه هغه د قیامت په ورځ هر شے وزن کړی او بندګانو ته د هغوی د نیك او بدو اعمالو حساب وځکوی۔

يَظْلِمُوْنَ : د الله په آيتونو باندے ظلم يو كفر دے او بل ترك العمل دے (په هغے عمل نهٔ كول)۔ او ددے نه معلومه شوه چه د وزن د سپكوالى وجه هغه ظلم دے يعنى د حق تابعدارى نهٔ كول او په هغے عمل نكول۔ او دليل دے چه د كافرانو د عملونو وزن به هم كيږى۔

| وَلَقَدْ مَكَّنّٰكُمْ فِى الْاَرْضِ وَجَعَلْنَا لَكُمْ فِيْهَا |
| --- |
| او يقيناً ځاى دركړے مونږ تاسو ته په زمكه كښ او كرځولى مو دى تاسو لره په دے كښ |
| مَعَايِشَ ۗ قَلِيْلًا مَّا تَشْكُرُوْنَ ﴿١٠﴾ |
| اسباب د ژوند، ډير لږ شكر كوئ تاسو۔ |

**تفسير:** الله تعالىٰ په خپل قسماقسم نعمتونو يادولو سره بندګانو ته د خپلو اوامرو د اتباع او د نواهيو نه د اجتناب ترغيب وركړيدے۔ د كائناتو خالق زمكه د انسانانو دپاره د سكون او وسيدو ځاى جوړ كړيدے، پدے ئے غرونه خوارهٔ كړيدى، نهرونه ئے روان كړى، د وسيدو مزيدار مكانات او ځايونو جوړولو طريقے ئے خودلى دى، په زمكه كښ موجود څيزونو او ښاروو نه فائده اخستل ئے مباح كرځولى دى، او د خوراك او څكاك مختلف څيزونه ئے پريمانه كړيدى، ددے نعمتونو تقاضا دا وه چه انسان د الله بنده شكر كولے او د هغه بنه عبادت ئے كولے او د هغه تول حكمونه ئے عملى كولے ليكن واقع دا ده چه اكثر او زيات انسانان د الله كم شكر كوى۔

مَكَّنّٰكُمْ : يعنى ځايونه د وسيدو مے دركړيدى۔ دا دليل دے چه په غير د زمكے نه د انسان بل ځاى د وسيدو نشى كيدے۔

معايش : جمع د مَعِيْشَةٌ ده، يعنى اسباب د ژوند۔

| وَلَقَدْ خَلَقْنٰكُمْ ثُمَّ صَوَّرْنٰكُمْ |
| --- |
| او يقيناً مونږ پيدا كړى يئ تاسو بيا (واورئ چه) شكل دركړے وو مونږ تاسو ته |
| ثُمَّ قُلْنَا لِلْمَلٰٓئِكَةِ اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ ۖ فَسَجَدُوْٓا اِلَّا |
| بيا وئيلى وو مونږ ملائكو ته سجده وكړئ آدم ته نو سجده وكړه هغوى سوئ |

إِبْلِيسَ ۖ لَمْ يَكُنْ مِّنَ السَّاجِدِينَ ﴿١١﴾

د ابلیس نه، نهٔ شو هغه د سجده کونکو نه۔

**تفسیر** : دآدم علیه السلام واقعه راوړی پدے کښی ډیرے فائدے دی (۱) یو مقصد دا دے چه مُشَابَهَةُ الْمُشْرِكِيْنَ وَالْيَهُوْدِ وَالنَّصَارٰی بِاِبْلِيْسَ فِیْ تَرْكِ اِتِّبَاعِ مَا اُنْزِلَ۔

مشرکان، یهودیان او نصاریٰ د ابلیس سره د وحی د تابعداریٔ په پریخودو کښی مشابه دی۔

(۲) رد دے په مشرکانو په دوه څیزونو کښی چه مشرکانو به په حج کښی طواف په برېنډه کولو او غوړی او غوښه به ئے نهٔ خوړل، او دا به ئے وئیل چه دا په مونږ حرامه ده۔

نو پدے واقعه کښی په هغوی رد دے چه دا کارونه کول خو د شیطان مقصد پوره کول دی، شیطان خو د آدم او حواء علیهما السلام نه جامے ویستلی دی او هغوی پدے کار خومره خفګان کړیدے۔ په تاسو باندے ئے حلال څیزونه بند کړل لکه څنګه ئے چه آدم علیه السلام او د هغه بی بی ئے د جنت نه محروم کړل۔

(۳) دارنګه پدے باندے تفریع کوی په اتباع الرسول ﷺ سره چه دوه دعوتونه روان دی، یو دعوت شیطانی او بل دعوت رحمانی نو تاسو به د رحمانی دعوت پسے ځئ۔ (يَا بَنِيْ آدَمَ إِمَّا يَأْتِيَنَّكُمْ رُسُلٌ) ۔ دارنګه د الله د وحی په مقابله کښی شیطان ولاړ دے نو یا به اتباع د ما انزل کوے یا به د شیطان۔

خَلَقْنٰكُمْ : د جمع صیغه استعمال شویده، او مراد آدم علیه السلام دے، د جمع صیغه پدے اعتبار سره ده چه هغه د تمامو انسانانو پلار دے۔

ثُمَّ صَوَّرْنٰكُمْ : ۱- دلته ثم د تعقیب ذکری دپاره دے یعنی بیا دا احسان هم واوریٔ چه الله تاسو ته شکلونه هم درکړیدی۔ ۲- یا دا چه اول خلق د مادے د آدم علیه السلام دے اَیْ خَلَقْنَا اَصْلَكُمْ اَوْ اَبَاكُمْ۔ یعنی مونږ ستاسو اصل او ستاسو پلار پیدا کړو، او بیا صورت جوړول د هغه دی۔ ۳- یا دا چه خُلق په شا د پلار کښی او تصویر ورکول په رَحِم د مور کښی مراد دی۔ ٤- یا خلق د مادے د انسان دے په مختلفو اطوارو سره او بیا تصویر ورکول دی لکه په سورة الحج (٥) او مؤمنون (١٤) آیت کښی دی۔

قَالَ مَا مَنَعَكَ أَلَّا تَسْجُدَ إِذْ أَمَرْتُكَ ۖ قَالَ

ووئیل الله څه منع کړے ته چه سجده ونکړه تا کله چه حکم وکړو ما تا ته ووئیل هغهٔ،

| اَنَا خَيْرٌ مِّنْهُ ۚ خَلَقْتَنِيْ مِنْ نَّارٍ وَّخَلَقْتَهٗ مِنْ طِيْنٍ ﴿۱۲﴾ |
| --- |
| زهٔ غوره يم ددهٔ نه پيدا کړې يم تا د اُور نه او پيدا کړې تا دهٔ لره د خټې نه۔ |

**تفسير** : اَلَّا تَسْجُدَ : کښې (لا) زائده دے لکه په سورة ص (۷۵) آيت کښې بغير د (لا) نه دے۔ او چونکه دلته اَمَرْتُكَ لفظ وو او ددے سره ترك د سجدے مناسبت لري۔

صاحب المنار وائي چه د (لا) په سياق د نفي صريح او غير صريح کښې د تاکيد او تقويت دپاره زياتيدل په فصيح کلام د عربو کښې مشهور دي او ددے قبيلے نه دا آيتونه دي ﴿قَالَ يَا هَارُوْنُ مَا مَنَعَكَ اِذْ رَاَيْتَهُمْ ضَلُّوْا اَلَّا تَتَّبِعَنِ﴾ (طه۹۳) ﴿وَمَا يُشْعِرُكُمْ اَنَّهَا اِذَا جَاءَتْ لَا يُؤْمِنُوْنَ﴾ (انعام: ۱۰۹) ﴿قُلْ تَعَالَوْا اَتْلُ مَا حَرَّمَ رَبُّكُمْ عَلَيْكُمْ اَلَّا تُشْرِكُوْا﴾ (انعام: ۱۵۱) او پدے تولو کښې معنیٰ د نفي ده۔

۲- يا مَنَعَكَ په معنیٰ د دَعَاكَ سره دے، او (الی) لفظ پټ دے يعني کومے خبرے دے ته راوبللے چه سجده ډے ونکړه۔ ۳- حافظ ابن کثيرؒ او ابن جريرؒ دا غوره کړيده چه: دا متضمن دے بل فعل لره چه هغه [مَا اَحْوَجَكَ، وَاَلْزَمَكَ وَاضْطَرَّكَ اِلَى اَلَّا تَسْجُدَ] يعني څه محتاجه او مجبوره کړے چه سجده ډے ونکړه۔

صاحب المنارؒ وائي: داسے تضمين د قرآن په ډيرو ځايونو کښې راغلے دے لکه ﴿وَلَا تَاْكُلُوْا اَمْوَالَكُمْ اِلَى اَمْوَالِكُمْ﴾ (نساء: ۲) او دے ته نژدے تعبير د سورة الحجر (۳۲) آيت دے ﴿مَا لَكَ اَنْ لَّا تَكُوْنَ مَعَ السَّاجِدِيْنَ﴾ اَیْ اَیُّ شَیْءٍ عَرَضَ لَكَ فَحَمَلَكَ عَلٰی اَنْ لَّا تَكُوْنَ مَعَهُمْ] تا ته کومه خبره راپيښه شوه چه هغے راپورته کړے پدے خبره چه د هغوی سره په سجده کښې شريك نشوے۔ (المنار۸/۲۹۶)

اَنَا خَيْرٌ مِّنْهُ : ددے سره کبریٰ پټه ده (وَالنَّارُ خَيْرٌ مِّنَ الطِّيْنِ) او اُور خو د خټے نه غوره دے نو بس زهٔ د آدم نه غوره شوم (نتيجه) نو بيا زهٔ څنګه ناغوره شخص ته سجده وکړم؟!۔

دا د ابليس يو غلطه بهانه او عذر وو او د نص په مقابله کښې قياس وو، او د سوچ قابله دا خبره ده چه ابليس د اُور او خاورو په عناصرو نظر کيخودو او دا ترے هير شو چه الله آدم عليه السلام لره په خپلو لاسونو جوړ کړيدے او په هغه کښې ئے خپل روح پو کلے دے۔ هغه د ښکاره نص ﴿فَقَعُوْا لَهٗ سَاجِدِيْنَ﴾ (چه تاسو هغه دپاره په سجدے پريوځئ) په مقابله کښې د فاسد قياس نه کار واخستو۔ او د سجدے نه منکر شو نو د الله د رحمت نه وړاندے کړے شو۔

او علماؤ د ابلیس مقابله کړیده او ددهٔ دا قیاس ئے د دیارلسو وجو نه فاسد ګرځولے دے چه هغه حافظ ابن القیمؒ وغیره ذکر کړیدی، ځکه چه د خاورے په فطرت کښې غوره والے، بردباری سوچ او آرام دے، په خاوره کښې قسما قسم حیوانات او بوټی پیدا کیږی، پدے کښې د انسانانو او حیواناتو روزی پیدا کیږی، ددے په خلاف اور ځیزونه سیزی او پدے کښې د جذبے او تیزئ صفت موجود دے، اور کښې تکبر دے لکه همدا وجه ده چه ابلیس اور دهوکه کړو، او آدم عليه السلام (د خاورے نه جوړیدو په وجه) الله ته خشوع او خضوع نه کار واخستو، او د خپلے ګناه اقرار کولو سره د توبے او استغفار لارئے اختیار کړه۔

(اللباب والقاسمی)

بله دا چه دا قیاس د الله د حکم په مقابله کښې وو، که بالفرض اور غوره هم شی بیا هم د الله حکم دے نو آدم عليه السلام ته سجده کول لازم وو د الله د حکم د وجه نه۔

بل دا چه ملائك د نور نه پیدا وو چه هغه د اور نه ډیر غوره وو، هغوی سجده کوی د الله د حکم د وجه نه نو دے ظالم له خو خامخا پکار وه۔

بله دا چه دا لعین د آدم عليه السلام د خصوصیات او فضائلو نه غافل شو چه الله هغه په خپل لاس پیدا کړو او هغه کښې ئے خپل روح وپو کلو او د هغه علمی او عملی استعدادئے د ټولو مخلوقاتو نه تردے چه د ملائکو نه هم پورته کړو او ملائك ئے هغه ته په سجده کړل چه هغوی د ابلیس نه په عنصر د خلقت او طاعت کښې ډیر غوره وو۔ (المنار)

ددے وجه نه محمد بن سیرینؒ فرمایلی دی: [أَوَّلُ مَنْ قَاسَ فِيْ مُقَابَلَةِ النَّصِّ إِبْلِيْسُ فَمَنْ قَاسَ الدِّيْنَ بِرَأْيِهٖ قَرَنَهُ اللّٰهُ مَعَ إِبْلِيْسَ] (بغوی ۲۱۷/۳ وابن کثیر ورواه ابو نعیم فی الحلیة والدیلمی عن جعفر الصادق- المنار) اول قیاس د نص په مقابله کښې ابلیس کړیدے نو چا چه دین په خپلو قیاسونو بنا کړو هغه به الله د ابلیس سره یو ځای کړی۔

او د ابن سیرینؒ نه دا هم نقل دی: [وَمَا عُبِدَتِ الشَّمْسُ وَالْقَمَرُ اِلَّا بِالْمَقَايِيْسِ]

د نمر او سپوږمئ عبادت هم په قیاسونو سره شویدے۔

(اسناد صحیح- ابن کثیر والبغوی والقرطبی)

دلته بیا مفسرینو د غلطو قیاسونو سخت تردید کړیدے چه نص موجود وی او خلك خپل قیاس مخکښې کوی لکه قیاسونه د اهل الرأی او خوارجو شو۔ تفصیل دپاره محاسن التاویل د قاسمیؒ وګوره۔

قَالَ فَاهۡبِطۡ مِنۡهَا فَمَا يَكُوۡنُ لَكَ اَنۡ تَتَكَبَّرَ فِيۡهَا

ووئیل الله نو کوز شه ددے نه پس نهٔ دی مناسب تا لره چه تکبر وکړے تهٔ پدے کښې

فَاخۡرُجۡ اِنَّكَ مِنَ الصّٰغِرِيۡنَ ﴿۱۳﴾ قَالَ اَنۡظِرۡنِىۡۤ اِلٰى يَوۡمِ

نو ووځه یقیناً تهٔ د ذلیلانو نه یې۔ ووئیل هغهٔ، مهلت راکړه ما ته تر هغه ورځې پورے

يُبۡعَثُوۡنَ ﴿۱۴﴾ قَالَ اِنَّكَ مِنَ الۡمُنۡظَرِيۡنَ ﴿۱۵﴾

چه خلك به دوباره پورته کولے شی۔ ووئیل الله یقیناً تهٔ د مهلت درکړے شوو نه یې۔

**تفسیر** : الله تعالیٰ ابلیس ته خطاب وکړو وے وئیل چونکه تا زما د حکم مخالفت کړیدے پدے وجه ته د جنت نه ووځه، دا ځای د الله د نافرمانو دپاره نهٔ دے۔ بعض خلقو ددے تفسیر دا بیان کړیدے چه تهٔ چه تر اوسه پورے په کوم ځای کښې وے (یعنی د ملائکو مرتبه) نو اوس ذلیل اوخوار کیدو سره د هغے نه لاندے لاړ شه، اوس به تا ته هغه ځای نهٔ ملاوېږی ځکه چه هغه د اطاعت کونکو او خشوع اختیارونکو ځای دے۔

**فَاهۡبِطۡ مِنۡهَا** : نو هبوط (خکته کیدل) حسی او معنوی دواړو ته شاملیږی۔

**فَمَا يَكُوۡنُ لَكَ** : أَیْ لَا یَنْبَغِیْ لَكَ وَلَیْسَ بِمَا تُعْطَاهُ مِنَ التَّصَرُّفِ] یعنی تا لره دا مناسب نهٔ دی او نهٔ تا ته دا تصرف درکړے شویدے چه تهٔ پدے ځای کښې تکبر وکړے۔ (المنار)

**اَنۡ تَتَكَبَّرَ فِيۡهَا** : تکبر : ځان لوی ګڼړل د هغه حالت نه چه انسان په هغے باندے وی۔ یا ځان لوی ګڼړل د هغه شخص نه چه په حقیقت کښې د هغه نه صغیر (وړوکے او ذلیل) وی۔ او په حدیث د مسلم کښې ددے تفسیر په (بَطَرُ الْحَقِّ وَغَمْطُ النَّاسِ) سره راغلے دے، او دا تفسیر ئے په اعتبار د مَظۡهَر عملی سره دے چه په هغے باندے جزا مرتب کیږی یعنی چه یو شخص ته حق بنکاره شی او دے ورته غاړه نهٔ ږدی او هغے ته نهٔ قانع کیږی بلکه هغه دیکه کوی، یا ترے د تجبر او ترفع په وجه انکار کوی، او بل شخص سپك ګڼړی په قول او عمل سره چه هغه دلالت کوی په نهٔ اقرار د هغه د فضیلت، یا دغه فضیلت سپك ګڼړی بل کم فضیلت په هغے باندے پورته ګڼړی، برابره ده چه دا دعوه د ځان دپاره کوی چه خپل ځان په بل باندے په باطله طریقه پورته کوی یا ددے دعوه د بل چا دپاره کوی پدے طریقه چه بعض خلك په بعضو باندے غوره کړی مقصد ئے پکښې احتقار او سپکاوے د مفضل علیه (یعنی بل طرف) وی او د هغه د شان تنقیص وی۔ (المنار)

يَوْمِ يُبْعَثُوْنَ : ابلیس ووئیل، اے ربه! ما ته مهلت راکړه اوتر هغه ورځے پورے مرګ مهٔ راکوه چه آدم ﷺ او د هغه اولاد د قبرونونه پورته کولے شی. نو الله تعالیٰ دهٔ ته د دنیا د ختمیدو ورځے پورے مهلت ورکړو لکه چه په سورة حجر آیتونو (۳۸/۳۷) کښ راغلی دی : ﴿ قَالَ فَاِنَّكَ مِنَ الْمُنْظَرِيْنَ اِلٰى يَوْمِ الْوَقْتِ الْمَعْلُوْمِ ﴾ دلته د (وقت معلوم) نه د دنیا فنا مراد ده، چه دا به د اسرافیل ﷺ په اوله شپیلۍ سره کیږی او د دوباره راپورته کیدو پورے ئے وخت ورنکړو ځکه چه په دغه وخت کښ به ابلیس هم مړ وی او د اولے او د دویمے شپیلۍ ترمینځ څلویښت کاله زمانه ده.

| |
|---|
| قَالَ فَبِمَآ اَغْوَيْتَنِىْ لَاَقْعُدَنَّ لَهُمْ صِرَاطَكَ |
| ووئیل دهٔ، پس په دے وجه چه تا ګمراه کړم زهٔ خامخا کینم به دوی ته په لاره ستا کښ |
| الْمُسْتَقِيْمَ ﴿١٦﴾ ثُمَّ لَاٰتِيَنَّهُمْ مِّنْۢ بَيْنِ اَيْدِيْهِمْ وَمِنْ خَلْفِهِمْ |
| چه نیغه ده. بیا به خامخا راځم دوی ته د مخے د دوی نه او د شا طرف د دوی نه |
| وَعَنْ اَيْمَانِهِمْ وَعَنْ شَمَآئِلِهِمْ ؕ وَلَا تَجِدُ اَكْثَرَهُمْ |
| او د ښی طرفونو د دوی نه او د ګس طرفونو د دوی نه، او نهٔ به مومے تهٔ ډیر د دوی نه |
| شٰكِرِيْنَ ﴿١٧﴾ قَالَ اخْرُجْ مِنْهَا مَذْءُوْمًا مَّدْحُوْرًا ؕ لَمَنْ |
| شکر کونکی. ووئیل الله، ووځه ددینه بد حاله رټلے شوے، خامخا څوك چه |
| تَبِعَكَ مِنْهُمْ لَاَمْلَئَنَّ جَهَنَّمَ مِنْكُمْ اَجْمَعِيْنَ ﴿١٨﴾ |
| تابعداری کوی ستا د دوی نه، خامخا ډکوم به جهنم ستاسو د ټولو نه. |

**تفسیر** : فَبِمَآ اَغْوَيْتَنِىْ: یعنی پدے وجه چه تا زهٔ ګمراه کړم نو زهٔ به ستا په نیغه لاره کینم او خلك به ترے اړوم. د ابلیس او د آدم ﷺ طریقه کښ څومره فرق دے چه ابلیس په الله تعالیٰ اعتراض کوی چه زهٔ تا ګمراه کړم حال دا چه خپله فسادی وو او آدم ﷺ وائی ﴿رَبَّنَا ظَلَمْنَا اَنْفُسَنَا﴾ (اے ربه! مونږ په خپلو ځانونو ظلم کړیدے) د مؤمنانو طریقه دا ده چه د ګناه نسبت ځان ته کوی.

لَاَقْعُدَنَّ : کیناستل کنایه ده د لزوم نه. یعنی زهٔ به ورسره لازم او انښتے یم.

مِّنْۢ بَيْنِ اَيْدِيْهِمْ : ۱- دا یا کنایه ده د ټولو اطرافو نه یعنی (لَاَجْتَهِدَنَّ فِىْ اِضْلَالِهِمْ) د دوی

په گمراه کولو کښې به ښه کوشش کوم- او دا قول ابن جریرؒ غوره کړیدے-

۲- یا بین ایدی آخرت ته واثی او مِنْ خَلْفِهِمْ اشاره ده دنیا ته چه دا به ورته ښائسته کوم- او أَيْمَانِهِمْ نیکیو ته واثی چه ددے نه به ئے اړوم او شمائل گناهونه دی چه دا به ورته ښائسته کوم، دا تاویل هم صحیح دے ځکه چه شیطان دا ټول کارونه کوی- (ابن کثیرؒ)

د ابن عباس ﷺ نه نقل دی چه (مِنْ فَوْقِهِمْ) ئے ونهٔ وئیل ځکه چه رحمت د بره نه نازلیږی- (ابن کثیرؒ)

وَلَا تَجِدُ أَكْثَرَهُمْ : د ابلیس مقصد د آدم ﷺ د اولادو نه ډیر مخلوق گمراه کول وو دے دپاره چه د آدم ﷺ نه بدل واخلی چه د هغهٔ په وجه هغه د الله د رحمت نه لرے کړے شو او دا هم د هغه حسد وو-

او کله چه الله تعالیٰ د هغه طلب ومنلو نو په عناد او سرکشئ کښې نور زیاتیدو سره ئے ووئیل چه هر کله تا زهٔ گمراه کړم نو اُوس به زهٔ دا انسانان په آرام نهٔ پریدم، د دوی پسے به لگیږم او دوی به د نیغے لارے (د دین اسلام) نه گمراه کوم، دوی به د هر طرف نه راگیروم، د نیکئ نه به ئے منع کوم، او بدی به ورته ښائسته جوړولو سره پیش کوم، دے دپاره چه دوی په سرکشئ کښې راشی، او بیا به نتیجه دا وی چه د دوی نه به اکثر خلق ناشکری کوی، ستا عبادت به نهٔ کوی، او د توحید په عقیده به ولاړ نهٔ پاتے کیږی- او د الله حکمت ته وگورئ چه د ابلیس دا گمان او وهم د واقعے مطابق شو چه اکثرو انسانانو د هغه تابعداری وکړه لکه چه الله تعالیٰ سورة سبا آیت (۲۰) کښې فرمایلی دی :

﴿ وَلَقَدْ صَدَّقَ عَلَيْهِمْ إِبْلِيسُ ظَنَّهُ فَاتَّبَعُوهُ إِلَّا فَرِيقًا مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ﴾

(او ابلیس د انسانانو په باره کښې خپل گمان رشتینی کړو، نو د مؤمنانو د یو جماعت نه سوئ تولو د هغه تابعداری وکړه)-

پدے وجه نبی کریم ﷺ د شیطان نه د هر طرف نه پناه غوختلو تعلیم ورکړیدے- امام احمدؒ، ابوداودؒ، نسائیؒ، ابن ماجهؒ، ابن حبانؒ او حاکمؒ د عبد الله بن عمرو ﷺ نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ به لاندینئ دعا صبا او بیگاه هیڅ کله نهٔ پریخوده :

[اَللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ الْعَفْوَ وَالْعَافِيَةَ فِي دِينِي وَدُنْيَايَ وَأَهْلِي وَمَالِي، اَللّٰهُمَّ اسْتُرْ عَوْرَاتِي وَآمِنْ رَوْعَاتِي، اَللّٰهُمَّ احْفَظْنِي مِنْ بَيْنِ يَدَيَّ وَمِنْ خَلْفِي وَعَنْ يَمِينِي وَعَنْ شِمَالِي وَمِنْ فَوْقِي، وَأَعُوذُ بِعَظَمَتِكَ أَنْ أُغْتَالَ مِنْ تَحْتِي]- پدے دعا کښې رسول الله ﷺ په الله سره د مردود شیطان د شر نه د هر طرف نه پناه غوختلے ده- (ابن کثیرؒ)

شٰکِرِیۡنَ : پدے کښې اشاره ده چه د الله په کتاب شکر وکړئ او د الله شکر د هغه خالصه بندګي ده۔

قَالَ اخۡرُجۡ مِنۡهَا : دا ئے دوباره همغه (فَاخۡرُجۡ) والا حکم راوړو ځکه مینځ کښې دیر بحث مباحثه وشوه۔ یا د زیات لعنت او رحمت نه د وړاندے والی اعلان دپاره ئے راوړو۔ یا اول امر په طریقه د فیصله الهی وو او دویم نافذ کول د امر دی، یا اول اخراج (ویستل) د جنت نه او دویم د آسمان نه دی۔

مَذۡءُوۡمًا : د ذَامٌ نه دے په معنیٰ د سخت عیبژن او بد حالے او بد وئیلے شوے۔ او سیدنا ابن عباسؓ فرمائی : (مَمۡقُوۡتًا) غضب کړے شوے۔ / لعنت وئیلے شوے۔ (قتادة) (بغوی)

مَّدۡحُوۡرًا : رټلے شوے، شړلے شوے۔

لَاَمۡلَئَنَّ جَهَنَّمَ : دلته د ډکوالی نه مراد اچول دی په جهنم کښې ځکه چه بیا سوال راځی چه په حدیث کښې راغلی دی چه جهنم کښې به انسانان غورزولے شی لیکن هغه به نۀ ډکیږی، آخر دا چه الله به پکښې خپل قدم کیږدی نو په قدم به ډك شی۔ او دا په طریقه د محاوره وئیلے شویده لکه یو بادشاه خپل رعیت ته په غصه کښې ووائی چه (زۀ به تاسو نه جیلونه ډك کړم) دا مطلب نۀ دے چه بیخی به جیل کښې ځای پاتی نشی بلکه جیل ته اچول او بوتلل مراد دی۔

| وَیٰٓاٰدَمُ اسۡکُنۡ اَنۡتَ وَزَوۡجُكَ الۡجَنَّةَ فَکُلَا مِنۡ حَیۡثُ |
|---|
| او اے آدم ! اوسه تۀ او بی بی ستا په جنت کښې پس خورئ دواړه د هغه ځای نه |
| شِئۡتُمَا وَلَا تَقۡرَبَا هٰذِهِ الشَّجَرَةَ فَتَکُوۡنَا مِنَ الظّٰلِمِیۡنَ ﴿۱۹﴾ |
| چه خوښوئ تاسو او مۀ نزدے کیږئ دے ونے ته پس شئ به دواړه د ګنهګارو نه۔ |
| فَوَسۡوَسَ لَهُمَا الشَّیۡطٰنُ لِیُبۡدِیَ لَهُمَا مَا وٗرِیَ |
| نو وسوسه واچوله دواړو ته شیطان (عاقبت دا شو) چه ښکاره کړی دواړو ته هغه چه پټ کړے شوی وو |
| عَنۡهُمَا مِنۡ سَوۡاٰتِهِمَا وَقَالَ مَا نَهٰکُمَا رَبُّکُمَا عَنۡ هٰذِهِ الشَّجَرَةِ |
| د دوی نه د عورتونو د دوی نه او ووئیل هغۀ، نۀ یئ منع کړی تاسو لره رب ستاسو ددے ونے نه |

اِلَّآ اَنْ تَكُوْنَا مَلَكَيْنِ اَوْتَكُوْنَا مِنَ الْخٰلِدِيْنَ ﴿۲۰﴾

مګر ددے وجه نه چه شئ به دوه ملائك يا به شئ د همیشه پاتے کیدونکو نه۔

**تفسیر:** علامه قاسمیؒ د علامه جشمیؒ نه نقل کړیدی چه د آدم او حواء علیهما السلام دا تـوله قصه په سورة البقره کښې تیره شویده، چونکه قرآن کریم په درویشت کاله کښې نازل شویدے، او پدے موده کښې د عالَم د اطرافو نه مختلف وفدونه راغلی وو، پدے وجه قرآن یـوه واقـعـه پـه ډیرو ځایـونـو کـښې پـه مـخـتـلـف انـدازونو کښې بیان کړیده، دے دپاره چه آوریدونکی ددے نه د خپلے موقعے مناسب عبرت حاصل کړی۔ (محاسن التاویل)

الله ابـلـیـس لره د جنت نه یا د ملائکو د ډلے نه وویستو، او آدم علیه السلام او د هغه بی بی حواء دپاره ئے د جنت تـمام نعمتونه او میوے حلالے کړے، صرف د یوے ونے د خوړلو نه ئے منع کړو، اوتـنبیـه ئے ورکړه چه ګوره که دے ونے ته نزدے شوے نو په خپل ځان به ظلم وکړے۔ شیـطـان چه کـله دوی پدے حال کښې ولیدل نو د هغه د حسد اُور بَل شو او د هغوی سره د چـل او فـریـب سـوچ ئے وکړو، دے دپاره چه هغوی په کومونو نعمتونو کښې بختور دی او کوم ښائسته لباس او جامه ئے چه اغوستے ده چه دا ترے واخستے شی، نو د الله په خلاف ئے دروغ وونیـل او هغه ته ئے دا وسوسه واچوله چه ستا رب تهٔ ددے ونے نه پدے وجه منع کړے ئے چه که دا وخورے نو تهٔ به ملائك شے، بیا به د خوراك څکاك محتاجی پاتے نهٔ شی یا به پـه تـا مـرګ نهٔ راځی، او پـه جـنت کـښې به هـمیشـه دپاره وسیږے۔ او ابلیس هغه ته د رشتینوالی د یـقـیـن ورکـولو دپاره په الله تعالیٰ قسم وکړو ورته ئے وونیـل چه زهٔ ستاسو د دوارو انتهائی خیرخواه یم، ځکه مے دا راز تاسو ته وونیلو۔

حافظ ابن کثیر رحمه الله لیـکلی دی چه ابلیس په الله قسم کولو سره آدم علیه السلام او حواء لره په دهوکه کښې واچول، ځکه چه مؤمن د الله په نوم سره د هوکه خوری۔

لِيُبْدِيَ: لام د عـاقبت دے یعنی انجام به دا شی چه دوی ته پټ کړے شوی عورتونه ښکاره کړی۔ ځکه چه ابلیس ته دا پته نهٔ وه چه پدے سره به د دوی عـورتونه ښکاره کیږی۔

مَا وٗرِیَ: اشاره ده چه عورت د انسان طبعًا پټ وی او طبعًا د هغے ښکاره کول بد ګنړی پدے وجه ئے مجهول صیغه راوړه۔

سَوْاٰتِهِمَا: بـخاری کښې دی (كِنَايَةٌ عَنْ فَرْجَيْهِمَا) دا کـنـایه ده د هغوی د عورتونو نه۔ او سوئـه هـغـه شـی تـه وائـی چه انسان د هغے په ښکاره کولو خفه کیږی او شرم محسوس

کوی، نو کوم خلك چه دا وائي چه د سوءه نه مراد بدن وو او عورت ئے نهٔ وو ښکاره شوے یا دا چه دوی ته عیبونه او سخت ژوند ښکاره شو نو دا خبره د ظاهر د قرآن خلاف ده۔
(البحر المحیط)

او پدے کښې رد دے په مشرکانو چه د دوی فطرت خراب شویدے چه د خلکو مخامخ ئے عورتونه ښکاره کړیدي او هیڅ پرواه نهٔ لري۔

اِلَّآ اَنۡ تَكُوۡنَا مَلَكَيۡنِ : د شیطان مقصد دا وو چه الله تعالیٰ تاسو پدے وجه منع کړی یئ چه هسے نهٔ چه ملائك درنه جوړ شي او په جنت کښې همیشه پاتے نشئ نو زهٔ ستاسو (العیاذ بالله) د الله تعالیٰ نه هم زیات خیر خواه یم چه هغه مو همیشوالے نهٔ غواړي او زهٔ ئے غواړم۔ دا همیشه د شیطان کار وی چه د الله او د رسول او د اهل حقو دعوت اُلټه ښکاره کوی۔

## سوال وجواب

سوال : آدم او حواء علیهما السلام خو د ملائکو نه غوره وو نو څنګه ورته وائی چه ملائك به جوړ شئ؟

ددے چا جواب کړیدے چه د ملکین نه مراد (طَوِيۡلَيِ الۡعُمُر) دی یعنی اوږد عمر والا به شئ لکه د ملائکو په مقدار، د خوراك څکاك به محتاج نهٔ یئ او هر قسم شکلونه به اختیارولے شئ او په الوتلو باندے به قدرت لرئ۔ نو کیدے شي چه آدم ﷺ پدے کښې طمع کړی وی۔ (القاسمی وابن کثیر)

ښه جواب دا دے چه د هر انسان فطرت دا دے چه خپل ځان نه ملائك غوره ګڼړی څکه پاك مخلوق دے او په قوت او قدرت او شدت باندے مشهور دی۔

| وَقَاسَمَهُمَآ اِنِّيۡ لَكُمَا لَمِنَ النّٰصِحِيۡنَ ﴿۲۱﴾ |
|---|
| او قسم ئے وخوړو دواړو ته چه یقیناً زهٔ تاسو دواړو له خامخا د خیر خواهی کونکو نه یم۔ |
| فَدَلّٰىهُمَا بِغُرُوۡرٍ ۚ فَلَمَّا ذَاقَا الشَّجَرَةَ بَدَتۡ لَهُمَا |
| پس راکوز ئے کړل دواړه په دهوکه سره نو هرکله چه وڅکله دواړو ونه، ښکاره شو دواړو ته |
| سَوۡاٰتُهُمَا وَطَفِقَا يَخۡصِفٰنِ عَلَيۡهِمَا مِنۡ وَّرَقِ الۡجَنَّةِ ؕ |
| عورتونه خپل او شروع شو چه یوځای کولے ئے خانونو پسے د پاڼرو د جنت نه |

وَنَادٰهُمَا رَبُّهُمَآ اَلَمْ اَنْهَكُمَا عَنْ تِلْكُمَا الشَّجَرَةِ

او آواز وکړو دواړو ته رب د دوی آیا نهٔ وو منع کړی ما تاسو دواړه د دغه ونې نه

وَاَقُلْ لَّكُمَآ اِنَّ الشَّيْطٰنَ لَكُمَا عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ﴿۲۲﴾ قَالَا

او نهٔ وو وئیلی ما تاسو ته چه یقیناً شیطان تاسو له دشمن ښکاره دے۔ ووئیل دواړو

رَبَّنَا ظَلَمْنَآ اَنْفُسَنَا ﺝ وَاِنْ لَّمْ تَغْفِرْ لَنَا

اے ربه زمونږ! ظلم کړے مونږ په ځانونو خپلو او که بخښنه ونکړه تا مونږ ته

وَتَرْحَمْنَا لَنَكُوْنَنَّ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴿۲۳﴾

او رحم دے ونکړو په مونږ خامخا شو به د تاوانیانو نه۔

**تفسیر** : وَقَاسَمَهُمَآ: شیطان د خپلې خبرې د مضبوطوالی دپاره هغوی ته په الله قسم وکړو۔ آدم علیه السلام ته الله وفرمایل: آیا ما نهٔ وے منع کړے ددے حرامے ونے نه؟ هغه وفرمایل: ولے نهٔ اے ربه! لیکن قسم مے دے ستا په عزت وی چه ددے نه مخکښې ما دا گمان نهٔ کولو چه یو څوك به په الله باندے په دروغه قسم خوری۔ (ابن کثیرؒ)

نو ابلیس اولنے هغه شخص دے چه په الله باندے ئے په دروغه قسم خوړلے دے۔ (بغویؒ)

قَاسَمَ: په معنیٰ د اَقْسَمَ سره دے۔

فَدَلّٰهُمَا بِغُرُوْرٍ : دا د اُوچتے درجے نه خکته درجے ته راکوزول دی، یا د طاعت نه معصیت ته۔

ازهریؒ وائی : تَدْلِيَه دے ته وائی چه یو تږے سړے کوهی ته بوکه کوزه کړی دے دپاره چه تنده پرے ماته کړی لیکن په کوهی کښې اُوبه مونده نهٔ کړی نو دا زوړندونکے دهوکه شی۔ (بغویؒ)

بِغُرُوْرٍ : غرور د نصیحت ښکاره کول او په زړه کښې شر پټ ساتلو ته وائی۔

شیطان دواړو له دهوکه ورکړه او د پورته ځای نه ئے خکته ځای ته اُورسول۔

ددے تفسیر یو دا هم شویدے چه هغه دے دواړو ته د گناه کولو همت ورکړو نو کله چه دواړو منع شوے ونه د شیطان په دهوکه کښې راتلو سره وخوړله نو د هغے د نافرمانئ انجام فوراً د دوی مخے ته راغلو چه د دوی لباس د دوی د جسمونو نه جدا شو، او دوی ته د یو بل

عورتونه ښکاره شو چه مخکښې به دوی د یو بل عورتونه نهٔ لیدل نو د جنت د ونو پاڼې ئې راخستلې او خپل بدن سره ئې یو ځای کولې، دې دپاره چه پرده وکړي. نو په هغه وخت کښې الله ورته د ملامتیا په طریقه ووئیل چه آیا ما تاسو ددې ونې د خوړلو نه نهٔ وئ منع کړي، او ما نهٔ وو وئیلي چه شیطان ستاسو د دواړو ښکاره دشمن دے؟ نو په هغه وخت کښې دوی د خپلې غلطئ د الله په حضور کښې اقرار وکړو او الله هغوی ته وخودل چه د خپلې غلطئ د معاف کولو دپاره دا دعا وکړي: ﴿ رَبَّنَا ظَلَمْنَا اَنْفُسَنَا وَاِنْ لَّمْ تَغْفِرْ لَنَا وَتَرْحَمْنَا لَنَكُوْنَنَّ مِنَ الْخَاسِرِيْنَ ﴾

علامه قاسمیؒ د علامه جشمیؒ نه نقل کړیدی چه په آدم علیه السلام کښې پنځه ښه خویونه موجود شو: هغه د ګناه اقرار وکړو، په هغې پښیمانه شو، خپل نفس ئې ملامته کړو، فوراً ئې توبه وویستله، او د الله د رحمت نه نا اُمیده نشو۔ او په ابلیس کښې پنځه بدیانې موجودې شوې: د خپلې ګناه اقرار ئې ونکړو، په هغې پښیمانه نشو، خپل نفس ئې ملامته نکړو، بلکه په خپل رب ئې اعتراض وکړو، او توبه ئې ونهٔ ویستله، او د الله د رحمت نه نا امیده شو۔ (محاسن التاویل)

یَخْصِفٰنِ : خصف ګنډلو ته وائي یعنی ځان سره ئې یو ځای کولې۔

رَبَّنَا ظَلَمْنَاۤ اَنْفُسَنَا : دلته سکته ده او دا سکته د ډیر خفګان نه او د مرئ د بار بار انښتلو نه کیږي۔

وَاِنْ تَغْفِرْ لَنَا : هر انسان دوه څیزونو ته محتاج دے، یو د مخکنو ګناهونو د معاف کیدو او په راتلونکي زمانه کښې د رحم کولو۔

| قَالَ اهْبِطُوْا بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ ج وَلَكُمْ فِى الْاَرْضِ |
|---|
| ووئیل الله، کوز شئ، بعضې ستاسو به د بعضو دپاره دشمنان وی او تاسو له په زمکه کښې |
| مُسْتَقَرٌّ وَّمَتَاعٌ اِلٰى حِيْنٍ ﴿۲۴﴾ قَالَ فِيْهَا |
| ځای د وسیدو دے او فائدې دی تر یو وخت پورې۔ ووئیل الله، پدې زمکه کښې به |
| تَحْيَوْنَ وَفِيْهَا تَمُوْتُوْنَ وَمِنْهَا تُخْرَجُوْنَ ﴿۲۵﴾ |
| ژوند تیروئ او پدې کښې به مړهٔ کیږئ او ددې نه به راویستلې کیږئ۔ |

**تفسیر** : الله د آدم علیه السلام او حواء رضی الله عنها دعا قبوله کړه او هغوی ئې معاف کړل لیکن

هغوی ته ئے ووئیل چه د گناه کولو نه روستو به اُوس په جنت کښې ستاسو دپاره ځای نهٔ وی۔ ابلیس د سجدے نه انکار وکړو، او تاسو دواړو د منع شوے ونے په خوړلو سره د الله نافرمانی وکړه، پدے وجه اُوس به ستاسو دپاره ځای زمکه وی، او تر دنیا پاتے کیدو پورے به تاسو او ستاسو اولاد او د ابلیس او د هغه د اولادو ترمینځ دشمنی روانه وی۔ تاسو ټول به په زمکه کښې وسیږئ او د دنیا د عارضی نعمتونو نه به تر مرګ راتلو پورے فائدے اخلئ، هلته به ژوندی کیږئ او هم هلته به مرئ او د قیامت په ورځ به هم د هغه ځای نه راپورته کیږئ۔

حافظ ابن کثیر رحمه الله لیکلی دی چه مفسرینو د غیر معتمد اسرائیلی روایاتو نه فائده اخستو سره هغه ځایونه ذکر کړیدی کوم ځای چه آدم ﷺ، او حواء رضی الله عنها او ابلیس هریو په زمکه کښې راکوز شوی وو، که د هغے په ذکر کولو کښې څه فائده وے نو الله به په خپل کتاب کښې یا رسول الله ﷺ به ضرور هغه ذکر کړی وے۔

| |
|---|
| يٰبَنِيْٓ اٰدَمَ قَدْ اَنْزَلْنَا عَلَيْكُمْ لِبَاسًا يُّوَارِيْ سَوْاٰتِكُمْ |
| اے اولاد د آدم! یقیناً رالیږلے ده مونږ تاسو له جامه پټوی عورتونه ستاسو |
| وَرِيْشًا ؕ وَلِبَاسُ التَّقْوٰى ۙ ذٰلِكَ خَيْرٌ ؕ ذٰلِكَ مِنْ اٰيٰتِ اللّٰهِ |
| او جامه د ډول، او جامه د تقوی دا ډیره غوره ده، دا د نعمتونو د الله نه دی |
| لَعَلَّهُمْ يَذَّكَّرُوْنَ ﴿٢٦﴾ |
| دے دپاره چه دوی نصیحت واخلی۔ |

**تفسیر**: پدے مخکنی تاریخ باندے څلور تفریعات بیانیږی چه دا د مخکنئ واقعے نه فائدے راوستل دی، اول دا چه الله تعالیٰ ستاسو دپاره په دنیا کښې د عورت پټولو دپاره او د زینت او ډول کولو دپاره لباس پیدا کړو پس د هغے نه چه د جنت لباس ئے ترے واخستو نو ددے نعمت تقاضا دا ده چه بندګان ددے په ذریعه خپل ځانونه پټ کړی لیکن مشرکان راولګیدل او د شیطان په لاره روان شو چه ځانونه ئے بربنډ کړل۔

اَنْزَلْنَا: اِنزال دلته په معنیٰ د خلق (پیدا کولو) دے، لیکن انزال لفظ ئے ورله پدے وجه استعمال کړو چه په آسمانی تدبیر سره پیدا کیږی لکه باران ورول او په هغے سره بوټی راوستل او په دغه بوټو کښې د پنبی بوټی او وریښم او ریږ وغیره پیدا کیدل۔ لکه دغه

شان لفظ په سورة الحدید (۲۵) آیت ﴿وَأَنزَلْنَا الْحَدِيدَ﴾ او سورة الزمر (٦) آیت کښې ﴿وَأَنزَلَ لَكُم مِّنَ الْأَنْعَامِ ثَمَانِيَةَ أَزْوَاجٍ﴾ راغلے دے۔

وَرِيشًا : لباس په دوه قسمه دے، یو هغه دے چه صرف عورت پرے پټیږی او ددے نه چه سوئ وی نو هغه د زینت (ډول) دپاره دے هغې ته ریش وائی۔ لکه توپۍ، پټکے، رومال وغیره۔ او دا د لباس دوه فائدو ته هم اشاره ده چه هغه عورت پټول او د بدن نوره حصه پټول دی۔

ریش : دا په اصل کښې د ریش الطائر نه اخستے شویدے یعنی د مارغه بنړے۔ او د مارغه دپاره بنړکے زینت دے پدے وجه دا په معنیٰ د زینت سره استعمالیږی۔ جوهریؒ وائی: ریش او ریاش فاخر (غوره) لباس ته وائی۔ ریش کله مال ته هم وائی۔ (ابن عباسؓ، مجاهدؒ)۔

او ریش کله مصدر هم استعمالیږی (ابن جریرؒ) یعنی دپاره د زینت۔

صاحب المنارؒ وائی چه زمونږ په نیز غوره دا ده چه د ریش نه مراد لباس الحاجة (چه د یخنۍ او ګرمۍ نه حفاظت راولی) او لباس د زینت دے ځکه چه دا د لباس الستر سره یو ځای ذکر شویدے۔ (المنار ۳۱۹/۸)

وَلِبَاسُ التَّقْوَىٰ : دا د قرآن طریقه ده چه کله د دنیا خبره بیانه کړی نو زر آخرت طرفته ترغیب ورکوی، نو مخکښې لباسونه ذکر شو نو کیدے شی چه د بندګانو ذهن هغې طرفته زیات متوجه شی نو اُوس ئے د آخرت والا لباس ته متوجه کوی۔

لباس التقویٰ : ددے نه مراد ایمان او عمل صالح دے۔

نو لباسونه دوه قسمه دی، یو ظاهری دی، ددے استعمال هم ضروری دے دپاره د عورت پټ ساتلو، او دغه شان ایمان او عمل صالح او د شرکیاتو او ګناهونو نه ځان ساتلو لباس هم ضروری دے، او په مشرکانو کښې دا دواړه لباسونه نهٔ وو نهٔ ظاهری، او نهٔ باطنی۔

بیا ئے د تقویٰ لباس ته زیات غوره ووئیلو ځکه چه دا د انسان سره همیشه وی، نهٔ زړیږی او نهٔ شوکیږی او دا د زړه او د روح جمال دے او په ظاهری لباس کښې صرف د عورت پټولو او کله د زینت حاصلولو فائده وی نهٔ بل څه۔ دارنګه که ظاهری لباس نهٔ وی نو صرف عورت به ښکاره شی نو د ضرورت په وخت کښې دا ضرر نهٔ رسوی او که د تقویٰ لباس نشو نو باطنی عورت به ښکاره شی چه بنده به د شرم او رسوائی سره مخامخ شی۔
(تفسیر السعدی ۲۸۵/۱)

## لباس التقوىٰ څه شے دے ؟

د لباس التقوىٰ مفسرينو ډير مصداقات ذکر کړيدی د فائدے دپاره ذکر کولے شي :

(۱) مخکښې ايمان او عمل صالح ذکر شو۔ (۲) اَلسَّمْتُ الْحَسَن ۔ (عثمان بن عفان ﷺ) چه د بنده ناسته پاسته ښائسته او د وقار وی، د دين مطابق وی۔

(۳) الحياء۔ ځکه چه دا د تقوىٰ باعث ده۔ (الحسنؒ)

(٤) د ورِیٔ او زیږه جامه اچول ځکه چه پدے کښې عاجزی زياته ده۔ (فتح القدير)

ليکن دا قول د ټولو نه ضعيف دے ځکه چه دا شر لباس دے او د شهوت او مذموم شهرت لباس دے۔ (المنار)۔

(٤) د الله نه يره۔ (عروه بن الزبيرؒ)

يعنی چه د بنده هر وخت په زړه باندے د الله يره طاری وی۔

(٦) العفاف۔ (پاکدامنی)۔ (کلبیؒ)

يعنی لباس د تقوىٰ باندے عمل کول غوره دی د هغه لباس نه چه کوم د ډول دپاره وی۔

(۷) ابن الانباریؒ وائی : لباس التقوىٰ دغه مخکنے لباس دے ليکن دوباره ئے ذکر کړو پدے کښې دا تنبيه ده چه عورت پټ ساتل د بربنډوالی نه په طواف کښې بهتر دی۔ (ابن کثيرؒ، بغویؒ، فتح القدير) علامه شوکانیؒ وائی : غوره دا ده چه د لباس د تقوىٰ نه مراد د وَرَع او د گناهونو نه د ځان ساتلو لباس دے نو پدے کښې ټول هغه څه داخليږی چه په هغے کښې تقوىٰ وی نو دا ټولو اقوالو ته شامل شو۔

ذٰلِكَ : دلته ئے اسم اشاره د (هُوَ) ضمير په ځای کيخوده، اشاره ده تاکيد د مضمون ته۔

| يٰبَنِيْٓ اٰدَمَ لَا يَفْتِنَنَّكُمُ الشَّيْطٰنُ كَمَآ اَخْرَجَ اَبَوَيْكُمْ |
|---|
| اے اولاد د آدم ! گمراه دے نهٔ کړی تاسو لره شيطان لکه چه راويستل مور او پلار ستاسو |
| مِّنَ الْجَنَّةِ يَنْزِعُ عَنْهُمَا لِبَاسَهُمَا لِيُرِيَهُمَا سَوْاٰتِهِمَا ط |
| د جنت نه، ويستل ئے د دوی نه جامه د دوی دے دپاره چه وښائی دوی ته عورتونه د دوی |
| اِنَّهٗ يَرٰىكُمْ هُوَ وَقَبِيْلُهٗ مِنْ حَيْثُ لَا تَرَوْنَهُمْ ط |
| يقيناً شان دا دے چه وينی تاسو لره دے او دهٔ قبيله د هغه ځای نه چه نهٔ وينئ تاسو دوی لره |

إِنَّا جَعَلْنَا الشَّيٰطِيْنَ أَوْلِيَآءَ لِلَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۲۷﴾

يقيناً مونږ ګرځولي دي شيطانان دوستان د هغه کسانو چه ايمان نهٔ راوړي۔

**تفسير**: دا بله تفريع ده او مقصد پکښې دا دے چه دوی دوباره د شيطان لعين د شر نه ويروی، او د هغه په سازشونو کښې د ګرفتاريدو نه يره ورکړي چه دوی د جنت نه محروم نکړي لکه د دوی مور او پلار ئے د جنت نه د تکليف او مشقت والا کور ته راويستلي دي او د هغه د تابعدارئ نه ئے منع کړي۔

لَا يَفْتِنَنَّكُمُ الشَّيْطٰنُ : د شيطان فتنه کښې اچول دا دي چه ګناهونه ښائسته ښکاره کړي او هغے ته دعوت او ترغيب ورکړي۔ (السعدیؒ) يا دا چه انسان ګمراه کړي او د دين نه ئے واړوي۔ (القرطبیؒ) يا دريانده په طواف کښې لباسونه حرام کړي۔

مِنْ حَيْثُ لَا تَرَوْنَهُمْ : حيث لفظ ذکر کولو سره دا سوال ختميږي چه شيطانان خو په بعض اوقاتو کښې ليدلے کيږي؟ نو جواب دا دے چه په هغه حيثيت سره ئے بندګان نشي ليدلے په کوم حيثيت سره چه دوی پيدا شويدي او کله چه خپل شکل بدل کړي لکه د مار، لړم، يا بل حيوان شکل اختيار کړي نو بيا ئے انسان ليدلے شي، خو په خپل اصلي شکل ئے نشي ليدلے۔نو دا آيت د هغه احاديثو او آثارو خلاف نهٔ دے چه په هغے کښې دا دي چه رسول الله ﷺ په مسجد کښې د شيطان د ترلو اراده وکړه ليکن د حکمة دپاره ئے پريخودو، ابو هريره ﷺ نه ئے غلا کړيده، ابی بن کعبؓ ورسره څملکولے کړيدي او رسول الله ﷺ د يو صحابي نه د کوترې په شکل په دم سره ويستلے دے۔ ډير ظالمان ددے تولو احاديثو نه انکار کوي او دا وائي چه دا د قرآن خلاف دي حال دا چه دوی په قرآن نهٔ پوهيږي، په خپلو دماغو باندے د قرآن غلط تفسير کوي۔ او دا حکم د ملائکو هم دے چه شکل بدل کړي نو بيا ليدلے شي۔

او پدے خبر کښې څه فائده ده چه الله تعالیٰ فرمائي چه ابليس او د هغه لښکر تاسوويني او تاسو هغه نهٔ وينئ؟۔ نو پدے کښې مقصود انسانانو ته دا خبره راياددول دي چه ستاسو د داسے دشمن سره واسطه راغلے ده چه هغه نهٔ ليدلے کيږي۔ او داسے دشمن ډير خطرناك وي۔ او د هغه نه بچ کيدل مشکل کار وي۔

مالك بن دينارؒ به وئيل چه داسے دشمن چه په نظر نهٔ راځي او تاسو هغه نهٔ وينئ ډير سخت دشمن دے۔ او د هغه نه خلاصيدل ډير مشکل کار دے۔ د هغه د شر نه هغه څوك

بچ کیدے شی چه الله ئے بچ کړی۔ (بغوی)

قَبِيْلُهٗ: ددے نه مراد لښکرے دی، ابن عباسؓ وائی: اولاد د هغه،

قتادةؒ وائی: الجن والشیاطین۔ (بغوی) (جنات او شیطانان)۔

اَوْلِيَآءَ: یعنی الله تعالیٰ شیطانان د کافرانو دوستان جوړوی او په هغوی باندے ئے مسلط کوی چه د هغوی د زړونو نه د ایمان رنړا راکاږی او د شر او فساد لاره ورته پرانیزی او د نیکانو نه ئے وړاندے کوی۔

| وَاِذَا فَعَلُوْا فَاحِشَةً قَالُوْا وَجَدْنَا عَلَيْهَآ اٰبَآءَ نَا |
|---|
| او کله چه وکړی دوی بدکار وائی دوی موندلی دی پدے باندے پلاران خپل |
| وَاللّٰهُ اَمَرَنَا بِهَا ؕ قُلْ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَاْمُرُ بِالْفَحْشَآءِ ؕ |
| او الله تعالیٰ حکم کړیدے مونږ ته پدے، ته ووایه یقیناً الله حکم نهٔ کوی په بد کار |
| اَتَقُوْلُوْنَ عَلَى اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۲۸﴾ |
| آیا وایئ تاسو په الله باندے هغه څه چه پرے نهٔ پوهیږئ۔ |

**تفسیر:** اُوس د شیطان د فتنے په عربو مشرکانو کښں یوه نمونه ذکر کوی چه مشرکانو (سړو او ښځو) به د بیت الله طواف په بربنډه کولو، نو که یو عزتمند سړے به د بهر نه راغلو، هغه به په بربنډه طواف کښں شرم محسوسولو نو هغه به په جامو کښں طواف وکړو، بیا به ئے دغه جامه صدقه کړه او دا صدقه په هغه واجبه وه د هغوی د رواج مطابق، یا به ئے داسے وکړل چه خپلے جامے به ئے ویستلے او یو قریشی ته به ئے ووئیل چه ته ما ته یوه جامه په هدیه کښں راکړه، هغه به ورله اکرام وکړو (ځکه چه دوی پیران او بزرګان وو د دوی په جامه کښں طواف کیدو– دا شیطانی فریبونه وو) او زنانو به د شپے په بربنډه طواف کولو او په عورت به ئے لاس کیخودو او دا به ئے وئیل:

| وَمَــا بَـدىٰ مِـنْــهُ فَلَا اُحِـلُّــهٗ | ❀ | اَلْيَـوْمَ يَبْدُوْ كُـلُّــهٗ اَوْ بَـعْـضُــهٗ |
|---|---|---|

نن به ټول اندام ښکاره کیږی یا بعض اندام او کوم چه ښکاره شو نو هغه زهٔ چا ته نهٔ حلالوم۔

دا عملونه ورته شیطان ښائسته کړی وو چه مونږ پدے جامو کښں ګناهونه کړیدی نو حرم کښں به ددے سره نهٔ ګرځو، حال دا چه زړونه ئے د شرکی ګندونو نه ډک وو۔ او شیطان

يو په شرك او بل په بدن ښكاره كولو (بې حيائي) ډير خوشحاليږي- او دا دواړه ځيزونه زمونږ پدے زمانه كښې د سيلاب په شان راروان دي-

فَاحِشَةً: د فاحشے نه مراد يو په برينده طواف دے، او بل د الله په عبادت كښې نور خلك شريكول او نور لوى لوى ګناهونه دي- ددے تولو نسبت به ئے پلارانو ته كولو او د هغوى په تقليد كښې به ئے دا كارونه كول- او په الله به ئے دا دروغ وئيل چه الله مونږ ته ددے حكم كړيدے-

يا مطلب دا دے چه د پلار نيكه تابعدارى كول دا بعينه د الله حكم دے ځكه چه هغوى خو د الله دشمنان نهٔ وو-

اَمَرَنَا بِهَا : د دوى شبهه دا هم وه چه كه الله تعالىٰ ته دا اعمال خوښ نهٔ وے نو هغه به زمونږ د زړونو نه ددے رغبت او مينه ويستلے وے- د مشركانو دا دواړه دليلونه صحيح نهٔ وو، ځكه چه اولنے دليل د جاهلانو تقليد دے، او تقليد هيڅ كله د علم ذريعه نهٔ وى-

دارنګه د مشرانو په يو قبيح كار باندے روانيدل خو دوى ته د هغے كول نهٔ جائز كوى-

او دويم دليل په الله تعالىٰ باندے افتراء او دروغ تړل دي، پدے وجه الله ددے رد وكړو او وے فرمايل چه الله كله هم د ګناه او بدے خبرے حكم نهٔ كوى، هغه خو د ښائسته اخلاقو او كارونو حكم كوى، او هغه خو د انبياؤ عليهم السلام او آسمانى كتابونو په تابعدارئ حكم كړيدے- (قاسمیؒ)

امام شوكانى رحمه الله ليكلي دي چه پدے آيتِ كريمه كښې ډير لوى زجر او رټنه ده هغه خلقو ته چه حقه لاره پريدى او د خپلو پلارانو نيكونو تقليد كوى، ځكه چه دا د حق پرستو په ځاى د كافرانو اتباع ده- كافرانو به وئيل: ﴿ اِنَّا وَجَدْنَا آبَاءَنَا عَلٰى اُمَّةٍ وَّاِنَّا عَلٰى آثَارِهِمْ مُّهْتَدُوْنَ ﴾ (يقيناً مونږ خپل پلاران نيكونه په يوه طريقه موندلي وو او مونږ به د هغوى په نقش قدم روان يو- (الزخرف: ٢٢) - او دا به ئے هم وئيل: ﴿ وَجَدْنَا عَلَيْهَا آبَاءَنَا وَاللّٰهُ اَمَرَنَا بِهَا ﴾ - مونږ خپل پلاران نيكونه پدے لاره موندلي دي، او الله مونږ ته پدے باندے د روانيدو حكم كړيدے- (الاعراف: ٢٨)- كه مقلد په باطل ګمان كښې مبتلا نهٔ وے چه زمونږ پلاران پدے روان وو او الله ددے حكم كړيدے، نو هغوى به په تقليد هميشوالے نهٔ كولے- او ددے بد خصلت د وجه نه يهودى په خپل يهوديت او نصرانى په خپل نصرانيت او بدعتى په خپل بدعت مضبوط ولاړ وى- دے نه روستو ئے ليكلي چه ددے نه لوئى د دين نه غفلت او د حق نه اعراض كوم كيدے شي چه دا مقلدين د الله د كتاب او د رسول الله ﷺ د

سنت د موجودیدو سره د خلقو د اقوالو او آراؤ اتباع کوی او سره ددے نه چه عقل او د پوهے آله ورسره ده۔ (فتح القدیر للشوکانی ۲۷/۳)

| |
|---|
| قُلْ اَمَرَ رَبِّیْ بِالْقِسْطِ قف وَاَقِیْمُوْا وُجُوْهَكُمْ عِنْدَ كُلِّ |
| ته ووایه ! حکم کړیدے رب زما په انصاف سره او برابر کړئ مخونه خپل خواته د هر |
| مَسْجِدٍ وَّادْعُوْهُ مُخْلِصِیْنَ لَهُ الدِّیْنَ ۥ كَمَا |
| مسجد او دعاگانے غواړئ د هغه نه خالص کونکی هغه له د بلنے لکه څنګه ئے |
| بَدَاَكُمْ تَعُوْدُوْنَ ﴿۲۹﴾ فَرِیْقًا هَدٰی |
| چه اول پیدا کړی یئ تاسو دوباره به واپس کیږئ تاسو۔ یو ے ډلے ته ئے هدایت کړیدے |
| وَفَرِیْقًا حَقَّ عَلَیْهِمُ الضَّلٰلَةُ ۥ اِنَّهُمُ اتَّخَذُوا الشَّیٰطِیْنَ |
| او بله ډله ثابته شویده په هغوی باندے گمراهی، یقیناً دوی نیولی دی شیطانان |
| اَوْلِیَآءَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَیَحْسَبُوْنَ اَنَّهُمْ مُّهْتَدُوْنَ ﴿۳۰﴾ |
| دوستان سوئ د الله نه او گمان کوی دوی چه بیشکه دوی هدایت والا دی۔ |

**تفسیر** : دا دریم دلیل دے په رد د مشرکانو کښی چه الله ددے څیزونو حکم کړیدے نو ددے تابعداری وکړئ۔

**بِالْقِسْطِ** : قسط په اصل کښی حقدارته د هغه مناسب برخه ورکول دی نو دا جامعه کلمه ده، توحید ته هم وائی (ابن عباسؓ) او په ټولو کارونو کښی عدل کولو ته هم شامل دے۔ نو شرك او ظلم بی عدلی ده۔

ابو مسلم وائی : (جَمِیْعُ الطَّاعَاتِ) ټول عبادتونه۔ (قاسمی)

او د حافظ ابن کثیر رحمه الله په نیز د ((قِسط)) نه مراد د انبیاء کرامو علیهم السلام اتباع او د هغوی د شریعتونو پابندی ده۔

**وَاَقِیْمُوْا** : دا بل امر دے۔ یعنی هغه ددے خبرے حکم کوی چه بنده هرکله او هر ځای چه مونځ کوی نو د هغه د رضا دپاره ئے وکړی، او د هغه مخ قبلے طرف ته وی،

**عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ** : ۱– یعنی الله ته په هر مسجد کښی مخونه متوجه کړئ۔ یعنی هر مسجد کښی د الله بندگی وکړئ۔ ۲– یا مسجد په معنیٰ د سجدے سره دے اَیْ اَخْلِصُوْا

وُجُوْهَكُمْ فِيْ كُلِّ سَجْدَةٍ۔ (یعنی خالص کړئ مخونه خپل په هره سجده کښې۔ (دا تاویلی تفسیر دے)

۳- قاسمیؒ وائی : مسجد یا مصدر میمی دے او وقت لفظ پټ دے او عند په معنیٰ د فِيْ دے [اَيْ أَقِيْمُوْا ذَوَاتَكُمْ فِيْ كُلِّ وَقْتِ سُجُوْدٍ] یعنی خپل ځانونه د الله دپاره د هرے سجدے په وخت کښې برابر کړئ یا په منع کولو د مخونو سره د التفات او توجه د غیر نه، او لحاظ ساتلو د موافقت د امر او رشتینی نیت سره، یا په هغے کښې قبلے ته متوجه شئ۔

۴- یا دا اسم زمان او مکان دے په معنیٰ لغوی سره یعنی فِيْ كُلِّ وَقْتِ سُجُوْدٍ اَوْ مَكَانِهٖ۔ یعنی مخونه برابر کړئ الله ته په هر ځای د سجدے یا وخت د سجده کښې۔ او د سجدے نه مراد مونځ دے۔ یا معلوم مسجد مراد دے او معنیٰ به دا وی چه په کوم مسجد کښې تاسو ته مونځ حاضر شو نو هلته ئے وکړئ او مه ئے روستو کوئ دے ته چه تاسو خپل مسجدونو ته واپس شئ۔ لیکن دا بعید دے۔ (محاسن التاویل وفتح القدیر)

وَّادْعُوْهُ : دا رد د شرك في الدعاء دے۔

مُخْلِصِيْنَ : اخلاص دا دے چه په هغے کښې شرك ونکړے شی۔

كَمَا بَدَاَكُمْ : دا تخویف دے او د مخکنی امرونو د عملی کولو دپاره علت دے۔

كَمَا بَدَاَكُمْ : یعنی په هغه کیفیت به الله ته واپس کیږئ څنګه چه اول کښې ئے پیدا کړی وئ چه برېنډ، ناسنته، خپے ابیله لکه دا په حدیث کښې راغلی دی۔

یا ددے نه مراد دا دے چه د دنیا په ژوند کښې څوك هدایت والا وو او څوك د ګمراهئ والا وو او دغه شان د مور په خیټه کښې شقی او سعید وو نو په دغه طریقه به آخرت ته هم راځی۔ لکه روستو آیت پرے دلیل دے۔ او ددے سره هغه حدیث د صحیحینو منافات نۀ لری چه هر ماشوم په فطرت پیدا کیږی څکه چه د هغے مطلب دا دے چه د هر ماشوم په فطرت کښې اسلام شته لیکن روستو ورله مور او پلار او غلطه معاشره فطرت خراب کړی نو پدے وجه بعض مؤمن شی او بعض کافر لکه الله تعالیٰ فرمایلی دی: ﴿هُوَ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ فَمِنْكُمْ كَافِرٌ وَّمِنْكُمْ مُّؤْمِنٌ﴾ (هغه الله تاسو پیدا کړی یئ پس ستاسو نه څوك کافر دے او څوك مؤمن)۔ (التغابن : ۲)۔

دغه شان د قیامت په ورځ به دوی مؤمنان او کافران راپورته کوی۔

پدے وجه الله تعالیٰ دے نه روستو وفرمایل : ﴿فَرِيْقًا هَدٰى وَفَرِيْقًا حَقَّ عَلَيْهِمُ الضَّلٰلَةُ﴾ (الله یوے ډلے ته هدایت کړے او د بلے ډلے په قسمت کښې ګمراهی راغلے ده)۔

دے نـه روستو الله ددے علت بیان کړو او وے فرمایل چه دا پدے وجه وشو چه دوی د الله په ځاي شيطانانو لره خپل مشران او مددګاران جوړ کړي وو او ګمان ئے کولو چه دوی په حق دی۔

فَرِيْقًا : دا حال دے د تَعُوْدُوْنَ د ضمير نه يا د ضمير د بَدَأَكُمْ نـه او مطلب ئے مخکښ بیان شو۔

هَدٰى : يعنى الله ورته هدايت کړيدے۔

اِنَّهُمُ اتَّخَذُوا : دا علت د روستو ډلے دے يعنى د ګمراهئ سبب تقدير نهٔ دے بلکه دوی د شيطانانو تابعداری کړيده او په خپله خوښه ئے ګمراهي اختيار کړيده۔ لکه چه مخکښ بيان شو۔

اَوْلِيَآءَ : د ولايت نـه مراد دا نهٔ دے چه دوی شيطان سره دوستي کوی او هغه ښه ګڼړی بلکه د ولايت نه مراد طاعت دے۔

وَيَحْسَبُوْنَ اَنَّهُمْ مُّهْتَدُوْنَ : دا رد دے په هر مشرك او بدعتي باندے چه خپل شرك او بدعت ته ښه وائی او ځان په هدايت ګڼړی۔

| يٰبَنِيْٓ اٰدَمَ خُذُوْا زِيْنَتَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ وَّكُلُوْا وَاشْرَبُوْا |
| --- |
| اے بنيادمانو ! وئيسئ دول خپل په نيز د هر جمات او خورئ او څکئ |
| وَلَا تُسْرِفُوْا ج اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الْمُسْرِفِيْنَ ﴿۳۱﴾ |
| او اسراف مهٔ کوئ، يقيناً الله مينه نکوی د اسراف کونکو سره۔ |

**تفسير** : دا دريم خطاب او تفريع ده او پدے کښ د دوی په نورو بدعاتو باندے رد دے، يو خو په بربنډه طواف کول وو، او بل بدعت دا وو چه دوی به کله د حج دپاره احرام وتړلو نو ډير لږ خوراك به ئے کولو (قُوْتَ مَا لَا يَمُوْتُ) چه ايله د مرګ نه به پرے بچ وو، او بعضو به غوړی او غوښه او بعضو به د چيلو پئ په ځان حرام کړی وو او دا به ئے وئيل چه مونږ د الله ميلمانه يو، نو د ځان نه بزرګي ئے شروع کړے وه نو الله پرے رد کوی، چه دا څه نيکي او د تقوئ خبره نهٔ ده، بلکه د الله ورکړی لباس په وجه خپل ځانونه الله ته ښائسته کړئ دے دپاره چه د الله د نعمت اثر په تاسو وليدلے شي او د الله خوراکي نعمتونه استعمال کړئ۔

خُذُوْا زِيْنَتَكُمْ : د زينت نـه مراد جامے دی، ددے وجه نـه په مانځه کښ دومره لباس

اغوستل چه عورت او اُوګے پرېے پټې کړې فرض دي. او ددې آیت او ددې په معنیٰ د احادیثو د نظره د مانځه په وخت کښې ښائسته لباس او پاك صفا لباس اغوستل مستحب دي، په نسبت ددې چه د کار یا د شپې په جامو کښې مونځ کوي او ځان ترینه خلاصوي، خاصکر چه د جُمعې او د اختر ورځ وي. او خوشبوئي لګول ځکه چه دا په زینت کښې داخل دي، او مسواك کول ځکه چه دا د زینت تکمیل دې او د ټولو نه افضل سپین لباس دې، لکه چه په صحیح احادیثو کښې راغلي دي.

وَّكُلُوْا وَاشْرَبُوْا : یعني دا حلال ګڼړئ.

وَلَا تُسْرِفُوْا : اسراف د حد نه تجاوز ته وائي او ددې ډیر صورتونه دي :

(۱) حلال حرام کړي، لکه مشرکانو دغه کار کړې وو.

(۲) یا د حلال نه تجاوز کولو سره حرام هم وخوري. (۳) یا د حلال او حرام تمییز کولو نه بغیر په حرص سره هغه وخوري. (٤) په غیر د اشتهاء نه خوراك وکړي.

(۵) یا دومره کمه وخوري چه په هغې سره جسماني صحت او د عمل قوت کمزورې شي.

(٦) یا مُضر صحت څیزونه وخوري.

(۷) یا په خوراك څکاك کښې فضول خرچي کول هم پدې کښې داخلیږي. اسراف دې ټول څیزونو ته شاملیږي، پدې وجه د بعض سلفو نه نقل دي چه [جَمَعَ اللّٰهُ الطِّبَّ كُلَّهٗ فِيْ نِصْفِ آيَةٍ] الله ټول طب (ډاکټري) په نیم آیت کښې راجمع کړیده. که پدې آیت باندې عمل وشو، انسان به د ډیرو بیماریانو نه خلاص شي. لکه دې باره کښې قصه واوره.

## عجیبه قصه

د هارون الرشید یو نصراني طبیب وو، هغه زین العابدین علي بن الحسینؓ ته ووئیل چه ستاسو په کتاب (قرآن) کښې د علم طب هیڅ خبره نشته، حال دا چه عِلمونه دوه قسمه دي، علم الادیان، او علم الابدان نو زین العابدین ورته ووئیل چه الله تعالیٰ ټول طب د قرآن کریم په نیم آیت کښې راجمع کړیدې. هغه تپوس وکړو هغه کوم آیت دې؟ نو هغه وفرمایل : الله فرمائي :﴿ كُلُوْا وَاشْرَبُوْا وَلَا تُسْرِفُوْا ﴾

(خورئ او څکئ او د حد نه تجاوز مه کوئ).

په مړه خیټه خوراك نه ډیرې بیماریانې پیدا کیږي. نبي کریم ﷺ فرمایلي دي : [مَا مَلَأَ آدَمِيٌّ وِعَاءً شَرًّا مِنْ بَطْنِهٖ، حَسْبُ ابْنِ آدَمَ أُكُلَاتٌ يُقِمْنَ صُلْبَهٗ، فَإِنْ كَانَ فَاعِلًا لَا مَحَالَةَ فَثُلُثٌ

طَعَامٌ وَثُلُثٌ شَرَابٌ وَثُلُثٌ لِنَفَسِهِ] چه بنده د خپلې خيټې نه زيات بد لوښے بل نۀ ډکوی، د بنده دپاره يو څو نوړئ کافی دی چه د هغه ملا نيغه وساتی، او که خامخا ډير خوراك کوتکے وی نو يوه حصه د خوراك دپاره او يوه د اوبو څکلو دپاره او يوه حصه د ساه دپاره (پکار ده)۔ (مسند احمد، ١٧٢٢٥ نسائی: ٦٧٣٧) بسند صحيح)۔

| قُلْ مَنْ حَرَّمَ زِيْنَةَ اللّٰهِ الَّتِيْٓ اَخْرَجَ لِعِبَادِهٖ |
|---|
| ووايه ! چا حرام کړيدے ډول د الله هغه چه راويستلے ئے دے بندګانو خپلو له |
| وَالطَّيِّبٰتِ مِنَ الرِّزْقِ ؕ قُلْ هِيَ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا فِي الْحَيٰوةِ |
| او پاك څيزونه د رزق، ووايه ! دا دپاره د هغه کسانو دی چه ايمان ئے راوړيدے په ژوند |
| الدُّنْيَا خَالِصَةً يَّوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ كَذٰلِكَ |
| دنيوی کښې، يواځې به وی (دوی لره) په ورځ د قيامت۔ دغسے |
| نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ﴿٣٢﴾ |
| په تفصيل سره بيانوو مونږ آيتونه دپاره د هغه قوم چه پوهيږی۔ |

**تفسير**: پدے آيتِ کريمه کښې په هغه مشرکانو رد دے چه د خپل نفس د خواهش مطابق د لباس او د خوراك څکاك څيزونه حلال او حرام جوړوی۔

ابن ابی حاتمؒ او طبرانیؒ وغيره د ابن عباس ؓ نه روايت کړيدے چه قريشو به په برېنډه د بيت الله طواف کولو او شپيلی او لاسونه به ئے تقول، نو دا آيت نازل شو، او مسلمانانو ته د لباس اغوستلو حکم وشو۔

مَنْ حَرَّمَ : يعنی حرامونکے خو الله دے نو بل څوك راغلو چه هغه دا څيزونه حرام وګرځول، نو پدے کښې سخته زورنه ده هغه کسانو ته چه د ځان نه حلال حرام جوړوی۔

د (زينة) نه مراد هر هغه مباح شے دے چه انسان ئے د ښائست دپاره استعمالوی۔ او د (طيبات) نه مراد د خوراك څکاك هر هغه شے دے چه الله بندګانو دپاره مباح کړيدے۔

ابن جرير طبریؒ ليکلی دی چه چا د مالوچو او کتان لباس پريخوده او د وېښتو او د وړئ لباس ئے اختيار کړونو هغه ډيره لويه غلطی وکړه، او چا چه د غنمو روټئ پريخوده او سبزيانے او دال ئے شروع کړل او چا چه د شهوت د ويرے د وجه نه غوښه خوړل پريخودل دهٔ

ډیره غټه غلطي وکړه، آه۔ یعنی دا هیڅ بزرګي نۀ ده بلکه بې ځایه تصوف دے۔
لِعِبَادِهٖ: یعنی دا لباسونه او خوراکونه خو الله ددے دپاره پیدا کړیدي چه بندګان ترے فائده واخلي او د هغه بندګي پرے وکړي۔
مهایمیؒ وائي چه مشرکانو دغه څیزونه د عبادت منافي ګنړل نو الله په هغوی رد وکړو چه دا خو د عبادت دپاره دي۔ (قاسمیؒ)
قُلْ هِيَ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا : نو پدے اعتبار سره د دنیا ټول نعمتونه په اصل کښ د مؤمنانو او فرمانبردارو دپاره پیدا شویدي، البته کافران هم ددے نه نۀ دي منع کړے شوي، هغوی هم په خپلو اعمالو او تدبیرونو سره دنیوي فائدے حاصلوي، بلکه کله چه مؤمنان په قوتِ ایماني او تقوئ کښ کمزوري شو نو په دنیاوي څیزونو باندے دا کافران غاصبان په خپل کوششونو سره زیات کامیاب معلومیږي، یا خو دا د کافرانو د بد اعمالو نتیجه هم ده چه الله ورته فراخي ورکوي او بیا ئے سخت راګیروي او پدے کښ مؤمنانو ته تنبیه او توبیخ دے۔ او هرچه د آخرت نعمتونه دي نو هغه خالص د ایمان والو برخه ده۔
نو ایمان دومره ښه شے دے چه د دنیا نعمتونه هم پرے ملاویږي او د آخرت هم۔ او ددے برعکس د کفر سپیرۀ والے دے۔
خَالِصَةً يَّوْمَ الْقِيٰمَةِ : ددے دویم مطلب ښینو دا بیان کړیدے چه دنیاوي نعمتونه خالص نۀ دي ځکه ددے سره ډیر غمونه او فکرونه او تکلیفونه برداشت کیږي او د آخرت نعمتونه د هر قسم تکلیفونو نه خالي دي۔
خَالِصَةً : دا منصوب دے په [يُخْلِصُ اللّٰهُ] فعل سره۔ یعنی الله به ئے خالص ورکوي مؤمنانو ته په قیامت کښ۔ یا حال دے د (هِيَ) مبتداء نه۔ اَیْ هِیَ لَهُمُ الْآنَ حَالَ کَوْنِهَا خَالِصَةً يَّوْمَ الْقِيٰمَةِ) یعنی دا نعمتونه د ایمان والو دپاره اُوس دي پداسے حال کښ چه په آخرت کښ به یواځې د دوي وي۔ (التحریر۸/۷٤)
يَّعْلَمُوْنَ: یعنی دا د علم والا خبرے دي۔ يَعْلَمُوْنَ اَنَّهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ فِي الْحِلِّ وَالْحُرْمَةِ۔ یعنی پدے پوهیږي چه په حل او حرمت کښ د الله سره شریکان نشته۔

| قُلْ اِنَّمَا حَرَّمَ رَبِّيَ الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا |
| --- |
| ووایه! یقیناً حرام کړیدي رب زما بے حیا کارونه هغه چه ښکاره دي ددے نه او هغه |

بَطَنَ وَالۡاِثۡمَ وَالۡبَغۡیَ بِغَیۡرِ الۡحَقِّ وَاَنۡ تُشۡرِکُوۡا بِاللّٰهِ مَا

چه پټ دي او هره ګناه او ظلم په ناحقه او دا چه شریک تاسو د الله سره هغه څه چه

لَمۡ یُنَزِّلۡ بِهٖ سُلۡطٰنًا وَّاَنۡ تَقُوۡلُوۡا عَلَی اللّٰهِ مَا لَا تَعۡلَمُوۡنَ ﴿۳۳﴾

نۀ دے رالیږلے الله په هغے دلیل او دا چه جوړ کړئ په الله هغه څه چه تاسو پرے نۀ پو هیږئ۔

**تفسیر** : آیتِ کریمه کښې اساسي محرمات او د بنیادي ګناهونو حرمت بیانوي۔

د ((فواحش)) نه مراد هغه لوی ګناهونه دي چه د هغے تعلق د عورت سره وي، یا هغه چه د هغے فساد عقل والا ته ښکاره وي، لکه زنا، دروغ او نوره بی حیائی۔ او د ((اثم)) نه مراد هره ګناه ده۔ او د ((بغی)) نه مراد په خلقو ظلم او زیاتے دے، او په الله دروغ جوړول دا دي چه چا لره د هغه څوی جوړ کړے شي، یا په حلت او حرمت کښې د ځان نه جوړ شوی احکام الله طرف ته منسوب کړے شي۔

یا اثم کښې د حقوق الله خلاف وي او په بغي کښې د حقوق العباد۔

بِغَیۡرِ الۡحَقِّ : دا د زیات قباحت دپاره ذکر کیږي، یا احتراز دے د بغي بالحق نه چه هغه جهاد في سبیل الله دے۔

**فائده** : انسان چه کمال ته رسیږي نو په یو څو صفاتو (۱) اَلۡعِفَّة، چه بنده کښې عفت (پاکدامني) راشي۔ (۲) اَلۡحِلۡم۔ (صبر)۔ (۳) اَلشَّجَاعَة۔ (بهادري)۔ (٤) العلم، (٥) اَلۡاِنۡقِیَاد۔ (د الله حکمونو ته غاړه کیښودل)

نو فواحش د سړي نه عفت ختموي او الاثم انقیاد ختموي او بغي د انسان نه حِلم، او شرك شجاعت، او تقول علی الله علم لره ختموي۔ پدے وجه ددے پنځه څیزونو نه منع وشوه۔

وَاَنۡ تُشۡرِکُوۡا : دا شرك اعتقادي ته اشاره ده او (اَنۡ تَقُوۡلُوۡا) کښې شرك فعلي د حلال او حرامو ته اشاره ده۔ او د تقول علی الله او افتراء بعض صورتونه په سورة الانعام آیت (۲۱، ص (۳۳) کښې ذکر شو۔

وَلِکُلِّ اُمَّةٍ اَجَلٌ ۚ فَاِذَا جَآءَ اَجَلُهُمۡ

او د هر امت دپاره یوه نیټه ده نو کله چه راشي نیټه د هغوی (نو عذاب به ورکړے شي)

| لَا يَسْتَأْخِرُوْنَ سَاعَةً وَّلَا يَسْتَقْدِمُوْنَ ﴿٣٤﴾ |
|---|
| نۀ به شي روستو کيدے دوي يو ساعت او نۀ به مخکښ کيدے شي۔ |

**تفسیر:** جواب د سوال دے چه هر کله چه دا خلك شرکونه او گناهونه کوي نو الله پرے عذاب ولے نۀ راولي؟ جواب وشو چه الله تعالیٰ د هر قوم او د هر یے زمانے وسیدونکو دپاره د مرگ او وفات کیدو یو وخت مقرر کړیدے کله چه هغه ساعت راشي نو هغه به هیڅوك نشي روستو کولے۔

سوال وجواب

سوال: کله چه اجل راشي نو روستو کیدل خو امکان لري لیکن مخکښ کیدل امکان نۀ لري نو د هغے په نفي کولو کښ څه فائده ده؟

جواب ۱: د (اِذَا جَآءَ) جزا پټه ده (يُعَذَّبُوْنَ) يعني کله چه نيټه راشي نو خلکو ته به په خپله نيټه سزا ورکولے شي۔ جواب ۲: وَّلَا يَسْتَقْدِمُوْنَ عطف دے په اذا جاء باندے۔

جواب ۳: دا عبارت په تشبيه حمل دے أَیْ لَا يَسْتَأْخِرُوْنَ سَاعَةً كَمَا لَا يَسْتَقْدِمُوْنَ ۔ نۀ به شي روستو کيدے لکه څنګه چه نشي مخکښ کيدے۔

| يٰبَنِيْٓ اٰدَمَ اِمَّا يَاْتِيَنَّكُمْ رُسُلٌ مِّنْكُمْ يَقُصُّوْنَ عَلَيْكُمْ اٰيٰتِيْ ۙ |
|---|
| اے اولاد د آدم! که راشي تاسو ته رسولان ستاسو نه بيانوي تاسو ته آيتونه زما |
| فَمَنِ اتَّقٰى وَاَصْلَحَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا |
| پس څوك چه د الله نه ويريدو او عمل ئے نيك کړو نو نۀ به وي هيڅ يره په دوي او نۀ به |
| هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿٣٥﴾ وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا وَاسْتَكْبَرُوْا |
| دوي غمژن شي۔ او هغه کسان چه دروغژن گڼړي آيتونه زمونږ او لويي کوي |
| عَنْهَآ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿٣٦﴾ |
| د هغے نه دا کسان اُور والا دي، دوي به په هغے کښ هميشه وي۔ |

**تفسیر:** دا بله تفريع ده چه اے انسانانو! تاسو خو دنيا ته راغلئ خو تاسو پسے به زما

کتابونه او رسولان راځي تردې چه دغه سلسله د نبوت په رسول الله ﷺ باندې ختمه شوه نو ځان بیرته د جنت مستحق کړئ.

ځینې وائي دا خطاب دے دے امت ته او رُسُل ئې جمع راوړیده د عزت دپاره. لیکن ظاهر دا ده چه د سورة البقره (۳۸) آیت په شان دے ﴿فَاِمَّا یَاْتِیَنَّکُمْ مِّنِّیْ هُدًی﴾

مطلب دا دے چه الله تعالیٰ د ابتداء د پیدائش نه بنیادمانو ته خبر ورکړیدے چه هغه به خپل انبیاء او رسولان دوی ته رالیږی چه د هغه آیتونه به دوی ته لولي، نو څوك چه د تقویٰ او د اصلاح لاره اختیاره کړی نو د قیامت په ورځ به په هغه نهٔ یره وی او نهٔ به غمژن شي او څوك چه د الله آیتونه دروغژن ګڼړی او د کبر او عناد نه کار اخلی نو د هغه ځای به جهنم وی.

اتَّقٰی : الشِّرْكَ وَمُخَالَفَةَ الرَّسُوْلِ . څوك چه د شرك او د رسولانو د مخالفت نه ځان بیچ کړی.

| فَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰی عَلَی اللّٰهِ کَذِبًا اَوْ کَذَّبَ بِاٰیٰتِهٖ ؕ |
|---|
| پس څوك دے لوئی ظالم د هغه چا نه چه جوړوی په الله دروغ او دروغژن ګڼړی آیتونه د هغهٔ |
| اُولٰٓئِكَ یَنَالُهُمْ نَصِیْبُهُمْ مِّنَ الْکِتٰبِ ؕ حَتّٰٓی |
| دا کسان رسیږی به دوی ته حصه د دوی د لیکلے شوی (عمر او رزق) نه تردے |
| اِذَا جَآءَتْهُمْ رُسُلُنَا یَتَوَفَّوْنَهُمْ ۙ قَالُوْٓا |
| چه کله راشي دوی ته استازی (ملائك) زمونږ وفات کوی دوی لره وائی به ورته |
| اَیْنَ مَا کُنْتُمْ تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ؕ قَالُوْا ضَلُّوْا عَنَّا |
| چرته دی هغه معبودان چه تاسو به رابلل سوئ د الله نه، وائی به دوی ورك شو زمونږ نه |
| وَشَهِدُوْا عَلٰٓی اَنْفُسِهِمْ اَنَّهُمْ کَانُوْا کٰفِرِیْنَ ﴿۳۷﴾ |
| او ګواهي به وکړی په خپلو ځانونو چه یقیناً دوی وو کافران. |

**تفسیر** : څوك چه اتباع د مَا اُنْزِلَ نهٔ کوی او د الله آیتونه دروغژن ګڼړی نو د هغوی دپاره د آخرت تفصیلی یرے او احوال بیانیږی چه د دوی نه لوئی ظالمان څوك نشته، لیکن ددے باوجود د دوی دپاره په دنیا کښې چه کوم عمر، روزی او د خیر او شر اعمال لیکلے

شویدی، هغه به د الله د طرف نه ضرور موندہ کوی، بیا کله چه دوی ته د مرګ وخت راشی او ملائك د دوی روحونه قبض کوی او جهنم ته ئې بوځی نو د زجر او توبیخ په توګه به ورته وائی چه چرته دی ستاسو هغه معبودان چه تاسو به ئې عبادت کولو، نن هغوی تاسو ددے عذاب د اُور نه ولے نهٔ بچ کوی؟ نو هغوی به جواب ورکړی چه هغه خو غائب شو، اُوس زمونږ د هغوی نه هیڅ امید نشته، او د خپل ځان په باره کښې به اقرار وکړی چه واقعی مونږ په دنیا کښې کافران وو۔ نو الله مشرك ته دعوت ورکوی چه په آخرت کښې به ځان ته کافر وائے راشه مخکښې نه د ځان غم وکړه۔

يَنَالُهُمْ نَصِيبُهُم مِّنَ الْكِتٰبِ : مَا كُتِبَ لَهُمْ مِنَ الْعُمُرِ وَالرِّزْقِ ۔ یعنی دوی له چه کوم عمر او رزق لیکلے شویدے هغه به ورته رسیږی۔ او دا مهٔ وایه چه یو تن کافر شو نو الله ئے سمدستی ولے نهٔ هلاکوی؟ نهٔ بلکه الله ورله دنیا کښې چانس او موقعه ورکړیده۔

ضَلُّوْا عَنَّا : دا دلیل دے چه مشرکان کومو معبودانو ته آوازونه کوی هغوی په هیڅ طریقه د مشرکانو سره مدد نشی کولے۔

كٰفِرِيْنَ : دوی الله منلو لیکن شرك ئے ورسره کولو نو معلومه شوه چه شرك کفر دے۔ او معلومه شوه چه دعا د غیر الله کفر دے۔

| قَالَ ادْخُلُوْا فِيْٓ اُمَمٍ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِكُمْ مِّنَ الْجِنِّ |
|---|
| وبه وائی الله داخل شئ په هغه ډلو کښې چه تیر شویدی مخکښې ستاسو نه د پیریانو |
| وَالْاِنْسِ فِي النَّارِ ؕ كُلَّمَا دَخَلَتْ اُمَّةٌ لَّعَنَتْ اُخْتَهَا ؕ |
| او د انسانانو نه په اُور کښې، هر کله چه داخله شی یوه ډله لعنت به وائی په ملګرو خپلو |
| حَتّٰٓى اِذَا ادَّارَكُوْا فِيْهَا جَمِيْعًا ۙ قَالَتْ اُخْرٰىهُمْ |
| تردے چه کله یو ځای شی دوی په هغے کښې ټول، وبه وائی روستنئ ډله (مریدان) |
| لِاُوْلٰىهُمْ رَبَّنَا هٰٓؤُلَآءِ اَضَلُّوْنَا |
| په باره د مخکنئ (پیرانو) کښې اے ربه زمونږ! دے کسانو ګمراه کړی وو مونږ |
| فَاٰتِهِمْ عَذَابًا ضِعْفًا مِّنَ النَّارِ ؕ قَالَ لِكُلٍّ ضِعْفٌ |
| نو ورکړه دوی ته عذاب دوچنده د اُور نه، وبه وائی الله، د هر یو دپاره دوچنده عذاب دے |

وَّلٰكِنۡ لَّا تَعۡلَمُوۡنَ ﴿۳۸﴾ وَقَالَتۡ اُوۡلٰىهُمۡ لِاُخۡرٰىهُمۡ فَمَا كَانَ

او لیکن نهٔ پوهیږئ تاسو۔ او وبه وائی مخکنی خلق روستنو خلقو ته پس نشته

لَكُمۡ عَلَيۡنَا مِنۡ فَضۡلٍ فَذُوۡقُوا الۡعَذَابَ بِمَا كُنۡتُمۡ تَكۡسِبُوۡنَ ﴿۳۹﴾

تاسو له په مونږ باندے څه فضیلت نو وڅکئ عذاب په سبب د هغې چه تاسو کول۔

**تفسیر**: اُوس د برزخ او د قیامت سزاګانے بیانیږی۔

فِي النَّارِ : د ټولو کافرو پیریانو او انسانانو ارواح اُور ته (سجین) ته ځی۔

اُمَم جمع د اُمت ده، او دلته د تیر شوو قومونو کافران مراد دی. کله هم چه یو قوم جهنم ته داخلیږی نو په هغه خلقو به لعنت وائی کوم چه د دوی نه مخکښ جهنم کښ وی، او د دوی سره په شرك او کفر کښ مشابه و. د (اُخْتَهَا) نه مراد هغه ده چه په شرك او کفر کښ مشابه وی، او وائی به چه زمونږ د ګمراهئ سبب خو همدا تاسو وئ. خپل مینځ کښ د لعنت او ردیدو او ملامته کولو نه روستو به بیا د مشرانو او کشرانو خپل مینځ کښ لعنتونه وی او د الله نه به د هغوی دپاره عذابونه طلب کول وی لکه داسے په سورة العنکبوت (۲۵) آیت کښ دی۔

په آیت کښ د «اُولیٰ» نه مراد هغه کافران پیریان او انسانان دی چه خلقو په کفر او شرك کښ د هغوی تابعداری کوله، یعنی مشران او د «اُخریٰ» نه مراد د دوی منونکی (کشران) دی۔

کشران به ووائی چه اے الله! دے خلکو مونږ ګمراه کړی وو لهذا دوی ته دوچنده عذاب ورکړه مګر الله به وفرمائی چه ستاسو ټولو دپاره دوچنده عذاب دے، ځکه چه تاسو ټول په شرك کښ شریك وئ۔ بیا په کفر او شرك کښ سرداران به خپلو منونکو ته وائی چه تاسو کفر او ګمراهی نهٔ وه پریخے چه زمونږ په مقابله کښ ستاسو جرم نرم شی، تاسو هم دغسے ګمراه شوی وئ لکه څنګه چه مونږه وو، پدے وجه زمونږ په شان تاسو هم د عذاب مستحق یئ او تاسو په مونږ باندے څه فضیلت نهٔ لرئ، نو د عملونو په بدله کښ د جهنم عذاب وڅکئ۔

ادَّارَكُوۡا : اَیۡ تَدَارَكُوۡا۔ او تدارك تلاحق یو بل پسے پیوسته کیدل او راجمع کیدل دی۔

ضِعۡفًا : دوچنده عذاب ځکه دے چه یو خپله ګمراه وو او بل ئے نور خلك ګمراه کړی وو

لکه حدیث کښې دي چه چا گمراهۍ ته دعوت ورکړو نو په هغه باندې به خپله گناه او د هغه چا د گناه بوج وي چه دده تابعداري ئې کړې وي.

لِكُلٍّ ضِعْفٌ : تهولو ته ولې دوچنده سزا ورکړې کیږي؟ ځکه چه یو د کفر سزا او بل د معاصیو (گناهونو) ده ځکه چه دوی تول پدې کښې شریك وو اګرکه د جرم او د تابعدارو د زیاتوالي په اعتبار سره به د بعضو سزا کښې ډیروالې وي. (السعدي)

یا د هریو دپاره دوچنده عذاب ځکه دې چه هغه کافر وو او داعي وو او دا نور کافران او ضدیان دي.

وَلَٰكِن لَّا تَعْلَمُونَ : أَيِ الْمَقَادِيْرَ وَصُوَرَ التَّضْعِيْفِ. تاسو ته اندازې او د دوچند والي صورتونه نۀ دي معلوم، ځکه چه څوك خپله په عذاب اخته وي هغه به د بل په عذاب څه پوهه شي. (المحرر الوجيز ٣٦/٣)

ابن عاشورؒ وائي : پدې محاوره کښې د مسلمانانو مشرانو دپاره پوره نصیحت پروت دې چه دوی چرته خپل کشران په گمراهۍ کښې گوزار نکړي چه هغوی ته خپل خواهشات ښه ښکاره کړي او کشرانو ته نصیحت دې چه د هر چا د خواهش پسې روان نشي. (التحریر ٩٦/٨)

مِنْ فَضْلٍ : یعنی هیڅ قسم غوره والې. ځکه چه تاسو هم کافران وئ او مونږ هم وو، نو عذاب به هم یو شان وي او دا دوی ته د لِكُلٍّ ضِعْفٌ نه معلومه شوه.

| إِنَّ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَاسْتَكْبَرُوا عَنْهَا |
|---|
| یقیناً هغه کسان چه دروغژن ئې گنړلي آیتونه زمونږ او لوئي ئې کړېده د هغې نه |
| لَا تُفَتَّحُ لَهُمْ أَبْوَابُ السَّمَاءِ وَلَا يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ حَتَّىٰ يَلِجَ |
| کولاوې به نۀ شي دوی ته دروازې د آسمان او نۀ به داخلیږي جنت ته تردې چه ننوزي |
| الْجَمَلُ فِي سَمِّ الْخِيَاطِ ۚ وَكَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُجْرِمِينَ ﴿٤٠﴾ لَهُم |
| اُوښ په سوري د ستنه کښې، او دغسې بدله ورکوو مونږ مجرمانو ته. دوی لره به |
| مِّن جَهَنَّمَ مِهَادٌ وَمِن فَوْقِهِمْ غَوَاشٍ ۚ |
| د جهنم نه بسترې وي او دپاسه د دوی به برستنې (د اُور) وي (یا به سرپندې وي) |

وَكَذٰلِكَ نَجْزِى الظّٰلِمِينَ ﴿٤١﴾

او دغسې سزا ورکوو مونږ ظالمانو ته.

**تفسیر** : پدې آیتونو کښې د جهنمیانو د جنت نه محرومیدل بیانیږي او د دوی د روحونو بدحالي. وَاسْتَكْبَرُوْا عَنْهَا : یعنی د الله د آیتونو نه ځان لوی ګڼړي په هغې عمل نکوي، هغه نۀ نافذ کوي.

لَا تُفَتَّحُ: کافرانو ته به د آسمان دروازې نۀ کولاویږي، ددې یو څو مصداقه دي :

(۱) اَىْ لِاَرْوَاحِهِمْ. لکه دا تفسیر په حدیث کښې د براء بن عازبؓ کښې راغلې دې چه کله کافران مړۀ شي نو د دوی روحونو ته به د آسمان دروازې نۀ کولاویږي بلکه د هغه ځای نه به خکته راغورزولې شي. (ځکه چه دنیا کښې ئې روح الله طرفته نۀ تللو نو اُوس به څنګه لاړ شي) (تفسیر ابن کثیرؒ) (مسند احمد : ۱۸۵۵۷ باسناد صحیح)

(۲) لِاَعْمَالِهِمْ. بعضو وئیلي دي چه د دوی عملونو ته به دروازې کولاوې نشي. (ځکه چه په شرك او کفر او په مخالفت د رسول بناء وي).

(۳) او بعضو وئیلي دي چه د دوی دعاګانو ته، لکه چه د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت شویدې چه نۀ ددوی نیك عمل آسمان طرف ته پورته کولې شي او نۀ د دوی دعاګانې.

(٤) خازنؒ وئیلي دي چه دا کنایه ده ددې نه چه (لَا خَيْرَ وَلَا بَرَكَةَ لَهُمْ) یعنی دوی کښې به هیڅ خیر او برکت نۀ وي. دا ټول مصداقات صحیح دي.

حَتّٰى يَلِجَ الْجَمَلُ : یعنی لکه څنګه چه د اُوښ د ستنې د سوری نه تیریدل محال دي، دغه شان د کافرانو جنت ته داخلیدل محال دي. دا تعلیق بالمحال دې د زیات تاکید دپاره.

سَمِّ : سوری ته وائي، خیاط او مخیط : ستنې ته وائي.

الْمُجْرِمِيْنَ : یعنی جنس مجرمانو ته سزا ورکوو چه جرم ئې کفر او شرك ته رسیدلې وي. مجرم هغې ته وائي چه د هغه جرم وصف لازم ګرځیدلې وي ځکه چه مؤمن زر پښیمانه کیږي او توبه وباسي. (المنار)

لَهُمْ مِّنْ جَهَنَّمَ مِهَادٌ : دا هم نور تخویف دې یعنی دوی به په کوم میدان کښې نۀ وي ناست بلکه لاندې باندې به اُور وي.

مِهَادٌ : غوړیدلې بستره د اُور.

غَوَاشٍ : اَللِّحفُ مِنَ نِیرَانٍ۔ د اُور بړستنے چه د بره به ئے پټ کړی وی۔ (ابن عباسؓ– المنان)
غـواش : سربـندی ته هُم وائی چه په یو تنور باندے سربندے کیخودے شی نو اُور پکښې رابند شی۔
نَـجۡزِی الظّٰلِمِیۡنَ : یـعـنـی هـغـه کسان چه ظلم د هغوی وصف لازم گرځیدلے وی او دا صفت د کافرو دے پدے وجه الله بل ځای فرمائی : [وَالۡـکَافِرُوۡنَ هُمُ الظَّالِمُوۡنَ] (البقره : ۲۵۴) (المنان) (کافران هم دوی ظالمان دی)۔

| |
|---|
| وَالَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَا نُکَلِّفُ |
| او هغه کسان چه ایمان ئے راوړے او عملونه ئے کړی نیک، تکلیف نهٔ ورکوو مونږ |
| نَفۡسًا اِلَّا وُسۡعَهَاۤ اُولٰٓـئِکَ اَصۡحٰبُ الۡجَنَّةِ ج هُمۡ فِیۡهَا |
| هیڅ نفس ته مګر په اندازه د وس د هغه، دا کسان جنت والا دی، دوی به په هغے کښې |
| خٰلِدُوۡنَ ﴿۴۲﴾ وَنَزَعۡنَا مَا فِیۡ صُدُوۡرِهِمۡ مِّنۡ غِلٍّ تَجۡرِیۡ |
| همیشه وی۔ او وبه باسو مونږ هغه څه چه په سینو د دوی کښې وی د کینے نه، بهیږی به |
| مِنۡ تَحۡتِهِمُ الۡاَنۡهٰرُ ج وَقَالُوا الۡحَمۡدُ لِلّٰهِ |
| لاندے د دوی (د بنګلو) نه نهرونه او وائی به دوی صفتونه د کمال خاص الله لره دی |
| الَّذِیۡ هَدٰنَا لِهٰذَا قف وَمَا کُنَّا لِنَهۡتَدِیَ |
| هغه ذات دے چه راوړے رسولو مونږه دے ځای ته، او نهٔ وو مونږ چه رارسیدلی وے دے ته |
| لَوۡلَاۤ اَنۡ هَدٰنَا اللّٰهُ ج لَقَدۡ جَآءَتۡ رُسُلُ |
| که چرته نهٔ وے رارسولی مونږ لره الله تعالیٰ، یقیناً راغلی وو رسولان |
| رَبِّنَا بِالۡحَقِّ ط وَنُوۡدُوۡۤا اَنۡ تِلۡکُمُ الۡجَنَّةُ |
| د رب زمونږ په حق سره، او آواز به وکړے شی چه دغه جنت دے |
| اُوۡرِثۡتُمُوۡهَا بِمَا کُنۡتُمۡ تَعۡمَلُوۡنَ ﴿۴۳﴾ |
| په میراث کښې درکړے شو تاسو ته په سبب د هغے عملونو چه تاسو به کول۔ |

**تفسیر** : الله تعالیٰ په قرآن کریم کښې بالعموم د جهنم او جهنمیانو ذکر نه روستو د جنت او د جنتیانو ذکر کوی، او همدا حال ددې په عکس هم وی۔ دلته هم د جهنمیانو نه روستو د جنتیانو ذکر راغلې دې۔

لَا نُكَلِّفُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَآ : دا جمله معترضه ده دپاره د دفع د سوال، چه په الله او د هغه په آیتونو ایمان راوړل او په ژوند کښې همیشه نیك عملونه کول خو به ډیر مشکل کار وی؟ نو الله جواب کوی چه دا مشکل نۀ دی، ځکه چه د الله نظام دې چه هغه بندګانوته د هغوی د طاقت نه زیات نۀ تکلیف نۀ ورکوی۔ او پدې احکامو کښې دننه هم الله تعالیٰ اجازې ورکړیدی چه جهاد نشی کولے، حج ته نشی تللے نو لازم پرې نۀ دې، خو مثل ئې ضروری دی۔

او پدې کښې اشاره ده چه مؤمن دپاره ضروری ده چه خپل وس او طاقت به د جنت د حصول دپاره خرچ کوی۔

وَنَزَعْنَا : دا هم جواب د وَهَم دې چه جنتیان کله د یو بل اُوچتې درجې وینی نو کیدې شی چه په زړه کښې ئې غیر اختیاری او طبعی خفګان راشی؟ نو جواب وشو چه دا قسم غِل (یعنی کینه) به هم د دوی د زړونو نه ویاسو او دا به هم د جنت د نعمتونو نه یو نعمت وی چه الله تعالیٰ به د جنتیانو د زړونو نه کینه او حسد او بغض او دشمنی بیخی ویاسی، ځکه که هلته هم د دنیا په شان د دوی زړونه په خپل مینځ کښې صفا نۀ وی نو د جنت نعمتونه نۀ کامل کیږی۔ او جنتیان به د الله شکر ادا کوی او وائی به، اې الله! تا په مونږ احسان وکړو چه مونږ ته دې د ایمان او عمل صالح توفیق راکړو چه د هغې په سبب نن مونږ د جنت د نعمتونو نه مزې اخلو۔

په حدیث د بخاری کښې دی «چه کله مؤمنان د اُور نه پورې وځی نو د جنت او د جهنم په مابین کښې به په یوه قنطره (پل) باندې ایسار شی نو خپل مینځ کښې به د یو بل نه د ظلمونو بدلے واخلی کوم چه دوی نه په دنیا کښې شوی وو حَتّٰى اِذَا هُذِّبُوْا وَنُقُّوْا اُذِنَ لَهُمْ فِيْ دُخُوْلِ الْجَنَّةِ) تردې چه پاك او بنه صفا شی نو دوی ته به د جنت د داخلیدو اجازه ورکړې شی۔ نو قسم په هغه الله چه زما نفس د هغه په لاس کښې دې یو تن ددوی نه به په جنت کښې خپل کور د دنیا د کور نه هم زیات پیژنی»۔ (صحیح بخاری: ۲٤٤٠)

هَدٰىنَا لِهٰذَا : یعنی راوړې رسولو دې ځای ته (په سبب د ایمان او عمل صالح سره)۔ یا هدایت ئې کړې وو زمونږ ایمان او عمل صالح ته ددې ځای دپاره۔

لَوْلَآ اَنْ هَدٰىنَا اللّٰهُ : دے نه معلومیږي چه هرکله هدایت د الله په اختیار کښې دے نو د هغه نه ئے غوښتل پکار دي۔

وَنُوْدُوْٓا اَنْ تِلْكُمُ الْجَنَّةُ : او ددے آواز په تفسیر کښې امام مسلمؒ د ابوسعید او ابوهریره رضی الله عنهما نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ وفرمایل : ((کله چه جنتیان جنت ته داخل شي نو یو آواز کونکے به آواز وکړي چه بیشکه تاسو به پدے جنت کښې همیشه وسیږئ هیڅ کله به نهٔ مرئ او بیشکه تاسو به روغ (صحتمند) یئ هیڅ کله به بیماریږئ نهٔ، او بیشکه تاسو به ځوانان یئ هیڅ کله به بوډاګان کیږئ نهٔ او بیشکه تاسو به د مزو ژوند تیروئ هیڅ کله به پریشانه کیږئ نهٔ۔ دے نه روستو نبی ﷺ وفرمایل چه دا د الله قول دے : ﴿وَنُوْدُوْٓا اَنْ تِلْكُمُ الْجَنَّةُ﴾)) الآیة۔ (صحیح مسلم : ۷۳۳۶)

اُوْرِثْتُمُوْهَا : ۱- میراث ئے ورته ځکه وئیلے چه په جهنم کښې د هر مؤمن کور دے لکه څنګه چه په جنت کښې د هر کافر کور دے نو د کافر کور به مؤمن ته پاتې شي او د جهنم کور به کافر واخلي۔ ۲- یا میراث په معنیٰ د استحقاق دے۔ یعنې تاسو مستحق وګرځیدئ د عمل په وجه، لکه میراث چه د وارث حق وي۔

## سوال وجواب

سوال : په حدیث د صحیحینو کښې دي : [لَنْ يُّدْخِلَ اَحَدُكُمُ الْجَنَّةَ بِعَمَلِهٖ] هیڅ یوتن ستاسو نه په عمل جنت ته نشي داخلیدے (مګر د الله په رحمت به ځي) او دے آیت کښې دي چه په عمل به جنت ته ځي؟ جواب دا دے چه هیڅ تعارض نشته ځکه چه عمل ظاهري سبب دے او رحمت باطني سبب دے۔ ځکه چه دا عملونه د انسان نه د الله په رحمت سره کیږي چه هغه توفیق ورکوي۔ (ابن کثیرؒ) نو اصلي سبب رحمت د الله دے۔ نو قرآن ظاهري سبب او رسول الله ﷺ اصل سبب ته اشاره کړیده۔ چونکه قرآن د عوامو کتاب دے پدے وجه ئے عمل ذکر کړیدے او رسول الله ﷺ پټ د حکمة خبره ذکر کړیده۔

| وَنَادٰٓى اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ اَصْحٰبَ النَّارِ اَنْ قَدْ وَجَدْنَا مَا |
| --- |
| او آواز به وکړي جنت والا اُور والو ته چه یقیناً موندلے دے مونږ هغه (جنت) |
| وَعَدَنَا رَبُّنَا حَقًّا فَهَلْ وَجَدْتُّمْ مَّا وَعَدَ |
| چه وعده کړے وه مونږ سره رب زمونږ حقه نو آیا وموندلو تاسو هغه (اُور) چه وعده کړے وه |

| رَبُّكُمْ حَقًّا ۚ قَالُوا نَعَمْ ۚ فَأَذَّنَ مُؤَذِّنٌ بَيْنَهُمْ |
|---|
| رب ستاسو حقه، وبه وائی دوی آو، نو اعلان به وکړی یو اعلان کوونکے په مینځ د دوی کښې |
| أَنْ لَّعْنَةُ اللَّهِ عَلَى الظَّالِمِينَ ﴿٤٤﴾ الَّذِينَ يَصُدُّونَ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ |
| چه لعنت د الله دے په ظالمانو۔ هغه کسان دی چه منع کوی د لارے د الله نه |
| وَيَبْغُونَهَا عِوَجًا ۚ وَهُمْ بِالْآخِرَةِ كَافِرُونَ ﴿٤٥﴾ |
| او لټوی په هغے کښې کوږوالے (په شکونو اچولو) او دوی د آخرت نه منکر دی۔ |

**تفسیر**: کله چه جنتیان او جهنمیان ټول خپلو خپلو ځایونو ته ورسیږی نو جنتیان به د جهنمیانو د افسوس او نا اُمیدئ زیاتولو او د هغوی د شرمولو دپاره هغوی ته آواز وکړی او دغه خبره به ورته وکړی چه مونږ سره الله د جنت وعده رشتینی کړه او تاسو سره ئے د جهنم وعده کړے وه او هغه وعدے چه مخکښې مکذبینو سره (د ۳۷ آیت نه تر ٤١) پورے وشوے۔ نو آیا تاسو هغه ومونده؟ نو د نَعَمْ (آو) وئیلو نه سوئ به دوی نور څه وائی نو پدے وخت کښې به دوی ته د زیات ذهنی تکلیف رسولو دپاره د الله د طرف نه آواز کوونکے آواز وکړی، وبه وائی چه په ظالمانو باندے د الله لعنت دے، او د هغه رحمت نه به همیشه دپاره جدا وی چه خپل ځانونه او نور خلك ئے د الله د دین نه منع کول او پدے کښې به ئے تحریف، او شکونه پیدا کول او د آخرت د ورځے نه منکر وو۔

حافظ ابن کثیر رحمه الله لیکلی چه رسول الله ﷺ په بدر میدان کښې کافران مقتولینو ته آواز کولو سره همدا خبره کړے وه۔

لَّعْنَةُ اللَّهِ : دا جمله دعائیه هم ده (یعنی الله دے پرے لعنت وکړی) یا جمله خبریه ده۔ یعنی خبر شی: چه دوی د الله د رحمت نه جدا شو۔

سَبِيلِ اللَّهِ : عام دے توحید، ایمان، قرآن او سنت ته چه ددے نه خلك منع كول لوی ظلم دے۔ او پدے کښې د اسلام او د قرآن او حدیث هره مسئله داخلیږی چه څوك د هغے نه خلك منع كوی نو پدے وعید کښې داخل دے۔

وَيَبْغُونَهَا عِوَجًا : اَیْ یَبْغُوْنَ اَنْ تَکُوْنَ السَّبِیْلُ مُعْوَجَّةً ۔ یعنی لټوی چه دا لاره کږه شی دے دپاره چه څوك پرے روان نشی۔ یعنی حق خلکو ته په غلطه لهجه او بد بڼکاره کول مراد دی۔ (ابن کثیرؒ) ابن عباسؓ ددے مصداق بیانوی: چه مونځونه د غیر الله دپاره کوی او د

هغه شی تعظیم کوی چه الله ورله تعظیم نهٔ دے ورکړے۔ (بغوی)

قرطبیؒ وائی : يَطْلُبُوْنَ اِعْوِجَاجَهَا ۔ یعنی ددے لارے کوږوالے طلب کوی۔

یا : يَبْغُوْنَهَا پـه معنیٰ د يَبْغُوْنَ فِيْهَا دے۔ یعنی لټوی پدے لاره د الله کښې کوږوالے۔ یعنی اعتراضونه او شبهات او تحریفات پکښې لټوی۔ دا بیان د صد عن سبیل الله دے۔

عِوَجًا : عِـوج پـه زیر د عیـن سره په دین او معنوی څیزونو کښې او په زور د عیـن سره په اجسامو کښې استعمالیږی۔

صاحب المنارؒ وائی : د الله د لارے کوږ والے لټول په ډیرو شکلونو دے : (۱) مشرکان د الله توحید ته ډیر شبهات اچوی په صورت د دعاء کښې او معبودان خپل وسیله ګنړی۔

(۲) مبتدعین ئے په بدعاتو او نظری فکریات او جدلی تاویلاتو سره او (۳) مقلدین ئے په تقلید سره۔ (٤) او منافقان او زندیقان ئے په شکونو اچولو سره۔

(٥) او ظالمان ئے په پریخودو د حکمونو د الله سره۔ او دا چه د شریعت آسانی ګرانوی او فراخی ئے تنګوی دا خو د هغه خلکو کوږوالے دے چه ددے لارے داعیان او دے ته منسوب دی، کافران خو په څای پریده۔ او بیا ئے ډیره مزیداره تشریح کړیده هغے ته رجوع وکړه۔ (تفسیر المنار)

وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ كٰفِرُوْنَ : یعنی دوی چه د حقے لارے نه اوړیدلی وو ددے وجه دا وه چه دوی پـه آخرت ایمـان نـهٔ لرلـو او د الله د عذابـونو نه نهٔ یریدل او د هغه د ثواب امید ئے نهٔ لرلو۔ او ددے آواز مفهوم دا شو چه د الله رحمتونه به صرف په مؤمنانو وی۔ (السعدیؒ)

صاحب المنارؒ وائی چه د همدے نکتے د وجه نه جار مجرور په معمول باندے مقدم شو۔

| وَبَيْنَهُمَا حِجَابٌ ۚ وَعَلَى الْاَعْرَافِ رِجَالٌ يَّعْرِفُوْنَ |
| --- |
| او په مینځ د دوی کښې به پرده وی او په اعراف (اُوچت څای) به سړی وی چه پیژنی به |
| كُلًّا بِسِيْمٰهُمْ ۚ وَنَادَوْا اَصْحٰبَ الْجَنَّةِ اَنْ سَلٰمٌ |
| هریو لره په نخو د هغوی او آواز به وکړی دوی جنت والو ته چه سلامتیا دِے وی |
| عَلَيْكُمْ ۟ لَمْ يَدْخُلُوْهَا وَهُمْ يَطْمَعُوْنَ ﴿٤٦﴾ |
| په تاسو، نهٔ دی داخل شوی دوی (اعراف والا) جنت ته او دوی طمعه لری۔ |

| وَاِذَا صُرِفَتْ اَبْصَارُهُمْ تِلْقَآءَ اَصْحٰبِ النَّارِ ۙ قَالُوْا رَبَّنَا |
| --- |
| او کله چه واړولے شی نظرونه د دوی په طرف د اُور والو وائی به دوی اے ربه زمونږ ! |
| لَا تَجْعَلْنَا مَعَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٤٧﴾ |
| مهٔ گرځوه مونږ سره د قوم ظالمانو نه۔ |

**تفسیر** : حجاب (پرده) او اعراف دیوال دے او په سورة الحدید (۱۳) کښې سور لفظ ذکر دے، دا درے واړه یو شے دے۔

د جنت او جهنم ترمینځ به یو دیوال حائل وی، چه د هغے نه په قرآن کریم کښې په (سور) سره تعبیر کړے شویدے، د هغے دننه طرف ته به د الله رحمت او جنت وی او بهر طرف ته به جهنم او د هغهٔ عذاب وی۔ دے حجاب (پردے) ته اعراف وئیلے شویدے چه د عَرف جمع ده، چه ددے اطلاق په هر اُوچت ځای کیږی، پدے وجه د اعراف نه مراد د جنت او جهنم ترمینځ د دیوال اُوچت ځای دے۔ نو جنتیانو ته به اعراف والا هم زیرے ورکوی او ملائك هم۔ او دغه شان جهنمیانو ته به دواړه زورنه ورکوی۔

## اصحاب الاعراف څوك دی؟

د اعراف والو په باره کښې مفسرینو د صحابه کرامو او تابعینو نه تقریباً لس اقوال نقل کړیدی۔ (۱) چا وئیلی دی چه دا به ملائك وی، لیکن دا قول ضعیف دے ځکه چه د رجال اطلاق په هغوی باندے بعید دے۔ او بل دوی د جنت طمع لری او ملائك طمع نهٔ لری۔

(۲) ځینی وائی چه دا پیغمبران او اُوچت مؤمنان دی چه الله ورسره حساب یسیر کړیدے او د ټولو خلکو نه ئے په اُوچت ځای کینولی دی، د کافرو د توبیخ دپاره او د مؤمنانو د زیری دپاره۔ لیکن روستو نه معلومیږی چه په اصحاب الاعراف باندے یرے تیریږی، او ډیر وخت د جنت نه محروم دی۔ (۳) ځینی وائی چه دا به هغه خلك وی چه احد الوالدین ترے راضی وی۔ مور ترے راضی پلار ترے خفه وی یا برعکس۔

(٤) یا هغه شهیدان دی چه په غیر د اجازه د والدینو شهیدان شوی وی۔

(٥) ځینی وائی : دا د مشرکانو ماشومان دی چه د بلوغ نه مخکښې وفات شویدی۔

(٦) ځینی وائی : دا هغه خلك دی چه په زمانه د فترت (د رسولانو نهٔ راتللو) کښې وفات

شویدي او دعوت ورته نهٔ دے رسیدلے مګر خپل فطرت ئے نهٔ دے بدل کړے۔ (بغویؒ)

(۷) راجح دا ښکاره کیږي چه [هُمُ الَّذِيْنَ اسْتَوَتْ حَسَنَاتُهُمْ وَسَيِّئَاتُهُمْ] دا به هغه خلك وي چه د هغوي نیکیانې او بدیانې برابرے شوي وي، فی الحال لا جنت ته نهٔ وي تللي لیکن طمع لري، دا قول د ابن مسعود، حذیفه بن الیمان او ابن عباس رضی الله عنهم وغیرهم دے، او بعض مرفوع حدیثونه ددے تائید کوي۔ (ابن کثیرؒ، قرطبیؒ، بغویؒ وغیره)

دا درمیانه خلك دي، نیکي ئے جهنم ته او بدي ئے جنت ته نهٔ پریدي، پدے وجه د جهنمیانو او جنتیانو دواړو سره ئے تعلق دے او دواړو ته به آوازونه کوي، جنتیانو ته زیرے او جهنمیانو ته یره ورکوي۔

دا خلق به جنتیان او جهنمیان ټولو لره د هغوي د نخو نه پیژني جنتیانو ته به سلامونه کوي،

بِسِيْمٰهُمْ : مؤمنان به په سپینوالي د مخونو او لاسونو او خپو پیژني او کافران به په توروالي او بد رنګئ د مخ او شنو سترګو سره پیژني۔

لَمْ يَدْخُلُوْهَا : یعني دوي خپله لا جنت ته نهٔ دي داخل شوي لیکن طمع لري چه داخل به شي۔

وَهُمْ يَطْمَعُوْنَ : د اُور نه ئے بچ ساتلي دي نو پدے وجه ئے د جنت طمع پیدا شویده۔

وَاِذَا صُرِفَتْ اَبْصَارُهُمْ : یعني اعراف والا چه کله جهنم طرف ته نظر پورته کړي، وګوري نو هغه جهنمیان به وپیژني کوم چه په دنیا کښې دوي په شرك او کفر او د الله نه په بغاوت او سرکشئ کولو لیدلي وي، نو د یرے نه به د جهنم د عذاب نه په الله پناه وغواړي او وبه وائي چه اے زمونږ ربه ! مونږ د ظالمانو سره جهنم ته مهٔ داخلوه۔

صُرِفَتْ ئے مجهول صیغه راوړه ځکه چه د بنده یو مکروه (ناکاره) څیز ته د کتلو طاقت نهٔ وي مګر ملائك به د دوي نظرونه واړوي چه دا به دوي له لره سزا شان وي چه لره یره ورکړي او کله به ئے دے دپاره ورله اړوي چه جهنمیانو سره خبرې وکړي۔

رَبَّنَا : هرکله چه د دوي مخونه اُور والو طرفته واړولے شي نو دوي به دا ګمان وکړي چه مونږ ګوزارې، یا د هغے د هیبت د وجه نه به د الله نه دعا وکړي چه د هغوي سره ئے ملګري نهٔ کړي۔

الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ : اشاره ده چه دوي ظلم او شرك کړے وو پدے وجه جهنم ته راغلل او مونږ خو د دوي نه په عقیده کښې مخالف وو نو د دوي سره مو مهٔ شریکوه۔

| وَنَادَىٰٓ أَصۡحَٰبُ ٱلۡأَعۡرَافِ رِجَالٗا يَعۡرِفُونَهُم بِسِيمَىٰهُمۡ قَالُواْ |
|---|
| او آواز به وکړی اعراف والا څه سړو ته چه پیژنی به ئې په نخو د هغوی وبه وائی دوی |
| مَآ أَغۡنَىٰ عَنكُمۡ جَمۡعُكُمۡ وَمَا كُنتُمۡ تَسۡتَكۡبِرُونَ ﴿٤٨﴾ |
| فائده درنکړه تاسو ته جمع کولو ستاسو (مالونو لره) او هغه چه تاسو به لوئی کوله۔ |
| أَهَٰٓؤُلَآءِ ٱلَّذِينَ أَقۡسَمۡتُمۡ |
| (ملائك به ووائی کافرانو ته) آیا دا هغه کسان دی چه قسمونه به کول تاسو |
| لَا يَنَالُهُمُ ٱللَّهُ بِرَحۡمَةٍۚ ٱدۡخُلُواْ |
| چه ویه نهٔ رسوی دوی ته الله هیڅ رحمت۔ (وبه وئیلې شی اعراف والو ته) داخل شئ |
| ٱلۡجَنَّةَ لَا خَوۡفٌ عَلَيۡكُمۡ وَلَآ أَنتُمۡ تَحۡزَنُونَ ﴿٤٩﴾ |
| جنت ته نهٔ به وی هیڅ یره په تاسو او نهٔ به تاسو غمژن شئ۔ |

**تفسیر** : اصحاب الاعراف به د کفر او شرك سردارانو ته آواز وکړی (چه دوی به هغوی په نخو پیژنی چه د بیل بیل نوم به واخلی، اے ابوجهل، اے ولید بن المغیره وغیره (کلبیؔ)) چه چرته لاړو ستاسو جماعت او ستاسو خاندان او قبیله او چرته دے نن ستاسو استکبار؟ (تکبر کول)

**بِسِيمَىٰهُمۡ** : یعنی هر کافر به په خپله خپله نښه پیژنی۔

**مَآ أَغۡنَىٰ عَنكُمۡ** : ما نافیه او استفهامیه دواړه صحیح دی۔

**جَمۡعُكُمۡ** : جمع په معنیٰ د جماعت او ډلے، یا د راجمع کولو د مالونو سره دے۔ څکه چه مشرکانو به په خپلو ملګرو او ډله باندے او په خپلو مالونو او اولادو باندے فخرونه کول او مسلمانانو به ئے سپك ګڼړل۔

**وَمَا كُنتُمۡ تَسۡتَكۡبِرُونَ** : ددے نه مراد د دنیا مشری او تابعداران (مریدان) دی۔ یا جمع نه مراد د مالونو جمع او مَا كُنتُمۡ تَسۡتَكۡبِرُونَ نه مراد زیاته نفری او ډله ده۔ او کافرو په دواړو فخر کولو۔ دوی به وئیل ﴿أَيُّ ٱلۡفَرِيقَيۡنِ خَيۡرٞ مَّقَامٗا وَأَحۡسَنُ نَدِيّٗا﴾ (مریم: ۷۳) (کوم یو د دواړو ډلو نه غوره دے په اعتبار د مرتبے او بناسته مجلس والا دے) ﴿وَقَالُواْ نَحۡنُ أَكۡثَرُ أَمۡوَٰلٗا وَأَوۡلَٰدٗا﴾ (سبا: ۳۵) (او دوی به وئیل چه مونږ ډیر یو په اعتبار د مالونو او اولاد سره)

اَهٰٓؤُلَآءِ : دا هم د اصحاب الاعراف قول دے او په (هٰؤُلَاءِ) کښې اشاره کوی جنتیانو ته او اَقْسَمْتُمْ کښې خطاب مشرکانو ته دے یعنی دوی به جنت طرف ته وګوری نو هلته به هغه کمزوری خلق ووینی کوم چه کافرانو ذلیل او رذیل ګڼړل (لکه صهیبؓ، عمارؓ، بلالؓ وغیره) او ګمان ئے کولو چه الله به خپل رحمت دوی ته زمونږ نه سوئ څنګه ورکړی.

اُدْخُلُوا الْجَنَّةَ: جنتیانو ته به د کافرانو د ذلیله کولو دپاره ووائی چه جنت ته داخل شئ، اګرکه هغوی جنت ته داخل دی لیکن دا خبره به کافرانو ته د آورولو دپاره وکړی چه دوی خو جنت ته راغلل او همیشه به جنت کښې وسیږی او تاسو به دغه شان ذلیله او خوار په عذاب کښې یئ او دے ته خطاب تاکید وائی لکه یو تن په نعمت کښې وی او ته ورته ووائے چه ننوزه په نعمت کښې او مزے کوه. یا د (اُدْخُلُوا الْجَنَّةَ) نه مخکښې (قِيْلَ لَهُمْ) پټ دے، اصحاب الاعراف به ووائی چه دوی ته خو وئیل شویدی چه جنت ته داخل شئ.

یا دا قول د ملائکو دے اصحاب الاعراف ته او (هٰؤُلَاءِ) نه مراد اصحاب الاعراف دی او (اَقْسَمْتُمْ) کښې کافرانو ته خطاب دے. څکه کله چه اصحاب الاعراف جهنمیانو ته دغه خبرے وکړی نو هغوی به پیغور ورکړی چه که جنتیان جنت ته تلی دی نو تاسو خو جنت ته نهٔ یئ تلی او قسم به وکړی چه تاسو به هم اُور ته راځئ نو دے وخت کښې به ملائك یا الله تعالیٰ اعراف والو ته آواز وکړی چه (اُدْخُلُوا الْجَنَّةَ) تاسو جنت ته داخل شئ. نو کافران به نور هم ذلیله شی. (بغوی۳/۲۳٤)

اول قول د سیاق سره زیات برابر دے مګر د دویم نه هم مانع نشته.

لَا يَنَالُهُمُ اللّٰهُ بِرَحْمَةٍ : دوی ته به الله رحمت (جنت) ورنکړی څکه چه په دنیا کښې ئے دوی ته هغه څه نهٔ دی ورکړی کوم ئے چه تاسو ته درکړی وو. (المنار)

| وَنَادٰٓى اَصْحٰبُ النَّارِ اَصْحٰبَ الْجَنَّةِ اَنْ اَفِيْضُوْا عَلَيْنَا مِنَ الْمَآءِ اَوْ |
|---|
| او آواز به وکړی اُور والا جنت والو ته چه راواړوئ په مونږ باندے د اُوبو (د جنت) نه یا |
| مِمَّا رَزَقَكُمُ اللّٰهُ ۭ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ حَرَّمَهُمَا |
| د هغے نه چه درکړیدی تاسو ته الله تعالیٰ، وبه وائی دوی یقیناً الله حرام کړیدی دا دواړه |
| عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ۝۵۰ الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا دِيْنَهُمْ لَهْوًا وَّلَعِبًا وَّغَرَّتْهُمُ |
| په کافرانو. هغه کسان دی چه نیولے ئے دے دین خپل مشغله او لوبے او دهوکه کړیدی دوی لره |

الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا ۚ فَالْيَوْمَ نَنْسٰهُمْ كَمَا نَسُوْا لِقَآءَ

ژوند دنیوی نو نن ورځ به هیر کړو مونږ دوی لره لکه څنګه چه هیر کړے وو دوی ملاقات

يَوْمِهِمْ هٰذَا ۙ وَمَا كَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يَجْحَدُوْنَ ﴿٥١﴾

د ورځے د دوی چه دا ده، او هغه چه وو دوی د آیتونو زمونږ نه به ئے انکار کولو۔

**تفسیر** : اعراف والا د مینځ نه لری شو او جنت ته داخل شو نو پدے وخت به د جهنمیانو آوازونه شروع شی۔

او پدے کښې مقصود د جهنمیانو انتهائی رسوائی بیانول دی، چه په دنیا کښې ئے خو کمزوری مسلمانان ذلیل او سپك ګنړل او وئیل به ئے چه الله تعالیٰ به مونږ پریخودلو سره دوی ته څنګه خپل رحمت ورکړی، لیکن اُوس حال دا دے چه د خپلے انتهائی بے وسئ په عالَم کښې به جنتیانو ته آواز کوی او د مکمل عجز او انکسارئ سره به هغوی ته وائی چه مونږ ته د هغه اُوبو نه لږے راکړئ کومے چه الله تاسو ته د رحمت په توګه درکړیدی، دے دپاره چه د اُور د ګرمائش او د تندے د سختئ نه نجات ومومو، یا تاسو ته چه کوم د خوراك او څکاك څیزونه درکړے شویدی د هغے نه څه راکړئ، نو جنتیان به وائی چه الله دا دواړه څیزونه په جهنمیانو حرام کړیدی، کومو چه د الله د دین نه لوبے جوړے کړے وے او دے پورے به ئے توقے کولے، او په دنیا او د هغے په ډولونو کښې د آخرت نه غافل شوی وو۔

اَوْ مِمَّا رَزَقَكُمُ اللّٰهُ : یعنی هر یو چه راکوئ خو ضرورت دے۔ نو (او) دلته تخییر او مانعة الخلو دپاره دے، جمع ئے جائز ده۔ د رَزَقَكُمُ اللّٰهُ نه مراد نور نعمتونه او شربتونه دی۔

رَزَقَكُمُ اللّٰهُ : دے نه معلومه شوه چه د انسان خوراك څکاك ته د هر څه نه ډیر زیات ضرورت دے، څکه چه انسان الله تعالیٰ داسے پیدا کړیدے چه دے نه بغیر ئے ګوزاره نهٔ کیږی، ددے وجه نه د انسان اصلاح په خوراك څکاك بندولو باندے زیاته کیږی څکه چه په دهٔ کښې پدے سره عاجزی پیدا کیږی، پدے وجه روژه زمونږ د اصلاح دپاره مونږ ته خودلے شویده۔

بعض مفسرینو د (مما رزقکم الله) نه مخکښې (اَلْقُوْا عَلَيْنَا) (راګوزار کړئ په مونږ) پټ ګنړلے دے لیکن حقه دا ده چه اِفاضه دا په غیر د اُوبو او اُوبشکو نه هم استعمالیږی، وئیلے شی : (فَاضَ الرِّزْقُ وَالْخَيْرُ وَاَفَاضَ عَلَيْهِ النِّعَمَ) المنار ۸/ ۳۹۰)

(رزق او خیر راتوی شو او نعمتونه ئې پرې راوارول)۔
حَرَّمَهُمَا : دلته حرام لغوی مراد دے یعنی بند والے۔
الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا : سوال پیدا کیږی چه خوراك او څکاك خو فراخه څیزونه دی نو دا ولے په دوی باندے بند شو، رحم دے په دوی وکړے شی؟۔ نو الله دلته داسے اسباب بیانوی چه په هغے سره د الله شفقت هم نهٔ راځی او د بندګانو هم نهٔ، چه دوی کښې دا مرضونه وو، دوی دین ګپ شپ ګنړلو او د الله په حدودو به نیغ راوړیدل، هیڅ پابندی ئې نهٔ کوله او دنیا کښې ددے ورځے نه غافله شوی وو۔
دِيْنَهُمْ لَعِبًا وَّلَهْوًا : ۱–یعنی دوی د دین اسلام نه (کوم باندے چه مکلف وو او دوی ته د هغے دعوت ورکړے شوے وو) هغے نه ئې تماشه او لوبی جوړے کړے وے چه توقے او مسخرے ئې ورپورے کولے۔
۲–عبادت د بتانو د لهو او لعب په شان دے هغے نه ئې دین جوړ کړیدے۔
۳–کافرانو به د الله په دین کښې د خپل خواهش او تمنیٰ مطابق فیصلے کولے، بحیرے او سائبے به ئې حراموله او د دین په باره کښې به ئې هیڅ احتیاط نهٔ کولو او پدے کښې په تقلید پسے روان وو نو الله ددے نه په لهو او لعب سره تعبیر کړیدے۔ چه دوی هسے توقے کوی دین ورته ګپ بنکاری۔ ٤– دین د دنیا او د ریاست او د مالونو د جمع کولو ذریعه جوړوی او توله دنیا لهو او لعب ده، یعنی دا هغه کسان وو چه دین ئې د دنیا د راجمع کولو ذریعه جوړه کړے وه۔ ٥– متبادر مطلب دادے چه دوی کوم دینی اعمال کول دا د دوی دپاره د تزکیه نفس او د اخلاقو د صفایئ ذریعه نهٔ وه او نهٔ په داسے طریقه وو چه الله پرے راضی شی او جنت ته پرے داخل شی او نهٔ پرے د معاشرے اجتماعی اصلاح کیدله نو دا عملونه د وخت ضائع کول وو بغیر د فائدے نه لکه د لوبو په شان یا د بعض غمونو او کارونو نه ځان مشغوله کول وو لکه د لهو (تماشو) په شان۔ دا وجوه امام رازیؒ ذکر کړیدی او صاحب المنار په (وَذَرِ الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا دِيْنَهُمْ لَهْوًا وَّلَعِبًا انعام : ۷۰ آیت) کښې نقل کړیدی۔ (المنار ۷/۴۳۲)
علامه سعدیؒ وائی : لَهَتْ قُلُوْبُهُمْ وَاَعْرَضَتْ عَنْهُ وَلَعِبُوْا وَاتَّخَذُوْهُ سُخْرِيًّا۔
غافله شوی وو زړونه د دوی او د دین نه ئې مخ اړولے وو او دین پورے ئې لوبی او توقے کولے۔ یا دا چه د دوی د دین په بدل کښې لوبی او تماشے راتینګے کړے وے آه۔
د لهو او لعب فرقونه مخکښې سورت کښې ذکر شویدی، بل فرق دا دے چه لعب هغه دے چه په هغے کښې مقصد زر خوشحالی حاصلول وی او لهو هغه دے چه مشغولتیا پیدا

کوی اگر که خوشحالی پکښې نهٔ وی۔ (لکه تماشه)۔

وَّغَرَّتۡهُمُ الۡحَيٰوةُ : دهوکه دا ده چه انسان د هلاکت کندے ته پریوزی او دے خوشحاله وی۔

فَالۡيَوۡمَ نَنۡسٰهُمۡ كَمَا نَسُوۡا : یعنې نن به مونږ د دوی سره د هغه چا په شان معامله کوو چه د خلکو نه هیر شوے وی او هیڅوک ئے نهٔ تالاش کوی، یعنې دوی به همیشه دپاره په جهنم کښې پریدم لکه څنګه چه دوی د نن ورځې ملاقات هیر کړے وو، لکه ګویا که چه صرف دنیا له پیدا وی او د دوی مخے ته نهٔ حساب وی او نهٔ پیشی، او لکه څنګه چه دوی د الله د آیتونو نه انکار کولو۔

نسیان په معنیٰ د ترك سره په عربۍ کښې دیر استعمال دے۔ څکه په الله باندے نسیان نهٔ راځی الله فرمائی :﴿ وَمَا كَانَ رَبُّكَ نَسِيًّا﴾ (مریم: ٦٤)

(ستا رب هیره ونکے نهٔ دے) یعنې هیڅ پرواه به پرے نکوو، د دوی دعا به آوری لیکن ګوری به ورته نهٔ لکه ګویا که چه هیر کړے ئے وی۔

ترمذیؒ د ابو سعید او ابو هریره رضی الله عنهما نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل : ((د قیامت په ورځ به یو سړے راوستے شی نو الله به د هغه نه تپوس وکړی چه آیا ما تا له غوږونه، سترګے، مال او اولاد نهٔ وو درکړی؟، آیا ستا دپاره مے څاروی او فصلونه نهٔ وو مسخر کړی؟، او آیا ما تاته ریاست او مشری نهٔ وه درکړے؟، آیا ستا ګمان وو چه نن ورځ سره به ملاویږے؟ نو هغه به ووائی چه نهٔ، نو الله به وائی : زهٔ به تا نن داسے هیروم لکه څنګه چه تا ما لره هیر کړے وو))۔ (ترمذی: ۲۴۲۸) وصحیح الجامع (۷۰۳۲)

كَمَا نَسُوۡا : دے نه معلومه شوه چه څوك د آخرت ورځ څومره اندازه هیروی هغومره به الله تعالیٰ دهٔ لره هلته هیروی، او څومره چه ورته یاده وه نو الله به ئے هلته یادوی۔

كما : ظاهر دا ده چه کاف د تشبیه دپاره نهٔ دے بلکه کاف تعلیلی دے۔ لکه د﴿ وَاذۡكُرُوۡهُ كَمَا هَدٰىكُمۡ﴾ په شان۔ یعنې څکه چه دوی هیره کړے وه زما د ملاقات ورځ۔ لکه روستو (وَمَا كَانُوۡا) ورسره پدے طریقه لګیږی۔

په مسند احمد کښې راځی چه عائشے رضی الله عنها وفرمایل : عبد الله بن جُدعان به دیرے صدقے کولے یارسول الله ﷺ دا صدقے به قیامت کښې څه فائده ورکړی؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: دا ورله فائده نهٔ ورکوی څکه : (اِنَّهٗ لَمۡ يَقُلۡ يَوۡمًا رَبِّ اغۡفِرۡ لِيۡ يَوۡمَ الدِّيۡنِ) دهٔ په ټول ژوند کښې یوه ورځ هم دا نهٔ وو وئیلی چه اے الله ! ما ته د جزا په ورځ بخښنه وکړه۔ (آخرت نه غافل وو) (احمد : ۲۴۹۳٦ حدیث صحیح)

د انسانانو د اصلاح لویه ذریعه د آخرت یادول دي او په انسان کښې هیڅ خیر نشي راتللے ترڅو چه د آخرت نه یریدلے نهٔ وي۔

وَمَا كَانُوا بِآيٰتِنَا : دے نه معلومیږي چه په دنیا او آخرت کښې جزاء په عقیده او عمل دواړو ده۔ او ددے خلکو عقیده هم خرابه وه (نَسُوا لِقَاءَ) او عمل ئے هم خراب وو (يَجْحَدُونَ)۔ (المنار)

| وَلَقَدْ جِئْنٰهُمْ بِكِتٰبٍ فَصَّلْنٰهُ |
| --- |
| او یقیناً راوړیدے مونږ دوي ته کتاب، په تفصیل سره بیان کړے مونږه هغه |
| عَلٰى عِلْمٍ هُدًى وَّرَحْمَةً لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴿۵۲﴾ |
| په علم سره، هدایت دے او رحمت دے دپاره د هغه قوم چه ایمان لري۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښې قرآن ته ترغیب او ددے نه اعراض کونکو ته زجر دے۔

او دا دفع د وَهم ده چه دے خلکو آخرت هیر کړے وو او سزا ورته ملاؤ شوه نو کیدے شي چه چا به تنبیه نهٔ وي ورکړي؟ نو الله فرمائي چه دوي ډیر ښه خبردار وو، ما دوي ته انبیاء او رسولان علیهم السلام رالیږلي او کتابونه نازل کړي وو او دوي ته مے اعتقادات، احکام اود تمام اُخروي کارونو خبر ورکړے وو لیکن دوي د هغے نه انکار کولو، نو دا څه چه پرے وشو دا د دوي د عملونو نتیجه ده۔ نو دا آیت علت شو د هغه زجر دپاره چه مخکښې آیت کښې ذکر دے۔

فَصَّلْنٰهُ عَلٰى عِلْمٍ : مونږ واضح بیان کړے هغه په خپل علم سره۔ نو د الله په علم سره راغلے هم دے او الله په کښې خپل بعض علمونه بیان کړیدي۔

تفصیل عبارت دے ددینه چه د کومو حقائقو او مسائلو بیان مقصود وي هغه د یو بل نه جدا جدا کړے شي پداسے طریقه چه اشتباه پکښې ختمه شي او په ذهنونو باندے د یو بل سره اختلاط (گډوډوالے) لرې کړي۔ او ددے دا معنیٰ نهٔ ده چه هره نوعه ددے جدا جدا بیان کړے شي او د تولو فروعو اوږد بیان پکښې وکړے شي بلکه په قرآن کښې د هر شي تفصیل موجود دے چه مونږ ورته حاجت لرو نو کوم ځاي چه اوږدوالے مناسب دے هلته ئے اوږدوالے کړیدے او کوم ځاي چه اختصار مناسب دے هلته ئے اختصار کړیدے۔

لکه ددے مثال په عقائدو کښې توحید ربوبیت او توحید الوهیت او د وسیلے او دعاء

شرکونه الله تعالیٰ اوږده بیان کړیدی ځکه چه د مشرکانو شبهات او شکونه زیات وو او په عملی عباداتو کښې د مانځه طریقے او د رکعاتونو شمار کښې ئے اختصار کړیدے ځکه چه په هغے کښې د رسول الله ﷺ اقتداء کافی ده، صرف په اقامت باندے ئے بار بار امر کړیدے او د هغے فائدے او حکمتونه ئے ذکر کړیدی ځکه چه ددے نه اکثر انسانان غفلت کوی۔ او مشرکانو علم ضائع کړے وو او تقلید د مشرانو ئے شروع کړے وو نو الله تعالیٰ په قرآن کښې په نظر او استدلال او بحث او تالاش او تحقیق او عقل کولو باندے بار بار حکمونه کوی۔ الی آخر ما قال۔ (المنار۸/۳۹۳)

**هُدًى** : د آخرت لاره ئے خودله خو دوی ترے اعراض وکړو نو ځکه اُوړته لاړل۔

**وَّرَحْمَةً** : او د رحمت دپاره راغلے دے چه په بندګانو رحم وشی او د الله د ملاقات اهل شی۔

| |
|---|
| هَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّا تَأْوِيْلَهٗ ؕ يَوْمَ يَأْتِيْ |
| انتظار نۀ کوی دوی مګر د انجام د انکار ددے کتاب، په کومه ورځ |
| تَأْوِيْلُهٗ يَقُوْلُ الَّذِيْنَ نَسُوْهُ مِنْ قَبْلُ |
| چه رابه شی انجام د انکار ددے وائی به هغه کسان چه هیر کړے ئے دے دا د مخکښې نه |
| قَدْ جَآءَتْ رُسُلُ رَبِّنَا بِالْحَقِّ ۚ فَهَلْ |
| یقیناً راغلی وو رسولان د رب زمونږه په حق سره (لیکن مونږ نۀ منل) نو آیا شته دے |
| لَّنَا مِنْ شُفَعَآءَ فَيَشْفَعُوْا لَنَآ اَوْ نُرَدُّ |
| مونږ لره سفارشیان پس چه سفارش وکړی مونږ له یا واپس کړے شو مونږ |
| فَنَعْمَلَ غَيْرَ الَّذِيْ كُنَّا نَعْمَلُ ؕ قَدْ خَسِرُوْٓا |
| پس چه عمل وکړو سوئ د هغے نه چه مونږ به کول، یقیناً تاوان کښې اچولی دی دوی |
| اَنْفُسَهُمْ وَضَلَّ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ﴿۵۳﴾ |
| ځانونه خپل او ورک به شی دوی نه هغه دروغ چه دوی جوړول۔ |

**تفسیر** : دا د آخرت یره ده، **تَأْوِيْلَهٗ** : د تاویل یو معنیٰ ده حقیقت۔ لکه د خوب تاویل

معنیٰ دا وی چه د هغے حقیقت معلوم کړے شی. او حقیقت د قرآن دا دے: (مَا وَعَدَهُمْ مِنَ الْعِقَابِ فِي الْقُرْآنِ) د کومو سزاګانو چه دوی سره الله تعالیٰ په قرآن کښې وعده کړیده د هغے انتظار کوی نو دا به داسے شی لکه د بقرے آیت (۲۱۰) ﴿هَلْ يَنظُرُونَ إِلَّا أَن يَأْتِيَهُمُ اللَّهُ فِي ظُلَلٍ مِّنَ الْغَمَامِ﴾. یعنی دوی انتظار نکوی مګر د حقیقت د قرآن یعنی چه پدے کښې کوم عذابونه بیان شویدی د هغے حقیقت راشی.

دویم: تاویل په معنیٰ د انجام سره دے او (ه) ضمیر قرآن ته راجع دے. دوی انتظار نهٔ کوی مګر د انجام د انکار د قرآن چه هغه همیشه عذاب دے.

او مقصد دا دے چه اُوس خو مونږ خبر درکړو بیا به ئے وینئ نو اقرار به کوئ.

نَسُوهُ: یعنی الله ئے هیر کړے وو او د هغه کتاب ئے هیر کړے وو.

قَدْ جَآءَتْ رُسُلُ رَبِّنَا: یعنی کله چه د قیامت ورځ راشی نو بیا به هغوی د خپل کفر اقرار کوی او وائی به چه زمونږ د رب انبیاؤ خو د حق تولے خبرے ښکاره بیان کړے وے. نو دلته وقف دے اَیْ فَکَذَّبْنَا. نو مونږ د هغے تکذیب کړے وو. نو مونږ غټ مجرمان یو نو اُوس مونږ له دوه کارونه پکار دی، یو شفعاء (سفارشیان) چه هغوی الله ته زمونږ سفارش وکړی چه مونږ معاف کړی، او دویم دا چه الله مونږ ته دنیا ته د بیرته واپسئ موقعه راکړی او امتحان کښې مو واچوی نو مونږ به نیك عمل وکړو. اُوس ئے سترګے کولاوے شوے.

فَهَلْ لَّنَا مِنْ شُفَعَآءَ: دا ئے مخکښې ذکر کړو ځکه چه ددے څه امکان به ورته ښکاره کیږی او دنیا ته د واپسئ خبره خو ډیره بعیده ده. او دا هم د نا امیدئ جمله ده یعنی دلته خو زمونږ باطل آلهه هم کار نهٔ ورکوی او پیغمبران هم زمونږ سفارش نکوی ځکه چه مونږ خو د هغوی دشمنان وو.

قَدْ خَسِرُوا: یعنی قرآن باندے ایمان او عمل د ګټے شے وو دوی هغه پریخوستهٔ او په وهمی خبرو پسے روان وو نو تاوان کښې پریوتل. او دا متعلق دے د (أَوْ نُرَدُّ فَنَعْمَلَ) سره.

وَضَلَّ: دا متعلق دے د (شفعاء) سره.

مَّا كَانُوا يَفْتَرُونَ: لکه دوی به دا دروغ جوړول چه ﴿نَحْنُ جَمِيعٌ مُّنتَصِرٌ﴾ مونږ ډله یو چه د یو بل مدد به کوو او کله به ئے وئیل (هٰؤُلَاءِ شُفَعَاؤُنَا عِندَ اللَّهِ) دا آلهه به زمونږ سفارش کوی. بعض کافرو به وئیل چه مونږ طاقتوریو د ملائکو مقابله به وکړو او ځانونه به ترے خلاص کړو.

| |
|---|
| اِنَّ رَبَّكُمُ اللّٰهُ الَّذِیْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ |
| یقیناً رب ستاسو الله دے هغه ذات چه پیدا کړی ئے دی آسمانونه او زمکه په (اندازه د) |
| فِیْ سِتَّةِ اَیَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰی عَلَی الْعَرْشِ قف یُغْشِی الَّیْلَ النَّهَارَ |
| شپږو ورځو کښې بیا برابر شو په عرش باندے (د خپل شان مطابق) پټوی شپه په ورځ، |
| یَطْلُبُهٗ حَثِیْثًا وَّالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ وَالنُّجُوْمَ |
| طلب کوی هره یوه بلے لره په جلتئ، سره او پیدا کړی ئے دی نمر او سپوږمئ او ستوری |
| مُسَخَّرٰتٍ بِاَمْرِهٖ ط اَلَا لَهُ الْخَلْقُ وَالْاَمْرُ ط |
| چه تابع کړے شوی دی په حکم د هغهٔ، خبردار هغهٔ دپاره پیدا کول دی او اختیار دے، |
| تَبٰرَكَ اللّٰهُ رَبُّ الْعٰلَمِیْنَ ﴿٥٤﴾ |
| برکت اچونکے دے الله چه پالونکے د مخلوقاتو دے۔ |

**تفسیر** : پدے رکوع کښې الله تعالیٰ خپل تعارف بیانوی په عقلی دلیلونو بیانولو سره او پدے دلیلونو کښې نعمتونه هم وی، د دلیلونو حاصل دا دے چه (۱) الله ستاسو رب دے، (۲) خالق دے، (۳) عرش والا دے، (٤) نظام چلونکے دے، (٥) هرڅه د هغه د حکم د لاندے دی، (٦) اختیارمند دے، (۷) برکات ورکونکے دے۔

ربط او تړون

۱– کله چه الله د خپل کتاب تذکره وکړی نو بیا خپل شان بیانوی نو مخکښې عظمت د وحی وو اُوس عظمت د مُوحِیْ (وحی رالیږونکی) دے۔ لکه دا طریقه په سورة الرعد کښې هم ده۔ اے خلکو ! دا قرآن د یو پیری، یا د یو وزیر او د یو بنده کتاب نهٔ دے بلکه دا د کائناتو د خالق کتاب دے، پدے وجه روستو به مثال راوړی چه د لوی الله کتاب دے لیکن انسانانو کښې دوه ډلے دی، خبیثان او طیبین، طیبین ددے کتاب نه فائده اخلی او خبیثانو کښې نور نقصانات پیدا شی۔ کله چه د بنده په زړه کښې د الله عظمت راشی نو د هغه کتاب به خامخا منی۔ او دا متعلق د (اِتَّبِعُوْا مَا اُنْزِلَ) سره دے۔

۲– کله چه د کفارو کفر او شرك بیان شو نو اُوس الله تعالیٰ خپل لوئی مخلوقات ذکر کوی وائی چه کوم یو ذات دا پیدا کړیدی د هغه نه سوئ هیڅوك لائق د عبادت نشته۔

## د ستة ایام حقیقت

فِیْ سِتَّةِ اَیَّامٍ : ددې تفصیل په سورة حم السجده (۳) آیت کښې راغلې دې، یعنی الله آسمانونه او زمکه او ددې ترمینځ ټول څیزونه د اتوار د ورځې نه تر جمعې پورې په شپږو ورځو کښې پیدا کړیدی. ۱- چا وئیلي دي چه هره ورځ د دنیا د ورځو برابر وه،

۲- او د ابن عباس ﷛ نه بیهقیؒ په کتاب الاسماء والصفات (رقم: ۹۱۰) کښې روایت کړیدې چه هره ورځ د زرو کالو برابره وه. (خو دا په مرفوع حدیث کښې نشته).

۳- څینې وائي چه ورځې خو د نمر او سپوږمۍ نه پیدا کیږي او دا خو نۀ وو نو ورځې به څنګه وې؟ نو بیا وائي چه دلته مضاف پټ دې (بِمِقْدَارِ سِتَّةِ اَیَّامٍ) یعنی په اندازه د شپږو ورځو. لکه زمونږ مشائخ په ترجمو کښې همدا معنیٰ کوي. لیکن ظاهر د قرآن دا دې چه ورځې به وې لیکن مونږ ته ئې معلومات نشته او دا ضروری نۀ ده چه مونږ دې د هر شي په حقیقت پوهه شو.

او کوم علماء چه د یَوْم نه مراد یوه لمحه (سیکنډ) اخلي او دا وائي چه د یوم اطلاق په مطلق ورځ کیږي لکه په آیت ﴿ وَمَنْ يُوَلِّهِمْ يَوْمَئِذٍ دُبُرَهُ ﴾ (انفال:۱۶) کښې راغلې دې نو دا هم ظاهر نۀ ده ځکه چه په احادیثو کښې د ورځو نومونه راغلي دي.

او الله تعالیٰ خو پدې قادر وو چه په کلمه د کُنْ سره ئې ټول څیزونه په یوه لمحه کښې پیدا کړي وې لیکن د یو حکمت په وجه چه هغه ته معلوم دې په شپږو ورځو کښې ئې پیدا کړل. بعض مفسرینو لیکلي دي چه الله تعالیٰ خپلو بندګانو ته په خپلو معاملاتو کښې د نرمۍ او سوچ او فکر د تعلیم ورکولو دپاره داسې وکړل. او بعضو لیکلي دي چه د الله په نیز د هر کار یو وخت مقرر دې. (معالم التنزیل للبغویؒ وابن کثیرؒ)

ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ: د استویٰ علی العرش معنیٰ او مفهوم بیانولو کښې د علماؤ ډیر اقوال دي چه د هغې د تفصیل دا مقام نۀ دې. او په لغت کښې استواء په معنیٰ د علو، صعود، ارتفاع، استقرار سره دې، دا معاني د عبد الله بن عباسؓ، عبد الرحمن الکلبیؒ، محمد بن اسحاقؒ نه نقل دي. د استواء په صله کښې چه کله (علیٰ) راشي نو په معنیٰ د پورته کیدو دې.

مګر د سلف صالحینو مسلك دا دې چه الله تعالیٰ په عرش باندې داسې مستوی (برابر) دې لکه څنګه چه د هغه د اُوچت مقام او د عظمت او جلال لائق دې، نۀ د هغې نه انکار

کیدے شی او نۀ د هغه تشبیه ورکیدے شی، او نۀ د هغه کیفیت بیانیدے شی۔ او الله عرش ته محتاج نۀ دے لکه مخلوق چه کرسئ وغیره ته محتاج وی بلکه دا د الله د بادشاهئ مقام دے او عرش د الله په امر باندے ټېنګ دے او ددے دپاسه کیدو مطلب دا دے لکه مونږ چه وایو چه آسمان زمونږ دپاسه دے نو ددے مطلب دا نۀ وی چه زمونږ په سر باندے پروت دے بلکه پورته دے یعنی الله هم د عرش نه پورته دے او سره ددے نه عرش ته ضرورت نۀ لری۔ (کما فی شرح العقیدة الطحاویه)

او د سلف صالحینو عقیده د تفویض نۀ ده ځکه چه په صفاتو کښې تفویض دادے چه مثلًا د (استواء، مجیئة، ید وغیره) ښکاره لغوی معانی نۀ منی او ددے معنیٰ او کیفیت دواړه الله ته سپاری بلکه د سلفو په نیز ددے ښکاره لغوی معنیٰ به کولے شی لیکن کیفیت به ئے الله ته سپاری۔ او نۀ د سلفو نه تاویلات د صفاتو نقل دی۔ کوم خلك چه د استویٰ معنیٰ په إِسۡتَوۡلٰی (غلبه کول) سره اخلی نو هغه شیخ الاسلام ابن تیمیّة او ابن القیمؒ د شلو وجوهو نه رد کړیدی۔ ځکه چه استیلاء دے ته وائی چه د دوه کسانو په یو شی باندے جګړه وی نو یو په بل غالب شی نو بیا خلك وائی چه (اِسۡتَوىٰ بِشۡرٌ عَلَى الۡعِرَاقِ) بشر په عراق باندے غلبه وکړه۔ او چه کله جانب مقابل نۀ وی نو بیا به استویٰ په معنیٰ د استیلاء نشی اخستلے لکه دلته شو۔ (کما نقل عن ابن الاعرابیؒ) نو د سلف صالحینو په نیز صفات د الله تعالیٰ کښې تعطیل هم نشته (یعنی داسے تاویلات په نۀ کوی چه د هغے په وجه د الله د صفت تعطیل او انکار راشی) او تفویض د معنیٰ هم نشته۔ بلکه تفویض په اعتبار د کیفیت سره دے۔

په احادیثو کښې د الله تعالیٰ د عرش صفت دا بیان شویدے چه هغه په آسمانونو او زمکو او د دوی ترمینځ او بره په هر شی محیط دے۔ او په آسمانونو دپاسه د قُبے په شکل دے او ددے اندازه صرف الله ته معلومه ده او د یو ے زاویے نه بلے زاویے پورے د پنځوس زره نوری کال په اندازه مزل دے۔

د امام بخاریؒ د استاذ نعیم بن حمادؒ قول دے [مَنۡ شَبَّهَ اللّٰهَ بِخَلۡقِهٖ فَقَدۡ كَفَرَ، وَمَنۡ جَحَدَ مَا وَصَفَ اللّٰهَ بِهٖ نَفۡسَهٗ فَقَدۡ كَفَرَ، وَلَيۡسَ فِيۡمَا وَصَفَ اللّٰهُ بِهٖ نَفۡسَهٗ اَوۡ رَسُوۡلُهٗ تَشۡبِيۡهٌ......) چا چه الله لره د مخلوق سره مشابه کړو هغه کافر شو، او چا چه د یو داسے صفت نه انکار وکړو چه الله خپل ځان دپاره بیان کړیدے، هغه کافر شو، او الله د خپل ځان دپاره چه کوم صفت بیان کړیدے یا د هغه رسول بیان کړیدے په هغے کښې د مخلوقاتو سره مشابهت نشته دے،

پدے وجه چا چه د الله دپاره هغه صفات کوم چه په قرآنی آیتونو او صحیح احادیثو کښې راغلی دی داسے ثابت کړل لکه څنګه چه د هغه د ذات لائق دی، او د هغه ذات ئے د تمامو نقائصو او عیبونو نه پاك وګڼړلو نو هغه په نیغه لاره باقی پاتے شو انتهیٰ۔ (ابن کثیر ۴۲۷/۳ والمنار) ددے مسئلے د زیات تفصیل دپاره ((العلو للعلی الغفار)) د ذهبیؒ۔ او ((مختصر العلو)) د شیخ البانیؒ او فتاوی د شیخ الاسلام جلد (۵) او جلد (۴) او الصواعق المرسلة د ابن القیمؒ او شرح العقیدة الطحاویة د ابن ابی العز الحنفیؒ ته رجوع پکار ده۔

د امام ابو حنیفةؒ نه ابو مطیع البلخیؒ تپوس وکړو چه څوك دا ووائی چه ما ته پته نشته چه زما رب د آسمان دپاسه دے او که په زمکه کښې دے؟ نو امام صاحبؒ وفرمایل: (مَنْ قَالَ: لَا أَعْرِفُ رَبِّيْ فِي السَّمَاءِ أَوْ فِي الْأَرْضِ فَقَدْ كَفَرَ، لِأَنَّ اللهَ يَقُوْلُ ﴿الرَّحْمٰنُ عَلَى الْعَرْشِ اسْتَوٰى﴾ وَعَرْشُهٗ فَوْقَ سَبْعِ سَمٰوَاتٍ) څوك چه دا ووائی چه ما ته پته نشته چه زما رب په آسمان کښې دے (یعنی پورته طرفته) یا په زمکه کښې نو دا یقینی کافر دے څکه چه الله تعالیٰ فرمائی: رحمن ذات په عرش برابروالے کړیدے۔ او د الله عرش د اوه آسمانونو دپاسه دے۔ ابو مطیعؒ وائی: ما تپوس وکړو: (فَإِنْ قَالَ: إِنَّهٗ عَلَى الْعَرْشِ اسْتَوٰى وَلٰكِنَّهٗ يَقُوْلُ لَا أَدْرِي الْعَرْشُ فِي السَّمَاءِ أَمْ فِي الْأَرْضِ؟ قَالَ: هُوَ كَافِرٌ) که یو تن ووائی چه الله په عرش برابروالے کړیدے لیکن دا وائی چه ما ته پته نشته چه عرش په آسمان کښې دے او که په زمکه کښې؟ نو امام صاحب وفرمایل: دا شخص کافر دے، څکه چه الله تعالیٰ د بره نه رابللے شی نهٔ د خکته نه۔ (الفقه الاکبر والفقه الابسط ص: ۴۹) د ابو مطیع البلخی، العلو د ذهبیؒ ص (۱۰۱/ ۱۰۲) رقم (۳۶۳) مجموع الفتاوی لابن تیمیةؒ ۴۸/۵) اجتماع الجیوش الاسلامیة لابن القیمؒ ص (۱۳۹) العلو لابن قدامة ص (۱۱۶) شرح العقیدة الطحاویة لابن ابی العزؒ ص (۳۰۱)۔

او دغه شان عقیده د امام ابو یوسف او محمد رحمهما الله هم ده۔ لیکن ډیرو مقلدینو د امام صاحب دا صحیح عقیده پریخے ده۔

**فائده:** کوم ځای کښې چه د استواء علی العرش خبره راغلے ده نو هغه مقام د تعارف د الله تعالیٰ وی لکه دا اوه ځایونو کښې راغلے دے۔نو پدے کښې اشاره ده چه څوك استواء علی العرش نهٔ منی نو هغه الله نهٔ پیژنی۔ او استواء علی العرش د صفاتو فعلیه ؤ نه دے او صفت فعلی دا دے چه د الله اختیار وی چه هغه کار کوی او که نهٔ، کله به ئے کوی او کله نهٔ، نو دا په ظاهر بناء دے او مقصد پکښې دا دے چه د بندګانو په زړونو کښې د الله په باره کښې بنه تصور واقع کړی چه زمونږ رب بره دے او لوی عرش لری او هغه د هغے دپاسه دے

نو پدے سره به ایمان جوړ شی او د الله سره به مینه پیدا شی۔

**يُغْشِي الَّيْلَ** : یعنی د شپے تیارهٔ د ورځے په رڼرا سره او د ورځے رڼرا د شپے د تیارے په وجه غائبیږی۔ ورآغوندوی شپه ورځے ته اَیْ يَجْعَلُ اللَّيْلَ كَالْغِشَاءِ لِلنَّهَارِ۔

شپه د ورځے دپاره د پردے په شان گرځوی۔ نو ورځ ملبوس او شپه لباس شی۔

**يغشي** : د اِغْشَاء نه دے اَغْشَا او غَشِيَ یو معنیٰ ده (اَیْ يَلْحَقُهُ وَيَغْلِبُ عَلَيْهِ اَوْ يُغَطِّيهِ وَيَسْتُرُهُ) (المنار) یعنی پیوسته کیږی شپه په ورځ پسے او غالبه کیږی په هغے، یا پټوی شپه په ورځ کښں۔

**يَطْلُبُهُ حَثِيثًا** : هر یو د بل پسے وی او په مینځ کښں داسے وخت نهٔ راځی چه نهٔ شپه وی او نهٔ ورځ وی، په هیڅ حال کښں هم دواړه په رفتار کښں تاخیر نهٔ کوی۔

**حَثِيثًا** : اَیْ سَرِيعًا۔ یعنی په جلتیٔ سره۔

**مُسَخَّرٰتٍ** : یعنی نمر او سپوږمیٔ او ستوری تابع کړے شویدی د الله د ارادے چه هغه ترے څه غواړی هغه ترے اخلی لکه ښکاره کیدل، پټیدل وغیره۔ او ددے نه معلومه شوه چه دا مُدَبِّرَات (تدبیر کونکی د عالم) نهٔ دی (لکه چه کهکشان والا وائی) بلکه دا مُسَخَّرات (تابع) دی او پدے کښں ذاتی نحوست (سپیرهٔ والے) او سعادت (نیکبختی) نشته۔ او د ستورو درے فائدے مخکښں ذکر شویدی نورے فائدے دا دی چه پدے سره میوے پخیږی او د آسمان د مضبوطوالی ذریعه ده لکه الله تعالیٰ په سورة الانفطار کښں آسمان او ستوری ددے حکمة د وجه نه جمع کړیدی ﴿ اِذَا السَّمَاءُ انْفَطَرَتْ وَاِذَا الْكَوَاكِبُ انْتَثَرَتْ ﴾

د سائنسدانانو په اصطلاح په ستورو کښں الله تعالیٰ کشش او غازات (یعنی گیسونه) پیدا کړیدی او پدے سره آسمان مضبوط دے۔

او په حدیث کښں هم دی [اَلنُّجُوْمُ اَمَنَةٌ لِلسَّمَاءِ فَاِذَا ذَهَبَتِ النُّجُوْمُ اَتَى السَّمَاءَ مَا تُوْعَدُ] (صحیح مسلم : ٦٦٢٩) ستوری د آسمان دپاره د امن ذریعه ده، کله چه ستوری راپریوزی نو آسمان ته به هغه شے راځی چه د کوم ورسره وعده شویده۔ (یعنی ماتیدل)

**اَلَا لَهُ الْخَلْقُ وَالْاَمْرُ** : یعنی د الله دپاره د پیدائش نظام هم دے (پیدا کول صرف الله کوی) او د هغه دپاره تصرف هم دے چه هغه د کائناتو چلول دی۔ او دے ته امر گونی وائی۔

علامه سعدیؒ وائی : الخلق کښں احکام کونیه قدریه ته اشاره ده او الامر کښں احکام دینیه شرعیه ته۔ (تفسیر السعدی ١/٢٩١)

دا دلیل دے چه په کائناتو کښې د بل چا، کوم قطب، غوث او بابا او پیر امر نهٔ چلیږی۔
امام ابن جریرؒ پدے مقام کښې د عبد العزیز الشامیؒ د پلار نه (چه هغه صحابی دے) د رسول الله ﷺ دا ارشاد نقل کړیدے: [مَنْ زَعَمَ اَنَّ اللّٰهَ جَعَلَ لِلْعِبَادِ مِنَ الْاَمْرِ شَيْئًا فَقَدْ كَفَرَ بِمَا أَنْزَلَ اللّٰهُ عَلٰى أَنْبِيَائِهٖ] ۔ (چا چه دا عقیده وساتله چه الله تعالیٰ د بندګانو دپاره د خپلو اختیاراتو نه څه حصه ورکړیده (عزت، ذلت ورکول، مالداری، غریبی ورکول) نو هغه کفر وکړو په هغه کتابونو چه الله تعالیٰ په انبیاؤ باندے نازل کړیدی ځکه چه الله فرمائی چه (پیدائش او اختیارات خاص د هغه دی) (الطبری۱۲/٤٨٦)
تَبٰرَكَ اللّٰهُ: د برکت معنیٰ ده زیادت او نُمُو یعنی په یو شی کښې ډیروالے پیدا کیدل۔
ازهریؒ وائی: تَبَارَكَ: تَعَالیٰ وَتَعَاظَمَ وَارْتَفَعَ۔ اوچت او لوی او پورته شو۔
او قرطبیؒ وائی: د برکت معنیٰ ده کثرت (ډیر والے) او اتساع۔(یعنی فراخی) (۲۲۳/۷)
صاحب المنارؒ وائی: اَلْبَرَكَةُ هِيَ الْخَيْرُ الْكَثِيْرُ الثَّابِتُ۔ برکت ډیر همیشه خیر ته وائی۔
دلته تربے ددے عالَم هغه نعمتونه او خیرات مراد دی چه په بندګانو باندے الله لره شکر او عبادت واجبوی۔
سعدیؒ معنیٰ کوی: عَظُمَ وَتَعَالٰى وَكَثُرَ خَيْرُهٗ وَاِحْسَانُهٗ، فَتَبَارَكَ فِيْ نَفْسِهٖ لِعَظَمَةِ اَوْصَافِهٖ وَكَمَالِهَا وَبَارَكَ فِيْ غَيْرِهٖ بِاِحْلَالِ الْخَيْرِ الْجَزِيْلِ وَالْبِرِّ الْكَثِيْرِ۔
(لوی دے، اوچت دے، او خیر او احسان ئے زیات دے، نو ذات ئے د برکت والا دے ځکه چه صفات ئے عظیم او د کمال والا دی او نورو ته برکت ورکونکے دے چه د لوی خیر نه زیات او د لوے نیکئ نه ډیره جوړه وی)۔
د برکت نسبت به (په صیغه د اسم فاعل او فعل سره) صرف الله ته کولے شی داسے به نشی وئیلے (تَبَارَكَ الرَّسُوْلُ، تَبَارَكَ زَيْدٌ) ځکه چه یو شے پیدا کول بیا په کښې زیادت او ترقی پیدا کول صرف د الله پورے خاص دے، برکت اچونکے او برکت ورکونکے صرف الله دے۔
نو د تبارك دوه معنے دی لازم معنیٰ: تَزَايَدَ خَيْرُهٗ وَتَعَاظَمَ۔ خیر د الله زیات دے او خپله لوی دے۔ او متعدی معنیٰ: تَبَارَكَ فِي الْاَشْيَاءِ۔ په څیزونو کښې زیادت او فائدے پیدا کونکے۔
او برکت دے ته وائی چه لږ شے ډیر شی، یا د لږ عمر نه ډیره فائده واخستل شی۔ د الله برکت ته وګوره چه نطفه څومره وړوکے او سپك شے دے نو الله تربے ښائسته انسان جوړ کړی دغه شان د دانو او تخمونو نه ونے جوړی کړی۔

اُدْعُوْا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَّخُفْيَةً ؕ اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِيْنَ ﴿٥٥﴾

دعا غواړئ د رب خپل نه په عاجزئ او په پټه یقیناً الله مینه نهٔ کوی د حد نه تیروتونکو سره۔

**تفسیر** : هرکله چه الله تعالیٰ خالق او قادر دے او د ټولو خیرونو مالك هغه دے نو د هغه په بندګانو دا فرض دی چه صرف د هغه عبادت وکړی او بنکاره او پټ په هر حال کښ صرف هغه ته آواز وکړی او د هغه مخکښ لاس خور کړی۔

ربط : ١ – مخکښ دلائل د الله د توحید ربوبیت او معرفت بیان شو نو د الله معرفت د هغه د بندګئ دپاره ذریعه ده، هسے معرفت بغیر د بندګئ نه مقصود نهٔ دے۔ نو اُوس په بندګئ او عاجزئ باندے حکم کوی۔

دعاء : په ډیرو معانو راځی دلته ئے معنیٰ ده غوښتل او سوال او حاجت طلب کول دی۔

تَضَرُّعًا وَّخُفْيَةً : پدے آیتونو کښ د دعا ډیر آداب ذکر دی او ددے سورت په آخر کښ هم راځی، (١) یو ادب دا دے چه د رب نه به دعا غواړی، نهٔ د قبرونو او اولیاؤ نه۔

(٢) دویم ادب : په عاجزئ سره به ئے غواړی، حافظ سیوطیؒ په «الاکلیل» کښ لیکلی دی چه د دعا دپاره لاس پورته کول عاجزی او انکساری ده۔ حافظ بزارؒ د انس ﷺ نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ د عرفات په میدان کښ لاس پورته کولو سره دعا کوله۔

(محاسن التاویل)

(٣) ادب : وَّخُفْيَةً۔ یعنی په پټه باندے دعا وکړئ او دا بهتره ده او واجبه نهٔ ده او دلیل پرے هغه احادیث دی چه په هغے کښ ثابته ده چه رسول الله ﷺ په جهر دعا کړیده او بعض صحابه کرامؓ دعا کړیده او نورو پرے آمین وئیلے دے لکه د سعد او د عبد الله بن جحش رضی الله عنهما واقعه په اُحد کښ راغلے ده۔

حسن بصریؒ نه نقل دی : (بَیْنَ دُعَاءِ السِّرِّ وَالْعَلَانِيَةِ سَبْعُوْنَ ضِعْفًا) د پټے او بنکاره دعا ترمینځ اویا چنده فرق دے، یعنی په پټه دعا ډیره بهتره ده۔

حافظ ابن القیمؒ په «بدائع الفوائد» کښ د پټ ذکر او پټے دعا دیارلس وجے د غوره والی ذکر کړیدی۔ مګر که چا په جهر دعا وکړه نو هغه ته به بدعتی نشی وئیلے، او ددے په باره کښ عبد الحی الکهنویؒ په "سباحة الفکر" کښ تقریباً اته څلویښت روایتونه جمع کړیدی۔

په صحیحینو کښ د ابو موسیٰ اشعری ﷺ نه روایت شویدے چه خلقو په اُوچت آواز

سره دعا کوله نو رسول الله ﷺ وفرمایل:
((خلقو! لږ د آرام نه کار واخلئ، تاسو کوم کونګا، کونړ او غائب نهٔ رابلئ، کوم ذات چه تاسو رابلئ هغه ډیر آوریدونکے او نژدے دے))۔
د حسن بصریؒ وینا ده چه اول به مسلمانانو په دعاګانو کښې ډیر محنت کولو او د هغوی آوازونه به نهٔ آوریدے کیدل، د هغوی او د رب ترمینځ به خبرے وے یعنی هغوی به په پټه دعا کوله۔ لکه چه الله تعالیٰ فرمایلی دی: ﴿ أُدْعُوْا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَّخُفْيَةً ﴾ او د زکریا علیه السلام په باره کښې ئے فرمایلی دی: ﴿إِذْ نَادٰى رَبَّهٗ نِدَاءً خَفِيًّا﴾ (مریم: ۳) (کله چه هغه خپل رب ته په پټه آواز وکړو)۔ (القاسمیؒ)

## د اعتداء صورتونه

(٤) عدمی شرط: اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِيْنَ۔ په دعاء کښې اعتداء (د حد نه تجاوز) نکول۔ په دعاء کښې د اعتداء ډیر صورتونه دی: (۱) د غیر الله نه دعا غوښتل،
(۲) طَلَبُ مَنَازِلِ الْاَنْبِيَاءِ۔ د انبیاؤ مرتبے غوښتل۔ (قاله ابو مجلزؒ – القاسمیؒ)
(۳) طَلَبُ مَا يُخَالِفُ عَادَةَ اللّٰهِ ۔ هغه څیزونه غوښتل چه د الله د عادت خلاف وی۔ ځکه چه الله دا نظام په حکمة جوړ کړیدے نو څوك چه ددے خلاف خبره غواړی نو دا معتدی دے۔ لکه یو تن وائی چه اے الله! ما ته دا بنخته او دیوال د سرو زرو جوړ کړه، ما په هوا والوزوه، الله پدے قادر دے لیکن عادت ئے داسے نهٔ دے۔
(٤) اَلْمُبَالَغَةُ فِى الْجَهْرِ وَالصِّيَاحِ۔ په جهر کښې زیادت کول او چغے وهل۔
(۵) بِدَعِی دعاګانے کول۔ لکه د سنتو، او د فرضو او د جنازے نه روستو په هیئتِ اجتماعی سره دعا کول، ځکه دا د سنت خلاف دی۔
(٦) علامه قاسمیؒ وائی: په مخکنو دوه امرونو باندے عمل نکول (یعنی تضرع او په پټه نکول) هم په دعاء کښې اعتداء ده۔
(۷) په شرعی الفاظو کښې زیادت کول لکه په اَللّٰهُمَّ اَنْتَ السَّلَامُ کښې (حَيِّنَا رَبَّنَا بِالسَّلَامِ وَاَدْخِلْنَا دَارَ السَّلَامِ) الفاظ زیاتول،
(۸) په دعاء کښې تشدد او د مقاماتو تعیین کول لکه عبد الله بن مغفل رضی الله عنه د خپل ځوی نه واوریدل چه اے الله! زهٔ ستا نه د جنت په ښی طرف کښې سپینه بنګله غواړم نو هغه ورته ووئیل چه اے ځویه! دا په دعاء کښې اعتداء ده۔ (احمدؒ: ۱٦٨٤٧ وابو داودؒ رقم: ٩٦ حسن)

(۹) په کومو ځایونو کښې چه لاسونه پورته کول نهٔ وی راغلی هلته لاسونه پورته کول یا په عامو دعاګانو کښې د حد نه زیات لاسونه پورته کول هم اعتداء ده۔

| وَلَا تُفْسِدُوْا فِي الْاَرْضِ بَعْدَ اِصْلَاحِهَا وَادْعُوْهُ خَوْفًا |
|---|
| او فساد مهٔ کوئ په زمکه کښې پس د اصلاح د هغې نه او دعا غواړئ د الله نه په یره |
| وَّطَمَعًا ؕ اِنَّ رَحْمَتَ اللّٰهِ قَرِيْبٌ مِّنَ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿٥٦﴾ |
| او په طمعه سره یقیناً رحمت د الله تعالیٰ نزدې دے نیکی کونکو سره۔ |

**تفسیر:** ربط :

مخکښې آیت کښې الله تعالیٰ د هر حاجت دپاره د الله د رابللو طریقه وخودله نو اُوس پدے آیت کښې د مخلوق او د خالق د حقوقو رعایت ښائی، یعنی کله چه د دنیا معاملات او نظام برابر وی نو پدے کښې به فساد او خرابوالے نهٔ پیدا کوئ۔

مطلب : الله تعالیٰ په زمکه کښې د فساد خورولو نه منع کړیده، او که هغه فساد د زمکے د اصلاح نه روستو وی نو هغه بندګانو ته ډیر نقصان ورکونکے دے۔ فساد په زمکه کښې یو په شرك او ګناهونو سره راځی (مدارك وغیره)

بل په قتل د نفسونو، او په افساد د مالونو په غصب او غلا سره، او د دین فساد په کفر او شرکت او بدعت سره، او د نسبونو فساد په زنا او عمل د قوم لوط سره۔ او د اصلاح نه مراد په رالیږلو د رسول او قرآن سره دے۔

او عطیة وائی : په زمکه کښې ګناهونه مهٔ کوئ پدے سره به الله باراتونه بند کړی او فصلونه به هلاك شی ستاسو په ګناهونو نو د (بَعْدَ اِصْلَاحِهَا) معنیٰ ده : پس د برابرولو د الله تعالیٰ زمکے لره په باران او تازه ګئ سره۔ (نقله البغوی)

صاحب المنارؔ وائی : لَا تُفْسِدُوْا فِي الْاَرْضِ یعنی فساد مهٔ کوئ په زمکه کښې په ضرری عمل کولو یا په ظالمانه فیصله کولو سره چه هغه د خلکو د صلاح او فائدے منافی وی، د هغوی په نفسونو کښې وی لکه د هغوی عقلونه، یا د هغوی عقیدے او د هغوی شخصی او اجتماعی آداب خرابول یا د هغوی په ژوند او فائدو کښې وی لکه زراعت، صناعت، تجارت، او د مواصلاتو لارے او د تعاون وسائل خرابول، نو پدے کښې فساد مهٔ کوئ پس د هغے نه چه په هغې کښې الله منافع ایخودی دی او خلکو ته ئے د هغے خودنه

کړیده۔
بیا وائی : سخت فساد تکبر او عتوّ ده چه دا سبب د ظلم او علو دے لکه انګریزانو ته وګورئ چه د زمکے هر شی ئے برابر کړیدے لکه معدنیات، نباتات او حیوانات او د هغے نه ئے فائدے اخستی دی لیکن د انسان د نفس د اصلاح نه عاجز شویدی ځکه چه دوی د ډیر کامل دین سره دشمنی شروع کړیده۔ نو د هغوی حکومتونه د نوع انسانی په فساد کښې لګیا دی او د کفر او فسوق او عصیان په اباحت بوخت دی۔ (المنار)
وَادْعُوْهُ : دا نور آداب د دعا دی، یو یره کول د هغه د عذابونو او د دعا د نهٔ قبلیدو او په ګناه باندے دُ سزا ورکولو نه، او بل ادب دا دے چه د هغه نه به طمع او امید ساتی۔ لکه حدیث کښې دی : (اُدْعُوا اللّٰهَ وَاَنْتُمْ مُوْقِنُوْنَ بِالْاِجَابَةِ) (ترمذی : ٣٤٧٩ بسند حسن)
د الله نه په داسے حال کښې دعا کوئ چه ستاسو په قبول والی باندے یقین وی۔ که یو تن د الله نه یره نکوی او غوښتنه ترے کوی نو دیته ادلال (تاز او نخرے) وائی چه د بنده د شان سره مناسب نهٔ ده۔
رَحْمَتَ اللّٰهِ : د رحمت ډیرے معانی دی دلته ترے دعا قبلول دی۔
الْمُحْسِنِيْنَ : اشاره ده چه دعا کونکی محسنین دی ځکه چه په دعا کښې الله تعالیٰ ته ډیره زیاته توجه کیږی۔ لکه حدیث کښې هم دی:
[لَيْسَ شَيْءٌ اَكْرَمَ عَلَى اللّٰهِ مِنَ الدُّعَاءِ] (ترمذی : ٣٣٧٠ بسند حسن– البانی)
هیڅ شے نشته چه الله تعالیٰ ته د دعا نه زیات عزتمند وی۔
دعاء الله ته ډیره عزتمنه ده ځکه چه پدے کښې توجه ډیره وی۔
قَرِيْبٌ : دا ئے مذکر راوړو ځکه چه فعیل وزن کښې مذکر او مؤنث مشترك دی کله چه په معنیٰ د مفعول وی۔ یا رحمت کښې تانیث حقیقی نهٔ دے او رحمت په معنیٰ د ثواب دے۔
او د آیت نه دا فائده معلومه شوه چه په ځان کښې د احسان صفت پیدا کړه نو الله به ډیر ضرور دعا قبلوی او رحمت به درباندے وکړی۔ او دا بل شرط د دعاء دے۔ لکه حدیث کښې دی [اِنَّ اللّٰهَ لَا يَقْبَلُ عَنْ قَلْبٍ غَافِلٍ لَاهٍ] الله تعالیٰ د غافل او په بل شی باندے مشغول زړه نه دعا نهٔ قبلوی۔ (ترمذی : ٣٤٧٩ سند حسن)
او ددے نه دا هم معلومه شوه چه د محسنینو سره نزدے کیدل او د هغوی په مجالسو کښې شریك کیدل پکار دی، په هغوی به رحم کیږی نو په تا به هم وشی۔ په حدیث کښې

دی: (هُمُ الْقَوْمُ لَا يَشْقَى بِهِمْ جَلِيسُهُمْ) (دوی داسے خلك دی چه د دوی سره ناست انسان نهٔ بد بخته کیږی۔ (صحیح مسلم ۲۰۷۰/٤ رقم: ۲۶۸۹)

| |
|---|
| وَهُوَ الَّذِي يُرْسِلُ الرِّيحَ بُشْرًا بَيْنَ يَدَيْ رَحْمَتِهِ ۖ |
| او الله هغه ذات دے چه رالیږی هواګانے زیرے ورکونکی مخکښ د رحمت خپل نه |
| حَتَّىٰ إِذَا أَقَلَّتْ سَحَابًا ثِقَالًا سُقْنَاهُ لِبَلَدٍ مَّيِّتٍ |
| ترهغے چه کله راپورته کړی وریځے درنے، بوځو مونږ دا هغه ښار ته چه اُوچ دے |
| فَأَنزَلْنَا بِهِ الْمَاءَ فَأَخْرَجْنَا بِهِ مِن كُلِّ الثَّمَرَاتِ ۚ |
| پس راولیږو په هغے باندے اُوبه نو راوباسو په هغے سره د هر قسم میوو نه |
| كَذَٰلِكَ نُخْرِجُ الْمَوْتَىٰ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ ﴿٥٧﴾ |
| دغسے به راوباسو مونږ مړی دے دپاره چه تاسو نصیحت واخلئ۔ |

**تفسیر**: دا بل تعارف د الله تعالیٰ دے۔

الرِّيحَ ئے جمع راوړه ځکه چه الله مختلفے هواګانے رالیږی، د عربو په نیز هواګانے څلور قسمه دی (۱) شمال، (۲) جنوب، (۳) صبا، دیته قبول هم وائی دا د مشرق د طرفه وی۔ (٤) دَبُور دا د مغرب د طرفه رالوځی۔ او کله چه دا دوه مختلفے هواګانے ګډے ودے شی نو هغے ته نکباء (اوریدونکے او سخته) هواء وائی۔ او کله چه ډیرے هواګانے د مختلف طرفونو نه راوالوځی هغے ته متناوحه وائی۔ او عربو نه دا هم نقل دی چه د بارانی وریځے په راپورته کولو کښ دا ټولے هواګانے اثر لری، الله تعالیٰ چه کله باران اُورول غواړی نو باد صبا ته حکم وکړی چه هغه وریځه په حرکت کښ راولی او شمالی ئے راجمع کوی او جنوبی ئے راوروی او دبور ئے تقسیموی۔ (تفسیر المنار)

راغبؒ وائی: په قرآن کریم کښ ریاح د رحمت هواګانے وی او ریح د عذاب هوا وی۔

بُشْرًا: دا د الله تعالیٰ عادت دے چه کله باران کوی نو مخکښ ترے هوا راشی۔

اَقَلَّتْ: اَیْ رَفَعَتْ - یعنی راپورته کړی۔ اِقْلَال په معنیٰ د پورته کولو سره راځی۔ لکه (اَقِلَّ الْقُلَّةَ) منګے ئے راپورته کړو۔

سَحَابًا: اسم جنس دے مفرد ئے سَحَابَةٌ دے۔ او ثقال: یعنی درنے په بخاراتو د اُوبو سره۔

لِبَلَدٍ : لام په معنیٰ د (اِلٰی) سره دے لکه په سورة الفاطر کښې په اِلٰی سره راغلے دے۔
مِنۡ کُلِّ الثَّمَرٰتِ : نو باران یو نعمت او ددے په وجه چه کوم برکات راځی دا بل او بیا چه میوے پرېے پیدا کیږی دا بل نعمت دے۔
کَذٰلِكَ نُخۡرِجُ الۡمَوۡتٰی : پدے سره اثبات د قیامت کوی په طریقه د قیاس سره، لکه څنګه چه د بارانی اُوبو نه مختلف قسم په کریونو بوټی او میوه جات راویاسی نو دغه شان به الله تعالیٰ مړی هم په قیامت کښې د زمکے نه راویاسی، دا هم ورته ګرانه نۀ ده۔ دارنګه دا ورسره څکه وائی چه کله انسان د زمکے فصل ته وګوری نو هسے نه چه د خوشحالئ د وجه نه دوباره ژوند هیر کړی نو د آخرت د یادولو دپاره ئے ورسره دا ذکر کړو۔ که ددے نه آخرت یاد نکړے شی او د هغے دپاره تیارے ونکړے شو نو مقصد د ژوند خراب شو۔

په احادیثو کښې دی چه د دواړو شپیلو ترمینځ به څلویښت ورځے وی نو بیا به الله باران راولیږی نو د هغے په وجه به ټول مړی راپورته کړی۔ بخاری : ۴۶۵۱ ومسلم رقم : ۲۹۵۵)

| وَالۡبَلَدُ الطَّیِّبُ یَخۡرُجُ نَبَاتُهٗ بِاِذۡنِ رَبِّهٖ ج |
|---|
| او هغه زمکه چه پاکه (مزیداره) ده راوځی ګیاه د هغے په حکم د رب د هغے |
| وَالَّذِیۡ خَبُثَ لَا یَخۡرُجُ اِلَّا نَکِدًا ط |
| او هغه زمکه چه شوره ناکه ده نۀ راوځی (بوټی د هغے) مګر بیکاره، |
| کَذٰلِكَ نُصَرِّفُ الۡاٰیٰتِ لِقَوۡمٍ یَّشۡکُرُوۡنَ ﴿۵۸﴾ |
| دغسے په تفصیل سره بیانوو آیتونه دپاره د هغه قوم چه شکر کوی۔ |

**تفسیر** : کله د یو دلیل نه ډیرے فائدے اخستلے کیږی نو دلته هم دغسے شویدی چه پدے کښې الله تعالیٰ د قرآن تشبیه د باران سره او د انسانانو د زمکو سره ورکړیده، زمکے دوه قسمه دی، طیبه، او خبیثه۔ د باران په وجه طیبو زمکو ته فائده رسی، ښائسته بوټی او ګیا هګانے پکښې راززغونی شی او خبیثی زمکے ته فائده نۀ رسی بلکه هغے کښې ازغی پیدا شی او نوره خرابه شی ویهیږی، سوری سوری او کچه شی

نو دغه شان ﴿وَنُنَزِّلُ مِنَ الۡقُرۡاٰنِ مَا هُوَ شِفَآءٌ وَّرَحۡمَةٌ لِّلۡمُؤۡمِنِیۡنَ وَلَا یَزِیۡدُ الظّٰلِمِیۡنَ اِلَّا خَسَارًا﴾

(اسراء: ۸۲) قرآن هم په نيکانو کښې کمالات راپيدا کړي او ظالمانو لره د انکار په وجه نور تاوان زيات کړي۔

ددې مثال داسې هم دې چه باران وشي هغه شاتو مچۍ وڅکي نو شهد ترې جوړ شي او ګډه بزه ئې وڅکي نو پۍ جوړ شي او مار، لړم ئې وڅکي نو زهر ترې جوړ شي ځکه چه د هغه په نفس کښې خباثت دې۔ او ددې مثال تفصيل به په سورة الرعد (۱۷) آيت کښې راشي۔ ان شاء الله تعالىٰ۔

کومه زمکه چه زرخيزه وي په هغې کښې د الله په حکم سره بوټي مزيدار او فائده مند راوخي او کومه چه خرابه وي لکه تورو کاڼرو والا يا ښوره ناکه زمکه پدې کښې مزيدار بوټي نهٔ پيدا کيږي، او کوم چه پيدا کيږي هغه فائده مند نهٔ وي۔

ابن عباس ﷺ وائي چه الله تعالىٰ ددې مثال په ذريعه د مؤمن او کافر حال بيان کړيدې۔ قتادهٔ وائي چه مؤمن د قرآن کريم په آوريدو سره هغه يادوي او د هغې معانيو ته په خپل زړهٔ کښې ځاې ورکوي او د هغې نه فائده اخلي، نو ښائسته انسان ترې جوړ شي، د هغه زرخيزې زمکې په شان چه په هغې کښې د باران کيدو نه روستو بوټي راخيژي، ليکن د کافر حالت ددې په خلاف وي، چه هغه پرې اعتراضونه شروع کړي نو خباثت ئې نور هم زيات شي۔

ځيني وائي: دا د زړونو مثال دې، بعض زړونه نصيحت اخلي او خبره رايادوي او بل فاسق زړه وي چه ددې نه نفرت کوي۔ (القرطبي)

په صحيحينو کښې د ابو موسىٰ اشعري ﷺ روايت دې چه رسول الله ﷺ وفرمايل: ((الله تعالىٰ چه زهٔ په کوم علم او هدايت راليږلے يم د هغې مثال د تيز باران دې چه ښائسته زمکه ئې قبلوي، بيا په هغې کښې بوټي او ډيرې سبزيانې راوخيژي او اُوچه او سخته زمکه اُوبه بندوي چه د هغې نه خلق فائده اخلي، څاروي خړوبه کوي، او فصلونه کړي او خوړ والا سرسري زمکه نهٔ اُوبه بندوي او نهٔ کومه ګياه زرغونوي۔ دا مثال د هغه سړي دې چه د الله د دين پوهه ئې حاصله کړه، او د هغه شي نه ئې فائده واخسته په کوم چه الله زهٔ راليږلے يم، نو هغه علم حاصل کړو او نورو ته ئې تعليم ورکړو او دا مثال د هغه سړي دې چه هغه ترې هيڅ فائده وانخسته او نهٔ ئې هغه هدايت قبول کړو په کوم چه زهٔ راليږلے شوے يم۔

(بخاري: ۷۹ مسلم: ۶۰۹۳)

وَالَّذِىْ: اَىِ الْبَلَدُ الَّذِىْ خَبُثَ۔ هغه زمکه چه خبيثه ده۔

لَا يَخْرُجُ : اَیْ نَبَاتَهٗ اِلَّا نَکِدًا : نکدا حال دے۔ اَیْ حَالَ کَوْنِهٖ قَلِیْلًا، عَدِیْمَ النَّفْعِ، یُقَالُ عَطَاءٌ نَکِدٌ، اَیْ قَلِیْلٌ لَاخَیْرَ فِیْهِ) ۔ (القاسمیؒ) یعنی په داسے حال کښې چه کم، بې فائدے، (بیکاره) وی لکه وئیلے شی عطاء نکد یعنی کمه بې خیره تحفه۔

نَکِدًا : کُلُّ شَیْءٍ خَرَجَ اِلٰی طَالِبِهٖ بِتَعَسُّرٍ ۔ (راغبؒ) نکد هر هغه شے دے چه طلب کونکی ته په تکلیف راوځی۔ صاحب المنار وائی : چا چه د انسانانو امتحان واخستو نو پو هه به شی چه د طیبین نه عفو بغیر د تکلیف نه راوځی او د خبیثانو نه خیر او نیکی او هغه حق چه په دوی باندے واجب وی نهٔ راوځی مګر په تکلیف سره پس د ډیرے مبالغے او ضرر او حاکمانو ته د راښکلو او سختو جګړو نه۔ (تفسیر المنار۸/۴۲۸)

نُصَرِّفُ الْاٰیٰتِ : یعنی قسم قسم آیتونه او طریقے د دلائلو مونږ بار بار بیانوو۔

یَّشْکُرُوْنَ : پدے کښې ترغیب دے شکر کولو ته پدے ذکر شوی نعمتونو سره۔

شاکرین ئے ذکر کړل ځکه چه دوی د قرآن نه فائده اخلی۔

| لَقَدْ اَرْسَلْنَا نُوْحًا اِلٰی قَوْمِهٖ فَقَالَ یٰقَوْمِ |
|---|
| یقیناً لیږلے وو مونږ نوح (علیه السلام) د هغهٔ قوم ته نو وویل هغهٔ اے قومه زما ! |
| اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَکُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَیْرُهٗ ؕ اِنِّیْٓ اَخَافُ |
| بندګی خاص کړئ الله لره نشته تاسو له لائق د بندګئ سوئ د هغهٔ نه یقیناً زهٔ یریږم |
| عَلَیْکُمْ عَذَابَ یَوْمٍ عَظِیْمٍ ﴿۵۹﴾ قَالَ الْمَلَاُ مِنْ قَوْمِهٖٓ اِنَّا لَنَرٰکَ |
| په تاسو د عذاب د ورځے لوئی نه۔ وویل غټانو د قوم د هغهٔ یقیناً مونږ خامخا وینو تا |
| فِیْ ضَلٰلٍ مُّبِیْنٍ ﴿۶۰﴾ قَالَ یٰقَوْمِ لَیْسَ بِیْ ضَلٰلَةٌ وَّلٰکِنِّیْ |
| په ګمراهئ ښکاره کښې۔ وویل دهٔ اے قومه زما ! نشته په ما باندے ګمراهی او لیکن یم |
| رَسُوْلٌ مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِیْنَ ﴿۶۱﴾ اُبَلِّغُکُمْ رِسٰلٰتِ رَبِّیْ وَاَنْصَحُ |
| زهٔ رسول د طرف د رب العالمین نه۔ رسوم تاسو ته پیغامات د رب خپل او خیر خواهی کوم |
| لَکُمْ وَاَعْلَمُ مِنَ اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۶۲﴾ اَوَعَجِبْتُمْ |
| ستاسو او پوهیږم د طرف د الله نه په هغه څه چه نهٔ پوهیږئ تاسو۔ آیا تعجب کوئ تاسو |

| |
|---|
| اَنْ جَآءَكُمْ ذِكْرٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ عَلٰى رَجُلٍ مِّنْكُمْ |
| چه راغلے دے تاسو ته نصیحت د طرفه د رب ستاسو په یو سړی ستاسو نه |
| لِيُنْذِرَكُمْ وَلِتَتَّقُوْا وَلَعَلَّكُمْ |
| دے دپاره چه ویروی تاسو او دے دپاره چه تقویٰ اختیار کړئ تاسو او دے دپاره چه په تاسو |
| تُرْحَمُوْنَ ﴿٦٣﴾ فَكَذَّبُوْهُ فَاَنْجَيْنٰهُ |
| رحم وکړے شي۔ پس دروغژن وګنړلو دوی هغه لره نو خلاص کړو مونږ هغه |
| وَالَّذِيْنَ مَعَهٗ فِى الْفُلْكِ وَاَغْرَقْنَا الَّذِيْنَ |
| او هغه کسان چه د هغهٔ سره وو په کشتئ کښ او ډوب مو کړل هغه کسان |
| كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا ؕ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمًا عَمِيْنَ ﴿٦٤﴾ |
| چه دروغژن ئے ګنړلی وو آیتونه زمونږ یقیناً دوی وو قوم ړاندهٔ۔ |

**تفسیر :** ددے آیت نه روستو د شپږو انبیاؤ علیهم السلام واقعات بیانیږی چه دے ته نقلی دلیلونه وائی چه په یو موضوع باندے پیش کیږی، د انبیاؤ علیهم السلام د واقعاتو یو خو په ټول قرآن کښ عمومی فائدے دی او بل د هر سورت د موضوع سره متعلق وی، چه موضوع پرے ثابتیږی اګرکه نورے فائدے به هم ضمنی پکښ زیاتی وی۔

**فائده :** په قرآن کریم کښ د انبیاؤ د واقعاتو عمومی د ځلوبښتو نه زیات فوائد دی۔ بعض دا دی (۱) یو تثبیت یعنی د رسول الله ﷺ او مؤمنانو مضبوطول۔

(۲) الانذار (کافران یره ول) (۳) والتذکیر۔ (مؤمنانو دپاره عبرت)

(٤) طَرِيْقَةُ الدَّعْوَةِ اِلَى اللّٰهِ۔ الله طرفته د دعوت طریقه خودل۔

(٥) اَلْاَمْرُ بِالصَّبْرِ۔ (د نورو انبیاؤ علیهم السلام په شان صبر به کوئ)۔

(٦) اظهار د حکمة وی چه الله خپل مخلوق مُهْمَل (بیکاره) نهٔ دی پریښی بلکه هره زمانه کښ ئے ورته رسول رالیږلے دے۔

(۷) بَيَانُ صِدْقِ الرَّسُوْلِ۔ د رسول الله ﷺ په دوه طریقو سره رشتینوالے خودل، یو دا چه دا امی شخص دے، دا واقعات ئے لیدلی نهٔ دی او بیخی صحیح صحیح ئے بیانوی نو دلیل دے چه دا د الله رشتینی رسول دے ځکه چه الله دهٔ ته د وحی په ذریعه دا خبرے خودلی دی

ورنه دۀ ته د کوم ځای نه ددے خبرو خبر کیدو؟۔
دویم دا چه دا رسول څه اولنے رسول نۀ دے بلکه ددۀ نه مخکښ هم دا سلسله د انبیاؤ علیهم السلام جاری وه نو دا بعیده مۀ ګنړئ چه ولے الله انسان رسول راولیږلو۔
(٨) : اِظْهَارُ طَبِيْعَةِ الرِّسَالَةِ ۔ خلکو ته د رسالت طبیعت ښکاره کول چه رسالت دیته نۀ وائی لکه چه د خلکو ګمان دے چه نۀ به خوراك څکاك کوی او نۀ به پرے مرګ راځی او نۀ بیماری۔ او مالداره به وی، مزے به کوی، نۀ، رسالت دیته وائی چه انسان به وی او د الله پاك بنده به وی او د الله د امتحاناتو نه به بچ نۀ وی، رسول الله ﷺ سره د ډیرے تقوئ نه څلور ځله د اس او اوښ نه غورزیدلے دے او ډیر کرت بیمار شویدے څکه بشر وو۔
(٩) بَیَانُ مَقْصَدِ خَلْقِ الْاِنْسَانِ۔ (انسان کوم مقصد له پیدا دے؟ هغه عبادت دے) نو هره زمانه کښ هر نبی وئیلی دی (يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ) اے قومه ! د الله بندګی وکړئ۔
(١٠) **فائده:** د انبیاء علیهم السلام تول دعوتونه درے خبرے وے، ١– یو د مخلوق نه د خلکو تعلق کټ کول او په الله باندے جوړول، په بل تعبیر : خلك د شرك نه منع کول او په توحید کښ داخلول۔ ٢– او د اموالو د محبت نه ویستل د اعمالو محبت ته۔ ددے وجه نه هر نبی اعمالو ته دعوت ورکړیدے۔ ٣– بندګان د دنیا د محبت نه ویستل د آخرت محبت ته۔ یعنی په آخرت هم نظر لګوئ۔ نو پدے واقعاتو کښ رسول الله ﷺ ته دا ښودل دی چه تۀ هم دا درے قسمه دعوتونه کوه۔
(١١) دا واقعات نقلی دلائل وی دپاره د اثبات د توحید او رد د شرك۔
دلته ددے واقعاتو مقصد یو انذار دے او بل تذکیر دے او دریم تقوئ پیدا کیدل۔ (یعنی اتباع د مَا اُنْزِلَ ته دعوت) او دا په یو بل باندے مرتب دی۔
دارنګه پدے کښ یو مقصد دا دے چه د قریشو کافران په مختلف انداز کښ الله طرف ته راوبللے شی، هغوی ته وخودلے شی چه لکه څنګه تیر شوی انبیاء علیهم السلام راغلی دی نو کومو خلقو چه د دوی دعوت قبول کړو الله هغوی ته نجات ورکړو او کافران ئے هلاك کړل، که تاسو هم ایمان راوړئ نو د الله د طرف نه به د عزت او اکرام مستحق شئ او که نۀ وی نو تاسو به هم هلاك کړے شئ او الله به ستاسو هیڅ پرواه نۀ کوی۔
نُوْحًا : د نوح علیه السلام نه ئے شروع وکړه څکه چه دا اولنے رسول دے زمکے والو ته چه د رد د شرك دپاره راغلے دے، ددۀ نوم : نوح بن لامك بن متوشلخ، بن اخنوخ، اخنوخ د ادریس علیه السلام نوم دے، لکه ددۀ په باره کښ وئیلے شی چه دا اولنے هغه شخص دے چه په قلم باندے

ئے خط کریدے۔ (او دا فن ئے ایجاد کریدے) اخنوخ بن برد بن مهلیل بن قنین بن یانش بن شیث بن آدم علیه السلام۔

یزید الرقاشیؒ وائی نوح علیه السلام به په خپل ځان ژړا ډیره کوله پدے وجه ورته نوح ووئیل شو۔ د آدم علیه السلام نه تر د نوح علیه السلام د زمانے پورے لس صدئ تیرے شویدی او دا ټول په اسلام او توحید باندے تیر شویدی۔ (قاله ابن عباسؓ– تفسیر ابن کثیر)

عبد الله بن عباسؓ او نور مفسرین فرمائی چه د بت پرستئ ابتداء پدے طریقه وشوه چه څه نیکان خلك مړهٔ شول نو د هغوی معتقدینو د هغوی په قبرونو باندے مسجدونه جوړ کړل او د هغوی تصویرونه ئے جوړ کړل او په هغے کښ ئے کیخودل دے دپاره چه هغوی ته په کتلو سره د هغوی حالت او د هغوی عبادت راياد کړی او د هغوی په شان جوړیدو کوشش وکړی، مګر لږه زمانه چه تیره شوه نو خلکو د هغوی د تصویرونو په ځای د هغوی مجسمے جوړے کړے او د هغوی احترام او عبادت ئے شروع کړو، او د دغه مجسمو نومونه ئے د دغه صالحینو په نوم سره یاد کړل لکه "ود، سواع، یغوث، یعوق او نسر وغیره" او کله چه د هغوی شرك د حد نه تیروتو، نو الله تعالیٰ نوح علیه السلام راولیږلو، دے دپاره چه بیا دوی ته د یو الله د عبادت دعوت ورکړی۔ نو کله چه هغوی د خپل دعوت اعلان وکړو نو د هغه د قوم سردارانو هغه سخت ګمراه وګڼړلو۔

حافظ ابن کثیرؒ وائی چه په هر دور کښ د فاسقانو او فاجرانو همدا حال پاتے شویدے چه هغوی نیکان خلق بیوقوف او ګمراهان ګڼړی۔

په قرآن کریم کښ الله تعالیٰ د نوح علیه السلام معجزه نهٔ ده ذکر کړے، نهٔ کوم کتاب، البته یوه معجزه ئے ذکر ده چه ښیرے ئے وکړے او الله قبولے کړے او د هغه په قوم باندے عذاب راغلو لیکن دا معجزه ئے روستو ښکاره شویده۔ او چونکه د هغے په ذکر کولو کښ به فائده نهٔ وه پدے وجه الله تعالیٰ نهٔ ده ذکر کړے۔

اَرْسَلْنَا : اَیْ بِالتَّوْحِیْدِ وَعِبَادَةِ اللّٰهِ۔ یعنی مونږ په توحید او د الله په بندګئ لیږلے وو۔

مِّنْ اِلٰهٍ : اله په معنیٰ د حقدار د بندګئ دے۔

اَلْمَلَاُ : د قوم مشران، غټان، سرداران او مالداران، نسب دار خلك۔ د ملأ معنیٰ په سورة البقره آیت (۲٤٦) کښ ذکر شویده۔

ضَلٰلٍ مُّبِیْنٍ : یعنی په خطائی او د حق نه په اوریدو کښ دے وینو۔

لَیْسَ بِیْ ضَلٰلَةٌ : نوح علیه السلام ووئیل چه زهٔ ګمراه نهٔ یم بلکه د الله رسول یم، او تاسو ته د

هغهٔ پیغام رسوم او زهٔ ستاسو دپاره مخلص یم، او د الله د طرف نه هغه څه راته معلوم دی چه تاسو ته معلوم نهٔ دی، لیکن د هغه قوم د هغه په تکذیب او مخالفت کښې په تیزئ شو نو الله تعالیٰ هغه او د هغهٔ مؤمنان ملګری خلاص کړل او د هغه دشمنان ئے په طوفان سره هلاك کړل۔

ضَلَالَةٌ : کښې معنیٰ د جنس ده چه معنیٰ د کمال ورکوی یعنی هیڅ قسمه ګمراهی په ما کښې نشته۔

وَاَعْلَمُ مِنَ اللّٰهِ : دا دلیل دے چه د نبي علم صرف د الله د طرفنه وی۔ یعنی ما ته د الله د طرفنه دا علم دے چه کله د الله عذاب راشی نو هغه د مجرمانو نه نهٔ واپس کیږی۔ (بغوی)

وَلَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ : دا د مخکښې طرفنه په یو بل باندے مرتب دی، اول بنده کښې ذکر (خبره یادول) راشی، خبره واوری په هغے سوچ وکړی نو بیا د هغے نه روستو انذار پیدا شی، یعنی یره پکښې راشی نو بیا عمل شروع کړی چه دے ته تقویٰ وائی نو بیا پرے رحم وشی۔ نو رحمت مرتب په تقویٰ دے او تقویٰ په انذار او انذار په ذکر باندے۔

فَكَذَّبُوْهُ : اَیْ تَمَادَوْا فِیْ تَكْذِیْبِهٖ۔ یعنی د هغه همیشه تکذیب به ئے کولو۔

عَمِیْنَ : نه مراد د زړونو ړوند والے دے لکه په سورة حج (۴۶) آیت کښې دی۔

| وَاِلٰی عَادٍ اَخَاهُمْ هُوْدًا ؕ قَالَ یٰقَوْمِ |
|---|
| او لیږلے وو مونږ عادیانو ته ورور د هغوی هود (علیه السلام) ووئیل هغهٔ اے قومه زما! |
| اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَیْرُهٗ ؕ اَفَلَا |
| بندګی خاص کړئ الله لره نشته تاسو له حقدار د بندګئ سوئ د هغهٔ نه آیا نو نهٔ |
| تَتَّقُوْنَ ﴿۶۵﴾ قَالَ الْمَلَاُ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا مِنْ قَوْمِهٖۤ اِنَّا |
| یریږئ (د الله نه)۔ ووئیل غټانو هغه کسانو چه کفر ئے کړے وو د قوم د هغه نه یقیناً مونږ |
| لَنَرٰىكَ فِیْ سَفَاهَةٍ وَّاِنَّا لَنَظُنُّكَ مِنَ الْكٰذِبِیْنَ ﴿۶۶﴾ |
| خامخا وینو تا لره په کم عقلتیا کښې او یقیناً خامخا ګمان کوو مونږ په تا د دروغژنو۔ |
| قَالَ یٰقَوْمِ لَیْسَ بِیْ سَفَاهَةٌ وَّلٰكِنِّیْ رَسُوْلٌ مِّنْ |
| ووئیل دهٔ اے قومه زما! نشته په ما باندے کم عقلتیا او لیکن یم زهٔ رسول د طرف د |

رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٦٧﴾ اُبَلِّغُكُمْ رِسٰلٰتِ رَبِّيْ وَاَنَا لَكُمْ نَاصِحٌ اَمِيْنٌ ﴿٦٨﴾

رب العالمین نه. رسوم تاسو ته پیغامات د رب خپل او زهٔ تاسو لره خیرخواه امانت کریم.

اَوَعَجِبْتُمْ اَنْ جَآءَكُمْ ذِكْرٌ مِّنْ

آیا تعجب کوئ تاسو ددے نه چه راغلے دے تاسو ته نصیحت (وحی) د طرفه د

رَّبِّكُمْ عَلٰى رَجُلٍ مِّنْكُمْ لِيُنْذِرَكُمْ ؕ وَاذْكُرُوْٓا اِذْ

رب ستاسو نه په یو سړی ستاسو نه دے دپاره چه ویروی تاسو او یاد کړئ هغه وخت

جَعَلَكُمْ خُلَفَآءَ مِنْۢ بَعْدِ قَوْمِ نُوْحٍ وَّزَادَكُمْ

چه وګرځولئ الله تعالیٰ تاسو نائبان روستو د قوم د نوح (علیه السلام) نه او زیات ئے کړو تاسو لره

فِى الْخَلْقِ بَصْۜطَةً ۚ فَاذْكُرُوْٓا اٰلَآءَ اللّٰهِ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿٦٩﴾

په پیدائش کښ فراخی نو یاد کړئ نعمتونه د الله دے دپاره چه تاسو کامیاب شئ.

**تفسیر** : د هود (علیه السلام) او د هغه د قوم (عادیانو) قصه بیانیږی، دا د عاد بن اِرَم بن عُوص بن سَام بن نوح (علیه السلام) اولادونه وو، الله د نوح (علیه السلام) قوم هلاك كړو په هغوی كښ د مؤمنانو بچی او اولاد پاتی شو او هغه زیاتیدل تردے چه عادیان ترے جوړ شو، دا خلك د ډیر جسمانی قوت مالكان وو او د بتانو عبادت به ئے كولو. د هغوی د وسیدو ځای عُمان او د حضرموت مینځنئ شګلنه علاقه وه، امام ابن كثیرؒ د یو اُورِد حدیث نه دا فائده معلومه كړیده چه دا خلك په یمن كښ آباد وو او هلته د هود (علیه السلام) قبر هم دے، په یوه سرهٔ ډیركئ باندے ښخ دے چه سر ته ئے د كیكر ونه ده. او احقاف هم د عُمان نه تر حضرموت پورے خور دے، چه دا كلی په یمن كښ دی.

هود (علیه السلام) ددے قوم د یو شریف خاندان نه وو چه هغه الله تعالیٰ د هغوی د هدایت دپاره نبی رالیږلے وو، لیكن لكه څنګه چه هغوی په جسمانی توګه سره ډیر سخت خلك وو دغه شان زړونه ئے هم ډیر سخت وو. (ابن كثیرؒ)

محمد بن اسحاقؒ وغیره لیكی چه دوی به د دریے بتانو عبادت كولو (صُدَاء، صَمود، هَباء) (ابن كثیرؒ والبغویؒ والمنار)

اسحاق بن بِشرؒ او ابن عساكرؒ د عطاءؒ نه او هغهٔ د ابن عباسؓ روایت نقل كړیدے چه هود

(ﷺ) رومبنے هغه شخص دے چه په عربی ژبه ئے خبرے کړیدی او د هود ﷺ نه څلور ځامن پیدا شو (۱) قَحْطان، (۲) مُقْحِط (۳) قاحط (٤) فالغ۔ فالغ د مُضر قبیلے پلار دے او قحطان د یمن، او د باقیو نسل پاتے نشو۔ (المنار)

هغوی هود ﷺ احمق (کم عقل) او بیوقوف او دروغژن وګڼړلو، او د زرګونو کوششونو باوجود په نیغه لاره رانغلل نو الله تعالیٰ دوی هلاك کړل۔ په قرآن کریم کښې ډیر ځایونو کښې دا وئیلے شویدی چه الله دوی په طوفانی هوا سره هلاك کړی وو چه اته ورځے او اُوه شپے مسلسل چلیدلے وه۔ (الحاقه : ۷)

اَخَاهُمْ : دا اخ (رور) نسبی دے۔

فِىْ سَفَاهَةٍ : یعنی کم عقلتیا کښې نتوتے ئے ځکه چه ستا خبرے او هر کار د بیوقوفانو دے، تا د هغه معبودانو او نیکانو اولیاؤ سپکاوے بیان کړو چه د هغوی شکلونه او مجسمے ستا د قوم مشرانو د هغوی د یاداشت دپاره مقرر کړیدی او د هغوی د سفارش په وجه ځان الله ته رسوی۔ عبد الله بن عباس ﷺ نه روایت شویدے چه عادیانو د نوح ﷺ د قوم د بتانو په شان بتان جوړ کړی وو۔

ددے نه مونږ ته دا سبق راوځی چه د انبیاؤ علیهم السلام ډیره بی ادبی شویده۔ نو که زما او ستا د الله ددین دپاره وشوه نو دومره لویه خبره نۀ ده۔

لَيْسَ بِىْ سَفَاهَةٌ : هود ﷺ څومره په نرمه لهجه کښې د هغوی خبره رد کوی او دا دفع د تهمت ده چه د داعی دپاره لازمه ده۔

رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ : کښې اشاره ده چه ستاسو ظاهری تربیت هم الله کوی، رزقونه او فراخیانی درکوی او روحانی تربیت مو په ما باندے کوی خو تاسو ئے نۀ قبلوئ۔

رِسٰلٰتِ رَبِّىْ : ددے نه د دعوت اصول معلوم شو چه یو به خپله مرتبه خلکو ته ښکاره کوی چه زۀ فلانے یم خپل اخلاص به هغوی ته ښکاره کوے، او د فلانی غرض دپاره راغلے یم، او دویم به دفع د تهمت د خپل ځان نه کوی۔ بل اصل دا دے چه د الله رسالات (وحی) به رسوی، نورو خرافاتو باندے د امت اصلاح نۀ کیږی۔ بل صفت د داعی دا دے چه ناصح به وی، خیرخواهی به کوی او د خیرخواه طریقه دا ده چه الفاظ به په ډیر نرم انداز کښې استعمالوی دے دپاره چه خلق متنفر نشی او بار بار به خبره کوی۔ بله دا چه (امین) به وی۔ یعنی په خبره کښې به زیادت او نقصان نۀ کوی۔

عَلٰى رَجُلٍ مِّنْكُمْ : په دۀ باندے دا اعتراض وو چه ته بشر او سړے ئے نو څنګه رسول

شوې لکه دا اعتراض تقریباً په هر نبي باندې شوېدې نو د هغې جواب ورته کوي.
لِيُنْذِرَكُمْ : یعنې تاسو د الله د عذابونو نه یروي چه دې کښې ستاسو سراسر خیر دې، نو نبوت مصیبت نۀ دې بلکه د هغې منل د عذابونو نه د خلاصي ذریعه ده.
وَاذْكُرُوٓا : اُوس ورته د دنیا نعمتونه بیانوي چه تاسو ئې د نوح عليه السلام د قوم نه روستو په زمکه کښې آباد کړئ. او پدې کښې عبرت هم دې چه تاسو به هم د هغوي په شان هلاك کړي که خبره نۀ منئ.
فِي الْخَلْقِ : خلق د بدن قوت ته وائي چه د دوي په شان غټو بدنونو والا په دنیا کښې څوك نۀ وو پیدا، او غټ جسم ډیر لوی نعمت وي ځکه چه انسان د دنیا نه فائدې ډیرې اخستلې شي، په هر کار باندې قادر وي، زر نۀ ستړې کیږي، بیماریانې پرې کمې وي.
یا د خلق نه مراد پیداښت دې او (بَصْطَةً) فراخي د نسل ده. یا خلق نه مراد مخلوقات (مخلوق څیزونه دي) یعنې تاسو ته الله په مخلوقاتو کښې فراخي درکړیده لکه بادشاهي او حضارة. (المنار)
فَاذْكُرُوٓا اٰلَآءَ اللّٰهِ : د الله نعمتونو رایادولو سره بنده کامیابۍ ته رسیږي ځکه چه بیا به ئې بندګي کوي او په نتیجه کښې به کامیابیږي، او پدې کښې مونږ ته هم دعوت دې. او دلته د نعمتونو رایادولو مطلب دا دې چه د الله یواځې بندګي وکړئ او د هغه سره شریکان مۀ جوړوئ.

| قَالُوٓا اَجِئْتَنَا لِنَعْبُدَ اللّٰهَ وَحْدَهٗ وَنَذَرَ |
|---|
| ووئیل دوي آیا راغلې ئې تۀ مونږ ته دې دپاره چه بندګي وکړو مونږ د الله یواځې او پریږدو |
| مَا كَانَ يَعْبُدُ اٰبَآؤُنَا ۚ فَأْتِنَا بِمَا |
| هغه څه چه بندګي به ئې کوله پلارانو زمونږ نو راوړه مونږ ته هغه عذاب |
| تَعِدُنَآ اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ﴿۷۰﴾ قَالَ قَدْ وَقَعَ |
| چه وعده ئې کوې تۀ زمونږ سره که ئې تۀ د رشتینو نه. ووئیل هغۀ یقیناً واقع شوه |
| عَلَيْكُمْ مِّنْ رَّبِّكُمْ رِجْسٌ وَّغَضَبٌ ؕ اَتُجَادِلُوْنَنِيْ فِيْٓ |
| په تاسو د طرفه د رب ستاسو نه پلیتي او غضب، آیا جګړې کوئ تاسو ما سره په باره |

| اَسْمَآءٍ سَمَّيْتُمُوْهَآ اَنْتُمْ وَاٰبَآؤُكُمْ مَّا نَزَّلَ |
|---|
| د هغه نومونو کښې چه کیخوستي دي هغه تاسو او پلارانو ستاسو، نهٔ دے رالیږلے |
| اللّٰهُ بِهَا مِنْ سُلْطٰنٍ ؕ فَانْتَظِرُوْٓا اِنِّيْ مَعَكُمْ مِّنَ |
| الله تعالیٰ په هغے سره هیڅ دلیل، نو انتظار کوئ یقیناً زهٔ هم تاسو سره د |
| الْمُنْتَظِرِيْنَ ﴿۷۱﴾ فَاَنْجَيْنٰهُ وَالَّذِيْنَ مَعَهٗ |
| انتظار کوونکو نه یم۔ پس نجات ورکړو مونږ هغهٔ ته او هغه کسانو ته چه د هغهٔ سره وو |
| بِرَحْمَةٍ مِّنَّا وَقَطَعْنَا دَابِرَ الَّذِيْنَ |
| په رحمت سره زمونږ د طرف نه او پریکړے مونږ جرړے د هغه کسانو |
| كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا وَمَا كَانُوْا مُؤْمِنِيْنَ ﴿۷۲﴾ |
| چه دروغژن ئے ګڼرلی وو آیتونه زمونږ او نهٔ وو دوی ایمان لرونکی۔ |

**تفسیر**: پدے کښې د هغوی د تکذیب دوه طریقے بیانوی یو دا چه هغوی به دا وئیل چه دیر آلهه څنګه یو جوړ شی، دویم دا چه تهٔ پوهه شوے او زمونږ پلاران نیکونه نهٔ پوهیدل، هغوی ددے معبودانو عبادت کړیدے نو بس مونږ به ئے هم کوو۔ لکه دا اعتراض د مکے د مشرکانو هم وو ﴿أَجَعَلَ الْآلِهَةَ إِلٰهًا وَاحِدًا﴾ (ص:٥)

لِنَعْبُدَ اللّٰهَ: لام اجلیه دے یعنی ددے وجه نه راغلے ئے چه مونږ بندګی د یو الله وکړو۔

وَحْدَهٗ: یعنی د الله یواځے بندګی وکړو سره ددے نه چه مونږ خو ګناهګار یو نو د معبودانو په وجه به مونږ الله ته رسیږو نو دا وسیلے څنګه پریدو، دا خو بی وقوفی ده۔ او زمونږ عبادتونه زمونږ د ګناهونو سره نهٔ قبلیږی مګر ددے باباګانو په وجه سره۔

وَنَذَرَ مَا كَانَ: دے نه معلومیږی چه هود ﷺ به د نبوت نه مخکښې د هغوی سره نهٔ شریك کیدو او جدا به وسیدو، لکه څنګه چه زمونږ نبی ﷺ په حِرَاء کښې جدا عبادت کولو او د مکے مشرکانو سره به په شرك کښې نهٔ شریك کیدو۔

او صاحب المنار وائی چه د مجیئت (راتللو) نه مراد رسالت راوړل دی، دارنګه عرب مجئ او ذهاب او قعود او قیام تعبیر کرځوی د شروع نه په یو کار کښې او د هغے د حال بیانولو نه۔ (المنار)

فَأْتِنَا : یعنی که ته وائے چه عذاب به راشي نو لاس دیے خلاص، عذاب راوله. دا د زړهٔ سختوالے دیے چه د الله عذاب ته بلنه ورکوی.
تَعِدُنَآ : دلته وعد په معنیٰ د وعید دے (یعنی یره ول) لکه هود علیه السلام ورته (اَفَلَا تَتَّقُوْنَ) ویلے وو.
الصّٰدِقِيْنَ : یعنی که ته په خپل انذار کښ یا په دعوه د رسالت کښ رشتینی یے.
قَدْ وَقَعَ : یعنی په تاسو باندے ثابت شو او تعبیر ئے په ماضی سره وکړو دپاره د تحقق او یقینی راتللو د هغے لکه چه مخکښ واقع شوے وی، او (وَقَعَ) کښ اشاره ده چه دا عذاب په تاسو حتمی فیصله ده چه نهٔ به درنه لرے کیږی، او غضب ئے پرے عطف کړو اشاره ده چه د رجس نه مراد حتمی انتقام اخستل دی چه ددے پورته کیدل ممکن نهٔ دی. (المنار)
رِجْسٌ وَّغَضَبٌ : رجس په لغت کښ هر مُسْتَقْذَرْ (طبعی بد ګڼړلے شوی) شی ته وائی، حسی وی که معنوی. ۱– دلته ترے مراد یا کفر دے، یعنی هرکله چه تاسو ضد کښ راغلئ نو په تاسو باندے د الله د طرفنه دغه کفر باقی پاتے شو. او دپاسه دربانديے غضب د الله هم وشو.
(۲) یا رجس په معنیٰ د رجز (عذاب او ناکاره عذاب) سره دے. او چونکه عذاب د کفر د پلیتئ بدله ده پدے وجه د رجس معنیٰ په عذاب سره هم صحیح ده. او رجس باب په معنیٰ د ګډوډوالی سره استعمالیږی، او د دوی عذاب تیزه سیلئ وه چه ورسره آوازونه هم وو نو دوی ئے دغه شان ګډوډ ویشتل، چه د زمکے نه به ئے پورته کول او ګډوډ به ئے ارتول.
دوی باندے دریے ورځو پورے بارانونه بند شو نو دوی سخت قحط کښ مبتلا شو نو دوی ته الله تعالیٰ یوه وریځ راواړوله چه توره وریځ وه، دوی وویل چه دا وریځ به په مونږ باران کوی لیکن د هغے نه الله تعالیٰ هوا او عذاب رانازل کړو.
اَسْمَآءٍ سَمَّيْتُمُوْهَآ : د اسماء نه مراد اسماء صفتیه دی لکه دوی به د آلهو دپاره دا نومونه ایخودی وو چه دوی باران کوی، دوی اولاد ورکوی، او دا بل رزق فراخوی او دا بل بیماران جوړوی، داسے صفات ئے ورکړی وو لکه دا خبرے زمونږ په زمانه کښ هم مشرکان وائی چه فلانے بابا د بادو بابا دے او فلانے سرخوړے دے او فلانے د ګوزن دے او فلانے زیړے بابا او "جوړه شهیدان" (چه دا دوه کسان دم او دمه چا وژلی وو) د بچو ورکولو دپاره دی.
نو دهٔ ورته وویل چه دا مخلوق ددے صفاتو لائق نهٔ دی او هغوی وویل چه دوی کښ دا صفات ضرور شته، پدے کښ بحث وو، نو هود علیه السلام ورته وویل چه دا خو تاسو د ځان نه

مقرر کړیدی د الله د طرفنه پدے هیڅ دلیل نشته۔

دا دلیل دے چه هر شے چه د عبادت سره تعلق لری هغه به د مَا اَنْزَلَ اللهُ (یعنی وحی) نه اخستلے شی او د الله عبادتونه به صرف د هغه رسولان بیانوی چه دا شے عبادت دے او دا نهٔ دے نو پدے آیت کښې دلیل دے په بطلان د تقلید باندے۔ (المنار)

فَانْتَظِرُوْٓا: د الله د عذاب انتظار وکړئ کوم چه تاسو غوښتے دے۔ پدے کښې د هغوی دیر متوجه کول دی۔ چه که عذاب راشی تاسو سره د خلاصی څه صورت کیدے شی؟

بِرَحْمَةٍ مِّنَّا: دلته ئے د عذاب نه د نجات سبب صرف رحمت وئیلے دے، وجه دا ده چه د ایمان او د توحید توفیق د الله په رحمت سره کیږی نو د هغے په وجه خلاص شو۔

دَابِرَ: جرړے مراد دی او ددے نه استیصالی عذاب مراد دے چه ټول نسل ختم کړی۔

| وَاِلٰی ثَمُوْدَ اَخَاهُمْ صٰلِحًا قَالَ یٰقَوْمِ |
| --- |
| او (لیږلے وو مونږ) ثمودیانو ته ورور د هغوی صالح (علیه السلام) ووئیل هغهٔ، اے قومه زما ! |
| اعْبُدُوا اللهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَیْرُهٗ ؕ قَدْ |
| بندګی خاص کړئ الله لره نشته تاسو له حقدار د بندګئ غیر د هغهٔ نه، یقیناً |
| جَآءَتْكُمْ بَیِّنَةٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ ؕ هٰذِهٖ نَاقَةُ اللهِ لَكُمْ |
| راغلے دے تاسو ته ښکاره دلیل د طرفه د رب ستاسو نه، دا اوښه د الله ده تاسو له |
| اٰیَةً فَذَرُوْهَا تَاْكُلْ فِیْٓ اَرْضِ اللهِ وَلَا تَمَسُّوْهَا |
| معجزه نو پریږدئ دے لره چه خوراك وکړی په زمکه کښې او مهٔ رسوئ دے ته |
| بِسُوْٓءٍ فَیَاْخُذَكُمْ عَذَابٌ اَلِیْمٌ ﴿۷۳﴾ |
| څه تکلیف نو ونه نیسی تاسو عذاب دردناك۔ |

**تفسیر**: اُوس د صالح (علیه السلام) او د هغه د قوم (ثمودیانو) واقعه بیانیږی۔ ثمودیان د عربو یو قبیله وه، دا خلق د خپل نیکه په نوم یادیږی چه د ثمود بن عامر بن ارم بن سام بن نوح (علیه السلام) اولادو نه وو، دوی د عادیانو سره په ارم کښې یو ځای کیږی، د دوی زمانه د ابراهیم (علیه السلام) نه مخکښې او د عادیانو نه روستو وه۔ د دوی ځای د وسیدو د حجاز او شام ترمینځ وادی القری او د هغے ګیر چاپیر وو، اُوس ورته دیار ثمود او مدائن صالح هم وائی، د سعودی په

حکومت کښې داخله ده، د تبوك په لاره ده، دا خلك هم ډېر طاقت ور وو او هنر مند زيات وو، په خپل جسماني طاقت او د متهو په زور سره به ئې غرونه تراشل او په هغې کښې به ئې ځان له مکانات جوړول، چه تر اُوسه پورې هغه باقي دي، خلك سيل له ورځي. نبي کريم ﷺ په سنه (۹ هـ) کښې تبوك ته په تللو کښې د دوی په کلو ورتېر شوې وو.

په صحيحينو او مسند احمدؒ کښې د عبد الله بن عمرو ﷛ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ تبوك ته په تللو کښې د ثموديانو د کورونو سره دمه وکړه نو خلقو د هغوی د کوهيانو نه اُوبه وڅکلې، او وړه ئې واغړل، روټې ئې پخه کړه، ليکن رسول الله ﷺ هغوی ته حکم وکړو چه خپلې کټوئ وارړوي او اغړلے شوی وړه په اُوښانو وخوروي، بيا د هغه ځای نه روان شو او د هغوی کوهي خوا ته راغلو کوم نه چه به د صالح ﷺ اُوښې اُوبه څکلې. او نبي کريم ﷺ خلق د ثموديانو کورونو ته د داخليدو نه منع کړل او وې وئيل چه زهٔ يرېږم چه هسې نهٔ چه تاسو ته هغه عذاب ونهٔ رسي کوم چه هغوی ته رسيدلې وو.

صالح ﷺ ددې قوم د يو شريف خاندان نه وو، ددهٔ نسب حافظ بغوىؒ داسې ذکر کړيدې: صالح بن عُبَيد بن آسيف بن ماشخ بن عُبيد بن حاذر بن ثمود. دا په پنځه پشته کښې د ثمود په اولادو کښې وو. (القاسمیؒ والمنار)

مفسرين ليکي: چه ثموديان په اوله کښې موحدين وو، د عاديانو نه ئې عبرت اخستې وو ليکن کله چه دوی زيات شو او د دوی حضارت او تمدن فراخه شو او موده ئې اُوږده شوه او ژوند ئې په نعمتونو باندې آباد شو او خوش عيشه شو نو دوی کښې نافرماني پيدا شوه او د الله نعمتونه ئې هير کړل او د بتانو عبادت ئې شروع کړو نو الله تعالىٰ د دوی د هدايت دپاره د دوی د قوم نه صالح ﷺ راوليږلو، هغه خپل قوم ته د تمامو انبياؤ عليهم السلام په شان د توحيد دعوت ورکړو، ليکن ډېر کم او کمزورو خلقو د دوی خبره ومنله.

(التحرير والتنوير)

کله چه صالح ﷺ دوی لره زيات ويرول او د الله يره ئې ورته بيان کړه، نو دوی د يوې نخې مطالبه وکړه، او وې وئيل چه هغه نخه به يوه اُوښه وي چه د غر نه راوځي او مخې ته راشي، نو همدغه شان وشوه. ليکن بيا هم دوی کښې ډېرو کمو خلقو ايمان راوړو، او اکثرو خلقو د تمرد او سرکشئ لاره اختيار کړه او هغه اُوښه ئې قتل کړه نو صالح ﷺ ووئيل چه اُوس تاسو د الله د عذاب انتظار کوئ. الله دوی ته د چارشنبې، زيارت او جمعې درې ورځې مهلت ورکړو لکه چه په سورة هود آيت (٦٥) کښې راغلي دي: ﴿فَقَالَ تَمَتَّعُوا فِي دَارِكُمْ

ثَلٰثَةَ اَیَّامٍ ﴾ (پس صالح ووئیل چه تاسو درے ورځو پورے په خپلو کورونو کښې فائده اخلئ) او د خالی په ورځ د صبا په وخت یو لوئی ملائك د هغوی ترمینځ داسے چغه ووهله چه د هغوی زړونه او د هغوی روحونه ئے وچول، او ټول په ټوله مړهٔ شول۔ باقی تفصیل روستو راځی۔

بَیِّنَةٌ : معجزے سره د رسالت اظهار او د توحید اثبات کیږی پدے وجه ورته بینه وائی۔

نَاقَةُ اللهِ : دا اضافت د تشریف دپاره دے، ځکه چه دا بغیر د ظاهری اسبابونه په ناشنا طریقه د کاڼړی نه حامله پیدا شوه او بیا ئے بچے هم راوړو۔ نو ځکه ئے الله ته نسبت وشو۔

اٰیَةً : دا ځنګه نښه وه؟ نو ددے بیان مخکښې وشو چه د دوی په مطالبه راوتلے وه۔

او دا اوښه دومره غټه وه چه یوه ورځ به د کوهی نه دے اُوبه ځکلے او یوه ورځ به قوم ځکلے او بیا به دے ټول قوم ته پیۍ هم ورکول۔

مګر پدے کښې سرکشان راولګیدل او د یوے زنانه په دعوت ئے هغه اُوښه قتل کړه، لاسونه او خپے ئے ترے پریکړے، د سرکشانو په مشوره باندے (قُدار بن سالف) ظالم قتل کړه۔ هغه ځان سره څه کسان واخستل او دغه اُوښه په یو ځای کښې ګرندله نو دهٔ ترے لاسونه او خپے پریکړے او پدے طریقه ئے هغه قتل کړه، نو صالح ؑ ورته ووئیل چه هلاك شوئ ما تاسو ته نهٔ وو وئیلی چه دے له به ګوتے نهٔ وړئ، نو درے ورځو کښې دننه عذاب ته تینګ شئ، دا مهلت ئے ورکړو دے دپاره چه کیدے شی چه ایمان راوړی،

مفسرین لیکی چه دے قوم ته مهلت پدے وجه ورکړے شو چه د دوی نه ایمان راوړل ډیر ممکن وو ځکه چه دوی د صالح ؑ سره ډیره سختی نهٔ وه کړے لکه سورة هود کښې به راشی ﴿ یٰصٰلِحُ قَدْ كُنْتَ فِیْنَا مَرْجُوًّا قَبْلَ هٰذَآ اَتَنْهٰنَآ اَنْ نَّعْبُدَ ﴾

(اے صالحه! تهٔ خو په مونږ کښې امید کړے شوے وے مخکښې ددے مسئلو بیانولو نه)

نو الفاظ ئے ورته نرم استعمالول۔ او بلهٔ دا چه دا اُوښه دوی ډیره موده پورے نهٔ تنګوله نو د دوی د ایمان امید پاتے وو، نو دوی ته مهلت ورکول هم د دوی د عذر ختمولو او په دوی باندے د حجت قائمولو دپاره وو۔ پدے وجه الله د دوی نه عذاب روستو کړو دپاره د اکرام د نبی د دوی چه هغه د دوی په ایمان باندے حتی الوسع ډیر حرصناك وو۔

(التحریر والتنویر ۱۶۸/۸)

تَاْكُلْ فِیْٓ اَرْضِ اللهِ : یعنی تاسو باندے ددے د رزق مشقت نشته۔

| وَاذْكُرُوْٓا اِذْ جَعَلَكُمْ خُلَفَآءَ مِنْۢ بَعْدِ عَادٍ |
|---|
| او یاد کړئ هغه وخت چه وګرځولی تاسو الله تعالیٰ نائبان روستو د عادیانو نه |
| وَّبَوَّاَكُمْ فِي الْاَرْضِ تَتَّخِذُوْنَ مِنْ سُهُوْلِهَا قُصُوْرًا وَّتَنْحِتُوْنَ |
| او ځای درکړو تاسو ته په زمکه کښې، نیسئ تاسو د میدانونو د هغې نه بنګلې او تراشئ |
| الْجِبَالَ بُيُوْتًا ۚ فَاذْكُرُوْٓا اٰلَآءَ اللّٰهِ وَلَا تَعْثَوْا فِي الْاَرْضِ مُفْسِدِيْنَ ﴿۷۴﴾ |
| د غرونو نه کوټې، نو یاد کړئ نعمتونه د الله او مه ګرځئ په زمکه کښې فساد کونکي۔ |

**تفسیر** : اوس ورته نعمتونه یادوی ځکه چه څوك نعمت یاد کړی نو هغه شکرګزار جوړیږی۔

سُهُوْلِهَا : یعنی دوی به په میدانی زمکه کښې دنګې بنګلې بې ضرورته جوړولې۔

مُفْسِدِيْنَ : دا ورته ولې وائی چه په زمکه کښې فساد مه کوئ؟ وجه دا وه چه دې خلکو کښې د هنرمندئ په وجه مالداری ډیره وه، او بل وزګار وو او سړے چه کله مالدار وی او وزګار وی او روغ بدن والا وی نو لوی فسادی ترې جوړیږی۔ او فساد دلته کفر او شرك دے او صد عن سبيل الله ده، (یعنی د الله د لارې نه خلك منع کول) لکه دوی کښې نهه کسان وو چه هغوی به خصوصی د صالح ﷺ نه خلك اړول لکه په سورة النمل آیت (۴۸) کښې به راشي۔ ان شاء الله۔

| قَالَ الْمَلَاُ الَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْا مِنْ قَوْمِهٖ لِلَّذِيْنَ |
|---|
| ووئیل غټانو هغه کسانو چه لوئی ئے کړے وه د قوم د هغهٔ نه هغه کسانو ته |
| اسْتُضْعِفُوْا لِمَنْ اٰمَنَ مِنْهُمْ |
| چه ضعیفان ګنړلے شوی وو (د وجے د غریبئ نه) هغه چا ته چه ایمان ئے راوړے وو د دوی نه |
| اَتَعْلَمُوْنَ اَنَّ صٰلِحًا مُّرْسَلٌ مِّنْ رَّبِّهٖ ۚ قَالُوْٓا |
| آیا پوهیږئ تاسو یقیناً چه صالح (ﷺ) رسول دے د طرفه د رب د هغه نه، ووئیل دوی، |
| اِنَّا بِمَآ اُرْسِلَ بِهٖ مُؤْمِنُوْنَ ﴿۷۵﴾ قَالَ الَّذِيْنَ |
| یقیناً مونږه په هغه څه چه رالیږلے شویدے دے په هغې مؤمنان یو۔ ووئیل هغه کسانو |

| |
|---|
| اسْتَكْبَرُوْٓا اِنَّا بِالَّذِيْٓ اٰمَنْتُمْ بِهٖ كٰفِرُوْنَ ﴿٧٦﴾ |
| چه لوئی ئے کړے وه یقیناً مونږه په هغه څه چه ایمان راوړے تاسو په هغے انکار کونکی یو۔ |
| فَعَقَرُوا النَّاقَةَ وَعَتَوْا عَنْ اَمْرِ رَبِّهِمْ وَقَالُوْا يٰصٰلِحُ |
| پس هلاکه ئے کړه اُوښه او نافرمانی ئے وکړه د حکم د رب خپل نه او وے وئیل اے صالحه! |
| ائْتِنَا بِمَا تَعِدُنَآ اِنْ كُنْتَ مِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿٧٧﴾ |
| راوړه مونږ ته هغه عذاب چه ته پرے یروے مونږ که ئے ته د رالیږلے شوو نه۔ |
| فَاَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ فَاَصْبَحُوْا فِيْ دَارِهِمْ جٰثِمِيْنَ ﴿٧٨﴾ |
| پس ونیول دوی لره زلزلے نو شول دوی په کورونو خپلو کښې پرمخے پراته (مړه)۔ |
| فَتَوَلّٰى عَنْهُمْ وَقَالَ يٰقَوْمِ لَقَدْ اَبْلَغْتُكُمْ رِسَالَةَ |
| نو واوړیدو د دوی نه او وے وئیل، اے قومه زما! یقیناً ما ورسولو تاسو ته پیغام د |
| رَبِّيْ وَنَصَحْتُ لَكُمْ وَلٰكِنْ لَّا تُحِبُّوْنَ النّٰصِحِيْنَ ﴿٧٩﴾ |
| رب زما او خیرخواهی وکړه ما ستاسو او لیکن مینه نکوئ تاسو د خیرخواهانو سره۔ |

**تفسیر** : پدے قوم کښې مالداره سرمایه داران خلك زیات وو نو هغوی به پدے وجه کفر کولو چه ځان ئے لوی ګڼړلو چه مونږ څنګه ددے عام سړی تابع شو۔

لِمَنْ اٰمَنَ مِنْهُمْ : اشاره ده چه تولو ضعیفانو ایمان نه وو راوړے۔

اَتَعْلَمُوْنَ : یعنی تاسو سره پدے خبره څه دلیل شته چه صالح د الله رسول دے، او مقصد ئے پدے کښې په دغه خلکو دباؤ اچول وو او هغوی ددے عقیدے نه راوړل وو لیکن هغه هم مضبوط مؤمنان وو نو په ترقئ سره ئے جواب ورکړو چه یواځے صالح عليه السلام نه بلکه مونږ دده په ټول رالیږلے شوی دین او وحی او توحید باندے ایمان لرو۔

پدے کښې اشاره وه چه د مکے مشرکانو به هم د مؤمنانو د دین نه د اړولو کوشش کولو او په هغوی باندے به ئے دباؤونه اچول او عذابونه به ئے ورکول نو دے کښې مؤمنانو ته اشاری دی۔

اٰمَنْتُمْ بِهٖ كٰفِرُوْنَ : یعنی مونږ ته خو رسول نه ښکاری خو تاسو ته چه رسول ښکاری

نو مونږ ددے نه منکر یو۔
فَعَقَرُوا: ټولو ته ئے نسبت د زخمی کولو وکړو ځکه چه دا قانون دے چه غلے د ویونکی او راضی د فاعل (کونکی) په شان وی، دوی هغه منع نکړو نو داسے شو لکه چه ټولو وژلی وی۔ او ابن کثیرؒ بعض روایات ذکر کړیدی چه په هغے کښې دا راغلی دی (او د قتادةؒ نه هم نقل دی) چه قدار بن سالف په ټول قوم ـ تر دے چه په ښځو او ماشومانو۔ وګرځیدو او د هغوی نه ئے مشوره واخستله نو ټولو د اوښے د وژلو مشوره ورکړه دے دپاره چه دوی د اوبو د نمبر نه خلاص شی۔ او الله هم فرمائی : ﴿فَنَادَوْا صَاحِبَهُمْ فَتَعَاطَىٰ فَعَقَرَ﴾ دوی خپل ملګری ته آواز وکړو چه دا قتل کړی) (القمر)
او د بخاری په حدیث کښې دی: [فَانْتَدَبَ لَهَا رَجُلٌ ذُو عِزٍّ وَمَنَعَةٍ فِي قَوْمِهِ كَأَبِي زَمْعَةَ] د اوښے وژلو ته یو سړے رامخکښې شو چه په خپل قوم کښې ډیر عزتمند او قوی وو لکه د ابو زمعه په شان) (چه دا په قریشو کښې یو سرکش او ظاهری عزتمند شخص وو، اسود بن عبد المطلب بن اسد بن عبد العزیٰ نوم ئے وو) (بخاری: ۳۳۷۷)
فَأَصْبَحُوا : یعنی سهار کښې الله تعالیٰ په دوی باندے زلزله او چغه راوستله نو ټول هلاك شول، دوی د غفلت په وخت کښې هلاك شول، پدے کښې به ساده ګان، او ماشومان او بوډاګان هم وو لیکن د مشرانو سپیرهٔ والے دا وی چه د هغوی د فسادونو د وجه نه عمومی عذاب راځی۔ لکه آیت دے ﴿وَاتَّقُوا فِتْنَةً لَّا تُصِيبَنَّ الَّذِينَ ظَلَمُوا مِنكُمْ خَاصَّةً﴾ ۔ (الانفال: ۲۵) ویریږئ د هغه فتنے (عذاب) نه چه یواځے ظالمانو ته به نهٔ رسیږی۔
په حدیث کښې راغلی دی چه د دوی نه یو تن بچ شو چه د هغه ابورغال نوم وو هغه د الله په حرم (مکه) کښې وو، مګر کله چه د حرم نه رابهر شو نو هغه شان هلاك شو څنګه ئے چه قوم هلاك شوے وو نو په طائف کښې خخ کړے شو او دا د ثقیف قبیلے پلار دے۔
(مسند احمد وهو علی شرط مسلم- ابن کثیر، وحسنه الالبانی فی فقه السیرة وقال فی النفس منه شیء)
جٰثِمِينَ : د جثم نه دے په ځمکه باندے جوختیدو او په زنګنانو باندے کیناستو ته وائی۔
لَقَدْ أَبْلَغْتُكُمْ : دا خبره ئے ورته د عذاب راتللو نه مخکښې کړے وه او بیا ئے ورته د عذاب انتظار ورکړو بیا ئے ترے هجرت وکړو۔
او بعض مفسرین وائی چه دے ته خطاب الاعتبار وائی یعنی مړی ئے نهٔ آوری لیکن د نورو خلکو د عبرت اخستو دپاره ئے داسے وئیلی دی۔
او ځینی مفسرین وائی چه صالح عليه السلام راغے او د لاشونو په مینځ کښې ودریدو او وے

وئیـل چه اے زمـا قـومـه ! ما تاسو ته د الله پیغام رسولے وو او ستاسو خیر خواهی کښې مې هیڅ کـمـے نهٔ وو کړے، لیکن تاسو خپله خیر خواهی هیڅ کله هم خوښه نکړه، بیا د هغه خای نه لاړو۔ نبی کـریم ﷺ د جنګ بدر نه روستو د قریشو مقتولینو مخکښې ودریدو چه د هغـوی لاشونـه کوهی ته غورځولے شوی وو، او همدغه شان خبره ئې کړے وه۔ او د عمر بن الخطاب رضی الله عنه په حیـرانتیا او تعجب کښې ئې ووئیـل چه قسم په الله چه دوی ستاسو نه زیات آوریدونکی دی لیکن جواب نشی راکولے۔

نو ددے نـه معلومه شوه چه دا به د صالح علیه السلام مـعـجزه وه چه قوم ته ئې دا خبره واوروله اګرکـه هـغـوی جـواب نشـو ورکولے او الله ورتـه دا آواز د هغوی د افسوسونو زیاتولو او خپیمانه کولو دپاره واورولو۔ لکه دا خبره د قتادةؒ نه امام بخاریؒ ذکر کړیده۔

یا دا خطاب التفجّع (د غـم ښـکاره کـولو) دے د هغوی په ایمان نهٔ راوړلو، نهٔ د هغوی په عذاب باندے، او پدے کښې د مخاطب متوجه کول مقصد نهٔ وی لکه یو تن ته یو مصیبت ورسی نو تهٔ ورته ووائے چه زما دے نهٔ منله ځنګه شوے۔ او حاضرینو ته په کښے سبق وی۔

| |
|---|
| وَلُوطًا اِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖٓ اَتَاْتُوْنَ |
| او (لیږلے وو مونږ) لوط (علیه السلام) په کوم وخت چه ووئیل هغه قوم خپل ته آیا راتلل کوئ تاسو |
| الْفَاحِشَةَ مَا سَبَقَكُمْ بِهَا مِنْ اَحَدٍ مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۸۰﴾ |
| بدکارئ ته، مخکښې والے نهٔ دے کړے ستاسو نه دے ته هیڅ یو تن د مخلوقاتو نه۔ |
| اِنَّكُمْ لَتَاْتُوْنَ الرِّجَالَ شَهْوَةً مِّنْ دُوْنِ النِّسَآءِ ؕ بَلْ اَنْتُمْ قَوْمٌ |
| یقیناً تاسو خامخا راتلل کوئ نارینو ته په شهوت سره سوئ د زنانو نه بلکه تاسو قوم یئ |
| مُّسْرِفُوْنَ ﴿۸۱﴾ وَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهٖٓ اِلَّآ اَنْ قَالُوْٓا اَخْرِجُوْهُمْ |
| زیاتے کونکی۔ او نهٔ وو جواب د قوم د هغهٔ مګر دا چه ووئیـل دوی (یو بل ته)، وباسئ دوی |
| مِّنْ قَرْيَتِكُمْ ۚ اِنَّهُمْ اُنَاسٌ يَّتَطَهَّرُوْنَ ﴿۸۲﴾ فَاَنْجَيْنٰهُ |
| د کلی خپل نه یقیناً دوی داسے خلق دی چه ځان پاک ګنړی۔ پس نجات ورکړو مونږ دهٔ ته |
| وَاَهْلَهٗٓ اِلَّا امْرَاَتَهٗ ڮ كَانَتْ مِنَ الْغٰبِرِيْنَ ﴿۸۳﴾ |
| او دهٔ کور والو ته سوئ د ښځے دهٔ نه، وه هغه د پاتے کیدونکو نه (په عذاب کښې)۔ |

وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهِم مَّطَرًا ۖ فَانظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُجْرِمِينَ ﴿٨٤﴾

او باران وكړو مونږ په دوی باندے باران د كانړو پس وګوره چه څنګكه شو انجام د مجرمانو.

**تفسير**: اوس د لوط ﷺ او د هغه د قوم واقعه بيانيږی.

لوط ﷺ د هاران بن آزر ځوی او د ابراهيم ﷺ وراره وو. په هغه باندے د ايمان راوړو نه روستو ئے د هغه سره هجرت وكړو او شام ته لاړو، ليكن روستو ئے د اُردن په يوه علاقه (سَدوم) كښې سكونت اختيار كړے وو، الله تعالیٰ دا د هغه كلي والو دپاره نبی راليږلے وو. دا اګركه د هغوی د نسب نه نهٔ دے ليكن يو تن چه په يو ځای كښې سكونت اختيار كړی نو د هغوی نه حسابيږی او د هغه ځای خلك ددهٔ قوم شمارلے شی.

وئيلے شويدی چه د دوی شمار څلويښت لاكهه وو، او د كفر اوشرك نه سوئ په لواطت وغيره خبيث اخلاقو او بيمارو كښې مبتلا وو، چه دا بيماری د دوی نه مخكښې په دنيا كښې نهٔ وه موندلے شوے.

د لواطت د وجه نه په هغوی كښې ګيرے خرئيل هم رائج شوی وو. او سورة الانبياء كښې راغلی دی: ﴿وَنَجَّيْنَاهُ مِنَ الْقَرْيَةِ الَّتِي كَانَت تَّعْمَلُ الْخَبَائِثَ﴾ (انبياء: ٧٤) (ما بچ كړو دهٔ لره د هغه كلی والو نه چه ډير بد بد اعمال به ئے كول). معلوميږی چه دے كلی والو به ډير خبائث كول مفسرين ليكی لكه كونترے ساتل، په مجالسو كښې ښكاره باد اچول، د ګوتو نه بی ضرورته تقے ويستل، شپيلی وهل وغيره.

بی حيائی د الله په نيز ډيره خطرناكه خبره ده پدے وجه په ټول قرآن كريم كښې الله تعالیٰ د لوط ﷺ په واقعه كښې ددے بد فعلئ رد ذكر كوی.

لوط ﷺ د توحيد سره سره دوی ته ددے هلاكونكی اخلاقی مرض نه د نجات دعوت هم وركړو. ليكن هغوی ددهٔ خبره نهٔ آوريدله او دهٔ پورے به ئے توقے كولے او په خپل ظاهری او باطنی خباثت ئے هميشوالے كولو او لوط ﷺ ته ئے ددغه كلی نه د ويستلو دهمكی وركړه. نو د الله تعالیٰ عذاب په هغوی واجب شو، نو الله تعالیٰ په سَدُوم او عُمُوريه كلو باندے د اُور باران وكړو، او بيا ئے هغه اُلټه كړل، او پدے طريقه ټول په ټوله هلاك شول، نن صبا دغه ځای ته بحر ميّت وئيلے شی. صرف لوط ﷺ او د هغه سره څو مؤمنان بچ شو چه د الله په حكم سره مخكښې ددے كلی نه وتلی وو.

**تنبيه**: د موجوده بائبل د جمع كونكو په شرمناك جرأت باندے ماتم پكار دے چه

داسې پاك او معصوم پیغمبر ته ئې دداسې خطرناکو حرکاتو نسبت کړیدے چه خپله هغه ددې دپاره رالیږلے شوے وو چه دنیا د بې حیایۍ او ګندګۍ نه پاکه کړي، پدې طریقه دا خلك خپلې بې حیایۍ ته لاره کولاوول غواړي.

## د لواطت سزا او ضررونه

د اسلام په نظر کښې لواطت ډیره لویه ګناه ده. حافظ ابن القیم رحمه الله وائي چه الله تعالیٰ په قرآن کریم کښې د ګناهونو نه صرف د شرك، زنا او لواطت نه په نجس او خبیث سره تعبیر کړیدے. یو بل ځای لیکي چه د زنا او لواطت نجاست د نورو نجاستونو نه زیات دے. انتهیٰ. (اغاثة اللهفان)

د لوطي د دنیاوي سزا په باره کښې امام احمدؒ، ابوداودؒ، ابن ماجةؒ، حاکمؒ او بیهقيؒ وغیرهم د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ وفرمایل: ((که تاسو څوك په لواطت کولو موندۀ کړئ نو فاعل او مفعول دواړه قتل کړئ))

(ابوداود: ٤٤٦٤) و ابن ماجه: ٢٥٦١ وصحیح الجامع (٦٥٨٩) اسناد صحیح)

د ابن القصارؒ وینا ده چه د صحابه کرامو او ائمه کرامو اجماع ده چه لوطي به قتلولے شي. د هغوی ترمینځ صرف د قتل په کیفیت کښې اختلاف راغلے دے. امام ابوحنیفهؒ وائي چه لوطي به د غر نه راغورځولے شي، دے نه روستو به په هغه د کاڼو باران کولے شي. د امام شافعيؒ وینا ده چه دا به رَجم کولے شي، برابره ده وادۀ کړے وي او که نۀ. بعضو نورو وئیلي دي چه ددۀ حکم د زاني حکم دے، یعنې که وادۀ ئې کړے وي نو رَجم کولے به شي او که نۀ وي نو سل (١٠٠) دُرے به وهلے شي.

د ښځو په دُبر (شاته حصه) کښې خواهش پوره کول هم د لواطت یو قسم دے او دا کار د تمامو علماؤ په نیز حرام دے.

**فائده**: ددے نه دا معلومه شوه چه په دنیا کښې د الله فساد نۀ دے خوښ، برابره ده په کافر کښې وي او که په مسلمان کښې، پدے وجه دوی مشرکان دي لیکن لوط علیه السلام ئې ددے ګناه نه منع کوي. نو کافر ته به هم د اعمالو دعوت ورکولے شي او د هر قسم منکراتو نه به منع کولے شي. عثمان بن عفان رضی الله عنه مشرکانو ته د پینځو پورته کولو دعوت ورکړے وو کما في السیرة.

مَاسَبَقَكُمْ: دائې په وحی سره ووئیله، ورنه لوط علیه السلام ته ددے نه مخکښې معلومات نۀ وو.

عَمْرو بن دینارؒ وائی چه د لوط ﷺ د قوم نه مخکښې په دنیا کښې هیڅ سړی سړی سره خپل خواهش نهٔ وو پوره کړے۔

د جامع دمشق بانی د اُموی خلیفه ولید بن عبد الملك وینا ده چه که الله د لوط ﷺ د قوم واقعه نهٔ وے بیان کړے نو ما به گمان هم نشو کولے چه څوك سړے به د سړی نه خپل خواهش پوره کوی۔ (ابن کثیر ۲/۱٤٥)

وَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهٖٓ : (اَیْ فِیْ شَانِ لُوْطٍ) سوال : دلته حصر شویدے چه د دوی بله خبره نهٔ وه مگر د لوط ﷺ د ویستلو حکم وو۔ او په سورة العنکبوت (۲۹) کښې دی چه د دوی بله خبره نهٔ وه مگر دا چه دا ئے وئیل چه عذاب راوله۔ دواړو ځایونو کښې حصر شویدے ؟۔

۱ جواب : دلته حصر په باره د لوط ﷺ کښې وو چه ددهٔ په باره کښې ئے آخری خبره همدغه وه چه ددهٔ خبره مهٔ منئ۔ او د عنکبوت خبره د دوی د ځانونو په باره کښې وه چه بس مونږ تا سره نورے خبرے نکوو خو عذاب راوله۔ نو دا حصرونه په اعتبارونو سره مختلف دی۔

۲- جواب : صاحب المنارؒ وائی چه اظهر دا ده چه اول ئے د ویستلو حکم وکړو بیا چه کله هغه ورته د عذاب دهمکی ورکړه نو بیا دوی ووئیل چه عذاب راوله۔ نو دا دواړه حصرونه په بیل بیل وختونو کښې دی۔

اِنَّهُمْ اُنَاسٌ يَّتَطَهَّرُوْنَ : یعنی د دوی آخری خبره دا وه چه هر کله دا خلك (یعنی لوط ﷺ او د هغه دوه لونړه) مونږ گنده گڼړی او ځان پاك حسابوی نو بیا د گنده خلکو په مینځ کښې ددهٔ ایساریدل څه کار دے لهذا دا ددے کلی نه ویستل پکار دی چه مونږ ته رکاوټ ختم شی۔

اَخْرِجُوْا : دا خو دومره بی غیرته وو چه په لوط ﷺ باندے ئے د ویستلو وس نهٔ کیدو یو بل ته ئے وئیل چه وے باسئ؛ خپله خو تران نهٔ وو۔ ځکه چه په بی حیاء خلکو کښې ترتوب او بهادری نهٔ وی۔ مگر الله تعالیٰ لوط ﷺ او د هغهٔ تابعدار په عزت او عافیت سره صحیح سالم د دغه کلی نه ویستل او په دغه خلکو ئے عذاب راولیږلو۔

يَّتَطَهَّرُوْنَ : دا د دوی استهزاء وه او په خپله گندگئ باندے فخر وو چه دوی ځان پاك حسابوی او مونږ ته گنده او نجس وائی نو دا خلك ز مونږ نه لرے کړئ۔ (القاسمیؒ)

پدے کښې د خلکو غصه راپورته کول مقصد دے۔

يَتَطَهَّرُونَ : يعنى د هلكانو نه ځان ساتى، نو دوى ژمونږ ركاوټ دے دا ختمول غواړى، لكه دا د انسانانو مزاج دے چه د خپل ځان په شان ټول خلك جوړول غواړى لكه د زناكارو خلكو محله كښ يو پاك انسان وسيږى نو هغوى غواړى چه دے هم پدے بى حيائى كښ واقع شى كه نۀ وى د هغه د ويستلو كوشش كوى۔ (القاسمیؒ)

وَاَهْلَهٗ : ددۀ اهل صرف ددۀ دوه لونړه وے لكه په سورة الذاريات (۳۶) كښ دى :

﴿فَمَا وَجَدْنَا فِيهَا غَيْرَ بَيْتٍ مِّنَ الْمُسْلِمِينَ﴾۔

(مونږ ونۀ موندل په هغه كلى كښ سوئ د يو كور د مسلمانانو نه)۔

اِلَّا امْرَاَتَهٗ : ابن كثيرؒ وائى : ددۀ ښځے ايمان نۀ وو راوړے بلكه د خپل قوم په دين باندے وه چه ددۀ په خلاف به ئے د هغوى سره مدد كولو او ددۀ كره به چه كوم ميلمانۀ راتلل د هغے اطلاع به ئے هغوى ته وركوله په څه خاصو اشاراتو سره چه ددے او د هغوى ترمينځ وو۔ پدے وجه كله چه الله تعالىٰ لوط عليه السلام ته د خپل اهل د شپے بوتللو حكم وكړو نو دا حكم ئے هم وكړو چه دے ته خبر ورنكړى او د كلى نه ئے ځان سره ونۀ باسى۔

بعض وائى چه دا هم ورسره روانه شوه خو كله چه عذاب راغلو نو دے شا ته وكتل نو دے ته هم هغه عذاب راورسيدو۔ ليكن ډيره ظاهره دا ده چه هغه د كلى نه نۀ وه وتلے او نۀ ورته لوط عليه السلام خبر وركړے وو بلكه د قوم سره پاتے شوه لكه الله فرمائى :

مِنَ الْغٰبِرِيْنَ : دا د روستو پاتى كيدونكو نه وه كوم چه په كلى كښ پاتى وو۔ (ابن كثيرؒ والقاسمیؒ)

الْغٰبِرِيْنَ : غابر د اضدادو نه دے تير شوى او باقى پاتے شوى دواړو ته وائى ليكن دلته دويمه معنى مراد ده، او صيغه د مذكر راوړو كښ اشاره ده چه ددے ښځے عذاب هم په شان د نارينو د هغه قوم وو اگر چه ددے د عذاب سبب صرف شرك او نور گناهونه وو۔ لكه د سورة تحريم (۱۰) نه معلوميږى۔

**فائده** : پدے كښ اشاره ده چه كله په يو تن كښ كفر او شرك وى نو كه هغه د نبى د بدن سره لگيدلے وى او د هغه سره ئے په يو كور كښ ژوند هم تير كړے وى نو د الله د عذاب نه ئے هغه نشى بچ كولے او د هغه بركت ورله فائده نشى وركولے، هر سړے به د خپل ځان غم كوى او ايمان او عمل صالح به فائده وركوى، او د الله كار د نسب سره نۀ دے بلكه د صفاتو سره دے۔

او ددے زنانه تذكره قرآن كريم كښ ډيره زياته شويده نو دے كښ دا اشاره ده چه الله تعالىٰ

لوی ذات دے مگر د وړو او ځکته مرتبے والا سړه ئے هم کار شته، یوه ښځه ئے دا نۀ وائی چه الله به ما ته څه نۀ وائی، نۀ بلکه بد عمل که د هر چا د بدن نه راوځی د الله بدی شی.

وَأَمْطَرْنَا : اول دا کلیے الله تعالیٰ پورته کړو او پرمخے ئے زمکے ته راوېشتو او بیا ئے پرے دپاسه د کاڼو باران وکړو. لکه سورة هود (۸۲) او حجر (۷٤) کښې ذکر دی. اُوس ددے کلو نام ونشان هم نۀ شته. ځینی وائی چه دا کلی په بحر میت کښې پټ دی، او ځینی وائی چه د بحر میت په خوا کښې دی لیکن د هغے هیڅ نښے نشته. (المنار۸/٤٥٣)

مَطَرًا : مطر په قرآن کریم کښې د عذابی باران دپاره استعمالیږی.

د لوط معنیٰ ده : پیوسته کیدل، یا ستر (پرده).

| وَإِلَىٰ مَدْيَنَ أَخَاهُمْ شُعَيْبًا ۚ قَالَ يَٰقَوْمِ |
|---|
| او (لیږلے وو مونږ) مدین والو ته ورور د هغوی شعیب (عليه السلام) ووئیل هغۀ اے قومه زما ! |
| اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ ۖ قَدْ جَاءَتْكُم |
| بندګی وکړئ د الله نشته تاسو له حقدار د بندګئ سوی د هغه نه یقیناً راغلے دے تاسو ته |
| بَيِّنَةٌ مِّن رَّبِّكُمْ ۖ فَأَوْفُوا الْكَيْلَ وَالْمِيزَانَ وَلَا تَبْخَسُوا النَّاسَ |
| ښکاره دلیل د طرفه د رب ستاسو نه، نو پوره کړئ پیمانه او تول او مۀ کموئ د خلقو نه |
| أَشْيَاءَهُمْ وَلَا تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ بَعْدَ إِصْلَاحِهَا ۚ ذَٰلِكُمْ |
| څیزونه د هغوی او فساد مۀ کوئ په زمکه کښې روستو د اصلاح د هغے نه دا (کارونه) |
| خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿٨٥﴾ |
| ډیر غوره دی تاسو له که یئ تاسو ایمان والا. |

**تفسیر** : مدین د یوے قبیلے نوم وو چه د هغے نسبت مَدْیَن بن ابراهیم خلیل (عليه السلام) طرف ته وو. او شعیب (عليه السلام) ددے قبیلے یو فرد وو. ددۀ سلسلهٔ نسب داسے ده :

شعیب بن میکیل (یا میکائیل) بن یَشْجُر (یا یَسْحُر) بن مدین بن ابراهیم (عليه السلام). په سریانی ژبه کښې ددۀ نوم (یَثْرُون) وو. محمد بن اسحاق وائی چه د میکائیل مور د لوط (عليه السلام) لور وه (یغوتی) (نو شعیب (عليه السلام) د لوط (عليه السلام) کروسے دے) مدین د ابراهیم (عليه السلام) خوی دے د (قطورا) نه پیدا دے چه دا ښځه ابراهیم (عليه السلام) په آخری عمر کښې کړے وه.

شعیب علیه السلام ته د مفسرینو په اصطلاح کښې خطیب الانبیاء وئیل کیږي، وجه دا ده چه داسې بیانات ئې کړیدي لکه یو خطیب شخص چه ډیرې نکتې او باریکات بیانوي لکه سورت هود کښې ددهٔ بیان اُوږد راغلې دې او دلته کم دې.

مدین د قبیلې نوم هم دې او د یو ښار نوم هم دې چه ددې خلکو د نیکه په نوم مشهور شویدې چه دا ښار د حجاز په لاره کښې «مَعان» ته نزدې واقع وو.

ابن عاشور رحمه الله لیکي : مدین د لوط علیه السلام لور په نکاح اخستې وه نو د هغې نه څلور پیدا شو (عیفا، عفر، حنوك، ابیداع، الدعة) دوی ابراهیم علیه السلام په خپلو علاقو کښې د اسماعیل علیه السلام او د اسحاق علیه السلام د کورونو ترمینځ اُوسه ول، او د دوی نه د مدین والو ډیرې قبیلې راخورې شوې چه د دوی شمار (۲۵) زره کسان وو او د دوی د وسیدو ځایونه د حجاز او بحر احمر ساحل ته نزدې د خلیج العقبه ترمینځ وو، او د دوی د ښارونو مرکز په بحر احمر باندې (وَجّ) وو، او د دوی زمکې او علاقې د شمال نه تر د مَعَان د حدودو پورې دې (او معان د شام د علاقو نه یوه علاقه ده) او د حجاز نه تر تبوك پورې دی او د دوی کلو او ښارونو ته اَیکه وائي. او دوی د عربي قومونو د مجاورت (گاونډ) په وجه عرب گرځیدلی وو او دوی د شعیب علیه السلام په زمانه کښې د مصر د بادشاهانو ماتحت وو او چونکه دوی د مصر په لاره کښې وو نو د عربو قبائلو او د هغوی د مخالطة (گډون) نه دوی عربي زده کړې وه، نو دوی د عربِ مستعربه ؤ په شمار کښې راغلل لکه د بني اسماعیل علیه السلام په شان. بیا هغه لیکي : شعیب علیه السلام مدین والو ته رسول رالیږلې شوې وو او ددهٔ په عربئ کښې شعیب نوم وو او په تورات کښې (یثرون) او دارنګه ددهٔ ته رعوئیل بن نویلي یا نویب بن رعویل بن عیفا بن مدین) وائي، او موسیٰ علیه السلام چه کله د مصر نه ووتو نو د مدین ښارونو ته لاړو هلته وسیدو بیا شعیب علیه السلام ورته خپله لور (صفوره) په نکاح ورکړه او موسیٰ علیه السلام د هغه سره لس کالو پورې مزدور پاتې شو.

بیا وائي چه د مدین او د شعیب علیه السلام په نسب کښې د مفسرینو او مؤرخینو لوی جماعت ګډوډ شویدې خو تا چه ددې لیکلي شوي بیان مخالف څه وموندل نو هغه گوزار کړه. او علامه صفدیؒ شعیب علیه السلام په ړندو کښې شمارلې دې لیکن ما دا په معتمدو کتابونو کښې نهٔ دی موندلی آه. (التحریر والتنویر ۸/ ۱۸۶)

ابن کثیر رحمه الله وائي چه دوی ته قرآن اصحاب الایکه هم وئیلي دي. لیکن عکرمهٔ او سُديؒ وائي چه الله تعالیٰ شعیب علیه السلام لره دوه قومونو طرف ته لیږلې وو، یو مدین والو

طرف ته چه دوی الله په چغه سره هلاك كړل او دوباره ئې اصحاب الایکه طرف ته ولیږلو چه دوی ئې د یوے وریځے په ذریعه هلاك كړل چه په هغے كښ د اُور شعلے وے۔

مدین علاقه كښ عرب وسیدل، اصل نه عرب نهٔ وو لیکن د عربو د قُرب وجِوار د وجه نه عرب ګرځیدلی وو (التحریر) او مدین علاقه داسے وه لکه د منډئ په شان، دلته به د شام او یمن او حجاز وغیره علاقو نه مالونه راتلل او دوی ته د بیع شراء او د تول او ناپ پروګرام سپارلے شوے وو نو دوی به په هغے كښ ټګی او دوکه کوله او د الله نه نهٔ یریدل۔

د شعیب علیه السلام قوم د الله سره د شرك كولو نه سوئ نورو قبیحو ګنړو بیماریانو كښ اخته وو۔ دے خلقو به په تول او ناپ كښ كمے زیاتے كولو۔ په لارو كښ به ئې خلق یرول او دهمکی به ئې ورکوله او د هغوی نه به ئې مالونه اخستل، د هغوی نه به ئې په زوره ټیکس اخستو، او د كومو خلقو چه به د شعیب علیه السلام د خبرو آوریدو دپاره د راتللو اراده وه نو هغوی به ئې په لاره كښ بندول او په هره طریقه به ئې د هغه نه آړول۔

شعیب علیه السلام هغوی ته د توحید دعوت ورکړو او د شرك نه ئې ویرول او كومے نورے اخلاقی بیماریانے چه په هغوی كښ موجودے وے نو د هغے بدی ئې ورته بیانه كړه او د هغے نه د منع كیدو ترغیب ئې ورکړو او هغوی ته ئې د الله دا نعمت رایاد كړو چه د دوی شمار كم وو نو الله د دوی په نسل كښ بركت واچولو او د دوی شمار زیات شو۔ دا وه خلاصه د واقعے۔

بَيِّنَةٌ : ښكاره معجزه، ددے معجزے بیان هم نهٔ دے شوے، كیدے شی چه یوه معجزه ئې ورته پیش كړی وی چه هغه قرآن او سنت كښ نهٔ ده بیان شوے۔

○ ځینی وائی چه هغه معجزه عذاب وو چه قوم ئې د هغے نه یره ولے وو﴿ فَاصْبِرُوْا حَتّٰى يَحْكُمَ اللّٰهُ بَيْنَنَا﴾ ﴿فَاَسْقِطْ عَلَيْنَا كِسَفًا مِّنَ السَّمَاءِ﴾ او جَاءَتْكُمْ ماضی په معنیٰ د مضارع ده دپاره د تحقق الوقوع یعنی خامخا رابه شی تاسو ته۔

○ یا دا چه هغوی ته ئې وعده ورکړه چه معجزه به راشی ایمان به راوړئ لیکن هغوی دغه معجزه ونهٔ غوښته او ددهٔ تكذیب ته ئې جلتی وکړه نو دا به داسے شی لکه موسیٰ علیه السلام وئیلی وو﴿ قَدْ جِئْتُكُمْ بِبَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ فَاَرْسِلْ مَعِيَ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ قَالَ اِنْ كُنْتَ جِئْتَ بِاٰيَةٍ فَاْتِ بِهَآ اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ﴾ (اعراف: ۱۰۵-۱۰۶) نو د جَاءَتْكُمْ معنیٰ به دا شی چه معجزه راتللو ته نزدے ده خو كه تاسو ایمان راوړئ۔

○ یا د بینة نه مراد دا دے چه زما د صدق او رښتینوالی دلیل او نښه ښكاره شوه (ځکه چه ددهٔ د هغوی د شرك او بدو اعمالو بطلان په دلیل سره ښكاره كړو او هغوی ددهٔ د مقابلے

نه عاجز شو نو په هغوی باندے حجت قائم شو لکه هغه په سورة هود کښې ذکر دے)۔ نو د بینه نه مراد هغه شے دے چه هغه د نبوت د دعوے رشتینوالے ښکاره کوی، نهٔ خاص خارق العادة (معجزه)۔ هذا كله في التحرير والتنوير (۱۸۶/۸)

یعنی هرکله چه زما د صدق نښه ښکاره شوه نو اُوس چه زهٔ کوم نصیحت کوم هغه قبول کړئ او د کومو عذابونو نه مو چه یروم هغے ته هوښیار شئ۔

الْكَيْلَ وَالْمِيْزَانَ : دلته د کیل او میزان نه معنی مصدری مراد دی یعنی (پیمانه او تول کول) او په سورة هود (۸۵) کښې (الْمِكْيَالَ وَالْمِيْزَانَ) ذکر دے هلته ترے آله د کیل او وزن مراد ده۔

وَلَا تَبْخَسُوا : بخس : د یو شی صفت یا مقدار کمول چه هغه لائق د کمال وی نو په دے کښې معنیٰ د ظلم او حیلے او غصب او لوټ مار او په پیمانه کښې زیات اخستل یا کمی کولو یا په قیمت کښې د دوکے کولو ده۔ ابن سَیدَة په ((المخصص)) کښې وائی چه بخس د انسان حق ختمولو ته وائی۔ (التحرير، نقله عن ابى بكر بن العربى وابن سيده)

النَّاسَ اَشْيَآءَ هُمْ : (الناس) مُبدل مِنه او (اَشْيَاءَ هُمْ) د هغے نه بدل اشتمال دے او په اصل کښې لَاتَبْخَسُوا اَشْيَاءَ النَّاسِ دے۔ یا (الناس) مفعول اول او (اَشْيَاءَ هُمْ) مفعول ثانی دے۔

د خلکو څیزونه کمول یا د مالونو کمولو یو صورت دا دے چه چا ته ووائی چه دے دبه د غوړو کښې لس کیلو غوړی دی او دهٔ ته معلومه وی چه دے کښې دولس دی، یا داسے ووائی چه دے کجورے ونه کښې د لسو دړو نه زیاتے نشته او دهٔ ته معلومه وی چه دا شلو دړو ته رسیږی، کله په صفت د یو شی کښې بخس راځی لکه داسے ووائی دا اُوښ نفرتی دے، حال دا چه هغه ډیر اصیل وی، دا خو په اقوالو کښې شو۔ او کله په عمل کښې وی لکه په یو گران شی باندے ارزان ریټ کیږدی او مقصد ئے دا وی چه نور خلك ددے نه واوړی چه دا خو بیکاره دے او ځان ته ئے راکاږی لکه دا کار په منډیانو کښې بولئ والا او اړتیان کوی، کله د یو سے سودا اخستونکی ته شکونه واچوی چه دا خو په بازار کښې ارزان ملاویږی او تا گرانه اخستے ده نو هغه ئے پریدی او دے ئے ځانله واخلی۔ (التحرير بتصرف)

او ددے نه ئے ځکه منع کړل چه کوم امت په کاروبارونو کښې تنگی کوی نو هغوی خوا ته به خلك کم راځی او خلك به د هغوی نه متنفر کیږی نو پدے طریقه به هغوی کښې سوداگانے کمیږی نو پدے سره به د ښار ترقی خرابیږی او ژوند به ئے تنگیږی۔

وَلَا تُفْسِدُوا : یعنی په شرك او دعوت د گناهونو سره فساد مهٔ کوئ۔

بَعْدَ اِصْلَاحِهَا : یعنی د انبیاؤ علیهم السلام او د احکامو په رالیږلو سره۔

ذٰلِکُمْ خَیْرٌ لَّکُمْ : ځکه چه پدے سره به ستاسو عملونه قبلیږی، په دغه مالونو کښې به هم برکت راځی، او د الله عذاب به نهٔ راځی۔ دارنګه پدے سره ژوند مزیدار کیږی، امن باقی پاتی کیږی، د امت په مینځ کښې به صفا مینه پاتی کیږی او د زړونو بغض به ختمیږی کوم چه جګړے پیدا کوی، او کله چه ناپ تول برابر وی نو امت به زیاتیږی، او عزتمند کیږی به، او دشمنان به ترے یریږی، او بنه شهرت به ئے کیږی، او مالونه به ئے زیاتیږی په سبب د رغبت د خلکو په تجارت او زراعت کښې، او پدے کښې د آخرت خیر هم دے، پدے سره به د الله او د رسول په حکم عمل وشی نو الله به راضی شی، نو د عذاب نه به خلاص شی او د جنت مستحق به شی نو په خیر کښې تنوین د تعظیم او کمال دپاره دے۔ (التحریر)

اِنْ کُنْتُمْ مُّؤْمِنِیْنَ : ۱- اکثر مفسرین لیکی چه دے خلکو به د ایمان دعوه کوله او د ابراهیم ؑ په دین ئے ځان ګنړلو۔ یعنی که تاسو دعوه د ایمان کوئ نو بیا شرک ولے کوئ او پردی مالونه ولے خورئ حال دا چه ایمان خو د فساد او حرام خورئ منافی دے۔

۲- دویم پدے کښې دعوت غرض دے ځکه چه په الله باندے ایمان بنه شے دے چه هر سلیم الفطرت انسان ئے قبلوی، یعنی که ستاسو چرته د ایمان اراده وی او ایمان راوړئ نو ددے کارونو نه به ځان ساتئ۔ کُنْتُمْ په معنیٰ د (صِرْتُمْ) سره دے۔

یا دا ځیزونه به تاسو ته هله فائده درکوی چه ایمان راوړئ که ایمان درکښې نهٔ وی نو تاسو ته هیڅ خیر نشی ملاویدے ځکه چه شرک د ځیزونو خیر ختموی، نو پدے کښې بیا د توحید او د ایمان دعوت دے لکه د مخکښې په شان۔ (التحریر)

| |
|---|
| وَلَا تَقْعُدُوْا بِکُلِّ صِرَاطٍ تُوْعِدُوْنَ وَتَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِیْلِ اللّٰهِ مَنْ |
| او مهٔ کینئ په هره لاره کښې چه یروئ او منع کوئ د لارے د الله نه هغه څوک |
| اٰمَنَ بِهٖ وَتَبْغُوْنَهَا عِوَجًا ۚ وَاذْکُرُوْٓا اِذْ کُنْتُمْ |
| چه ایمان ئے راوړے په الله او لټوئ تاسو په هغے کښې کوږوالے او یاد کړئ کله چه وئ تاسو |
| قَلِیْلًا فَکَثَّرَکُمْ ص وَانْظُرُوْا کَیْفَ کَانَ عَاقِبَةُ الْمُفْسِدِیْنَ ﴿۸۶﴾ وَاِنْ کَانَ طَآئِفَةٌ |
| کم نو زیات ئے کړئ او وګورئ چه څرنګ شو انجام د فساد کونکو۔ او که وی یوه ډله |

| مِنۡكُمۡ اٰمَنُوۡا بِالَّذِىۡۤ اُرۡسِلۡتُ بِهٖ وَطَآئِفَةٌ |
|---|
| ستاسو نه ایمان ئې راوړے وی په هغه څه چه رالیږلے شوے یم زهٔ په هغے او بله ډله وی |
| لَّمۡ يُؤۡمِنُوۡا فَاصۡبِرُوۡا حَتّٰى يَحۡكُمَ اللّٰهُ |
| چه ایمان ئې نهٔ وی راوړے نو صبر کوئ تردے چه فیصله به وکړی الله تعالیٰ |
| بَيۡنَنَا ۚ وَهُوَ خَيۡرُ الۡحٰكِمِيۡنَ ﴿۸۷﴾ |
| په مینځ زمونږ کښې او الله تعالیٰ غوره دے د فیصله کونکو نه۔ |

**تفسیر** : مکے والو هم د دوی نه چل زده کړے وو چه څه کسان به ئې په لارو کښې کینولی وو او رسول الله ﷺ نه به ئې خلك اړول. نو د لارے نه مراد هغه لاره ده چه د شعیب علیه السلام کورته رسیدلے وه۔

تُوۡعِدُوۡنَ : ایعاد په معنیٰ د یره ولو او دهمکی ورکولو سره دے۔

وَتَصُدُّوۡنَ : منع کول په دوه طریقو سره وو، یو په خلکو باندے یرے اچول، او په هغوی باندے زور کول، او دویم شبهات اچول او په شعیب علیه السلام او د هغه په تابعدارو باندے تهمتونه او بدنامے او طعنونه لګول۔

وَتَبۡغُوۡنَهَا عِوَجًا : دا د دویمے معنیٰ تفسیر دے۔ ددے تشریح مخکښې (٤٥) آیت کښې ذکر شوه۔

وَاذۡكُرُوۡٓا : اُوس ترغیب ورکوی په یادولو د نعمتونو سره۔

فَكَثَّرَكُمۡ : بِالۡعَدَدِ وَالۡمَالِ۔ یعنی ستاسو شمار (نفری) او ستاسو مالونه ئې زیات کړل۔

وَانۡظُرُوۡا : دا ترهیب (یره) ورکول دی چه انجام به مو خراب شی۔

وَاِنۡ كَانَ طَآئِفَةٌ : دے کښې یوه محاکمه بیانوی د هغوی د متوجه کولو دپاره۔

ددے مطلب دا دے چه تاسو کښې به دوه ډلے جوړی شی، یو به په ما ایمان راوړی او بله به ئې نهٔ راوړی نو تاسو انتظار وکړئ چه عذاب به په چا راځی؟ آیا زما په ډله او که ستاسو په ډله؟ نو ښکاره خبره ده چه په الله باندے ایمان لرونکی باندے الله عذاب نهٔ راولی بلکه عذاب په کافرو او د انبیاؤ علیهم السلام په دشمنانو راځی نو پدے خبره کښې د هغوی متوجه کول غرض دے۔ چه آیا د عذاب حقدار به مونږ یو او که تاسو؟ لږ خپلو خپلو عملونو کښې سوچ وکړئ۔ نو هغوی به متوجه شی چه زمونږ د الله سره څه تعلق دے او

په کومه خبره به د هغه د عذاب نه بچ کیږو۔

قَالَ الْمَلَاُ الَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْا مِنْ قَوْمِهٖ لَنُخْرِجَنَّكَ

ووئیل غټانو هغه کسانو چه ځان ئې لوئې ګڼړلے وو د قوم د هغهٔ نه خامخا وباسو به مونږ تا

يٰشُعَيْبُ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَكَ مِنْ قَرْيَتِنَآ اَوْ

اے شعیب !(علیه السلام) او هغه کسان چه ایمان ئې راوړے ستا سره د کلي خپل نه یا به

لَتَعُوْدُنَّ فِيْ مِلَّتِنَا ؕ قَالَ اَوَلَوْ كُنَّا كٰرِهِيْنَ ﴿۸۸﴾

خامخا راواپس کیږئ زمونږ په دین کښې، ووئیل هغه آیا اګرکه یو مونږ بد ګڼړونکي۔

**تفسیر** : پدے کښې د قوم د تکذیب طریقه ذکر ده۔

اسْتَكْبَرُوْا : دا خلك هم د مال والا وو پدے وجه ئې تکبر کولو۔

مِنْ قَرْيَتِنَآ : د دین والو دومره سپکاوے شویدے چه د خپل کلي نه ئې وباسي، تهٔ به وائے چه دا صرف د دوی کلے دے۔ او تولو قومونو د پیغمبرانو سره دا کارونه کړیدي چه هغوی ئې د کلو نه ویستلي دي او ارادے ئې کړیدي لکه په سورة ابراهیم (۱۳) آیت کښې وګوره۔

اَوْ لَتَعُوْدُنَّ : سوال دا دے چه عَوْد مخکښې حالت ته واپس کیدو ته وائي نو آیا شعیب (علیه السلام) د هغوی په ملت وو؟

۱- جواب دا دے چه عَوْد په معنیٰ د دخول دے یعني تهٔ به زمونږ دین ته راداخلیږے۔

۲- جواب : نبي چه کله بیان او دعوت نکوي نو د خلکو خیال دا وي چه دا هم زمونږ په مذهب او دین دے۔ او د بیان نه روستو خلکو ته راښکاره شي۔

۳- جواب : دا په اعتبار د نورو مؤمنانو سره وئیلے شویدي چه هغوی مخکښې د دوی په دین کښې وو۔

اَوَلَوْ : همزه استفهامیه د تعجب او انکار دپاره ده، او واو عاطفه دے، معطوف علیه ئې پټ دے [اَیَ اَنَعُوْدُ وَلَوْ كُنَّا كَارِهِيْنَ] آیا مونږ به واپس کیږو اګرکه مونږه ئې بد ګڼړو، ځکه چه پدے کښې سراسر تباهي او نقصان دے، کفر او شرك ته څنګه واپس شو چه د هغے بیان روستو آیت کښې ذکر کوي۔ نو دا ډیر پوخ جواب دے او پدے کښې د هغوی په جهالت د انتهائي تعجب نه کار اخستے شویدے چه تاسو څومره جاهلان یئ؛ یو تن ته چه د یو دین

قباحت او بدی او په هغې کښې د دنیا او د آخرت تاوان معلوم وی آیا هغه به هغه دین ته واپس کیږی؟۔

دارنګه دا کلام جواب دے د هغوی د دواړو خبرو یعنی اګرکه مونږ بد ګنړو د کلی نه وتل او ستاسو په دین کښې داخلیدل، نو بیا به هم په مونږ باندے زور کیږی؟ نو پدے کښې اشاره ده ددے قوم حماقت او بیوقوفتیا ته ځکه چه دوی په خپل دین کښې په زوره داخلول غواړی حال دا چه د حق پرست شان خو دا دے چه هغه په نفسونو باندے په حق قبلولو کښې زور نهٔ کوی۔ (التحریر)

دارنګه په اِکْرَاه (زور کولو) سره مقصد نهٔ حاصلیږی ځکه چه که ستاسو دین حق وی نو اِکراه ته ضرورت نشته او که باطل وی نو په اِکراه سره مونږ په هغې باندے نهٔ متصف کیږو ځکه چه دین خو په حقیقت کښې د زړه صفت دے او زړونو ته ستاسو اِکراه نهٔ رسیږی نو مونږ به څنګه دا بد نهٔ ګنړو حال دا چه پدے کښې انتهائی قباحت او ظلم دے۔ (القاسمیؒ)

| قَدِ افْتَرَيْنَا عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اِنْ عُدْنَا فِيْ مِلَّتِكُمْ |
| --- |
| یقیناً جوړ کړی به وی مونږ په الله باندے دروغ که واپس شو مونږ په دین ستاسو کښې |
| بَعْدَ اِذْ نَجّٰنَا اللّٰهُ مِنْهَا ؕ وَمَا يَكُوْنُ لَنَآ |
| پس د هغې نه چه نجات راکړے مونږ ته الله تعالیٰ د هغې نه، او نهٔ دی جائز مونږ لره |
| اَنْ نَّعُوْدَ فِيْهَآ اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ رَبُّنَا ؕ وَسِعَ رَبُّنَا كُلَّ |
| چه واپس شو پدے کښې مګر که غواړی الله چه رب زمونږ دے، فراخه دے رب زمونږ هر |
| شَيْءٍ عِلْمًا ؕ عَلَى اللّٰهِ تَوَكَّلْنَا ؕ رَبَّنَا افْتَحْ |
| شی ته په علم کښې، خاص په الله باندے ځان سپارلے دے مونږ، اے ربه زمونږ فیصله وکړے |
| بَيْنَنَا وَبَيْنَ قَوْمِنَا بِالْحَقِّ وَاَنْتَ خَيْرُ الْفٰتِحِيْنَ ﴿٨٩﴾ |
| په مینځ زمونږ او په مینځ د قوم زمونږ کښې په حق سره او ته غوره ئے د فیصله کونکو نه |

**تفسیر**: یعنی ستاسو دین کښې خو په الله باندے دروغ جوړول دی، هغه ته د شریکانو نسبت او د هغه پیغمبران نهٔ منل او د هغه ملاقات نهٔ منل دی۔

نَجّٰنَا اللّٰهُ مِنۡهَا: چا له ئے دا نجات روستو ورکړیدے او څوك ئے د وروکوالی نه بچ ساتلے دے۔
وَمَا يَكُوۡنُ لَنَاۤ : یعنی ستاسو دین ته واپس کیدل مونږ له جائز نهٔ دی ځکه چه دا خو شرك دے او شرك الله حرام کړیدے۔
اِلَّاۤ اَنۡ يَّشَآءَ : دا استثناء منقطع ده په معنی د لکن سره یعنی لیکن که الله – چه زمونږ رب دے– هغه چا لره وغواړی او کفر ته ئے واړوی نو هغه ئے کولے شی۔ نو دے نه معلومه شوه چه کفر هم په مشیئت د الله کښې داخل دے۔
وَسِعَ رَبُّنَا : سوال پیدا شو چه الله ولے بعض بندګان د ایمان نه شرك ته اړوی؟ جواب وشو چه الله په هر څه باندے پوهه دے، هغه ته پته ده چه فلانے شخص دین ته د زړه نه نهٔ دے راننوتے او ددے دین اهل نهٔ دے نو ځکه ئے ترے وباسی۔
لکه بعض کسانو په مکه کښې ایمان راوړو لیکن د زړه نه نهٔ وو او منافقانو ایمان راوړو، او قبائل العرب ایمان راوړو لیکن دوی اهل نهٔ وو نو الله بیرته واپس کړل ځکه چه ایمان خو لوی نعمت دے، ددے په قدر کوے ورنه الله به ئے درنه واخلی نو پدے کښې د مؤمنانو یره ول غرض دے چه په خپل ایمان به یره کوی۔ ددے نه معلومه شوه چه ایمان د انسان ډیر معمولی تارونه دی چه زر شوکیږی، او کچه ونه ده چه په معمولی هوا باندے راپریوزی، او د غر په شان نهٔ دے چه په هواګانو او تندرونو باندے ئے څه پرواه نهٔ وی۔
وَسِعَ : په معنیٰ د اَحَاطَ سره دے یعنی راګیر کړیدے رب زمونږ هر شے په علم کښې۔
عَلَى اللّٰهِ تَوَكَّلۡنَا : مؤمن سره د مخکښې جملے نه یره پیدا شوه چه ایمان خو ډیر لوی دولت دے که دا مونږ نه الله واخلی نو مونږ به څه کوو؟ نو الله د هغے علاج بنائی چه په الله توکل کوه۔ او الله مهربانه ذات دے چه د مُخلصو بندګانو ایمان نهٔ خرابوی، نو توکل په دین او دنیا دواړو کښې کیږی، لکه د سورة الملك په آخر کښې د خاتمے په باره کښې ﴿وَعَلَيۡهِ تَوَكَّلۡنَا﴾ لفظ راغلے دے چه الله به زمونږ خاتمه نهٔ خرابوی، په هغه مونږ ځان سپارلے دے۔
رَبَّنَا افۡتَحۡ بَيۡنَنَا : دا بنیری دی په شکل د دعا سره، یعنی زمونږ او د دوی ترمینځ جدائی راوله چه دوی هلاك کړه او مونږ له ترے نجات راکړه۔
افۡتَحۡ: دا د فُتَاحَةٌ نه دے په معنیٰ د فیصلے سره یعنی زمونږ او د دوی ترمینځ فیصله وکړه۔ نو الله د دوی دا دعا قبوله کړه او دوی هجرت وکړو ځکه چه په هغه زمانه کښې جهاد نهٔ وو بلکه د الله د عذاب انتظار به وو۔

وَقَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ قَوْمِهِ لَئِنِ

او ووئیل غټانو هغه کسانو چه کفرئے کړے وو د قوم د هغه نه خامخا که چرے

اتَّبَعْتُمْ شُعَيْبًا إِنَّكُمْ إِذًا لَّخٰسِرُونَ ﴿٩٠﴾

تابعداری وکړه تاسو د شعیب نو یقیناً تاسو به په دغه وخت د تاوان والو نه شئ۔

فَأَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ فَأَصْبَحُوا فِي دَارِهِمْ جٰثِمِينَ ﴿٩١﴾

نو راونیول دوی لره زلزلے نو شول دوی په کورونو خپلو کښې پرمخے پراته۔

**تفسیر:** هرکله چه د دوی د همکئی هیڅ فائده ورنکړه نو دوی بله طریقه اختیار کړه چه مؤمنان ئے د ایمان نه منع کول، او خلکو ته ئے دا دعوت ورکړو چه د شعیب (علیه السلام) خبره به نهٔ منئ؛ ځکه چه تاوان کښې به اخته شئ۔ او دا تاوان په دوه طریقو دے، یو دا چه د پلار نیکه لاره به درنه پاتې شي، دا دینی تاوان شو، او بل دا چه دا نبی به تاسو د دنیا د کار نه وباسی کله به درته د مونځونو حکم کوی، او کله به درنه زکاة (مالونه) غواړی، کله به مو د خواهشاتو نه منع کوی، او پابندیانی به دربانده لګوی چه دا حرام دے او دا حلال۔ لکه ډیر دنیا پرست دینی کارونه تاوان ګنړی ځکه چه د دنیا نه وراتیری۔

جٰثِمِينَ : یعنی په زنګنونو باندے پرمخے پراتهٔ وو او دا چه په چا باندے درد ډیر زیات وی نو بیا داسے حالت اختیاروی، اشاره وه چه دوی ته عذاب ډیر درد رسولے وو۔

الَّذِينَ كَذَّبُوا شُعَيْبًا كَأَنْ لَّمْ يَغْنَوْا

هغه کسان چه دروغژن ئے کړو شعیب (ختم شو) ګویا که نهٔ وو وسیدلی

فِيهَا ۚ الَّذِينَ كَذَّبُوا شُعَيْبًا كَانُوا هُمُ الْخٰسِرِينَ ﴿٩٢﴾

په هغے کې، هغه کسان چه دروغژن ئے ګنړلے وو شعیب لره شول دوی تاوانیان۔

فَتَوَلّٰى عَنْهُمْ وَقَالَ يٰقَوْمِ لَقَدْ أَبْلَغْتُكُمْ

پس مخ ئے واړه وو د دوی نه (روان شو) او وے ویل اے قومه زما! یقیناً ورسول ما تاسو ته

رِسٰلٰتِ رَبِّي وَنَصَحْتُ لَكُمْ ۚ فَكَيْفَ اٰسٰى عَلٰى قَوْمٍ كٰفِرِينَ ﴿٩٣﴾

پیغامات د رب خپل او خیرخواهی مے وکړه ستاسو نو څرنګ به خفګان وکړم په قوم کافرانو۔

**تفسیر** : دا قول د الله تعالیٰ دے۔ كَأَنْ لَّمْ : دا د مخکښې (فَنُوْا) (فاني شو) سره متعلق دے۔ او (فَنُوْا) د الذين كذبوا (مبتداء) دپاره خبر دے۔

**لَّمْ يَغْنَوْا** : ۱– (اَیْ كَاَنْ لَّمْ يُقِيْمُوْا) غَنِيَ بِالْمَكَان ۔ په یو ځای کښې پاتې کیدو او وسیدو ته وائي لکه مَغْنیٰ کورته وائي۔ یعني ګویا که دوی نۀ وسیدلي په هغې کښې۔

۲– یا يَغْنَوْا د غِنيٰ نه دے په معنیٰ د مالدارئ سره، ګویا که نۀ وو مالداره شوي۔ یعني خوشې عیشي او مالونه ئې ټول تباه شو۔ (خازن)

**فَتَوَلّٰى عَنْهُمْ** : د عذاب راتللو نه مخکښې شعیب ﷺ د دوی نه واوریدو او دا خبره ئې ورته وکړه ۔یعني الله تعالیٰ د هغوی د هلاکولو دپاره داسے باران راولیږلو چه په هغے کښې د اُور سپرغے وے، او ددے سره د آسمان نه یو آواز راغلو، او د دوی د خپو لاندے زمکه وخوزیدله او په کتو کتو کښې د دوی روحونه والوتل او د دوی د بدنونو نه ډیرې جوړ شو او داسے شول لکه چه مخکښې دلته دوی د سرهٔ موجود نۀ وو، حال دا چه مخکښې په استکبار کښې راتللو سره دوی ددے زمکے نه شعیب ﷺ او مسلمانانو ته د ویستلو دهمکي ورکړے وه۔

یا دا چه د عذاب د راتللو او د هغوی د هلاك کیدو نه روستو شعیب ﷺ هلته راغے او یو طرفته ودریدو او د دوی لاشونو ته مخاطِب شو وے وئیل چه اے زما قومه ! ما تاسو ته د الله پیغام رسولے وو، او ستاسو سره د خیر خواهئ چه کومه تقاضا وه هغه مے پوره کړے وه، لیکن تاسو د کفر لاره اختیار کړه، پدے وجه اُوس زما ستاسو په دے انجام لیدو هیڅ افسوس نشته دے۔ او دا معجزه وه چه دا آوازونه هغوی آوریدل۔

**فَكَيْفَ اٰسٰى** : ۱– ای مَعَ اِصْرَارِهِمْ عَلَى التَّكْذِيْبِ ۔ یعني سره ددے نه چه تاسو په تکذیب ولاړ وئ نو اُوس چه هلاك شوئ زۀ به څنګه په تاسو خفګان وکړم۔

۲– یا لَسْتُمْ مُسْتَحِقِّيْنَ لِلْحُزْنِ ۔ تاسو د غم مستحق نۀ یئ څکه چه غم خو سړے په هغه چا وکړي چه په ناپوهئ سره هلاك شي او تاسو ضدیان وئ۔

په دعوت کښې دا طریقه ده چه چا ته یو ځل دعوت ورسیدو او بیا هغه په کفر او ضد کښې راغلو او عذاب پرے راغلو، په هغه باندے خفګان کول ګناه ده، او د الله او د رسول نه ځان مخکښې کول دي۔ نو دا وینا د بعض جاهلانو غلطه ده چه وائي چه که په امریکه کښې یو کافر مړ شي نو الله به زمونږ نه تپوس کوي۔

وَمَآ اَرْسَلْنَا فِیْ قَرْیَةٍ مِّنْ نَّبِیٍّ اِلَّآ اَخَذْنَآ اَهْلَهَا

او نهٔ دے رالیږلے مونږ په یو کلی کښې یو نبی مګر ونیول مونږ وسیدونکی د هغے

بِالْبَاْسَآءِ وَالضَّرَّآءِ لَعَلَّهُمْ یَضَّرَّعُوْنَ ﴿۹۴﴾ ثُمَّ

په تکلیف د مال او په تکلیف د بدن دے دپاره چه دوی عاجزی وکړی (الله تعالیٰ ته)۔ بیا

بَدَّلْنَا مَكَانَ السَّیِّئَةِ الْحَسَنَةَ حَتّٰی عَفَوْا وَّقَالُوْا

په بدل کړو مونږ په ځای د تکلیف ښهٔ حالت تردے چه ډیر به شو دوی او ویه ئے وئیل

قَدْ مَسَّ اٰبَآءَنَا الضَّرَّآءُ وَالسَّرَّآءُ فَاَخَذْنٰهُمْ

یقیناً رسیدلی دی پلارانو زمونږ ته تکلیفونه او خوشحالئ نو راونیول مونږ دوی لره

بَغْتَةً وَّهُمْ لَا یَشْعُرُوْنَ ﴿۹۵﴾

ناڅاپه او دوی نهٔ پو هیدل۔

**تفسیر** : ددے ځای نه تر (۱۰۲) آیت پورے د مخکنو انبیاؤ په واقعاتو باندے تعقیب کوی (یعنی ددے نه فائدے او قواعد راوباسی) او دے ته د مخکنو قصو نتیجه هم وائی او هغه نتیجه دا ده (بَیَانُ سُنَّةِ اللّٰهِ فِی الْاَنْبِیَاءِ وَفِیْ اَقْوَامِهِمْ) د الله طریقه د انبیاء علیهم السلام او د هغوی د اقوامو په باره کښې څه ده۔ مؤمنانو سره څه کار کوی او د کافرانو سره څه؟، او څه امتحان راولی او څه نهٔ۔

## ربط

۱- الله فرمائی : چه مونږ د انبیاؤ علیهم السلام په کلام سره قومونو ته خبر ورکړیدے بیا مو هلاك کړیدی او دارنګه عملًا مو خبر ورکړیدے په (بأساء او ضراء) (یعنی تکلیفونو) راتللو سره۔ یعنی که انبیاء علیهم السلام ونهٔ منی نو بیا پرے الله مصیبتونه راولی، دا هم یو قسم خبر ورکول وی، چه الله بندګان تنګ کړی چه بیا عذر ونکړی چه مونږ خبر نهٔ وو۔

۲- ربط او مقصد : مخکښې د انبیاء علیهم السلام او د هغوی د امتونو واقعات او د هغوی انجام بیان شونو دلته الله تعالیٰ د تیر شوی قومونو مجموعی واقعی احوال بیان کړیدی چه کله هم الله تعالیٰ د یو قوم د هدایت دپاره یو نبی رالیږلے، او هغوی د هغه

تكذيب كړے او په شرك او كمراهئ كښې هميشه پاتے شوي، نو الله تعالىٰ هغوي لره په كُلي توګه سره هلاكولو نه مخكښې په محتاجئ او تنګدستئ او بيمارئ كښې مبتلا كړيدي، چه كيدے شي الله طرف ته رجوع وكړي، ليكن كله چه دوي په خپل كفر او شرك هميشوالے كوي نو الله د هغوي تنګدستي په فراخئ د رزق او بيماري او مصيبت ئے په عافيت او صحتمندئ بدل كړے، بيا د هغوي حال دا شو چه د نعمت فراخوالي د هغوي په سترګو پټئ او د هغوي په زړونو مهر ولګولو او وے وئيل چه دا د الله د طرف نه كوم ازميښت نهٔ دے، بلكه د زمانے دُستور دے چه د خلقو حالات يو شان هميشه نهٔ وي، زمونږ پلاران او نيكونو ته پريشاني رسيدلے وه، ليكن هغوي په خپل دين مضبوط ولاړ وو، اُوس مونږ ته آسانيانے راغلي دي نو مونږ به هم د هغوي په شان په خپل دين ولاړ يو. لهذا د هغوي كفر او استكبار نور هم زيات شو، او نتيجه دا راوتله چه الله تعالىٰ هغوي ناڅاپي راونيول. حافظ ابن كثيرؒ ليكلي دي چه په آيت كښې د كافرانو او د الله نه د غافلو خلقو حال بيان شويدے.

ليكن د مؤمنانو حال ددے په خلاف وي، هغوي په نعمتونو د الله شكر ادا كوي او كله چه مصيبت راشي نو په هغے صبر كوي. لكه په صحيح مسلم كښې روايت دے چه ((د مؤمن معامله عجيبه ده، ددهٔ هره خبره كښې خير دے، او دا د مؤمن نه سوئ بل چا ته حاصل نهٔ دے، كه دهٔ ته خوشحالي ورسي نو شكر ادا كوي او دا ددهٔ دپاره غوره دے، او كه دهٔ ته تكليف ورسي نو صبر كوي او دا ددهٔ دپاره غوره ده)). (ابن كثيرؒ) (صحيح مسلم: ۷۶۹۲)

اِلَّآ اَخَذْنَآ : ددے نه مخكښې دا خبره پته ده چه الله رسولان راوليږي او خلك تكذيب وكړي نو بيا پرے مصيبتونه راولي.

بِالْبَاْسَآءِ : تكليفونه مالي، قحطونه او فقرونه.

وَالضَّرَّآءِ : وباء ګانے او مرضونه وغيره لكه تشريح ئے مخكښې سورة الانعام كښې تفصيلاً تيره شويده.

په سختئ سره په انسان كښې عاجزي پيدا شي، او د عاجزئ د وجه نه په بنده كښې انابت پيدا كيږي او انابت سبب د هدايت دے، بنده الله ته توبه وباسي، نو مصيبتونه راتلل به هم د دوي دپاره د خير ذريعه وه.

مَكَانَ السَّيِّئَةِ : حسنه خوش عيشئ او خوشحالئ ته وائي چه بارانونه به راغلل او ميوه جات به وشو.

حَتّٰى عَفَوْا : أَيْ حَتّٰى كَثُرُوْا وَتَمَتَّعُوْا۔ یعنی د دوی نفری به هم زیاته شوه او مالونه به ئې فراخه شو۔

وَّقَالُوْا : دا د دوی فساد او د شیطان وسوسه وه چه شیطان به ورته مصیبت کښې بل مصیبت راوستلو۔ او پدې وینا کښې د دوی مقصد دا وو چه دا کاروته اتفاقي طور سره کیږي، د دنیا د زمانې چلن دے او دا امتحان نهٔ دے۔ لکه دا ذهن د ډیرو انسانانو دے چه دنیا کښې کوم مصیبتونه او امتحانات راځي نو دا د دنیا چال چلن ګنړي او خپلو ګناهونو ته نهٔ متوجه کیږي چه دا په مونږ امتحان دے او دا ډیره قبیحه خبره ده، مؤمن سړے به هر حالت د الله امتحان ګنړي۔

فَاَخَذْنٰهُمْ بَغْتَةً : یعنی هرکله چه پدې دواړو طریقو به دده خلکو اصلاح ونشوه او مرض به ئې سخت شو، ناصورته به ورسیدو نو بیا ددې آپریشن کول پکار دي۔

وَّهُمْ لَا یَشْعُرُوْنَ : یعنی هیڅ خبرنهٔ وو، د هغې آثار ئې نهٔ وو لیدلی، او دا ډیر سخت عذاب وي چه انسان په غفلت حالت کښې د الله په عذاب کښې راګیرشي۔

| |
|---|
| وَلَوْ اَنَّ اَهْلَ الْقُرٰٓى اٰمَنُوْا وَاتَّقَوْا لَفَتَحْنَا |
| او که کلو والو ایمان راوړے وے او تقویٰ ئې کړے وے خامخا راکولاؤ کړی به وو مونږ |
| عَلَيْهِمْ بَرَكٰتٍ مِّنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ وَلٰكِنْ كَذَّبُوْا |
| په دوی باندې برکات د آسمان او د زمکې نه لیکن دروغژن وګنړل دوی (پیغمبران) |
| فَاَخَذْنٰهُمْ بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ﴿۹۶﴾ |
| نو راونیول مونږ دوی لره په سبب د هغې چه دوی به کول۔ |

**تفسیر** : پدې آیتونو کښې الله تعالیٰ دا بیانوی چه دې هلاك شوی قومونو سره د نجات اسباب وو لیکن دوی هغه اختیار نکړل ځکه هلاك شول، که دوی هغه اختیار کړی وے نو بیا الله مهربانه دے۔

وَلَوْ اَنَّ اَهْلَ الْقُرٰٓى : او دا د یو سوال جواب هم دے چه دا خلك ولې الله تعالیٰ هلاکول؟ نو الله فرمائي چه دوی کښې ایمان او تقویٰ نهٔ وه۔

یعنی دا خلك د ایمان او تقویٰ نه بربنډ وو، که دوی د خپلې زمانې په انبیاؤ ایمان راوړے وے، او د محرماتو نه ئې اجتناب او د نیك اعمال التزام ئې کړے وے (یعنی د ظاهر او باطن

پاکی ئے کړے وے لکه قرآن کښ ایمان او تقویٰ د همدے مقصد دپاره یو ځای کیږي) نو الله به د آسمان او زمکے نه د خپلو برکتونو دروازے د دوی دپاره راکولاوے کړے وے، لیکن دوی د رسولانو تکذیب وکړو نو الله دوی د کفر او ګناهونو په وجه راونیول۔

**لَفَتَحۡنَا** : دا فتح د برکاتو ده چه په نیکانو باندے کیږي۔ فتح د برکاتو دیته وائی چه الله تعالیٰ د نیك عمل په وجه بنده ته رزقونه، لباسونه، ښځه، بچی او صحتونه فراخه کړي او بیا بیرته په هغے باندے د شکر توفیق ورکړي لکه دائے نښه ده، او دا نښه د حلال خوړځ هم ده۔ نو هر انسان به ځان ته ګوري که رزقونه او نورے فراخیانے راتللے او ستا عمل کمیدو نو پوهه شه چه دا استدراج دے، الله دے په آرام آرام سره رانیسی، او که نعمتونو نور الله ته رابښکلے او عبادات دے زیاتیدل نو دا برکت دے، او صحابه کرامؓ به بیا هم د فراخۍ نه یریدل۔

| |
|---|
| اَفَاَمِنَ اَهۡلُ الۡقُرٰٓی اَنۡ یَّاۡتِیَهُمۡ بَاۡسُنَا بَیَاتًا |
| آیا نو په امن کښ دی کلی والا ددے نه چه رابه شی دوی ته عذاب زمونږ په شپه کښ |
| وَّهُمۡ نَآئِمُوۡنَ ﴿۹۷﴾ اَوَاَمِنَ اَهۡلُ الۡقُرٰٓی اَنۡ یَّاۡتِیَهُمۡ بَاۡسُنَا |
| او دوی به اُودۀ وی۔ او آیا په امن دی کلی والا چه رابه شی دوی ته عذاب زمونږ |
| ضُحًی وَّهُمۡ یَلۡعَبُوۡنَ ﴿۹۸﴾ اَفَاَمِنُوۡا مَکۡرَ اللّٰهِ ج |
| په وخت د څاښت کښ او دوی به لوبے کوی۔ آیا بے یری دی دوی د تدبیر د الله نه |
| فَلَا یَاۡمَنُ مَکۡرَ اللّٰهِ اِلَّا الۡقَوۡمُ الۡخٰسِرُوۡنَ ﴿۹۹﴾ |
| پس نۀ بے یرے کیږي د تدبیر د الله نه مګر قوم تاوانیان۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښ الله ژوندی انسانان یروی چه د الله عذاب خو هر وخت راتلے شی، همغه الله دے، کولے شی چه په تاسو هم د شرکونو او ګناهونو په وجه همغه عذابونه راولیږی کوم ئے چه په پخوانو باندے رالیږلی دی، اګرکه عمومی به نۀ وی لیکن خصوصی په هر مجرم باندے راتللے شی او وخت په وخت راځی هم۔ نو د الله تعالیٰ د رانیولو نه مۀ بیغمه کیږئ، د الله د رانیولو یره هغه خلك د خپلو زړونو نه وباسی چه د عقل نه خالی وی۔

د حسن بصریؒ وینا ده چه مؤمن نیکیانے کوی او د الله نه په یره وسیږی او فاجر انسان گناهونه کوی او بیا هم خپل ځان مامون (په امن) گنړی۔ (ابن کثیرؒ والقاسمیؒ)

اَفَاَمِنَ : په غم کښې کیدل دا دی چه بنده د الله نه یره کوی او د هرے گناه نه ځان ساتی چه هغه د الله د عذاب سبب جوړیږی، په گناه مهٔ اُوده کیږه او د گناه په ځای مهٔ ورځه هسے نه چه دے وخت کښې د الله عذاب راشی۔

بَیَاتًا : اَیْ بَائِتِیْنَ : یعنی په داسے حال کښې چه شپه تیرونکی وی۔ ابن کثیرؒ وائی : اَیْ لَیْلًا۔ یعنی د شپے۔

ضُحًى وَّهُمْ یَلْعَبُوْنَ : د چاشت (یعنی ورځ) کښې خلك په غفلت کښې وی، لعب (لوبی) د دنیا کارونو ته هم وائی او څوك پدے وخت کښې مختلفے لوبی کوی، څوك کرکټ کوی او د جرمونو انبارئے په سر باندے وی۔ او پدے کښې اشاره ده چه منکرین خلك یا په خوب اُوده وی یا په لوبو کښې مشغول وی، نو د دوی تول ژوند په خوبونو او لوبو کښې تیریږی۔

مَكْرَ اللهِ : ۱- د مکر نه مراد د الله رانیول دی په استدراج سره په فراخئ د دنیاوی نعمتونو۔ ۲- عطیهؒ وائی : د مکر نه مراد رانیول او عذاب د هغهٔ دے۔ (بغویؒ)

الْخٰسِرُوْنَ : ددے مفهوم دا دے چه چا سره غم وی نو الله تعالیٰ هغه د تاوان نه ساتی۔

ابو الدرداء ﷺ ددے نه معلومه کړے وه او دا به ئے فرمایل :[مَا خَافَ أَحَدٌ عَلٰی اِیْمَانِهٖ اِلَّا مُنِحَهٗ وَمَا اَمِنَهٗ اَحَدٌ عَلٰی اِیْمَانِهٖ اِلَّا سُلِبَهٗ] ۔ څوك چه په ایمان باندے یره کوی نو هغه ته به ورکولے شی او څوك چه په ایمان باندے بیغمه وی نو هغه نه به اخستلے شی۔

نو مؤمن سړے به همیشه پدے خطره کښې وی چه داسے امتحان رانشی چه ددهٔ نه پکښې ایمان واخستلے شی او دا دعا به همیشه کوی (یَا مُقَلِّبَ الْقُلُوْبِ ثَبِّتْ قَلْبِیْ عَلٰی دِیْنِكَ)

(اے د زړونو اړونکیه ! زما زړه ستا په دین مضبوط کړه) او عمل او کوشش به کوی په هر هغه سبب کښې چه د فتنو د راتللو په وخت کښې ئے د شر نه خلاص کړی څکه بنده چه هر څومره کامل شی بیا هم د سلامتیا یقین پرے نشته۔ (السعدیؒ)

## د مکر الله تشریح :

مؤمن بنده د الله د مکر نه ولے یریږی؟ ۱- نو ددے وجه دا ده چه مؤمن وائی چه کیدے شی چه ما ایمان راوړے وی او هغه به منافقت وی، د زړه نه به نهٔ وی نو کیدے شی چه پدے مے الله راگیر کړی۔ نو په خپل ایمان باندے بدگمانی کوی۔ نو یو ورسره دا غم وی۔

۲– دویم: پدیے وجه یریږي چه مابه پخوا ګناه کړي وي او مابه د هغې نه سمه توبه په اخلاص سره الله ته نۀ وي ویستلې نو کیدے شي چه الله به ما ته هغه راجمع کړي وي او یو وخت کښې به مے پرے راګیر کړي، الله په چا باندے ظلم نکوي، لیکن زما جرمونه به وي او زما نه به هیر شوي وي او هغه به د الله په نیز پاتې وي۔

۳– دارنګه مؤمن عمل کوي او بیا وائي چه کیدے شي دا عملونه د الله د شان او د هغه شرطونو موافق نۀ وي کوم باندے چه عملونه قبلیږي، اخلاص، اتباع، احتساب، احسان پکښې نۀ وي، نو کیدے شي چه دا عملونه قبول نشي او هلاك شو۔

٤– ورسره د راتلونکے زمانے نه یریږي چه هسے نه چه روستو خراب نشو، د دنیا سره به مو محبت پیدا شي او زړونه به مو د الله نه واوړي نو د الله په عذاب کښې اخته نشو۔ ډیر انسانان د انسان مخامخ ګمراه شي او د حق نه واوړي۔ نو د الله د مکر نه یره په اصل کښې د خپلو بدو عملونو نه یریدل دي، ورنه الله تعالیٰ هیڅکله د مؤمن سره دا کار نۀ کوي چه هغه ډیے عملونه کوي او صحیح ایمان ډیے لري او الله ډیے ورله ایمان ضائع کوي او جهنم ته ډیے ګوزاري، دا د الله اصول نۀ دي۔ ﴿ اَنِّیْ لَاۤ اُضِیْعُ عَمَلَ عَامِلٍ مِّنْكُمْ ﴾۔ (آلعمران)

د الله د مکر نه د بچ کیدو طریقه دا ده: حسن بصريؒ به هر وخت غمژن وو لکه چه کور کښې ئے مړے شویدے۔ چا ترے تپوس وکړو دا ولے؟ هغه وونیل:

[لَعَلَّ اللّٰهَ اطَّلَعَ مِنَّا عَلٰی عَمَلٍ (اَیْ مَعْصِیَةٍ) فَقَالَ: اِعْمَلُوْا مَا شِئْتُمْ لَا غَفَرْتُ لَكُمْ] کیدے شي چه الله تعالیٰ زمونږ په یوه ګناه خبر شوے وي او په هغه وخت کښې ئے (په غضب کښې) داسے وئیلي وي چه عملونه کوئ چه څه مو خوښه وي زۀ تاسو ته بخنه نکوم)۔ او کله کله داسے کیږي لکه دا خبره په صحیح حدیث کښې هم راغلې ده، نبي ﷺ فرمائي:

[اِنَّ الرَّجُلَ لَیَتَکَلَّمُ بِالْکَلِمَةِ مِنْ سَخَطِ اللّٰهِ لَا یُلْقِیْ لَهَا بَالًا، یَکْتُبُ اللّٰهُ لَهٗ بِهَا سَخَطَهٗ اِلٰی یَوْمِ یَلْقَاهُ] یو سرے به د الله د غصے یوه خبر وکړي چه ددۀ به پرے دومره پاك نۀ وي (لکه الله او رسول او دین پورے به توقه وکړي) نو الله به د هغې په وجه په دۀ باندے خپله ناراضګي تر قیامته پورے ولیکي۔ (صحیح بخاري: ٦٤٧٨) ومسلم (٧٦٧٣)

دا د الله د مکر نه یره ده۔ الله فرمائي: ﴿ فَاَعْقَبَهُمْ نِفَاقًا فِیْ قُلُوْبِهِمْ بِمَاۤ اَخْلَفُوا اللّٰهَ مَا وَعَدُوْهُ وَبِمَا كَانُوْا یَكْذِبُوْنَ ﴾ (التوبة: ٧٧)

منافقانو د الله د وعدے خلاف وکړو نو الله ورله په زړه کښې منافقت همیشه واچولو۔ دا کله کله د ګناهونو نحوست (سپیرۀ والے) وي لکه روستو آیت کښې ددے آیت تشریح

راغلے ده، چه د بنده په زړه باندے د ګناه په وجه مهر ووهی۔

**تنبیه**: په قرآن کریم کښې دا قانون دے چه کله د هیبت یو لفظ ذکر شی چه د هغے نه نا امیدی او په الله باندے بدګمانی پیدا کیږی (لکه مَكرُ الله) نو الله روستو د هغے تشریح کوی لکه دلته ئے په متصل آیت کښې کړیده۔

| |
|---|
| اَوَلَمْ یَهْدِ لِلَّذِیْنَ یَرِثُوْنَ الْاَرْضَ مِنْۢ بَعْدِ |
| آیا نۀ ده ښکاره شوے هغه کسانو ته چه په میراث اخلی زمکه روستو |
| اَهْلِهَآ اَنْ لَّوْ نَشَآءُ اَصَبْنٰهُمْ |
| د وسیدونکو د هغے نه چه که وغواړو مونږ ویه رسوو دوی ته (عذاب) |
| بِذُنُوْبِهِمْ ۚ وَنَطْبَعُ عَلٰی قُلُوْبِهِمْ فَهُمْ لَا یَسْمَعُوْنَ ﴿۱۰۰﴾ |
| په سبب د ګناهونو د دوی او مهر به ووهو مونږ په زړونو د دوی نو دوی به نۀ آوری۔ |

**تفسیر**: یعنی مخکښې پدے زمکه کښې خلك وسیدل زمکه د هغوی وه اُوس دے موجوده خلکو ته پاتے شوه، نو آیا دوی ته دا پته نشته چه که مونږ وغواړو نو دوی به د دوی په ګناهونو راونیسو او عذابونه به پرے راولو او په زړونو به ئے مهر ووهو لکه څنګه چه تیر شوی قومونه د ګناهونو په وجه هلاك شو او د هغوی په زړونو باندے مهرونه ووهل شو او د حق د آوریدو توفیق ورته ملاؤ نۀ شو۔ دا هغه مکر دے چه یره ترے پکار ده چه بنده به ګناهونه کړی وی او هیڅ پرواه به ئے پرے نۀ وی او ترے هیر شوی به وی نو د هغے په وجه به پرے د الله عذابونه راشی، نو د دغه تیر شوی قومونو د انجام نه عبرت اخستل پکار دی۔

**وَنَطْبَعُ**: دا غټ عذاب دے چه انسان باندے د ګناه په وجه مهر ووهل شی چه بیا به حق نۀ آوری او نۀ به ئے قبلوی، او دے ته د ایمان سلب کول (اخستل) وائی کوم چه مخکښې د حسن بصریؒ او د ابو الدرداء ﷺ په قول او په حدیث کښې تیر شو، هغه ددے تشریح ده۔

پدے وجه مالك بن دینارؒ وئیلی دی: [مَثَلُ الْمُؤْمِنِ كَالشَّاةِ الْمَأْبُوْرَةِ تَأْكُلُ وَلَا تَقْطَعُ عِلَّتُهَا]

د مؤمن سړی مثال د هغه ګډے په شان دے چه ستنه ئے خوړلی وی چه هغه ئے په مرئ کښې انښتی وی نۀ ښکته ځی او نۀ راوځی نو هغه پدے حالت کښې خوراك کوی خو بیماری ئے نۀ ختمیږی۔ (همیشه پریشانه وی تر مرګه پورے)۔ (حلیة الاولیاء ۲۷۷/۲/۴۳۰)

تِلْكَ الْقُرٰى نَقُصُّ عَلَيْكَ مِنْ اَنْۢبَآئِهَا ۚ وَلَقَدْ جَآءَتْهُمْ

دا کلی دی بیانوو مونږ په تا باندے د خبرونو ددے نه او یقیناً راغلی وو دوی ته

رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ ۚ فَمَا كَانُوْا لِيُؤْمِنُوْا بِمَا

رسولان زمونږ په ښکاره دلیلونو نو نه وو دوی چه ایمان ئے راوړے وے په هغے په دے وجه

كَذَّبُوْا مِنْ قَبْلُ ۚ كَذٰلِكَ يَطْبَعُ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۱۰۱﴾

چه دروغژن وګڼړل دوی اول کښې، دغسے مهر وهی الله تعالیٰ په زړونو د کافرانو۔

**تفسیر** : پدے آیت کښې الله تعالیٰ دوه خبرے بیانوی، یو تسلی رسول الله ﷺ ته چه مونږ اُوس تا ته د پنځه انبیاء کرامو علیهم السلام او د هغوی د امتونو واقعات او د هغوی بد انجامونه بیان کړل دے دپاره چه ستا قوم عبرت حاصل کړی او ایمان راوړی، او دے دپاره چه تا ته تسلی شی چه د مشرکانو د طرف نه چه تا ته کوم تکلیف رسیږی نو دا تا پورے خاص نۀ دے بلکه په تیر شوو زمانو کښې نورو انبیاء علیهم السلام هم د داسے پریشانو سره مخامخ شوی وو۔

دویمه خبره : پخوانو قومونو ولے ایمان رانۀ وړو؟ د هغے سبب بیانوی چه وجه دا وه چه دوی ته اول کښې حق راغے، رسولانو ورته ښکاره نښے وخودلے لیکن دوی ورله لته ورکړه او د اول نه ئے تکذیب شروع کړو نو الله تعالیٰ ورته د ایمان توفیق ورنکړو او د هغوی د جرمونو د وجه نه ئے په هغوی باندے مهر ووهلو، نو دا آیت د سورة الانعام (۱۱۰) آیت ﴿وَنُقَلِّبُ اَفْئِدَتَهُمْ وَاَبْصَارَهُمْ كَمَا لَمْ يُؤْمِنُوْا بِهٖۤ اَوَّلَ مَرَّةٍ﴾ په شان دے۔ نو یو دوی ضد وکړو او بل د نعمت بی قدری، نو الله پرے دپاسه مهر هم ووهلو چه د هدایت تولے لارے پرے بندے شی، ځکه الله غني ذات دے، د ډیرے استغناء د وجه نه داسے کار کوی۔

بِمَا كَذَّبُوْا مِنْ قَبْلُ : ۱- د قَبْلُ نه اولاً (یعنی اول کرت) مراد دے۔

۲- اُبی بن کعب ﷛ وائی : چه د (من قبل) نه مراد یوم المیثاق دے یعنی د عالَم الارواح په ورځ او د الله تعالیٰ په علم کښې ئے تکذیب کړے وو لیکن دلته اوله معنیٰ ظاهره ده۔ نو دا آیت د مخکنی آیت تشریح شوه۔

۳- یا مطلب دا دے : اَیْ فَلَمْ يَكُنْ مِنْ شَأْنِهِمْ اَنْ يُّؤْمِنُوْا بَعْدَ مَجِيْءِ الْبَيِّنَاتِ بِمَا كَذَّبُوْا بِهٖ مِنْ قَبْلِ مَجِيْءِ الْبَيِّنَاتِ عِنْدَ بَدْءِ الدَّعْوَةِ] (المنار) یعنی د دوی د شان نه دا نۀ وه چه دوی پس د

راتللو د بیناتو نه ایمان راوړے وے په هغه وحی باندے چه دوی پرے مخکښ د راتللو د بیناتو نه تکذیب وکړو، په ابتداء کښ چه کله دوی توحید او عبادت د الله ته راوبللے شو۔

صاحب المنار وائی چه دلته اول مطلب اخستل سخت ضعیف دی ځکه چه دلته ما کان نفی د شان کوی او د هر مکذب شان خو دا نهٔ وی چه هغه د یو شی تکذیب وکړی ګنے په هغه تکذیب دِے همیشه پاتی شی پس د هغے نه چه بینات د هغه په خطائی باندے ښکاره شی، آؤ، دا شان د بعض معاندینو او مقلدینو دے چه پس د دلیل قائمیدو نه هم په خپله خطائی باندے قائم پاتی کیږی۔

| وَمَا وَجَدْنَا لِأَكْثَرِهِمْ مِّنْ عَهْدٍ ج |
| --- |
| او نهٔ دے موندلے مونږ د ډیرو د دوی دپاره پوره والے د لوظ |
| وَإِنْ وَّجَدْنَآ أَكْثَرَهُمْ لَفٰسِقِيْنَ ﴿١٠٢﴾ |
| او خامخا موندلی دی مونږ زیات د دوی خامخا نافرمان۔ |

**تفسیر:** یعنی موجوده او پخوانی ټولو قومونو په ازل کښ چه کومه وعده کړے وه نو د هغے خلاف ورزی کول د دوی عادت جوړ شوے وو، اکثر په هغوی کښ سرکشان او نافرمان وختل۔

## ربط

مخکښ آیت کښ ښکاره شوه چه اِسْتَوَتِ الْحَالَتَانِ الدَّعْوَةُ وَعَدَمُهَا ۔ یعنی دوی باندے دعوت اثر ونکړو د رسولانو د راتللو نه روستو او مخکښ دواړه حالتونه ئے یو شان وو۔

مِّنْ عَهْدٍ : ابن عباس ﷺ فرمائی : د عهد نه مراد (ایمان) دے ځکه چه ایمان د الله سره لوی لوظ دے۔

(۲) ابن الجوزیؒ وائی : د الله عهد دا دے چه (أَنْ لَّا يُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا) چه بندګان به د الله سره هیڅوك نهٔ شریك کوی، لیکن خلکو دا وعده ماته کړه۔ (زاد)

(۳) صاحب المنار وائی : عهد په اصل کښ وصیت ته وائی یعنی مونږ د اکثرو دپاره په وصیت د الله باندے وفاداری ونهٔ موندله۔ امام راغبؒ وائی چه دا عهد په مختلفو طریقو دے، کله په عقل سره وی، او کله په امر د کتاب الله او د هغه د رسولانو سره وی، او کله د انسانانو په نذرونو سره وی۔ یعنی اکثرو خلکو وفاداری د هغه لوظ د الله ونکړه چه الله

دوی تـه په عقل کښې ایخودے وو (چه په ما به ایمان راوړئ) یا ورته په کتابونو او د رسولانو په ژبه وئیل شوے وو یا دوی د الله سره په طریقه د نذر لوظ کړے وو۔

(٤) او پدے کښې هغـه لوظونه هم داخل دی چه اکثرو به د خپلو رسولانو سره کول چه مونږ بـه ایمـان راوړو کـه مـونږ نه عذاب لرې شي لکه روستو به را ... چه فرعونیانو به موسیٰ علیه السلام سره د عـذاب په لرے کیدو د ایمان وعده کوله لیکن کله چه به لرے شو بیا به ئے وعده ماته کړه۔ او کله به ئے په معجزاتو وعدے کولے چه که فلانئ معجزه درے راوړه نو مـونږ به ایمان راوړو خو هغه چه به پیش شوه نو بیا به هم په خپل کفر کلك ولاړ وو لکه د مـکے مشـرکانو د سپوږمئ په چاودلو او د بیت المقدس د دروازو او کړکو وغیره په خبر ورکـولـو دوی دغـه لـوظ کـړے وو لیـکن سرته ئے ونهٔ رسولو۔ او ثمودیانو اُوښه وغوښته د ایمان په شرط سره لیکن اکثر د دوی په دغه لوظ پابند پاتے نشو۔

دارنګه مشرکانو به د الله سره په تکلیف او سختئ او د کشتئ د هلاکیدو په وخت وعده کـولـه چه که نجات ملاؤ شو ایمان به راوړو، خو پس د خلاصیدو نه به همغه شان په کفر روان وو۔

او پدے کـښې د الله هـغـه لـوظـونـه هم داخل دی چه ددے سورت په ابتداء کښې کوم شـلـور آوازونـه وشـو، او د شیطان د عبـادت نه ئے په سورت یس آیت (٦٠) کښې منع وکړه ﴿اَلَمۡ اَعۡهَدۡ اِلَیۡكُمۡ یٰبَنِیۡۤ اٰدَمَ اَنۡ لَّا تَعۡبُدُوا الشَّیۡطٰنَ﴾ او هغه لس وصیتونه چه د سورة الانعام په آخر کښې د (١٥١ نه تر ١٥٣) آیتـونو پورے بیان شو۔ او خاصکر (وَبِعَهۡدِ اللّٰهِ اَوۡفُوۡا) او پدے کښې د انسانانو خپل مینځ کښې لوظونه هم داخل دی۔ (المنار)

وَاِنۡ وَّجَدۡنَاۤ : ان مخفف من المثقل دے (اَیۡ اِنَّهٗ) یقیناً مونږ اکثر فاسقان وموندل۔

| ثُمَّ بَعَثۡنَا مِنۢ بَعۡدِهِمۡ مُّوۡسٰی بِاٰیٰتِنَاۤ اِلٰی فِرۡعَوۡنَ |
| --- |
| بیا ولیږلو مونږ روستو د هغوی نه موسیٰ (علیه السلام) په معجزاتو زمونږ فرعون |
| وَمَلَا۠ئِهٖ فَظَلَمُوۡا بِهَا ج |
| او غټانو د قوم د هغهٔ ته نو ظلم وکړو دوی په هغے سره (انکار ئے وکړو) |
| فَانۡظُرۡ كَیۡفَ كَانَ عَاقِبَةُ الۡمُفۡسِدِیۡنَ ﴿١٠٣﴾ |
| نو وګوره چه څرنګ شو انجام د فساد کونکو۔ |

**تفسیر** : ددے آیتِ کریمه نه د موسیٰ علیه السلام او د بنی اسرائیلو واقعات شروع کیږي، چه دا په څلورو سورتونو کښې (اعراف، طه، شعراء او قصص) کښې تفصیلاً ذکر دي، دا واقعه ئے د مخکنو انبیاؤ د واقعاتو نه جدا کړه، يو وجه دا ده چه په هغه اقوامو باندے جهاد لازم نهٔ وو، صرف هجرت او عذاب وو او د موسیٰ علیه السلام د زمانے نه جهاد شروع شویدے۔

بله وجه دا ده چه د موسیٰ علیه السلام مشابهت د رسول الله ﷺ سره زیات دے او هغه د دوه قومونو مقابله کړیده، د کافرو فرعونیانو او بیا د بنی اسرائیلو، دغه شان رسول الله ﷺ هم د مکے د مشرکانو او د عربو او په مدینه کښې د یهودو مقابله هم کړیده۔ او ددے امت مشابهت د بنی اسرائیلو سره زیات دے ځکه دا واقعه په قرآن کریم کښې زیاته بیانیږي او ددے نه الله ډیرے فائدے راویستلي دي۔

پدے واقعه کښې د دعوت طریقه تعریضات (اشارات) وي لکه پښتانه وائي «لورې تا ته ئے وایم او انګورے ته ئے غوږ باسه»۔

پدے واقعه کښې فوائد

(۱) اتباع د مَا اُنْزِلَ ته دعوت۔ چا چه اتباع د مَا اُنْزِلَ ونکړه هلاك شو لکه فرعونیان۔

(۲) بنی اسرائیلو اتباع د مَا اُنْزِلَ ونکړه نو څو مره پریشانئ کښې اخته شو، قسماقسم عذابونو کښې اخته شو، شادوګان او خنزیران ترے جوړ شو۔

په مینځ د آیتونو کښې به نور فوائد راځي (۳) لکه مشرکینو باندے به رد وي چه تاسو سره د فرعونیانو په شان کار کیږي۔ (٤) مکه کښې کمزوری صحابه کرامؓ ته اشاره ورکوي چه داسے صبر وکړئ لکه ساحرانو چه کړے وو۔ (٥) او ورسره مشرکینو باندے رد دے چه دوي رسول الله ﷺ ته ساحر وئیلو او حال دا چه هغه خو په جادو رد کوي۔

ددے تفصیلي واقعے نه روستو په دوه رکوع کښې تعقیبات دي۔

پدے اول آیت کښې خلاصه د واقعے ده چه د موسیٰ علیه السلام لیږل، د فرعونیانو تکذیب او بیا د هغوی هلاکت۔

فرمائي : بیا مونږ د نوح، هود، لوط او شعیب علیهم السلام نه روستو موسیٰ علیه السلام لره د فرعون او د هغه د قوم د هدایت دپاره په نخو ورکولو سره ولیږلو لیکن هغوی ددے نخو نه انکار وکړو، او په خپل کفر او تکبر کښې پاتے شو۔ نو الله تعالیٰ دوي په دریاب کښې ډوب کړل، پدے وجه الله وفرمایل اے زما نبی! ته وګوره چه په زمکه کښې د کفر او شرك په

ذریعه د فساد خورونکو انجام څنګه کیږی ؟۔
ثُمَّ بَعَثْنَا : د موسیٰ علیه السلام رسالت ئے په بعث لفظ سره او د نورو انبیاؤ په (اَرْسَلْنَا) سره او بیا په عطف سره ذکر کړیدی بغیر د اعادے د عامل نه، پدے کښ اشاره ده چه د نورو انبیاؤ رسالت د یوے نوع نه وو او د موسیٰ علیه السلام رسالت بل شان وو ځکه چه د بعث معنیٰ ده یو لوی کار دپاره راپورته کول لکه بعث بعد الموت هم دغه معنیٰ ورکوی۔
نو موسیٰ علیه السلام ته خو یو لوی شریعت حواله شو چه پخوانو ته هغه شان نهٔ وو ملاؤ شوے، بله دا چه د موسیٰ علیه السلام په وجه بنی اسرائیلو نه بادشاهان او په هغوی کښ انبیاء علیهم السلام جوړ شو نو قوم ته ئے ډیرے فائدے ورسیدے چه دغه شان د پخوانو انبیاؤ قومونه نهٔ وو۔ او ددے تفصیل دپاره (المنان) ته رجوع وکړه۔
بِاٰيٰتِنَآ : دلته د ((آیات)) نه مراد نور معجزات دی سویٰ د تورات نه ځکه چه تورات د فرعونیانو د هلاکت نه روستو ملاؤ شویدے۔
اِلٰى فِرْعَوْنَ : دا لیډر وو نو ددهٔ په اصلاح سره د ټول قوم اصلاح کیږی۔
فَظَلَمُوْا بِهَا : اَیْ اَنْکَرُوْهَا عِنَادًا) په ضد سره ئے د هغے نه انکار وکړو۔

| وَقَالَ مُوْسٰى يٰفِرْعَوْنُ اِنِّىْ رَسُوْلٌ مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۱۰۴﴾ حَقِيْقٌ |
|---|
| او ووئیل موسیٰ (علیه السلام) اے فرعونه ! یقیناً زهٔ رسول یم د طرف د رب العالمین نه۔ لائق یم |
| عَلٰٓى اَنْ لَّآ اَقُوْلَ عَلَى اللّٰهِ اِلَّا الْحَقَّ ؕ قَدْ جِئْتُكُمْ بِبَيِّنَةٍ |
| چه نهٔ به وایم په الله باندے مګر حقه خبره، یقیناً راوړے ده ما تاسو ته ښکاره معجزه |
| مِّنْ رَّبِّكُمْ فَاَرْسِلْ مَعِىَ بَنِىْٓ اِسْرَآءِيْلَ ﴿۱۰۵﴾ قَالَ اِنْ كُنْتَ جِئْتَ |
| د طرف د رب ستاسو نه نو ولیږه ما سره بنی اسرائیل۔ ووئیل فرعون که ته راغلے ئے |
| بِاٰيَةٍ فَأْتِ بِهَآ اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ﴿۱۰۶﴾ فَاَلْقٰى عَصَاهُ |
| په یوه معجزه نو راوړه هغه که ئے ته د رشتینو نه۔ نو ګوزار کړه هغهٔ امسا خپله |
| فَاِذَا هِىَ ثُعْبَانٌ مُّبِيْنٌ ۚ وَّنَزَعَ يَدَهٗ فَاِذَا هِىَ بَيْضَآءُ لِلنّٰظِرِيْنَ ﴿۱۰۸﴾ |
| نو ناڅاپه اژدها شوه ښکاره۔ او راویستلو لاس خپل نو ناڅاپه هغه سپین وو کتونکو ته۔ |

**تفسیر** : د موسیٰ علیه السلام واقعه کله د هغه د دعوت نه، کله د مدین ته د ورتللو نه او کله د

وړوکوالی نه شروع کیږي، د هر مقام مناسب ذکر کیږي۔ دلته ئې د دعوت نه شروع کړیده چه مدین نه راغلو او په لاره کښې رسول جوړ شو نو سیده فرعون ته ئې ځان ورسولو او هغه ته ئې ووئیل چه زهٔ د الله رالیږلے شوے رسول یم، او زهٔ تا ته د الله د طرف نه په حقه خبره وئیلو سره رالیږلے شوے یم، او د خپل رشتینوالی نخه مے راوړے ده۔

حَقِيقٌ : ١- پدے کښې د ځان صفت ورته کوي چه زهٔ لائق یم چه په الله به صرف حق وایم ځکه چه د الله رسول یم۔ نو عَلٰى به په معنیٰ د باء سره وي۔

٢- او حقیق کله په معنیٰ د حریص (حرص کونکي) سره وي یعنی ددے حرص کوم چه غلطه خبره به نهٔ کوم۔ (ابوعبیدة - بغویؒ)

٣- حقیق کله د حق نه دے په معنیٰ د کلکوالی او ثابت سره یعنی پدے خبره کلك ولاړ یم چه صرف حق به وایم، ځکه چه زما دروغو او غلطے خبرے ته ضرورت نشته او پدے باب کښې د هیچا نه یره نکوم۔

٤- حقیق کله په معنیٰ د حق او واجب سره وي او په قراءت د نافع کښې (عَلَيَّ) دے نو معنیٰ دا ده چه په ما دا خبره لازمه او واجبه ده چه زهٔ به حق وایم۔ (بغویؒ وابن کثیرؒ)

قَدْ جِئْتُكُمْ : د موسیٰ علیه السلام د راتللو دوه مقاصد وو، یو بنی اسرائیل د فرعون د ظلمونو نه خلاصول ځکه چه فرعونیانو د هغوی نه غلامان جوړ کړي وو او بې تحاشا خدمتونه به ئې د هغوی نه اخستل۔ او دویم د الله توحید طرفته فرعونیان او بنی اسرائیل رابلل۔

بِبَيِّنَةٍ : یعنی ما تاسو ته ډیر ښکاره معجزات او نخے په خپل نبوت راوړیدي۔

د قرآن کریم نور آیتونه وائي چه پدے موقعه د موسیٰ علیه السلام او د فرعون ترمینځ خبرے اترے شویدي۔ فرعون ووئیل چه اے موسیٰ! ستاسو د دواړو رب څوك دے؟ نو موسیٰ علیه السلام جواب ورکړو۔ هغه دوباره ووئیل چه رب العالمین څوك وي؟ الخ۔ موسیٰ علیه السلام فرعون ته دا هم ووئیل چه بنی اسرائیل ما سره خپل وطن ته واپس کیدو دپاره پریده۔ فرعون دوی خپل غلامان جوړ کړي وو او د هغه ځای نه د وتلو نه ئې بند ساتلي وو۔ فرعون ووئیل چه که ته رشتینے ئې نو کومه نخه چه تا اُوس ذکر کړه هغه راوښایه۔ نو موسیٰ علیه السلام خپله امسا په زمکه ګوزار کړه چه په یو لوئي او یرونکي مار سره بدله شوه۔ او خپل لاس ئې د خپل جیب یا ترخ نه راویستو نو سپین او صفا جوړ شو او د هغے نه یو ښائسته رڼا راووتله چه هر سړي لیدله۔

ثُعْبَانٌ : لوی اژدها ده۔ دے ته په سورة نمل (١٠) او قصص (٣١) کښې جان (نرے مار) وئیلے

شویدے، وجه دا ده چه دا به ثعبان وو په جثه کښې او جان وو په حرکت او رفتار کښې، ددے وجه نه ئے هلته (كَاَنَّهَا جَآنٌّ) وئیلے دے۔ (بغوی) یا دا چه اول کښې به جان (نرے مار) ترے جوړ شو او د فرعون مخامخ به ترے ثعبان جوړیدو چه په هغه هیبت راولی۔

مُّبِيْنٌ: کښې اشاره ده چه دا ښکاره کیدو مار او په حقیقت کښې هم مار جوړ شو او خیال او نظر بندی نهٔ وه لکه څنګه چه په جادو کښې نظر بندی وی، دا د معجزے او جادو فرق دے چه معجزه د یو شی حقیقت بدلوی او جادو صرف خیال وی په حقیقت کښې پرے شے نهٔ بدلیږی۔

وَّنَزَعَ يَدَهٗ: یعنی لاس ئے ګریوان یا ترخ نه ننویستو نو بیا ئے راوویستلو نو هغه سپین شو، او پدے کښې څه نظر بندی نهٔ وه لکه په جادو کښې نظر بندی وی بلکه دلته د لاس حقیقت بدل شو، تلک سپین ترے جوړ شو، پدے کښې اشاره وه چه زما مخه به الله روښانه کوی۔

لِلنّٰظِرِيْنَ: پدے کښې اشاره وه چه دا سپینوالے ناشنا وو چه خلك ئے په تعجب کښې اچول۔ دا دواړه داسے معجزات وو چه په ظاهره کښې د سحر سره مشابه وو، وجه دا وه چه په هغه زمانه کښې داسے معجزات مناسب وو۔

| قَالَ الْمَلَاُ مِنْ قَوْمِ فِرْعَوْنَ اِنَّ هٰذَا لَسٰحِرٌ عَلِيْمٌ ﴿۱۰۹﴾ يُّرِيْدُ اَنْ يُّخْرِجَكُمْ |
|---|
| ووئیل غټانو د قوم د فرعون یقیناً دا خامخا جادوګر دے ډیر پوهه۔ اراده لری چه وباسی تاسو |
| مِّنْ اَرْضِكُمْ ۚ فَمَاذَا تَاْمُرُوْنَ ﴿۱۱۰﴾ قَالُوْٓا اَرْجِهْ |
| د زمکے ستاسو نه نو څه حکم کوئ (ددهٔ په باره کښې)۔ ووئیل دوی، مهلت ورکړه دهٔ ته |
| وَاَخَاهُ وَاَرْسِلْ فِى الْمَدَآئِنِ حٰشِرِيْنَ ﴿۱۱۱﴾ يَاْتُوْكَ بِكُلِّ سٰحِرٍ |
| او ورور ددهٔ ته او ولیږه په ښارونو کښې راجمع کونکی۔ رابه ولی تا ته هر جادوګر |
| عَلِيْمٍ ﴿۱۱۲﴾ وَجَآءَ السَّحَرَةُ فِرْعَوْنَ قَالُوْٓا اِنَّ لَنَا لَاَجْرًا |
| ډیر پوهه۔ او راغلل جادوګر فرعون ته، ووئیل دوی یقیناً مونږ لره به خامخا مزدوری وی |
| اِنْ كُنَّا نَحْنُ الْغٰلِبِيْنَ ﴿۱۱۳﴾ قَالَ نَعَمْ وَاِنَّكُمْ لَمِنَ الْمُقَرَّبِيْنَ ﴿۱۱۴﴾ |
| که شو مونږ غالبه۔ ووئیل فرعون، آؤ، او یقیناً تاسو به خامخا د نزدے کړے شوو نه ئے |

| قَالُوْا يٰمُوْسٰٓى اِمَّآ اَنْ تُلْقِيَ وَاِمَّآ اَنْ نَّكُوْنَ نَحْنُ الْمُلْقِيْنَ ﴿۱۱۵﴾ |
|---|
| (ما ته)۔ ووئیل دوی اے موسیٰ! یا وغورزوه ته او یا به شو موږ د غورزونکو نه۔ |
| قَالَ اَلْقُوْا ۚ فَلَمَّآ اَلْقَوْا |
| ووئیل موسیٰ (علیه السلام) وغورزوئ تاسو، نو هر کله چه وغورزو هغوی (امساګانے او رسئ)، |
| سَحَرُوْٓا اَعْيُنَ النَّاسِ وَاسْتَرْهَبُوْهُمْ وَجَآءُوْ بِسِحْرٍ عَظِيْمٍ ﴿۱۱۶﴾ |
| نو جادوئے وکړو په سترګو د خلقو او ویرول هغوی لره او راوړے ورو جادو لوئی۔ |

**تفسیر**: په سورة شعراء کښې راغلی دی چه دا خبره اول فرعون کړے وه روستو بیا سردارانو وکړه چه دا جادوګردے، ځکه چه سورة شعراء کښې اول د فرعون خبره ذکر ده، او دلته د مشرانو خبره ذکر ده ځکه چه د سیاق سره ددے زیات تعلق دے چه هغه د نبی د دعوت نه د عوام الناس انکار دے او چونکه په فرعون باندے هیبت زیات وو نو پدے وجه ئے هلته (اَنْ يُّخْرِجَكُمْ مِّنْ اَرْضِكُمْ بِسِحْرِهٖ) الفاظ زیات کړیدی۔

لَسٰحِرٌ عَلِيْمٌ: دا د جاهلانو خلکو سمدستی فتویٰ ده چه د تحقیق نه بغیر ئے لګوی۔ جادوئے ورته پدے وجه ووئیلو چه د عوامو په زړونو او دماغو د هغه معجزاتو اثر ونشی۔

يُرِيْدُ: پدے کښې دوی د موسیٰ (علیه السلام) د دعوت حقیقت بدلوی او د خلکو په دماغو کښې ئے غلط اړدی۔ او دا خبره ئے د اقتدار والو د غصه کولو دپاره وکړه۔ یعنی دا شخص نبی نهٔ دے چه تاسو الله ته رابلی بلکه ددهٔ مقصد پدے جادو سره ستاسو نه ملك او بادشاهی اخستل دی ځکه چه دے به خان سره ملګری پیدا کړی او په تاسو به غلبه وکړی او تاسو به ذلیله کړی او بادشاهی به درنه واخلی۔

فَمَاذَا تَاْمُرُوْنَ: فرعون سردارانو ته مخاطب شو او وے وئیل چه ستاسو څه رائے ده ما ته اُووایئ؟ نو ټولو د مشورے کولو نه روستو فرعون ته ووئیل چه موسیٰ (علیه السلام) او د هغه ورور هارون ته مهلت ورکړه او خلك په ټول ملك کښې ولیږه چه ماهران جادوګران راجمع کړی۔

په دغه زمانه کښې د مصر په زمکه کښې د جادو ډیره زیاته چرچه وه او جادوګرانو لوئی اهمیت لرلو، پدے وجه هغوی دا ګمان وکړو چه د موسیٰ کارنامه به هم د جادو د قبیلے نه

وی، او لوئی جادوګران به دا ماتولی شی۔ نو د ملك تمام جادوګران راجمع شو، او فرعون سره ئے دا شرط وکړو چه که دوی په موسیٰ غالب راشی نو دوی ته به د هغے مناسب انعام ورکوی۔ فرعون ووئیل چه آؤ، که دوی غالب راغلل نو دوی به په درباریانو او معززو خلکو کښې داخل شی۔

اَرْجِهْ : اَیْ اَخِّرْهُ۔ (ابن عباسؓ) یعنی مهلت ورکړه۔

اِحْبِسْهُ۔ (قتادةؒ) راښند کړه چه چرته لاړ نشی۔

اِنَّ لَنَا لَاَجْرًا : په کافر کښې دنیا پرستی وی پدے وجه په مناظره باندے دنیا طلب کوی۔

الْمُقَرَّبِیْنَ : یعنی مزدوری خو آسانه خبره ده، بلکه تاسو ته به زما تقرب او د ملك عهدے ملاویږی۔ ددے نه معلومه شوه چه اجر د تقرب نه ښکته درجه ده پدے وجه ددے امت د آخری مؤمنانو اجر به زیات وی د مخکنو نه لیکن مرتبه ئے د مخکنو نه ښکته ده۔

اَنْ تُلْقِیَ : جادوګرانو موسیٰ علیه السلام ته اختیار ورکړو چه که غواړے ته اول خپل کار ښکاره کړه یا به مونږ خپل کار وښایو۔ ګویا که د دوی په خپل ځان پوره اعتماد وو چه غلبه دوی ته حاصلیږی، اګر که روستو کرتب وښائی۔

دوی د موسیٰ علیه السلام ادب وکړو پدے وجه الله تعالیٰ دوی ته ایمان نصیب کړو۔

نو موسیٰ علیه السلام ووئیل چه اول تاسو د قوت مظاهره وکړئ۔ او پدے کښې حکمت دا وو چه کله خلق د دوی کارنامے ووینی نو بیا به الهی معجزه راښکاره کیږی او د خپل پوره قوت سره به د کتونکو په زړهٔ او دماغو اثر غورزوی۔ (ابن کثیرؒ)

بعض مفسرینو لیکلی دی چه پدے کښې یو قسم دهمکی وه چه آؤ، اول تاسو خپله جادوګری وښایئ بیا به وړینئ چه څنګه ذلت سره به تاسو مخامخ کیږئ ځکه چه جادو په معجزه کله هم غالب نشی راتلے۔ نو دوی د خلقو په سترګو جادو وکړو، خلقو ته پته ولګیده چه واقعی د دوی مخے ته ماران منډے وهی لکه چه الله تعالیٰ په سورة طه آیتونو (٦٦/٦٧) کښې فرمایلی دی :

﴿ فَاِذَا حِبَالُهُمْ وَعِصِیُّهُمْ یُخَیَّلُ اِلَیْهِ مِنْ سِحْرِهِمْ اَنَّهَا تَسْعٰی ۝ فَاَوْجَسَ فِیْ نَفْسِهٖ خِیْفَةً مُّوْسٰی، قُلْنَا لَا تَخَفْ اِنَّكَ اَنْتَ الْاَعْلٰی، وَاَلْقِ مَا فِیْ یَمِیْنِكَ تَلْقَفْ مَا صَنَعُوْا اِنَّمَا صَنَعُوْا كَیْدُ سٰحِرٍ وَلَا یُفْلِحُ السّٰحِرُ حَیْثُ اَتٰی ۝ ﴾

یعنی موسیٰ ته دا خیال راغلو چه د دوی رسئ او امساګانے د دوی د جادو په زور سره منډے وهی۔ نو موسیٰ علیه السلام په خپل زړهٔ کښې ویریدو، مونږ ووئیل چه هیڅ یره مهٔ کوه،

یقیناً ته به غالب او پورته کیږې، ستا په بنی لاس کښې چه کومه امسا ده دا په زمکه گوزار کړه دے دپاره چه د دوی ټول کړی کارونه تیر کړی۔ دوی چه څه خودلی دی دا د جادوگرو کرتب دے، او جادو چه چرته هم راشی نو کامیابیدے نشی)۔

سَحَرُوْٓا : یعنی نظرئے بند کړو او د شی حقیقت ئے په سترگو کښې بدل ښکاره کړو۔

وَاسْتَرْهَبُوْهُمْ : محمد بن اسحاقؒ وائی پنځلس زره ساحرانو صفونه وتړل او د هر ساحر سره رسئ او امساگانے وے، او موسیٰ علیه السلام د خپل ورور سره راووتو چه په امسا ئے تکیه وهلے تردے چه دغه ډلے ته راغے او فرعون په مجلس کښې وو د خپل مملکت د سردارانو سره۔ نو جادوگرانو رسئ گوزار کړے نو هغه داسے ماران جوړ شو لکه د غرونو په شان چه دغه میدان ئے ډک کړو چه په یو بل باندے سوریدل او د موسیٰ علیه السلام په سترگو هم اثر وشو۔

سُدّیؒ وائی چه ساحران څه دپاسه دیرش زره وو چه د هر یو سره رسئ او امسا وه۔

او عبد الله بن عباسؓ فرمائی: دوی پیر پری او اوږده لرگی گوزار کړل۔ (ابن کثیرؒ)۔

| |
|---|
| وَاَوْحَيْنَآ اِلٰى مُوْسٰٓى اَنْ اَلْقِ عَصَاكَ ۚ فَاِذَا هِىَ تَلْقَفُ |
| او وحی وکړه مونږ موسیٰ (علیه السلام) ته چه وغورزوه امسا خپله نو ناڅاپه هغے تیروَل |
| مَا يَاْفِكُوْنَ ﴿۱۱۷﴾ فَوَقَعَ الْحَقُّ وَبَطَلَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۱۸﴾ |
| هغه څه چه دوی جوړول۔ نو ښکاره شو حق او بیکاره شو هغه عملونه چه دوی کول۔ |
| فَغُلِبُوْا هُنَالِكَ وَانْقَلَبُوْا صٰغِرِيْنَ ﴿۱۱۹﴾ وَاُلْقِىَ |
| پس پړهٔ شول (فرعونیان) په دغه ځای کښې او واپس شول ذلیلان۔ او وغورزولے شو |
| السَّحَرَةُ سٰجِدِيْنَ ﴿۱۲۰﴾ قَالُوْٓا اٰمَنَّا بِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۱۲۱﴾ رَبِّ |
| جادوگران سجده کونکی۔ ووئیل دوی ایمان راوړے مونږ په رب العالمین، چه رب د |
| مُوْسٰى وَهٰرُوْنَ ﴿۱۲۲﴾ قَالَ فِرْعَوْنُ اٰمَنْتُمْ بِهٖ |
| موسیٰ او هارون (علیهما السلام) دے۔ ووئیل فرعون آیا ایمان راوړو تاسو په دهٔ باندے |
| قَبْلَ اَنْ اٰذَنَ لَكُمْ ۚ اِنَّ هٰذَا لَمَكْرٌ مَّكَرْتُمُوْهُ |
| مخکښې ددے نه چه اجازت وکړم تاسو ته یقیناً دا خامخا چل دے چه جوړ کړیدے تاسو |

فِی الۡمَدِیۡنَةِ لِتُخۡرِجُوۡا مِنۡهَاۤ اَهۡلَهَا ج فَسَوۡفَ تَعۡلَمُوۡنَ ﴿۱۲۳﴾

په ښار کښې دے دپاره چه وباسئ تاسو ددے نه وسیدونکی ددے نو زر دے چه پو هه به شئ۔

لَاُقَطِّعَنَّ اَیۡدِیَكُمۡ وَ اَرۡجُلَكُمۡ مِّنۡ خِلَافٍ ثُمَّ

خامخا پرے به کړم لاسونه ستاسو او خپے ستاسو رد وبدل بیا به

لَاُصَلِّبَنَّكُمۡ اَجۡمَعِیۡنَ ﴿۱۲۴﴾ قَالُوۡۤا اِنَّاۤ اِلٰی رَبِّنَا مُنۡقَلِبُوۡنَ ﴿۱۲۵﴾

خامخا په سولئ کړم تاسو ټول۔ ووئیل دوی یقیناً مونږ رب خپل ته ورګرځیدونکی یو۔

**تفسیر:** په هغه وخت کښې الله تعالیٰ خپل رسول موسیٰ علیه السلام ته د وحی په ذریعه حکم وکړو چه ستا په ښی لاس کښې کومه امسا ده دا ګوزار کړه، نو هغه دغسے وکړل او امسا د جادوګرانو تمام دروغژن ماران تیر کړل۔

**تَلۡقَفُ:** اَیۡ تَبۡتَلِعُ۔ (ټول ئے تیر کړل)۔ شعرانیؒ دا خبره کمزورے لیکلے ده چه د هغے نه ئے صرف جادو لرے کړو او امساګانے او پړی ئے خلکو ته ښکاره کړل، مګر دلته واثی چه دا ټول ئے تیر کړیدی۔ او ابن جریرؒ د ابن ابی بزةؒ نه نقل کړیدی چه دا اویا زره ساحران وو او د هریو سره امساګانے او اویا زره پړی وو۔ (ابن کثیرؒ)

**وَبَطَلَ:** یعنی محوه شو هغه عملونه چه دوی وکړل۔

پدے لیدو سره فرعون او د هغه کارکنان او د هغه د قوم خلق ذلیل او رسوا خپلو کورونو ته واپس شو او جادوګران د﴿آمَنَّا بِرَبِّ الۡعَالَمِیۡنَ رَبِّ مُوۡسٰی وَهَارُوۡنَ﴾ وئیلو سره په سجده پریوتل۔

ابن عباس رضی الله عنه وائی چه دغه امسا چه لویه اژدها ترے جوړه شوه، خولے ئے کولاوه کړه او په یو دم ئے سمدست ټول په ټوله د دوی رسئ او امساګانے په یو هړپ تیرے کړے۔ دا منظر چه جادوګرانو ولیدو نو پو هه شو چه دا آسمانی معجزه ده، کوم جادو نهٔ دے۔ ځکه چه دا د انسان په قدرت کښې نشته چه یو امسا دے دومره زیات مقدار کښې پړی او امساګانے وخوری، او بیرته دے ترے یوه امسا جوړیږی۔

معلومیږی چه ددے سره شا ته د الله قدرت موجود دے۔

دویم دا چه دوی له علم فائده ورکړه اګرکه د جادو علم وو ځکه چه دوی ته د سحر حقیقت معلوم وو چه پدے باندے د څیزونو حقیقت نهٔ بدلیږی او هرکله چه ددے امسا حالات ئے

ولیدل نو پوهه شو چه موسیٰ چه څه وائی دا حق دی۔ او دریمه بعیده وجه دا هم ده چه دوی د موسیٰ علیه السلام ادب کړے وو نو ایمان ورته نصیب شو۔
او بل ئے مخکښې نه انابت کړے وو چه دوی مشوره وکړه چه که دا شخص په حقه وی نو ایمان به پرے راوړو، او انابت د حق د ملاویدو ډیر ښه سبب دے۔
(د مبتدعینو دا طریقه غلطه ده چه د مناظرے نه مخکښې مشوره وکړی چه که هرڅنګه وی خو سرے به پړ کوو، دروغ به پرے وایو خو چه پړ شی)
وَأُلْقِيَ : دا ئے مجهول صیغه راوړه، ګویا که دوی مجبوره شو په سجده پریوتو ته څکه چه حق ورته ښکاره شو۔ او دے ته سجده د شکر وائی چه پدے کښې مقصد الله تعالیٰ ته عاجزی وی نو اودس او قبلے ته مخ کول هم ورله شرط نهٔ دے۔
بِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ : د خپل ایمان اظهار ئے وکړو۔ پدے مقام کښې ئے د مصلحت نه کار وانخستو چه ایمان به پټ کړو او بیا به خلکو ته دعوت ورکړو بلکه میدان ته راووتل څکه چه پدے وخت کښې اظهار د ایمان همدا مصلحت وو۔
رَبِّ مُوْسٰى وَهٰرُوْنَ : د تفسیر علماء لیکی چه دوی د «رب موسی وهارون» قید پدے وجه ولګولو چه فرعون لره خپل معبود ګنړونکی خلق دا ګمان ونکړی چه دوی فرعون ته سجده کړیده۔
قَالَ فِرْعَوْنُ اٰمَنْتُمْ بِهٖ : پدے کښې فرعون د خپل غم اظهار کوی چه ما نه به مو لړه اجازه خو طلب کړے وے۔ حال دا چه دا خبره ددهٔ غلطه ده، په ایمان او د حق په تابعداری کولو کښې د چا نه اجازے اخستل نهٔ وی۔
إِنَّ هٰذَا : دا اُوس طعن او تنقید کول او د دروغو بهتان ترل دی۔ په خپل ذلت او رسوائی باندے د پردے اچولو دپاره ئے ووئیل چه تاسو زما د اجازت نه بغیر په موسیٰ ایمان راوړو، داسے معلومیږی چه تاسو دلته نه مخکښې د موسیٰ سره ملاؤ شوے وئ او د یو مکمل سازش مطابق دلته راغلی یئ چه اوله کښې تاسو د موسیٰ په خلاف په ظاهره کښې خپله تیزی ښکاره کړئ او بیا هغه ته سرخکته کړئ، دے دپاره چه تاسو ټول په شریکه قبطیان ددے ځای نه وباسئ او د دوی ځایونه تاسو واخلئ، موسیٰ ستاسو بادشاه جوړ شی او تاسو د هغه سره وسیدل شروع کړئ، نو نژدے ده چه تاسو به خپل انجام ته ورسیږئ۔ (نو الله تعالیٰ د فرعون د مقصد خلاف همدغه شان وکړل)
د ابن مسعودؓ او ابن عباسؓ وغیره نه نقل دی چه موسیٰ علیه السلام د جادوګرانو مشر سره

ملاؤ شو چه که زهٔ غالبه شوم آیا ته به په ما باندے ایمان راوړے؟ هغه ووئیل : زهٔ به داسے جادو راوړم چه په هغه باندے هیڅ قسمه جادو نشی غالبه کیدے خو که تا ددے نه قوی راوړو نو خامخا زهٔ به په تا ایمان راوړم او دا گواهی به کوم چه تهٔ په حقه ئے او فرعون پدے وخت کښې دواړو ته کتل نو پدے وجه ئے دا تهمت ولگولو ۔ (ابن کثیرؒ)

**فَسَوْفَ** : دا تهدید دے۔ او دا درے واړه کارونه همیشه د کافرانو مجرمانو طریقه ده۔

حافظ ابن کثیرؒ لیکلی دی چه دا هم د فرعون سازش وو، ځکه چه موسیٰ علیه السلام خو د مدین نه راتلو سره سمدست د فرعون خوا ته راغلے وو او خپل دعوت ئے پیش کړے وو او د هغه په مطالبه ئے معجزات پیش کړی وو، نو هغه ته د جادوگرو سره د ملاویدو کومه موقعه ملاؤ شوه؟ او جادوگران خو د مختلفو علاقو نه راجمع شوی وو او د هغوی پوره خواهش وو چه هغوی غالبه راغلی وے۔

موسیٰ علیه السلام د دوی نه هیڅوک هم نهٔ پیژندلو او فرعون دا هر څه پیژندل لیکن هغه خپل رعایا بیوقوف جوړول غوختل لکه چه الله سورة زخرف آیت (٥٤) کښې فرمایلی دی : ﴿ فَاسْتَخَفَّ قَوْمَهٗ فَاَطَاعُوْهُ ﴾ (فرعون خپل قوم سپك كړل او وے خویول نو هغوی ددهٔ خبره ومنله)۔ او د هغه قوم نه لوئی جاهلان او گمراهان څوك كیدے شی چه هغوی ته فرعون کله ووئیل : ﴿ اَنَا رَبُّكُمُ الْاَعْلٰى ﴾ (زهٔ ستاسو د ټولو نه لوئی رب یم) نو د هغه خبره ئے ومنله ؟!۔

**لَاُقَطِّعَنَّ** : د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دے چه فرعون دا وعده سرته ورسوله ځکه چه ظالم بادشاه وو او زور ورسره وو۔ نو فرعون اول هغه شخص وو چه ردو بدل ئے خپے لاسونه پریکړل او دوی ئے په سولئ کړل۔ آه۔ (ابن کثیرؒ)

**قَالُوْٓا اِنَّآ اِلٰى رَبِّنَا مُنْقَلِبُوْنَ** : یعنی که نن تهٔ مونږ سره داسے معامله وکړے نو الله به تا نهٔ پریدی، ستا د عمل بدله به تا ته ضرور درکوی او مونږ ته چه پدے لاره کښې کوم تکلیف رسیږی ددے په بدله کښې به په مونږ احسان وکړی۔ مفسرینو لیکلی دی چه فرعون دوی ته د دنیا د عذاب دهمکی ورکړه نو هغوی دهٔ ته د آخرت د عذاب دهمکی ورکړه۔

| وَمَا تَنْقِمُ مِنَّآ اِلَّآ اَنْ اٰمَنَّا بِاٰيٰتِ رَبِّنَا |
| --- |
| او بد نهٔ گنړے تهٔ زمونږ نه مگر دا خبره چه ایمان راوړے مونږ په آیتونو د رب زمونږ |

لَمَّا جَآءَتۡنَا ؕ رَبَّنَآ اَفۡرِغۡ عَلَيۡنَا صَبۡرًا

هرکله چه راغلل مونږ ته، اے ربه زمونږ راتوئی کړه په مونږ باندے صبر

وَّتَوَفَّنَا مُسۡلِمِيۡنَ ﴿۱۲۶﴾

او وفات کړه مونږ مسلمانان۔

**تفسیر** : دا مدح مشابه بالذم ده یعنی په مونږ کښې هیڅ عیب نشته مګر دا یو عیب شته چه مونږ په خپل رب ایمان راوړو او ایمان راوړل خو عیب نهٔ دے نو په مونږ کښې هیڅ قِسمه عیب نشته۔ یعنی ستاسو په نیز چه زمونږ کوم عیب دے، هغه زمونږ د ټولو نه لویه خوبي او صفت دے۔

رَبَّنَآ اَفۡرِغۡ : اُوس د الله نه مدد غواړی، فرعون چه د دوی نه لاسونه او خپے پریکولے په هغه وخت کښې دوی د ثابت قدمئ او بنانسبته خاتمے دعا وکړه او داسے وخت کښې دعا ډیره زر تاثیر لری۔ او فرعون ته ئے ووئیل : ﴿ فَاقۡضِ مَاۤ اَنۡتَ قَاضٍ ؕ اِنَّمَا تَقۡضِیۡ هٰذِهِ الۡحَیٰوةَ الدُّنۡیَا ؕ اِنَّاۤ اٰمَنَّا بِرَبِّنَا لِیَغۡفِرَ لَنَا خَطٰیٰنَا وَمَاۤ اَکۡرَهۡتَنَا عَلَیۡهِ مِنَ السِّحۡرِ ؕ وَاللّٰهُ خَیۡرٌ وَّاَبۡقٰی ۝ ﴾۔

یعنی (اُوس چه ته څه کونکے ئے وکړه، ستا حکم صرف پدے دنیاوی ژوند کښې چلیږی، مونږ خو پدے امید په خپل رب ایمان راوړو چه هغه به زمونږ ګناهونه معاف کوی او هغه چه تا په مونږ د جادو په کولو زور کړیدے (هغه به هم راته معاف کړی) او الله ډیر غوره او همیشه باقی پاتے کیدونکے دے) (طه : ۷۲/۷۳)۔

حافظ ابن کثیرؒ لیکلی دی چه (د الله مشیت ته وګوره) چه سهار وخت کښې دوی جادوګران وو او مابنام کښې د الله نیکان او شهیدان بندګان جوړ شو، آه۔

پدے کښې الله تعالیٰ صحابه کرامؓ او د امت نورو مومنانو ته تلقین ورکړیدے چه په تاسو به هم داسے احوال راځی نو د الله نه به مدد غواړئ۔ ددے دعا په برکت الله تعالیٰ دے نوی مسلمانانو ته ډیر تثبت او قوت ورکړو او ددے مصیبت برداشت ئے وکړو۔

وَّتَوَفَّنَا مُسۡلِمِيۡنَ : دا دلیل دے چه ایمان او اسلام یو شے دے او دلیل دے چه د ټولو انبیاء علیهم السلام دین، اسلام وو۔

وَقَالَ الۡمَلَاُ مِنۡ قَوۡمِ فِرۡعَوۡنَ اَتَذَرُ مُوۡسٰی وَقَوۡمَهٗ

او ووئیل غټانو د قوم د فرعون نه آیا پریږدے ته موسیٰ او قوم د هغه

لِيُفْسِدُوْا فِي الْاَرْضِ وَيَذَرَكَ وَاٰلِهَتَكَ ؕ قَالَ

دے دپاره چه فسادونه وکړي په زمکه کښې او پریږدي تا او معبودان ستا، ووئیل فرعون،

سَنُقَتِّلُ اَبْنَآءَهُمْ وَنَسْتَحْيٖ نِسَآءَهُمْ ۚ وَاِنَّا فَوْقَهُمْ قٰهِرُوْنَ ﴿۱۲۷﴾

زر دے چه قتل به کړو ځامن د دوی او ژوندئ به پریږدو زنانه د دوی او یقیناً مونږ دپاسه د دوی زورور یو۔

**تفسیر** : د موسیٰ ؑ د کامیابئ او د جادوګرانو د ایمان راوړو نه روستو د بنی اسرائیلو شپږ لاکهه خلقو په موسیٰ ؑ ایمان راوړو، د حالاتو دے انقلاب فرعون او د هغه درباریان وخوزول پدے وجه درباریانو فرعون له د موسیٰ ؑ او د مسلمانانو په خلاف راوپارولو او ورے وئیل چه که دوی داسے آزاد پریخودلے شی نو دا خلق به ستا رعایا خراب کړی او په ملك کښې به فساد راپورته کړی او تا او ستا معبود به پریدی او د موسیٰ د رب عبادت ته به دعوت ورکړی۔

لِيُفْسِدُوْا : دلته د فساد نه تفرق او اختلاف مراد دے،

فرعون د هغوی خبره ومنله او ورے وئیل چه مونږ به د دوی هلکان وژنو او د دوی ښځے به د خپل خدمت دپاره ژوندئ پریدو۔ بنی اسرائیل د فرعونیانو دلاسه دوه ځل د قتل او مرګ سره مخامخ شول، (دوه امتحانه وو)۔ اول ځل د موسیٰ ؑ د ولادت نه مخکښې، کله چه فرعون حکم کړے وو چه په بنی اسرائیلو کښې پیدا کیدونکے هر ماشوم دے قتل کړے شی دے دپاره چه هغه سړے پیدا نشی چه د هغه په لاسونو سره به د نجومیانو د اطلاع مطابق د فرعون بادشاهی ختمیدل وی۔ لیکن موسیٰ (ؑ) پیدا شو او الله د هغه حفاظت وکړو او د فرعون چل نیست ونابود شو۔ او دویم ځل اوس چه کله دۀ ته او دده بادشاهئ ته دویم ځلی همغه خطره پیوسته شوه لکه څنګه چه مخکښې ځل پیوسته شوے وه۔ پدے وجه هغه د بنی اسرائیلو د بچو د وژلو عام حکم جاری کړو، لیکن پدے ځل هم الله بنی اسرائیلو ته عزت ورکړو او هغه او د هغه فوج ئے ذلیل کړو او په دریاب کښې ئے دوب کړل۔

وَاٰلِهَتَكَ : حسن بصریؒ وائی چه د فرعون یو معبود وو چه هغه به ئے پټ عبادت کولو۔ د فرعون په امر به د بتانو او د چیلو (بزو) عبادت کیدو۔ او هغوی کښې د غوا عبادت هم

وو، کله چه به ئے بنیانسته شان غوا ولیده نو فرعون به ورته د عبادت حکم وکړو. (ابن کثیر)
پدے وجه بنی اسرائیلو د غوا عبادت د فرعونیانو نه زده کړے وو.
او مصریانو به د نمر عبادت هم کولو او هغے ته به ئے په خپله ژبه کښې (رَعْ) وئیلو لکه د فرعون نوم کښې هم دغه لفظ اختلے شویدے نو فرعون د دوی په نیز د نمر نه راوتے او د نمر خوی ته وئیلے شی. لکه د مصریانو نه په تاریخ کښې راغلی دی چه هغوی به فرعون ته سَلِيْلُ الْإِلٰه (رَعْ) وئیلو او دا به ئے وئیل چه اله مصر ته وکتل نو منفتاح (د فرعون اصلی نوم دے) ئے وزیرولو او د مصر بادشاه ئے کړو. (المنار)
او دلته ئے فرعون ته نسبت وکړو ځکه چه دغه معبودان د فرعون په امر مقرر وو. نو چا چه به د دوی عبادت کولو، فرعون به خوشحاله وو او چا چه به نۀ کولو فرعون به خفه کیدو.
په یو قراءت کښې (وَاِلٰهَتَكَ) دے، یعنی ستا عبادت پریږدی. ددے نه معلومیږی چه فرعون مُعَطِّل نۀ وو، د الله منکر نۀ وو بلکه د هغه سره ئے شرك کولو.
وَنَسْتَحْيٖ نِسَآءَهُمْ : ځکه د زنانو ډیر والے هم لوی مصیبت دے چه سړی کم وی او زنانه ډیرے وی نو پدے سره بې حیائی زیاتیږی.
فَوْقَهُمْ قٰهِرُوْنَ : فرعون په مناظره کښې مغلوب او عاجز شو لیکن سره ددینه خپل ځان غالب ګنړی، دا نهایت بې عقلی او د باطل پرستو طریقه ده.

| قَالَ مُوْسٰى لِقَوْمِهِ اسْتَعِيْنُوْا بِاللّٰهِ وَاصْبِرُوْا ج اِنَّ الْاَرْضَ لِلّٰهِ قف |
|---|
| ووئیل موسیٰ (عليه السلام) قوم خپل ته، مدد طلب کړئ په الله او صبر کوئ، یقیناً زمکه د الله ده |
| يُوْرِثُهَا مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ ط وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِيْنَ ﴿۱۲۸﴾ |
| په میراث کښې ئے ورکوی چا له چه وغواړی د بندګانو خپلو نه او ښه انجام د متقیانو دپاره دے |
| قَالُوْٓا اُوْذِيْنَا مِنْ قَبْلِ اَنْ تَاْتِيَنَا وَمِنْ بَعْدِ |
| ووئیل دوی، تکلیف راکړے شویدے مونږ ته مخکښې د راتللو ستا نه مونږ ته او روستو |
| مَا جِئْتَنَا ط قَالَ عَسٰى رَبُّكُمْ اَنْ يُّهْلِكَ |
| د راتللو ستا نه مونږ ته. ووئیل موسیٰ نزدے دے رب ستاسو چه هلاك به کړی |

عَدُوَّكُمۡ وَيَسۡتَخۡلِفَكُمۡ فِي ٱلۡأَرۡضِ فَيَنظُرَ كَيۡفَ تَعۡمَلُونَ ﴿١٢٩﴾

دشمن ستاسو او نائبان به کړي تاسو په زمکه کښې نو ګوري به چه څرنګ عملونه کوئ.

**تفسیر** : کله چه فرعون د بنی اسرائیلو د بچو د وژلو فیصله وکړه، او موسیٰ ﷺ ته اطلاع وشوه نو هغوی خپل قوم لره الله طرف ته د رجوع کولو، د هغه د مدد غوختلو او په هغه د بهروسے کولو او صبر کولو نصیحت وکړو ځکه چه په هر حال کښې د مؤمن تعلق د الله سره وی. د هغه یقین وی چه د چا مددګار الله وی نو د هغه یو ویښته څوک بے ځای کولے نشی.

پدے مقام کښې د صبر او تقویٰ نه علاوه بل هیڅ کار فائده نهٔ ورکوی ځکه چه ظاهری هیڅ اسباب نشته چه د فرعون په شان ظالم نه پرے ځان خلاص کړی.

دے نه روستو موسیٰ ﷺ بنی اسرائیلو ته په اشاره سره زیرے ورکړو چه آخری غلبه به تاسو ته حاصلیږی او د زمکے سرداران به فرعونیان نهٔ بلکه تاسو یئ، ځکه چه د زمکے مالك الله دے، هغه چه چا له غواړی د هغے وارث جوړوی.

**قَالُوٓا أُوذِينَا مِن قَبۡلِ** : مفسرینو ددے جملے دوه مطلبونه بیان کړیدی :

(۱) یو دا چه دا د شجاعت (بهادرئ) کلمه وه چه مونږ په مصیبتونو عادت یو، ستا د راتللو نه مخکښې هم مونږ مصیبتونه برداشت کړیدی او ستا د راتللو نه روستو هم، نو خیر دے دا مصیبتونه ډیرے وی.

(۲) لیکن مشهوره دا ده چه دا د نا امیده او شکست خورده او شکایتونو والا کلمه ده.

دوی ووئیل چه زمونږ مطلب دا وو چه تهٔ به راشے په مونږ به راحت راشی او مصیبتونه به لری شی مګر ستا په وجه نور مصیبتونه زیات شو (لکه بعض خلك وائی چه مونږ دینداره شو نو مونږ باندے مصیبت ولے راځی؟)

نو دوی ووئیل چه پدے زمکه کښې مونږ پریشان یو، ستا د پیدائش نه مخکښې زمونږ بچی پدے وجه قتل شویدی چه چرته موسیٰ پیدا نهٔ شی چه د هغه په لاسونو به د فرعون مملکت ختمیدل وو. او اُوس کله چه ته نبی راولیږلے شوے، بیا هم زمونږ بچی قتل کیږی دے دپاره چه زمونږ وجود ختم کړے شی.

**قَالَ عَسَىٰ رَبُّكُمۡ** : نو موسیٰ ﷺ چه مخکښې کوم زیری طرف ته اشاره کړے وه، هغه ئے ښکاره ذکر کړو چه الله تعالیٰ به نزدے ستاسو دشمنان هلاك کړی او تاسو ته به د زمکے

سیادت (مشری) درکړی۔ نو الله تعالیٰ د هغه وعده رشتینی وخودله۔ داؤد او سلیمان علیهما السلام د مصر بادشاهان شو۔ او د یوشع بن نون علیه السلام په قیادت کښې بیت المقدس فتح شو، او الله تعالیٰ فرعون او د هغه قوم په دریاب کښې ډوب کړل او اسرائیلیانو ته ئې د هغوی نه نجات ورکړو۔

فَيَنظُرَ كَيْفَ تَعْمَلُونَ : مفسرین لیکی چه پدې خبره کښې د موسیٰ علیه السلام یو بل امتحان طرف ته اشاره وه چه هغې ته نِعْمَةُ السَّرَّاء وائی یعنی د نعمتونو فراخی به راشی، نو په هغې کښې د صبر نه کار اخستل د مصیبت د صبر نه هم سخت دی، لکه په همدې امتحان کښې بنی اسرائیل ناکام شویدی، په مصیبتونو خو ئې صبر وکړو لیکن د نعمتونو نه ئې صبر نشو کولے، عملونه ئې خراب شو۔

| |
|---|
| وَلَقَدْ أَخَذْنَآ اٰلَ فِرْعَوْنَ بِالسِّنِيْنَ وَنَقْصٍ مِّنَ الثَّمَرٰتِ لَعَلَّهُمْ |
| او یقیناً راونیول مونږ فرعونیان په قحطونو او په کموالی د میوو دے دپاره چه دوی |
| يَذَّكَّرُوْنَ ﴿۱۳۰﴾ فَإِذَا جَآءَتْهُمُ الْحَسَنَةُ قَالُوْا لَنَا هٰذِهٖ ۚ |
| نصیحت واخلی۔ نو هرکله چه به راغلو دوی ته ښهٔ حالت، وئیل به دوی چه دا زمونږ دپاره دے |
| وَإِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَّطَّيَّرُوْا بِمُوْسٰى |
| او که وبه رسیدو ته دوی معمولی شان تکلیف نو بدفالی به ئې نیوله په موسیٰ |
| وَمَنْ مَّعَهٗ ؕ أَلَآ إِنَّمَا طٰٓئِرُهُمْ عِنْدَ اللّٰهِ وَلٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا |
| او په ملګرو د هغه، خبردار، یقیناً سپیرهٔ والے د دوی د الله سره دے او لیکن ډیر د دوی نه نهٔ |
| يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۳۱﴾ وَقَالُوْا مَهْمَا تَأْتِنَا بِهٖ مِنْ اٰيَةٍ |
| پوهیږی۔ او ووئیل دوی هر هغه شے چه تهٔ راوړے مونږ ته هغه دیوے نخے نه |
| لِّتَسْحَرَنَا بِهَا ۙ فَمَا نَحْنُ لَكَ بِمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۳۲﴾ |
| دے دپاره چه جادو وکړے په مونږ باندے په هغې سره نو نهٔ یو مونږ په تا ایمان راوړونکی۔ |

**تفسیر** : د جادوګرانو د شکست خوړلو او د هغوی د ایمان راوړو نه روستو فرعون ته دا خبره د نمر په شان روښانه شوه چه موسیٰ علیه السلام د الله نبی دے، او د دنیا او آخرت خیر ئې په

همدے کښې وو چه په دۀ ئے ایمان راوړے وے لیکن د غرور او تکبر او د دروغو معبودیت په گمان کښې په کفر او عناد مضبوط پاتے شو۔

نو الله تعالیٰ په هغوی باندے د هغوی د متوجه کولو دپاره لړ امتحانات راوستل، (لکه د کافرو سره الله تعالیٰ داسے کار کوی چه کله هغوی ایمان والو ته تکلیفونه ورکوی نو الله سیلابونه، زلزلې راولی، جهازونه ورله گوزار کړی نو که هغوی کښې هوښیارتیا وی نو زر توبه وباسی چه زمونږ کار غلط دے، لیکن دے وخت کښې ظالمان وائی چه دا فنی خرابی وه، یا د هواء خرابی وه، یا په زمکه کښې گیس جمع شوے وو هغے بلاسټ وکړو نو زلزلے راپیدا شوے، او د خپل عمل خرابی خو هیڅکله یاده نکړی، دغه شان فرعونیان هم وو)

اول ئے دا او ددۀ قوم په قحط سالئ کښې اخته کړو چه کیدے شی پدے کښې ورته د توبے توفیق ملاؤ شی لیکن هیڅ فائده ونشوه، نو الله تعالیٰ دوی د خوشحالئ او د امن او د عافیت د امتحان په کړئ کښې واچول چه ددے نتیجه دا شوه چه دوی په استکبار کښې نور مخکښې لاړل۔ کله چه قحط سالی راغله نو وے وئیل چه دا ټول د موسیٰ او د بنی اسرائیلو په وجه کیږی۔ او کله چه به خوشحالی راغله نو وئیل به ئے چه مونږ خو ددے حقدار یو۔ پدے وجه الله تعالیٰ ددے رد وکړو او وے فرمایل چه د ټولو کارونو مدبر او د هر شیٔ خالق صرف الله دے، او خوشحالی او قحط سالی ټول د هغه په اختیار کښې دی۔ د موسیٰ ﷷ او د بنی اسرائیلو په وجود سره بد فالی نیول ستاسو د کفر او عناد نتیجه ده۔

الغرض د دوی کفر او غرور په زیاتیدو شو تردے چه موسیٰ ﷷ ته ئے ووئیل چه ته که هر څومره نخے راوړے نو مونږ په تا ایمان نۀ راوړو، کله چه د دوی کفر او عناد آخر سر ته ورسیدو نو موسیٰ ﷷ دواړه لاسونه پورته کړل او الله ته ئے دعا وکړه چه اے الله! د فرعون سرکشی د حد نه زیاته شویده، او فرعونیانو د هیڅ لوظ او عهد لحاظ نۀ دے ساتلے۔ پدے وجه اُوس خو تۀ دوی ته داسے سزا ورکړه چه دا خلق زما د قوم دپاره او د راتلونکو خلقو دپاره د عبرت نخه شی۔ نو الله تعالیٰ د هغه دعا قبوله کړه او سخت طوفان راغلو او نزدے وه چه په هغے سره هلاک شوی وے نو په منډه د موسیٰ ﷷ خوا ته راغلل او هغه نه ئے د دعا غوښتنه وکړه چه دا عذاب روستو شی۔ او وعده ئے وکړه چه که عذاب روستو شو نو ایمان به راوړی، او بنی اسرائیل به د هغه سره پریږدی، لیکن کله چه به عذاب واوړیدو، او موسیٰ ﷷ هغوی ته وعده رایاده کړه نو انکار ئے وکړو او په خپل کفر همیشه پاتے شو، نو الله تعالیٰ د ملخانو فوج راولیږلو چه هغوی د دوی د فصلونو او ونو او میوو تباه کول

شروع کړل. کله ئې چه دا حال ولیدو بیا موسیٰ ﷺ ته په منډه راغلل او د مخکښې په شان د ایمان راوړو وعده ئې وکړه، لیکن د عذاب د اوریدو نه روستو ئې بیا انکار وکړو.

دغه شان الله تعالیٰ د مسلسل سیړو او چندخانو او وینې په عذاب کښې اخته کړل او هر ځل به ئې د توبې وعده کوله او د عذاب د اوریدو نه روستو به ئې د ایمان راوړو نه انکار کولو. دا طریقه د دوی پدې وجه شوه چه دا خلق واقعي مجرمان او فساد گر وو، او د هر خیر نه محروم وو.

جَآءَتۡهُمُ الۡحَسَنَةُ : حسنه ئې معرفه راوړه او سیئه نکره، وجه دا ده چه د حسنې (ښه حالت) راتلل به ډیر وو او د سیئه راتلل به کله نا کله وو.

لَنَا هٰذِهٖ : یعنې مونږ ددې لائق یو نو ځانونه به ئې د فراخئ او خوشحالئ او ښه حالت حقدار گنړل او د الله د طرفنه ئې فضل او رحمت نۀ گنړلو.

يَّطَّيَّرُوۡا : د تطیّر نه مراد دا دې چه هرکله به په دوی باندې مصیبتونه رادیر شو، نو دوی به خپل بد عمل ته نسبت نکولو بلکه دا به ئې وئیل چه دا د موسیٰ ﷺ او د هغه د ملگرو سپیرۀ والې دې چه دا راغلې دې، په مونږ باندې دا مصیبتونه شروع دی. او په حدیثونو کښې د بد فالئ نیولو نه منع راغلې ده [لَا طِيَرَةَ] په اسلام کښې بد فالي نیول نشته. (بخاری: ۵۷۵٤)

طٰٓئِرُهُمۡ :(اَیۡ نَصِيۡبُهُمۡ مِنَ الۡعَذَابِ وَحَظُّهُمۡ) . یعنې د دوی د عذابونو برخې د الله سره دی، چه هغه پرې الله تعالیٰ د دوی د گناهونو د وجه نه راولي.

ددې نه معلومیږي چه همیشه باطل پرستو نیکانو خلکو ته سپرۀ وئیلې دي او د خپلې بد حالئ نسبت ئې هغوی ته کړېدې لکه په سورة یس (۱۸) آیت کښې دي.

عِنۡدَ اللّٰهِ : یعنې د الله د طرفنه دي. یا د الله په تقدیر کښې دي.

د سعید بن جبیرؒ او محمد بن مُنۡكَدِرؒ نه نقل دي چه د فرعون بادشاهي څلور سوه کاله وه، او ژوند ئې شپږ سوه شل کاله وو او دۀ په خپل ژوند کښې هیڅ مصیبت نۀ وو لیدلې او که په دۀ باندې په دغه موده کښې یوه ورځې لوږه یا یوه شپه تبه یا یو ساعت درد راغلې وې نو هیڅکله به ئې د ربوبیت دعوه نۀ وې کړې. (نو څکه ئې په موسیٰ ﷺ باندې بد فالي نیوله). (بغوی ۲۶۸/۳)

لَا يَعۡلَمُوۡنَ : اکثر خلک د حوادثو او مصیبتونو نسبت ظاهري اسبابو او اهل حقو ته کوي او د الله نه غافل وي، او د هغه تقدیر نۀ مني او خپلو گناهونو ته نۀ گوري.

مَهْمَا تَأْتِنَا : دا د دوی انتهائی ضد دے چه هرے معجزے ته به ئے جادو وئیله۔ او دا به ئے وئیل چه که ته مونږ ته هر څومره دلائل راوړے خو نه ئے منو۔

مَهْمَا : کلمه اسم شرط دے چه په عموم باندے دلالت کوی (اَیْ اِنْ تَأْتِنَا بِشَیْءٍ) یعنی که چرته مونږ ته هره نوعه د جادو راوړے۔ (المنار) یا په معنیٰ د (اَیُّمَا شَیْءٍ تَأْتِنَا بِهٖ) هر هغه شے چه ته ئے مونږ ته راوړے۔ (التحریر) نو مهما په معنیٰ د اَیُّ شَیْءٍ دے۔

لِتَسْحَرَنَا : سحر په معنیٰ د اړولو سره دے۔ ١- یعنی چه ته په هغے سره مونږ (د جادو په شان په تاثیر کښ) اړوے د خپل دین نه۔

٢- یا پدے وجه چه ته په مونږ باندے په هغے سره جادو وکړے۔

| فَاَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ الطُّوْفَانَ وَالْجَرَادَ وَالْقُمَّلَ وَالضَّفَادِعَ وَالدَّمَ اٰيٰتٍ |
|---|
| نو راولیږلو مونږ په دوی باندے طوفان او ملخان او سپږے او چیندخان او وینه نښے وے |
| مُّفَصَّلٰتٍ قف فَاسْتَكْبَرُوْا وَكَانُوْا قَوْمًا مُّجْرِمِيْنَ ﴿۱۳۳﴾ وَلَمَّا وَقَعَ |
| جدا جدا نو لوئی وکړه دوی او وو دوی قوم مجرمان۔ او هرکله چه به واقع شو |
| عَلَيْهِمُ الرِّجْزُ قَالُوْا يٰمُوْسَى ادْعُ لَنَا |
| په دوی باندے عذاب (ددے عذابونو نه) وئیل به دوی اے موسیٰ! وغواړه مونږ له |
| رَبَّكَ بِمَا عَهِدَ عِنْدَكَ ج لَئِنْ كَشَفْتَ عَنَّا الرِّجْزَ |
| د رب خپل نه په سبب د هغے چه وعده ئے کړیده تا سره که لرے کړو تا زمونږ نه دا عذاب |
| لَنُؤْمِنَنَّ لَكَ وَلَنُرْسِلَنَّ مَعَكَ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ﴿۱۳۴﴾ |
| (په دعا سره) خامخا ایمان به راوړو په تا او خامخا لیږو به تا سره بنی اسرائیل۔ |
| فَلَمَّا كَشَفْنَا عَنْهُمُ الرِّجْزَ اِلٰٓى اَجَلٍ |
| نو هرکله چه به لرے کړو مونږ د دوی نه عذاب تر هغے نیتے پورے |
| هُمْ بٰلِغُوْهُ اِذَا هُمْ يَنْكُثُوْنَ ﴿۱۳۵﴾ |
| چه دوی به رسیدونکی وو هغے ته، دغه وخت به دوی ماتولو لوظ لره۔ |

**تفسیر** : اَلطُّوْفَانَ : په لغت کښ هغه شی ته وائی چه په یو شی باندے راتاو شی او

هغه پټ کړي، او غالب استعمال ئے په طوفان د اوبو کښې دے، برابره ده د آسمان نه وي او که د زمکے نه۔ او دارنګه په هغه څه کښې هم استعمالیږي چه د آسمان نه په کثرت رانازل شي او زمکه پټه کړي۔ (المنار)

د طوفان نه مراد سخت تیز باران وو چه هغه فصلونه او میوه جات تباه کړل او انسانانو کښې مرګونه پیدا شول۔ یا دا چه دریائے نیل به ئے پرے راواړولو چه د دوي په فصلونو او علاقو کښې دومره اوبه ودریدلے چه د دوي سینے ته به رسیدلے او کورونو ته به ئے دننه راننوتے او ناشنا لا دا وه چه پدے کښې به د بني اسرائیلو کورونه ښه په امن وو، د هغوي کورونو ته به اوبه نۀ ننوتے، نو دا ناشنا معجزه پدے وجه هم ده چه ددے نه دوي ته ښکاره معلومه شوه چه بني اسرائیل په حقه دي او مونږ په باطله یو۔

مجاهد وائي: د طوفان نه مراد اوبه او طاعون (تنکئ) بیماري ده۔ او ځیني وائي مرضونه او خصوصي د شري بیماري ده۔ او ابن عباس ﷠ فرمائي چه دا ډیروالے د مرګونو وو په دوي کښې۔ آه۔ (المنار) (اګرکه استیصالي عذاب پرے روستو راغلے وو)

صاحب المنار وائي چه غوره قول دا دے چه ددے نه مراد بیحده زیات باران دے لکه دا د لغت سره موافقه خبره ده، او د تورات نه هم ددے تائید کیږي، بیا ئے د تورات عبارت ذکر کړیدے۔

د ((جراد)) نه مراد مشهور ملخان دي چه د دوي فصلونه ئے تباه کول، په اسلام کښې ددے خوړل جائز دي، لیکن رسول الله ﷺ به دا نۀ خوړل لکه څنګه چه ضب یعنی خادمئ به ئے نۀ خوړله۔ صاحب المنار د تورات په حواله ذکر کړیدي چه الله د مشرق د طرفنه داسے هوا راولیږله چه په هغے سره ئے ملخان د مصر زمکے ته راوشړل نو هغوي ټوله زمکه پټه کړه او ټولے ګیاه ګانے ئے وخوړلے او د ګلئ نه روستو چه د ونو کومے میوے پاتے وے هغه ئے د پانړو سره وخوړلے تردے چه په مخ د زمکه د مصر باندے هیڅ شینکي په ونو کښې پاتے نشوه، نۀ په صحراء د مصر کښې۔ نو فرعون په خپله خطائي اقرار وکړو او د موسیٰ او هارون (علیهما السلام) نه ئے وغوښتل چه دوي معاف کړي او د دوي رب ته شفاعت وکړي چه دا هلاکت ترے لرې کړي نو هغوي دا درخواست منظور کړو نو الله د مغرب د طرف نه هوا راولیږله چه ټول ملخان ئے بحر قلزم ته ګوزار کړل۔ المنار ۹/ ۸۰)

د ((قُمّل)) نه مراد سپږے او سپږئ دي چه په غنمو او د دوي په نورو دانو کښې پیدا شوے وے۔ (ابن عباس)۔ سپږه هم ډیر لوي مصیبت دے۔ بعض خلقو ددے نورے معاني هم بیان

کړيدي. لکه ابن جريرؒ وائي چه دا داسې حيوان وو چه د سپړې مشابه وو او اوښان به ئې خوړل. او د ابن عباسؓ نه يو بل روايت دا دې چه دا واړه واړه ملخان وو چه وزرې ئې نهٔ لرلې.
(مجاهدؒ، عکرمهؒ، قتادهؒ)

سعيد بن جبيرؒ او حسن بصريؒ وائي چه دا واړه واړه تور تور حيوانات وو. (ابن کثيرؒ)

امام راغبؒ وائي چه دا واړه مچان وو لکه دا خبره د تورات د عبارت هم موافقه ده. چه موسیٰ علیه السلام فرعون لره ويرولو چه مچان به ددهٔ کورونو او ددهٔ د غلامانو او د ټول قوم کورونو ته ننوزي او هغه به خرابوي او کوم بني اسرائيل چه په جاشان علاقه کښې وسيږي هلته به دا مچان نهٔ داخليږي نو همدغه شان وشوه او زمکه د مچانو په تاثير سره خرابه شوه. (المنار)

ضفادع جمع د ((ضِفْدَع)) ده، چندخ ته وائي. د دوي په کورونو کښې په خوراکونو کښې، په کټونو او بسترو کښې به هرځاى چندخان چندخان ليدلې شو.

د سفر الخروج په اتم فصل کښې دي: ((بيا رب موسیٰ ته ووئيل: تهٔ په فرعون داخل شه او دا ورته ووايه: رب وئيلي دي چه زما قوم راپريده چه زما بندگي وکړي او که تهٔ انکار کوې نو زهٔ به ستا فصلونه په چندخانو ووهم نو نهر به چندخان راوړي نو هغه به راوخيژي او ستاسو په کورونو، او د بسترې په کوټنۍ کښې او ستا په کټ کښې او ستا د غلامانو او د قوم په کورونو کښې او ستا په تنورونو او خانکونو کښې الخ)) او همدغه شان وشوه.

بيا دوي درخواست وکړو نو چندخان د کورونو او د کوټونو او فصلونو نه مړه شو نو دوي راجمع کړل چه انبارونه ئې ترې ولګول چه د هغې په وجه ټوله زمکه د مصر بد بويه شوه.
(المنار)

فرعون ځان ته رب وئيلو او دومره دوائي هم ورسره نهٔ وه چه دا ملخان او چندخان او سپږې پرې مړې کړې وې.

او د ((دم)) نه مراد دا دې چه د دوي د نهرونو او کوهيانو اوبه په وينه بدلې شوې، مهيان ئې مړهٔ شول او د نهرونو اوبه ئې بدبويه شوې، مصريانو دا طاقت نهٔ لرلو چه د هغې نه څکل وکړي، بعض خلقو ددې نه د نکسير بيماري مراد اخستې ده. (يعني د پوزې نه وينه بهيدل- زيد بن اسلمؒ)

او صاحب المنارؒ ذکر کړيدي چه دا وينه په دوي باندې اوه ورځو پورې وه.

په تاریخي روایتونو کښې راغلي دي چه یو بني اسرائیلي اُویه څکلې نو قبطي به ورسره خوا کښې ودریدو دې دپاره چه کله دا اُویه څکي نو دې به ئې ترې واخلي او ویه ئې څکي نو چه ددهٔ لاس ته به راغلې نو په جام کښې به وینه پیدا شوه. او که دواړو به په شریکه خوله کیخودله نو یو طرفته به وینه وه او بل طرف کښې به نهٔ وه. دا څو مره لویه پریشانی ده سوچ پرې وکړه، ددې دومره معجزاتو باوجود د دوی ایمان نهٔ راوړل د ډیر لوی ضد او استکبار نښه ده.

اٰیٰتٍ مُّفَصَّلٰتٍ : ۱- دا نښې دی جدا جدا چه هر عذاب به یوه یوه هفته وو او په هر دوو عذابونو کښې به یوه میاشت وقفه وه. (بغویؒ)

۲- یا معنیٰ دا ده چه دا جدا جدا او واضحه او ښکاره معجزات وو چه د هر یو نه د موسیٰ علیه السلام د نبوت رشتینوالې ښکاره کیدو. لیکن دوی متکبران وو.

فَاسْتَکْبَرُوْا : یعني په موسیٰ علیه السلام باندې د ایمان راوړو نه ئې ځانونه لوی وګنړل اګرکه د هغه د رسالت د صحت عقیده ئې ساتله او په زړه کښې ئې دا وه چه دې په دعوه د نبوت کښې رشتینې دې.

ادْعُ لَنَا رَبَّکَ : دومره خو پوهه وو چه ددهٔ دعا قبلیږي او دې حق پرست دې، لکه اُوس هم بعض بدعتیان او مشرکان موحد ته وائي چه مونږ ته خصوصي دعا وکړه، د هغه په بزرګۍ خو اقرار کوي لیکن مسئلې او عقیده ورله نهٔ مني.

عَھِدَ عِنْدَکَ : یعني تا سره ئې وعده کړیده چه ستا دعا به قبلوي.

او دا عذاب الله تعالیٰ د مکې په مشرکانو راوستې وو چه قحط پرې راغلو او بیا ئې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته درخواست وکړو چه د الله نه دعا وغواړه چه مونږ نه دا مصیبت لرې کړي، درې کاله پدې حالت کښې وو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم دعا وکړه او قحط ترې لرې شو.

لَئِنْ کَشَفْتَ : دا د دوی شرکي جمله وه چه که تا زمونږ نه مصیبت لرې کړو حال دا چه مصیبت لرې کونکې خو الله دې لیکن د مشرکانو نسبتونه ټول غیر الله ته وي او د الله نه ئې مخ اوړیدلې وي.

الرِّجْزَ : د ((رجز)) یعني عذاب نه مراد د طاعون بیماري ده. (ابن عباسؓ وسعید بن جبیرؒ) وئیلې شویدي چه پدې بیمارئ سره اویا زره فرعونیان هلاک شوي وو. مګر راجح دا ده چه دلته دا ټول هغه عذابونه مراد کیدې شي چه الله په فرعونیانو باندې رالیږلي وو. او رجز په اصل کښې هر هغه عذاب دې چه زړونه ورسره خوزیږي او پریشانه کیږي یا د هغې

په وجه خلك په ژوند او کارونو کښې پریشانه کیږي. (المنار)

| فَانْتَقَمْنَا مِنْهُمْ فَاَغْرَقْنٰهُمْ فِي الْيَمِّ بِاَنَّهُمْ |
| --- |
| نو بدله واخسته مونږ د دوی نه نو غرق مو کړل په دریاب کښې پدې وجه چه دوی |
| كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا وَكَانُوْا عَنْهَا غٰفِلِيْنَ ﴿۱۳۶﴾ |
| دروغژن کنړلی وو آیتونه زمونږ او وو دوی د هغې نه بې پرواه. |
| وَاَوْرَثْنَا الْقَوْمَ الَّذِيْنَ كَانُوْا يُسْتَضْعَفُوْنَ |
| او په میراث کښې ورکړل مونږ هغه قوم ته چه ضعیف کنړلے شوی وو (په مصر کښې) |
| مَشَارِقَ الْاَرْضِ وَمَغَارِبَهَا الَّتِيْ بٰرَكْنَا |
| مشرقونه د زمکې او مغربونه د هغې، هغه زمکه چه برکتونه اچولی وو مونږ |
| فِيْهَا ط وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ الْحُسْنٰى عَلٰى بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ۙ۵ بِمَا |
| په هغې کښې، او پوره شوه فیصله (وعده) د رب ستا ښائسته په بنی اسرائیلو په دې وجه |
| صَبَرُوْا ط وَدَمَّرْنَا مَا كَانَ يَصْنَعُ فِرْعَوْنُ وَقَوْمُهٗ |
| چه صبر کړے وو دوی، او هلاك کړل مونږ هغه څه چه کولو به فرعون او قوم د هغهٔ |
| وَمَا كَانُوْا يَعْرِشُوْنَ ﴿۱۳۷﴾ |
| او هغه چه دوی به چتونه جوړول. |

**تفسیر : فَانْتَقَمْنَا** : نَقْمَة : په اصل کښې د نعمت زائل کول دی په عذاب سره.

**اَلْيَمّ** : ددې نه مراد ژور دریاب دے، یا دا دریائے نیل دے.

ددې تمامو ازمینښتو نه د تیریدو باوجود کله چه دوی ته د ایمان توفیق ملاؤ نشو، نو د الله آخری عذاب راغلو چه هغه د دوی وجود ختم کړو. ونیلے شویدی چه کله فرعون د مصر په حکومت کښې د الله تعالیٰ مسلسل (یوبل پسې) دیر عذابونه ولیدل نو آخره کښې نبی موسیٰ او د هغه قوم بنی اسرائیلو ته د مصر نه د سفر کولو اجازت ورکړو. نو بنی اسرائیل د شپې په وخت په جلتئ سره ووتل او د خپل ځانونو سره ئې خپل څاروی هم روان کړل. نو دوی د ((عین شمس)) نه : ((سکوت)) ته د تللو دپاره د بحر احمر ساحلی لاره

اختیار کړه، فرعون چه کله واوریدل چه دا خلق روان شو نو په خپله فیصله پښیمانه شو، او فوراً ئے خپل فوج راوغوختو او د هغوی د رالاندے کولو دپاره د هغوی پسے روان شو۔

او هغوی ئے د بحر احمر په ساحل (غاړه) باندے رالاندے کړل، بنی اسرائیل ویریدل او موسیٰ علیه السلام ته ئے د خپلے پریشانتیا اظهار وکړو نو موسیٰ علیه السلام ووئیل چه مهٔ یریږئ، الله ما سره دے۔ بیا موسیٰ علیه السلام اُوبو طرف ته امسا ورمخکښې کړه او د الله په حکم سره ئے دریاب ووهلو نو اُوبه په دوه حصو تقسیم شوے، او یوه کولاوه لاره جوړه شوه چه په هغے سره بنی اسرائیل پورے وتل۔ فرعون د خپل لښکر سره هغوی رالاندے کړل، کله چه دریاب ته راورسیدو نو موسیٰ علیه السلام په لاس سره اشاره وکړه او د الله په حکم سره اُوبه په تیزئ سره دواړو طرفونو ته پورته شوے او فرعون او د هغه فوج تول ئے راګیر کړل او لړ وخت روستو د هغوی لاشونه د دریاب په سر راپورته شو او غاړے ته راغلل او بنی اسرائیلو دا منظر په خپلو سترګو سره ولیدلو، او سترګے ئے پرے یخے شوے۔

بِاَنَّهُمْ كَذَّبُوْا : دا د عذاب دوه سببونه بیانوی چه یو دوی همیشه تکذیب زمونږ د آیتونو کولو او په دوی کښې د الله د آیتونو نه غفلت وو۔ او دلته د غفلت نه مراد غیر اختیاری غفلت نهٔ دے بلکه ځان ترے په زوره غافل کول دی چه دے ته اِعراض او بې پرواهي وائی نو ځکه دا سبب د عذاب دے۔ ددے نه معلومه شوه چه د الله د آیتونو نه ځان غافله کول دا د الله د آیتونو اِهانت او سپکاوے دے پدے وجه دا د عذابونو سبب دے۔

وَاَوْرَثْنَا الْقَوْمَ : یعنی مونږ بنی اسرائیلو ته د زمکے سرداری ورکړه او د مصر او شام علاقے د دوی د تصرف لاندے راغلے، دا هغه خلق وو چه فرعون خپل غلامان جوړ کړی وو او د دوی په زرګونو بچی ئے وژلی وو۔ لیکن کله چه دوی په موسیٰ علیه السلام ایمان راوړو او په مصیبتونو او دردونو ئے د صبر او استقامت نه کار واخستو نو الله تعالیٰ دوی د زمکے مالکان جوړ کړل او د فرعونیانو محلونه او باغونه ئے تباه کړل۔

همدا خبره الله تعالیٰ په سورة قصص (٦/٥) آیتونو کښې بیان کړیده :

﴿ وَنُرِيْدُ اَنْ نَّمُنَّ عَلَى الَّذِيْنَ اسْتُضْعِفُوْا فِي الْاَرْضِ وَنَجْعَلَهُمْ اَئِمَّةً وَّنَجْعَلَهُمُ الْوٰرِثِيْنَ وَنُمَكِّنَ لَهُمْ فِي الْاَرْضِ وَنُرِيَ فِرْعَوْنَ وَهَامَانَ وَجُنُوْدَهُمَا مِنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَحْذَرُوْنَ ﴾۔

یعنی (بیا مونږ وغوختل چه مونږ په هغه کسانو احسان وکړو کوم چه په زمکه کښې کمزوری کړے شوی وو او مونږ دوی پیشوایان جوړ کړو او دوی وارثان وګرځوو او چه مونږ دوی ته په زمکه کښې قدرت او اختیار ورکړو او فرعون او هامان او د هغوی لښکرو ته هغه

څه وښايو چه دوی ترے پره کوی)۔
د فرعونيانو هلاکت او بربادۍ او د هغوی د تباهۍ حال د سورة دخان په آيتونو (۲۵/۲۶/۲۷/۲۸) کښې الله تعالیٰ داسے بيان کړيدے: ﴿ كَمْ تَرَكُوا مِنْ جَنَّاتٍ وَعُيُونٍ وَزُرُوعٍ وَمَقَامٍ كَرِيمٍ وَنَعْمَةٍ كَانُوا فِيهَا فَاكِهِينَ ، كَذَٰلِكَ وَأَوْرَثْنَاهَا قَوْمًا آخَرِينَ ﴾۔
يعنې دوی ډير باغات او چينے پريخودے او آرام والا ځايونه او قسماقسم نعمتونه چه په هغے کښې به دوی عيش کولو، ټول بيکاره پاتے شو، او مونږ ددے ټولو وارثان نور قوم جوړ کړل)۔ (ابن کثير)
يُسْتَضْعَفُونَ : دوی ضعيف ګڼړلے شوی وو، ددے نه مراد غلامان جوړيدل او د دوی اولاد ذبح کيدل او د زنانو ژوندۍ پريخودل او ذليله کول دی۔
مَشَارِقَ الْأَرْضِ وَمَغَارِبَهَا : دا د (أَوْرَثْنَا) دپاره مفعول دے، پدے کښې اشاره ده ټولو طرفونو ته او هرکله چه د هرے علاقے مشرق او مغرب جدا جدا وی، نو ددے وجه نه ئے جمع راوړيده۔
صاحب المنارؒ وائي چه مشارق الارض حدود د شام دی او مغارب نه مراد حدود د مصر دی۔ حسن بصريؒ او قتادةؒ وائي چه ددے نه د شام زمکه مراد ده،
او زيد بن اسلمؒ وائي : ددے نه د شام کلی مراد دی۔
عبد الله بن شوذبؒ وائي چه ددے نه فلسطين مراد دے۔
او کعب الاحبارؒ وائي چه الله په شام کښې د فُرات نه تر عَرِيش پورے برکت اچولے دے۔
د ليث بن سعدؒ نه نقل شويدی چه دا د مصر زمکه ده کوم کښې چه بنی اسرائيل وو۔
او بعض مفسرينو ونيلی دی چه ددے نه مصر او فلسطين دواړه مراد دی۔ صاحب المنار وائي چه داسے ښکاره کيږی چه دلته د مصر زمکه مراد کول همدا ظاهر متبادر دی د آيت د سورة الشعراء نه ﴿ فَأَخْرَجْنَاهُم مِّن جَنَّاتٍ وَعُيُونٍ وَكُنُوزٍ وَمَقَامٍ كَرِيمٍ كَذَٰلِكَ وَأَوْرَثْنَاهَا بَنِي إِسْرَائِيلَ ﴾ نو دلته ئے ددے ميراث د بنی اسرائيلو دپاره ذکر کړيدے۔ (المنار)
مګر مونږ وايو چه د مصر زمکه اګرکه في الحال بنی اسرائيلو ته ملاؤ نشوه ځکه چه دوی په ميدان تيه کښې وو تر څلويښتو کالو پورے، بيا اَريحاء او فلسطين وغيره ته لاړل او هلته آباد وو ليکن روستو د داود عليه السلام په زمانه کښې ورته ملاؤ شويده، او پدے کښې د شام زمکه خامخا داخله ده ځکه چه (بَارَكْنَا) لفظ پرے دليل دے، او مشارق او مغارب نه د هغے مشرقی او مغربی طرفونه مراد دی۔ چه اول کښې په شام باندے د مصر تسلط وو ليکن د

فراعنه او عمالقه ؤ نه روستو الله تعالىٰ د شام او فلسطين زمكه (ارض مقدسه) بنى اسرائيلو ته وركړه- (القاسمیؒ والمنار)

ابن عاشورؒ وائى چه د شام ارضِ مقدسه د بحر احمر د شرقى شمالى سواحلو نه شروع كيږى او د بحر البروم (يعنى د بحر اوسط) سواحلو ته رسيږى، او دارنګه حدود العراق او حدود د بلاد العرب او بلاد الترك پورے رسيږى- (التحرير والتنوير۸/۲۸۱)

او پدے كښ اشاره ده د صحابه كرامو حال ته چه دوى اول كښ كمزورى ګڼلے كيږى ليكن الله به ورته د زمكے بادشاهى وركړى او ابوجهل چه ددے امت فرعون دے دا به هلاك شى، او په هره زمانه كښ چه څوك دعوت او جهاد كوى نو دا د الله وعده ده چه د زمكے خلافت به هغوى ته وركوى- او پدے زمكه د شام باندے اُوس هم د دوه فريقينو جګړه ده، بنى اسرائيل او بنى اسماعيل (عربو) ليكن عاقبت به متقينو دپاره وى- او اُوس ئے آثار ښكاره كيدو والا دى-

كَلِمَتُ رَبِّكَ : ددے نه مراد وعده د نصرت او مدد ده چه د بنى اسرائيلو سره پوره شوه- لكه هغه وعده مخكښ ذكر شوه ﴿عَسٰى رَبُّكُمْ اَنْ يُّهْلِكَ عَدُوَّكُمْ وَيَسْتَخْلِفَكُمْ فِى الْاَرْضِ﴾- (ابن عاشورؒ)

الْحُسْنٰى : د الله وعده ځكه ښائسته ده چه د مخالفت او خلاف نه پاكه ده- يا دا چه د بنى اسرائيلو دپاره ښائسته وه اګركه په فرعونيانو بده وه- (ابن عاشورؒ)

مَا كَانَ يَصْنَعُ : ددے نه مراد ښنګلے او كارخانے وغيره دى-

يَعْرِشُوْنَ : اَىْ مِنَ الْجَنَّاتِ- ددے نه مراد باغونه دى چه په څپرونو باندے لاړ وى- يا هغه چه دوى پورته كولے مضبوط قلعه ګانے آسمان ته لكه د هامان قلعه شوه- يا لكه أهرامِ مصر او هياكل شو، ابن عاشورؒ وائى : همدا مطلب د (دَمَّرْنَا) لفظ سره زيات مناسب دے-

(القاسمیؒ والتحرير)

| وَجٰوَزْنَا بِبَنِىٓ اِسْرَآءِيْلَ الْبَحْرَ فَاَتَوْا عَلٰى قَوْمٍ يَّعْكُفُوْنَ |
|---|
| او پورے ويستل مونږه بنى اسرائيل په درياب نو راغلل دوى په يو قوم چه منجورى ئے كوله |
| عَلٰٓى اَصْنَامٍ لَّهُمْ ۚ قَالُوْا يٰمُوْسَى اجْعَلْ لَّنَآ اِلٰهًا كَمَا |
| (عبادت ئے كولو) د بتانو خپلو، ووئيل دوى اے موسىٰ وګرځوه مونږ له معبود لكه څنګه |

لَهُمْ اٰلِهَةٌ ۭ قَالَ اِنَّكُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُوْنَ ﴿۱۳۸﴾ اِنَّ هٰٓؤُلَاۗءِ

چه دوی له معبودان دی، ووئیل موسیٰ علیه السلام یقیناً تاسو یو قوم یئ ناپوهه۔ یقیناً دا کسان

مُتَبَّرٌ مَّا هُمْ فِيْهِ وَبٰطِلٌ مَّا

هلاك به کړے شی هغه چه دوی په (بندګئ) د هغه کښې دی او باطل دی هغه عملونه

كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۳۹﴾ قَالَ اَغَيْرَ اللّٰهِ اَبْغِيْكُمْ اِلٰـهًا

چه دوی ئے کوی۔ ووئیل (موسیٰ علیه السلام) آیا سوئ د الله نه طلب کړم تاسو لره معبود

وَّهُوَ فَضَّلَكُمْ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ ﴿۱۴۰﴾ وَاِذْ

او حال دا چه الله غوره کړی یئ تاسو په مخلوقاتو (د زمانے خپل) او کله چه

اَنْجَيْنٰكُمْ مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ يَسُوْمُوْنَكُمْ سُوْۗءَ الْعَذَابِ ۚ يُقَتِّلُوْنَ اَبْنَاۗءَكُمْ

بچ کړئ مونږ تاسو د فرعونیانو نه رسول به ئے تاسو ته بد عذابونه، وژل به ئے زامن ستاسو

وَيَسْتَحْيُوْنَ نِسَاۗءَكُمْ ۭ وَفِيْ ذٰلِكُمْ بَلَاۗءٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ عَظِيْمٌ ﴿۱۴۱﴾

او ژوندئ به ئے پریخودلے زنانه ستاسو، او په دے کښې امتحان وو د رب ستاسو نه لوئی۔

**تفسیر**: د تیر شوی آیت په ختمیدو سره د موسیٰ علیه السلام او د فرعون او د قبطیانو واقعات ختم شو۔ اُوس ددے آیتِ کریمه نه د موسیٰ علیه السلام او د بنی اسرائیلو د امن وامان واقعات شروع کیږی، (چه په هغے کښې دوی څومره ورانے کړیدے او د بی بصیرتئ نه ئے کار اخستے دے) دوی د فرعون د غلامئ نه د آزادیدو او د موسیٰ علیه السلام سره په دریاب پورے وتلو نه روستو د صحرائے سینا جنوبی علاقے طرف ته روان شو۔ په لاره کښې دوی په یو داسے قوم تیر شو چه د بتانو عبادت ئے کولو۔ بعض مفسرینو وئیلی دی چه دا خلک کنعانین وو چه د عربو په نیز دوی ته عمالقه وئیلے شی۔ (ابن عاشورؒ)

ځینی وائی چه دا د عربو د لَخم قبیلے وو او په رِقّه علاقه کښې وسیدل۔ ابو عمران الجَوْنیؒ وائی چه دا د لَخم او جُذام قبیلے وو، دے خلقو به د غوا د مجسمو عبادت کولو۔ (بغویؒ)

د دوی په لیدلو سره بنی اسرئیلو د موسیٰ علیه السلام نه مطالبه وکړه چه مونږ له هم یو داسے بُت پکار دے چه هغه ته سر خکته کړو۔

امام بغویؒ لیکلی دی چه بنی اسرائیلو د الله تعالیٰ په وحدانیت کښې هیڅ شك نهٔ وو، بلکه د دوی مقصد دا وو چه ددے بت پرستو په شان دوی دپاره هم یو داسے څه کیدل پکار دی چه د هغے په تعظیم کولو سره د الله تقرب حاصل کړی، د سخت جهالت په وجه ئے گمان وکړو چه پدے به د دوی دین او ایمان ته هیڅ نقصان نهٔ رسیږی انتهیٰ۔

پدے وجه موسیٰ علیه السلام دوی ته ووئیل چه تاسو د الله د شان او عظمت نه بالکل ناخبره یئ، د عبادت ټول اقسام صرف د الله تعالیٰ پورے خاص دی، ددے بت پرستو شرك د دوی دپاره هلاکونکے دے او د دوی عمل سراسر باطل دے۔

امام احمدؒ، ترمذیؒ او ابن جریرؒ وغیرهم د ابوواقد اللیثیؓ نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ کله د غزوهٔ حنین دپاره ووتلو نو د یوے ونے خوا کښې تیر شو چه هغے ته به مشرکانو خپلے وسلے زوړندولے، پدے وجه هغے ته به ئے ((ذات انواط)) وئیلو نو صحابه کرامو نه بعض خلقو ووئیل چه اے د الله رسوله! زمونږ دپاره هم یو داسے ذات انواط مقرر کړه، نو نبی ﷺ وفرمایل: ((سبحان الله! اِنَّهَا السُّنَنُ))، تعجب دے، دا خو د هغه موسیٰ علیه السلام د قوم خبره ده چه د بت پرستو د معبودانو په شان زمونږ دپاره هم یو معبود مقرر کړه، قسم په هغه ذات چه د هغه په لاس کښې زما روح دے چه تاسو به د تیر شوی قومونو په لاره ضرور روانیږئ))۔ (وسنده صحیح علی شرط الشیخین احمد: (۲۱۹۴۷) والترمذی (۲۱۸۰)

همدا وجه ده چه سیدنا عمر بن خطاب رضی الله عنه په حُدیبیه مقام کښې هغه ونه پریکړے وه د کومے لاندے چه رسول الله ﷺ د صحابه کرامو نه بیعت اخستے وو، چه هغے ته بیعة الرضوان وئیلے شی۔ امام ابوبکر طرطوشیؒ لیکلی دی چه که تاسو داسے یوه ونه وینئ چه د هغے خلك زیارت او تعظیم کوی، هغه د شفاء سبب گنړی او په هغے کښې میخونه وهی او د کپړو ټکړے زوړندوی نو هغه پریکړئ ځکه دا ذات انواط دے۔ (القاسمی)

وَجٰوَزْنَا: دا پورے وینا د عاشورے په ورځ وو نو موسیٰ علیه السلام به ددے ورځے روژه د شکر په طور نیوله او زمونږ اسلام کښې هم ددے سنت والے ثابت دے۔

يَعْكُفُوْنَ: عکوف د عبادت په نیت د یو شی سره لازم کیدل دی۔ یعنی منجوری کول۔

قَالُوْا يٰمُوْسَى: دوی کښې بعض خلقو دا خبره کړے وه ورنه ټول داسے نهٔ وو، نو دا قضیه مهمله ده۔

پدے واقعه کښې یو تسلی ده رسول الله ﷺ ته چه یهودیانو د موسیٰ علیه السلام سره داسے کار کړے وو نو تا سره به ئے هم کوی۔ دویم پدے کښې تنبیه ده چه مؤمنانو له پکار دی چه د

خپـل نفس د مُحاسبے او د الله د نعمتونو د لحاظ نه غافله نشی۔ څکه دے خلکو ولے شرك وکړو؟ نو د غفلت د وجه نه، دے ته ئے نۀ کتل چه د فرعون لوی ظالم نه مونږ چا راخلاص کړو، او په دریاب کښې چا راواړولو؟ او د مخکنو عذابونو نه مونږ ته نجات چا راکړو؟۔

**تَجْهَلُوْنَ** : دا د جهالت خبره څکه ده چه دا خلك خو څه په ښه کار لګیا نۀ دی چه بنده ئے ارمان وکړی، دوی خپله شرك کوی او تاسو هم د شرك ارمان کوئ۔

**اِنَّ هٰٓؤُلَآءِ** : دا د مخکښې (تَجْهَلُوْنَ) جملے دپاره د علت په معنیٰ کښې دے۔ یعنی تاسو څکه جاهلان یئ چه ددے خلکو حالت تاسو ته نۀ دے معلوم۔

**مُتَبَّرٌ** : ددے مطلب دا دے چه دا معبودان او دا شرك فناء کیدونکی دی، او په دوی باندے د هلاکت فیصله شویده څکه چه پدے زمکه به الله تعالیٰ توحید رابښکاره کړی۔ (المنار)

او د باطل مطلب دا دے چه دوی کوم شرك کوی ددے هیڅ فائده دوی ته نۀ په دنیا کښې ملاویږی او نۀ په آخرت کښې، بلکه دا عملونه به ئے برباد او زائل شی۔ نو د باطل نه مراد دا چه غلط او بیکاره کار دے نو تاسو د باطل کار ارمان څنګه کوئ؟۔

یا د (بَاطِلٌ مَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ) نه مراد بتان دی یعنی باطل او بی حقیقته دی هغه بتان چه دوی ئے جوړوی او آلهه ورته وائی۔ نو د دواړو جملو مطلب دا شو چه دا عمل هم باطل دے او ددے غایه هم باطله ده۔ (السعدی وابن عاشورؒ)

نو دا د موسیٰ علیه السلام د طرفنه زیرے وو چه الله تعالیٰ به پدے علاقو کښې وثنیت ختم کړی او توحید به رابښکاره کړی۔ (المنار)

ابن عاشورؒ وائی چه د (مَاهُمْ فِيْهِ) نه مراد د دوی حال دے چه هغه د بتانو عبادت او د هغے سره متعلق ضلالات او سیئات دی۔ (التحریر) یعنی دا حالت به د دوی هلاك شی۔

متبر : صیغه د اسم مفعول ده په معنیٰ د مضارع مجهول سره، یعنی هلاك به شی۔

**اَغَيْرَ اللّٰهِ** : یعنی آیا دا د لوی نعمتونو شکر ګوزاری او پیژندل دی چه د غیر الله عبادت غواړئ او د الله د بندګئ نه بغاوت کوئ او د الله دغه نعمتونو ته نۀ ګورئ۔

**وَّهُوَ فَضَّلَكُمْ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ** : یعنی حقدار د بندګئ خو الله دے نۀ دغه معبودان، الله تعالیٰ تاسو ته د توحید په وجه د خپلے زمانے په مخلوقاتو باندے غوره والے درکړیدے۔ او دارنګه په ډیرو انبیاؤ علیهم السلام او په ډیرو معجزاتو او خوارق العادات سره۔

**وَاِذْ اَنْجَيْنٰكُمْ** : دا بعض انعامات ذکر کیږی۔ یعنی آیا تاسو نه هیر شو چه اُوس لږ څه ورځے مخکښې الله تعالیٰ تاسو ته د فرعونیانو د عذاب او د هغوی د غلامئ نه نجات

درکړو. او تاسو دغه ذات پریدئ او د لرګو او کانړو نه جوړ شوی معبودانو ته سجدے کوئ.

**وَإِذْ أَنْجَيْنٰكُمْ** : دائے په مخکښې باندے عطف کړو، دا یا د الله تعالیٰ قول دے چه د موسیٰ ﷺ د کلام تتمیم کوی، او التفات پکښې د غائب نه متکلم ته شویدے او دا په قرآن کریم کښې ډیر کرته کیږی. یا دا خطاب د رسول الله ﷺ د زمانے یهودیانو ته وو چه ستاسو مشران مونږ د فرعونیانو نه خلاص کړی وو. او د مشرانو مصیبت او نعمت د کشرانو دپاره هم وی.

| وَوٰعَدْنَا مُوسٰى ثَلٰثِيْنَ لَيْلَةً وَّأَتْمَمْنٰـهَا |
|---|
| او وعده وکړه مونږ د موسیٰ (ﷺ) سره د دیرشو شپو او پوره کړے مونږ هغه |
| بِعَشْرٍ فَتَمَّ مِيْقَاتُ رَبِّهٖٓ أَرْبَعِيْنَ لَيْلَةً ۚ وَقَالَ |
| په لسو نورو سره نو پوره شو وخت مقرر د رب د هغهٔ څلویښت شپے، او ووئیل |
| مُوسٰى لِأَخِيْهِ هٰرُوْنَ اخْلُفْنِيْ فِيْ قَوْمِيْ وَأَصْلِحْ |
| موسیٰ ورور خپل هارون (ﷺ) ته نائب شه زما په قوم زما کښې او اصلاح کوه |
| وَلَا تَتَّبِعْ سَبِيْلَ الْمُفْسِدِيْنَ ﴿١٤٢﴾ |
| او مهٔ روانیږه د لارے د فساد کونکو پسے. |

**تفسیر** : بنی اسرائیل چه کله طور سینا ته نزدے په یو ځای کښې آباد شو (یعنی صحرائے سینا کښې) نو الله تعالیٰ د دوی دپاره یو شریعت نازلول وغوختل دے دپاره چه دوی د هغے مطابق خپل ژوند د الله په طاعت او بندګئ کښې تیر کړی، او دوی سره موسیٰ ﷺ د مخکښې نه وعده هم کړے وه چه کله تاسو د دریاب نه پورے وتئ نو ما له به الله تعالیٰ کتاب راکوی. کله چه دوی دلته راغلل نو د کتاب مطالبه ئے وکړه. پدے وجه الله تعالیٰ موسیٰ ﷺ ته حکم وکړو چه هغه د طور غر ته لاړ شی او هلته څلویښت ورځے په عبادت او بندګئ کښې تیرے کړی دے دپاره چه د وحی د لوئی ذمه واریٔ پورته کولو پوره قابل جوړ شی.

مفسرینو لیکلی دی چه د څلویښتو ورځو موده د ذی القعدے دیرش ورځے او د ذی

الحجے لس ورځے وے۔ د ابن عباسؓ وغیره نه روایت شویدے چه الله تعالیٰ موسیٰ ؑ سره په څلویښتمه ورځ یعنی په لسم د ذی الحجه خبرے وکړے۔

ثَلٰثِيْنَ : اول کښې الله تعالیٰ ورسره د دیرشو ورځو وعده وکړه بیا ئے لس زیاتے کړے پدے کښې به د الله راز وو، ځینی وائی چه د دیرشو ورځو وعده لازمی وه، او د څلویښتو استحبابی، لکه څنګه چه د شعیب ؑ سره د موسیٰ ؑ اته کاله تیرول لازم او لس کاله مستحب وو۔

لِاَخِيْهِ هٰرُوْنَ : موسیٰ ؑ کوهِ طور ته د روانیدو نه مخکښې د بنی اسرائیلو د تعلیم او تربیت دپاره خپل ورور هارون ؑ خپل خلیفه مقرر کړو او هغه ته ئے د هغوی سره د همدردئ او اصلاح او اخلاص نصیحت وکړو او دخساد او ګناهونو والو د اتباع نه ئے منع کړو۔

وَاَصْلِحْ : مفسرینو لیکلی دی چه موسیٰ ؑ دا خبره د ډیر احتیاط په وجه کړے وه، ورنه هارون ؑ خپله د الله نبی وو، د هغه نه د فساد خورولو توقع څنګه کیدے شی؟۔ خو دے ته تاکید وئیلے شی، دا کله نا کله الله ته هم وئیلے کیږی۔

لکه نبی کریم ﷺ الله ته فرمایلی وو ﴿رَبِّ احْكُمْ بِالْحَقِّ﴾ (انبیاء :۱۱۲)

اے زما ربه ! د حق فیصله وکړه (حال دا چه د الله هره فیصله د حق ده)۔

سَبِيْلَ الْمُفْسِدِيْنَ : د مفسدانو د لارے تابعداری په ډیر قسمه ده :

(۱) د هغوی سره په اعمالو کښې شریك کیدل۔

(۲) د هغوی سره په فساد کښې تعاون کول۔

(۳) د هغوی د ګناهونو او فسادونو کولو په حال کښې د هغوی سره ژوند تیرول او وسیدل اګرکه د هغوی د راواپس کولو نه عاجز وی۔ او پدے کښې بعض کارونه هغه دی چه د انبیاؤ علیهم السلام نه واقع کیدل ئے ممکن دی پدے وجه د هغے نه نهی صحیح ده (تفسیر المنار۹/۱۰۷)

موسیٰ ؑ ته په دغه زمانه کښې الله تعالیٰ په تختو کښې لیکلے شوے کتاب ورکړو چه دا قوم ته بیان کړه مګر دا خبر ئے ورکړو چه ستا قوم ستا نه روستو شرك کړیدے، نو هغه ډیر سخت غصه شو مګر تختئ ترے پرے نهٔ وتے ځکه چه خپله ئے حالت نهٔ وو لیدلے کله چه هغه راورسیدو نو درے خطابه ئے وکړل خپل ورور او قوم او سامری ته۔

وَلَمَّا جَآءَ مُوْسٰى لِمِيْقَاتِنَا وَ كَلَّمَهٗ

او هرکله چه راغے موسیٰ (علیه السلام) د مقرر وخت زمونږ دپاره او خبرے وکړے د هغهٔ سره

رَبُّهٗ ۙ قَالَ رَبِّ اَرِنِيْٓ اَنْظُرْ اِلَيْكَ ؕ قَالَ لَنْ

رب د هغهٔ ووئیل هغهٔ، اے ربه! وښایه ما ته خان چه وګورم تا ته، ووئیل الله هیچرے نشے

تَرٰىنِيْ وَلٰكِنِ انْظُرْ اِلَى الْجَبَلِ فَاِنِ اسْتَقَرَّ مَكَانَهٗ

لیدلے ما (په دنیا کښې) لیکن وګوره غر طرف ته پس که ټینګ شو دا په ځای خپل

فَسَوْفَ تَرٰىنِيْ فَلَمَّا تَجَلّٰى رَبُّهٗ لِلْجَبَلِ جَعَلَهٗ

نو زر دے چه ویه وینے ما لره نو هرکله چه راښکاره شو رب د هغهٔ غر ته، وے کړخولو هغه

دَكًّا وَّخَرَّ مُوْسٰى صَعِقًا ۚ فَلَمَّآ اَفَاقَ قَالَ سُبْحٰنَكَ

ذره ذره او پریوتو موسیٰ (علیه السلام) بیهوشه نو هرکله چه رابیدار شو وے وئیل، پاکی ده تا لره

تُبْتُ اِلَيْكَ وَاَنَا اَوَّلُ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۴۳﴾ قَالَ يٰمُوْسٰٓى اِنِّى اصْطَفَيْتُكَ

توبه وباسم تا ته او زهٔ اول یم د مؤمنانو نه۔ ووئیل الله اے موسیٰ یقیناً ما تهٔ غوره کړے ئے

عَلَى النَّاسِ بِرِسٰلٰتِيْ وَبِكَلَامِيْ ۖ فَخُذْ مَآ اٰتَيْتُكَ وَكُنْ مِّنَ

په خلقو په پیغاماتو خپلو او په خبرو خپلو نو ونیسه هغه چه درکوم تا ته او شه د

الشّٰكِرِيْنَ ﴿۱۴۴﴾ وَكَتَبْنَا لَهٗ فِى الْاَلْوَاحِ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ مَّوْعِظَةً

شکر کونکو نه۔ او لیکلی وو مونږ هغه لره په تختو کښې د هر شي نه نصیحت

وَّتَفْصِيْلًا لِّكُلِّ شَيْءٍ ۚ فَخُذْهَا بِقُوَّةٍ وَّاْمُرْ قَوْمَكَ

او تفصیل دپاره د هر شي نو ونیسه دا په طاقت سره او حکم کوه قوم خپل ته

يَاْخُذُوْا بِاَحْسَنِهَا ؕ سَاُورِيْكُمْ دَارَ الْفٰسِقِيْنَ ﴿۱۴۵﴾

چه ونیسی (عمل وکړی) دا په ښائسته طریقه سره زر دے چه ویه ښایم تاسو ته کورد نافرمانو۔

**تفسیر:** اُوس هغه واقعه بیانوی چه کله طور ته لاړو نو د الله سره ئے څه تعلقات قائم کړل؟، کله چه موسیٰ (علیه السلام) تـه د الله سره د خبرو شرف حاصل شو، نو د ډیر شوق او انتهائی

محبت په وجه ئې د الله د دیدار سوال وکړو (دې کښې د موسیٰ علیه السلام دوه غرضه وو، یو محبت او شوق وو، او دویم په دې کښې خپل یقین ډیرول وو، او پیغمبران همیشه دپاره د یقین په ډیروالی کښې کوشش کوی لکه روستو آیت (تُبۡتُ اِلَیۡكَ وَاَنَا اَوَّلُ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ) نه معلومیږی چه زما یقین شته خو د خپل یقین د ډیرولو دپاره مې دا مطالبه وکړه)۔

نو الله تعالیٰ جواب ورکړو چه په دې دنیا کښې ته ما نشې لیدلې، په دنیا کښې الله تعالیٰ چا ته دا طاقت نهٔ دې ورکړې چه الله وینی۔ مګر د موسیٰ علیه السلام د مطمئن کولو دپاره ئې ووئیل چه دې غر ته وګوره، که دا زما د تجلی طاقت ولری او په خپل ځای باقی پاتې شی نو ته به ما ولیدې شې۔ نو د الله تجلی په غر وشوه۔

(په حدیث د احمدؒ کښې دی چه الله دومره رڼړا راښکاره کړه لکه د کچې ګوتې د اول بند په اندازه (مسند احمد: ۱۲۲۸۲) مسند البزار (۶۸۲۵) والمستدرک رقم (۶۶) وسنده صحیح)، نو غر ټکړې ټکړې شو او په خپل ځای باقی پاتې نشو، او ښکته لاړو او هموار شو، او موسیٰ علیه السلام چه دا منظر ولیدو نو طاقت ئې ونهٔ لرلو نو بې هوشه شو او کله چه په هوش کښې راغلو، نو د الله پاکی ئې بیان کړه او د دوباره داسې سوال کولو نه ئې توبه ووېستله۔

معتزله ؤ ددې آیت نه دلیل نیولو سره وئیلی دی چه الله تعالیٰ په دنیا او آخرت کښې هیڅرته هم نشی لیدلې کیدې۔ لیکن دا قول بالکل باطل دې۔ ځکه چه د نبی کریم ﷺ د متواترو احادیثو نه ثابته ده چه مؤمنان به الله تعالیٰ له د قیامت په ورځ وینی لکه چه الله تعالیٰ په سورة قیامه آیتونو (۲۳/۲۲) کښې فرمایلی دی: ﴿وُجُوۡهٌ یَّوۡمَئِذٍ نَّاضِرَةٌ اِلٰی رَبِّهَا نَاظِرَةٌ﴾ چه (په هغه ورځ به ډیر مخونه تازه وی او خپل رب ته به ګوری)۔

او که چرته د الله لیدل ناممکن وې نو موسیٰ علیه السلام به د هغې مطالبه نکولې۔ د موسیٰ علیه السلام عقل د معتزلو نه په زرګونو چندونو په دلیل نقلی او عقلی سره اُوچت دې او هغه د الله رویت طلب کوی نو د هغه په نیز د الله لیدل ممکن وو۔

دویم دا چه الله تعالیٰ به خپل لیدل د غر په باقی پاتې کیدو باندې نهٔ وې معلق کړې۔

دریم دا چه الله داسې نهٔ دی وئیلی (لَنۡ اُرٰی) چه زهٔ نشم لیدلې کیدې) بلکه داسې ئې وئیلی دی (لَنۡ تَرٰىنِیۡ) ته ما نشې لیدلې، ځکه چه ستا دا طاقت نشته۔

لِمِیۡقَاتِنَا: میقات هغه وخت ته وئیلې شی چه د څه کار دپاره مقرر کړې شی۔ او وقت مطلق وخت ته وئیلې شی۔

اَرِنِیۡٓ : ددې مفعول پټ دې (اَیۡ ذَاتَكَ اَنۡظُرۡ اِلَیۡكَ) ما ته خپل ذات راوښایه چه تا ته

وګورم۔

وَلٰكِنِ انْظُرْ اِلَى الْجَبَلِ : الله تعالىٰ بندګانو ته ځان په دنيا کښې نهٔ ښائى د هغه د عظمت او د جلال د وجه نه او په بندګانو کښې ددے قابليت هم نشته۔

بعض مفسرين وائى چه دا په مدين کښې لوى غر دے چه هغے ته زبير وائى۔ (بغويؒ)

فَاِنِ اسْتَقَرَّ مَكَانَهٗ : يعنى هرکله چه غر چه لويه جُثه او طاقت لرى هغه د الله د تجلىٰ برداشت نشى کولے نو ته به ئے څنګه وکړے۔

د الله تجلى په غر وشوه او غر هم د موسىٰ عليه السلام په شان مخلوق دے، او غر د الله تجلى ته ټينګ نشو سره د لوى والى نه، نو موسىٰ عليه السلام به څنګه ټينګ شى؟ ځکه چه صرف په دنيا کښې دا طاقت د انسان نشته چه الله وينى، البته په آخرت کښې به الله تعالىٰ انسانانو ته کامل بدن ورکوى چه په هغے کښې به د خپلو ليدلو استعداد او طاقت اچوى۔ لکه ددے مثال دا دے چه په دنيا کښې په اُور کښې انسان ژوندے نشى پاتے کيدے مګر په جهنم کښې به انسانان ژوندى وى، په دنيا کښې يوه ورځ وډريدل انسان نشى برداشت کولے، او د قيامت په ميدان کښې به پنځوس زره کاله ولاړ وى ځکه چه الله به طاقت ورکړے وى۔

جَعَلَهٗ دَكًّا : اَىْ جَعَلَهٗ صَحْرَاءَ تُرَابًا (عكرمه) وَسَاخَ فِى الْاَرْضِ۔

هغه هموار او خاورے شو او په زمکه کښې ښکته لاړو۔ (ابن کثيرؒ، المنار)

صَعِقًا : موسىٰ عليه السلام غرهٔ ته کتل چه ذره ذره کيږى او هموار ميدان ترے جوړيږى نو د خپل ځان په کنټرول کښې نشو نو سخت هيبت کښې راپريوتو او بې هوشه شو۔

او د صعق معنىٰ دلته بې هوشى ده، نهٔ مرګ، لکه قتادهؒ ئے په مرګ سره تعبير کړيدے، د مرګ معنىٰ ئے په نورو آيتونو کښې صحيح ده لکه ﴿وَنُفِخَ فِى الصُّوْرِ فَصَعِقَ مَنْ فِى السَّمٰوٰتِ وَمَنْ فِى الْاَرْضِ﴾ (الزمر: ٦٨) مګر دلته ئے معنىٰ د بې هوشىٔ ده۔ دليل پرے (فَلَمَّا اَفَاقَ) لفظ دے ځکه چه افاقه د بې هوشىٔ نه روستو وى۔ (ابن کثيرؒ)

سُبْحٰنَكَ : يعنى تهٔ پاك ئے ددے نه چه زهٔ ستا نه د هغه شى سوال وکړم چه زما په هغے علم نشته۔ يا تهٔ پاك ئے ددے نه چه ستا نه نا مناسبه کارونه وغوښتے شى۔ (المنار)

تُبْتُ اِلَيْكَ : دا توبه د ګناه نه نهٔ وه ځکه چه هغه ګناه نهٔ ده کړے بلکه الله ورله ډير حده پورے د ليدو دعا قبوله کړه۔

او توبه په معنىٰ د رجوع سره ده د هغه څه نه چه دهٔ طلب کړے وو۔ يعنى تا ته ما رجوع کړيده پدے خبره کښې چه زهٔ ستا نه ليدل وغواړم۔ (مجاهدؒ)

وَاَنَا اَوَّلُ الْمُؤْمِنِیْنَ : یعنی اول نه مے یقین وو لیکن زیادتِ یقین غواړم. یا اول المؤمنین کامل مؤمن ته وائی. یا د بنی اسرائیلو نه اول مؤمن یم. او د ابن عباسؓ روایت دے (اَنَا اَوَّلُ الْمُؤْمِنِیْنَ اَنَّهٗ لَا یَرَاكَ اَحَدٌ). یعنی پدے خبره زما اول یقین دے چه تا څوك په دنیا کښې نشي لیدلے. (ابن کثیرؒ)

اِنِّیْ اصْطَفَیْتُكَ : الله تعالیٰ د موسیٰ علیه السلام د تکریم په توګه هغه ته زیرے ورکړو چه ما ته د خپل رسول جوړولو او تا سره د خبرو کولو په وجه د نورو په مقابله کښې چانړ کړے ئے، پدے وجه دا نعمت قبول کړه او د الله شکر ادا کوه اګر که زۀ دے ونۀ لیدم خو دغه نعمتونه ستا دپاره کافی دی، لیدل مۀ غواړه .نو دائے ورله تسلی شان ورکړه. او دائے ورته ووئیل چه زما دا کتاب واخله او خپل قوم ته ئے بیان کړه.

عَلَی النَّاسِ : د «الناس» نه مراد صرف د موسیٰ علیه السلام د زمانے خلق دی. یعنی مونږ موسیٰ علیه السلام لره د هغه د زمانے په خلقو فضیلت ورکړے وو چه رسالت او کلام ئے دواړه ورنصیب کړی وو او هارون علیه السلام ته ئے صرف رسالت ورکړے وو، کلام نۀ وو او دا تخصیص څکه کوو چه زمونږ نبی کریم ﷺ لره الله تعالیٰ د تمامو انسانانو سردار جوړ کړیدے، هغه خاتم الانبیاء والمرسلین دے، د هغه شریعت به تر قیامته پورے نافذ العمل وی، په دۀ ایمان راوړونکی به د نورو انبیاؤ علیهم السلام د تابعدارو نه زیات وی. د نبی کریم ﷺ نه روستو د ابراهیم خلیل الله علیه السلام درجه ده، او دریم نمبر موسیٰ علیه السلام دے.

وَكُنْ مِّنَ الشّٰكِرِیْنَ : دے نه معلومه شوه چه د الله په کتاب باندے شکر کول لازم او فرض دی. ددے شکر دا دے چه په هغے ایمان راوړی بیا د هغے دا حکامو تابعداری وکړی بیا د هغے بیان وکړی، او په خوله باندے هم د الله شکر وکړی چه الحمد لله داسے ښائسته کتاب ئے زمونږ د هدایت دپاره رالیږلے دے.

وَكَتَبْنَا لَهٗ : دا نسبت الله تعالیٰ ته حقیقی دے لکه په حدیث کښې دی چه الله تعالیٰ آدم علیه السلام په خپل لاس پیدا کړیدے او تورات ئے په خپل لاس لیکلے دے او د طوبیٰ ونه ئے په خپل لاس ناله کړیده. (الحاکمؒ، ابن ابی شیبة، والآجری فی الشریعة وصححه الذهبی فی الاربعین والالبانی)

(۳) دا د تورات تختئ وے، (چه د کانړو نه وے) چه په هغے کښې د بنی اسرائیلو دینی او دنیاوی د هدایت او لارخودنے او خیر هره خبره لیکلے شوے وه لکه چه الله تعالیٰ په سورة قصص آیت (۴۳) کښې فرمایلی دی: ﴿وَلَقَدْ اٰتَیْنَا مُوْسَی الْكِتٰبَ مِنْ بَعْدِ مَا اَهْلَكْنَا الْقُرُوْنَ الْاُوْلٰی بَصَآئِرَ لِلنَّاسِ وَهُدًی وَّرَحْمَةً﴾.

او مونږ د تیر شوی قومونو د هلاکولو نه روستو موسیٰ ته کتاب (تورات) ورکړو چه د خلقو دپاره د نصیحتونو مجموعه او د هدایت ذریعه او د الله رحمت وو۔

**وَّتَفْصِيلًا لِّكُلِّ شَيْءٍ** : دے ته کُل عرفی وائی یعنی کوم شی ته چه د بنی اسرائیلو ضرورت وو هغه ټول په کښې په تفصیل سره ذکر شوی وو۔

پدے کښې تفصیل د اجناسو وو لکه الله او مخلوق، دنیا او آخرت، آسمان او زمکه، حلال او حرام، دوست او دشمن، حق او باطل، لیل او نهار۔ او پدے معنیٰ باندے قرآن کریم هم تفصیل د هر شی دے۔

یو بل قول دا دے چه دا تختئ موسیٰ ﷺ ته د تورات نه مخکښې ورکړے شوے وے۔ ابن کثیرؒ وائی : الله پدے خبره عالم دے، هر څنګه چه وی خو دا عوض وو د هغه رؤیت (لیدو) نه چه موسیٰ ﷺ طلب کړے وو۔

الله تعالیٰ موسیٰ ﷺ ته حکم وکړو چه دا تختئ په دے عزم سره واخلی چه پدے کښې په موجودو احکامو باندے عمل وکړی او د نواهیو نه اجتناب وکړی، د رخصت په ځای عزیمت او د نوافلو نه مخکښې د فرائضو اهتمام وکړی، او د غیرو په ضرر صبر وکړی او معافی وکړی۔ (ابن کثیرؒ)

**فَخُذْهَا بِقُوَّةٍ** : اَیْ بِجِدٍّ وَعَزِيْمَةٍ وَحَزْمٍ۔ یعنی په کوشش او عزم او اهتمام سره دا واخله۔ ځکه چه د یو نوی امت تربیت کول دی چه هغوی د فرعون په ذلت اموخته شوی وو، نو د دوی سیاست او تربیت ډیر عزم او هوښیارتیا او قوت غواړی۔ (المنار)

**يَأْخُذُوْا بِاَحْسَنِهَا** : دا اضافت بیانیه دے، یعنی عمل دے کوی په ډیرو ښائسته خبرو د تورات چه هغه ټول تورات دے یعنی ټول احسن دے، صاحب المنارؒ وائی چه د احسن معنیٰ ده ذِی الْحُسْنِ التَّامِّ الْكَامِلِ۔ یعنی د کامل او پوره حُسن والا احکام۔ نو پدے کښې معنیٰ تفضیلی نشته۔ یا اشاره ده چه اَحْسَن عزیمت، او حَسَن رخصت ته وائی۔

**سَاُورِيْكُمْ دَارَ الْفٰسِقِيْنَ** : ۱- حافظ ابن کثیرؒ او ابن جریرؒ ددے معنیٰ کوی یعنی کوم خلق چه زما اَوَامِر تکراووی او زما د بندګئ نه اعراض کوی نو تاسو به نزدے وینئ چه هلاکت او بربادی به د هغوی انجام وی، نو که تاسو نافرمانی وکړه نو دغه شان انجام ته به تاسو هم ورسیږئ۔ نو دا په محاوره باندے بناء دے لکه عرب په طریقه د تهدید او زورنے سره وائی (سَاُرِيْكَ غَدًا مَا يَصِيْرُ اِلَيْهِ حَالُ مَنْ خَالَفَنِيْ)۔ زر دے چه زه به تا ته صبا وښایم چه څوك زما مخالفت کوی د هغه حال به څه ګرځی ؟۔

۲- صاحب المنار ئے داسے تعبیر کړیدے چه که تاسو زما کتاب په قوت سره وانخستو او ددے د احکامو تابعداری مو ونکړه نو تاسو به د خپل رب نافرمان وګرځئ نو تاسو باندے به هغه عذاب نازل شی کوم چه په نافرمانه خلکو د قوم د فرعون باندے ئے نازل کړے وو کوم نه چه الله تعالیٰ تاسو راخلاص کړئ او تاسو سره ئے په هغوی باندے مدد وکړو۔نو د فاسقین نه مراد قوم د فرعون دے۔ (المنار)

۳- بعض مفسرینو وئیلی دی چه د دار الفاسقین نه مراد د شام زمکه او بیت المقدس دے، د هغه ځای وسیدونکی عمالقه د الله نافرمان شوی وو، نو الله تعالیٰ بنی اسرائیلو سره وعده وکړه او زیرے ئے ورکړو چه نزدے ده چه دوی به د هغه خلقو په علاقه قابض شی۔ نو د موسیٰ علیه السلام د وفات نه روستو د یوشع بن نون علیه السلام په قیادت کښې بنی اسرائیلو د عمالقه ؤ سره جنګ وکړو او د هغوی په علاقو قابض شو۔

٤- بعض وائی : دار الفاسقین جهنم ته وائی یعنی که نافرمانی مو وکړه نو جهنم به درته وښایم په قیامت کښې۔ راجح اول او دویم تفسیر دے۔

مفسرین لیکی چه د آیت پدے جمله کښې بنی اسرائیلو ته یو قسم تنبیه ده چه که دوی په تورات کښې په موجودو احکامو او شرائعو عمل نکوی او دا شا ته ګوزار کړی نو دوی به هم فاسقان شی، او په دنیا کښې به ذلیل او خوار شی، او په آخرت کښې به د دوی ځای جهنم وی۔ او د تفسیر د قاعدے مطابق دا حکم د هغه تمامو خلقو دپاره عام دے چه په هر دَور کښې د الله د احکامو او شرائعو نه اِعراض کوی او مخ آړوی۔ او دا قانون الله د قرآن دپاره هم بیانوی۔

| سَاَصْرِفُ عَنْ اٰيٰتِيَ الَّذِيْنَ يَتَكَبَّرُوْنَ فِي الْاَرْضِ |
|---|
| زر دے چه وبه ګرځوم د آیتونو خپلو نه هغه کسان چه لوئی کوی په زمکه کښې |
| بِغَيْرِ الْحَقِّ ؕ وَاِنْ يَّرَوْا كُلَّ اٰيَةٍ لَّا يُؤْمِنُوْا بِهَا ۚ وَاِنْ يَّرَوْا سَبِيْلَ |
| په ناحقه او که ووینی دوی هره نخه (د حق) ایمان نهٔ راوړی په هغے او که ووینی لاره |
| الرُّشْدِ لَا يَتَّخِذُوْهُ سَبِيْلًا ۚ وَاِنْ يَّرَوْا سَبِيْلَ الْغَيِّ يَتَّخِذُوْهُ سَبِيْلًا ؕ ذٰلِكَ |
| د هدایت نهٔ نیسی هغه لاره او که ووینی دوی لاره د ګمراهئ نو نیسی هغه لاره، دا |

بِاَنَّهُمْ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا وَ كَانُوْا عَنْهَا غٰفِلِيْنَ ﴿١٤٦﴾

پدے وجه چه دوی به دروغژن گنړل آیتونه زمونږ او وو دوی د هغے نه بے پرواه۔

وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا وَلِقَآءِ الْاٰخِرَةِ حَبِطَتْ

او هغه کسان چه دروغژن ئے کړل آیتونه زمونږ او ملاقات د آخرت، برباد شو

اَعْمَالُهُمْ ۚ هَلْ يُجْزَوْنَ اِلَّا مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿١٤٧﴾

عملونه د دوی، بدله نۀ ورکړے کیږی دوی ته مګر د هغے چه دوی ئے کوی۔

**تفسیر**: بل ئے ورته دا قانون بیان کړو (چه دا قانون د قرآن کریم دپاره هم دے) چه ما آیتونه راولیږل چه تورات دے (او اُوس قرآن دے) نو هر هغه انسان چه په هغه کښ تکبر وی نو هغه به زما د آیتونو نه فائده وانخلی، بلکه مُتَوَاضِعِین (عاجزی کونکی) خلك به زما د کتاب نه فائده اخلی، او دا قاعده کلیه ده۔ نو د وحی نه به هغه شخص فائده وانخلی چه په هغه کښ تکبر وی۔ او علماؤ هغه نهه صفات ذکر کړیدی چه هغه د قرآن کریم د پوهے نه منع کونکی دی چه هغه سیوطیؒ په الاتقان (۲/۲۳۲) کښ او زرکشیؒ په البرهان (۲/۱۸۰) کښ ذکر کړیدی۔ او زمونږ ((اصول التفسیر وعلوم القرآن)) وګوره۔

عَنْ اٰيٰتِيَ: د آیتونو نه د اړولو ډیر مصداقات دی او هغه ټول مراد دی:

(۱) قتادةؒ وائی: عَنْ فَهْمِ آيَاتِيْ۔ د آیتونو د پوهے نه به ئے اړوم۔

(۲) عَنِ الْإِيْمَانِ بِآيَاتِيْ۔ یعنی د ایمان توفیق به نۀ ورکوم۔

(۳) عَنِ النَّفْعِ بِآيَاتِيْ۔ (فتح القدیر للشوکانیؒ) یعنی زما د آیتونو نه به متکبر هیڅ فائده وانخلی، نۀ د ایمان، نۀ د عمل او نۀ د کوم حکمة معلومولو او دا ډیر جامع تعبیر دے۔

(٤) بعید تفسیر دا دے: (عَنِ الْاِعْتِرَاضِ بِآيَاتِيْ)۔

یعنی که متکبران زما په آیتونو اعتراض کوی نو زۀ به ئے ترے اړوم۔ (جصاص)

او پدے کښ اشاره ده چه د حق او د خیر داعیانو رسولانو او د هغوی وارثانو چه کوم حق بیان کړیدے او انسانانو د هغے مخالفت کړیدے، نو اول سبب د هغے تکبر دے ځکه چه تکبر داسے یو صفت دے چه انسان د نظر او استدلال او په حق او هدایت کښ د سوچ کولو نه اړوی، نو دوی همیشه د الله د آیتونو تکذیب کوی او د هغے نه غفلت اختیاروی لکه د بادشاهانو او غټانو او ګمراهانو مشرانو حال وګوره لکه فرعون او د هغه سرداران، او دغه

شان د قريشو سرکشانو سردارانو کښې تکبر وو، نو هغوی د الله په آيتونو (قرآن) کښې هيڅ سوچ ونکړو چه د هغې نه د الله وحدانيت او د رسول الله ﷺ صدق معلوم کړی، ددې وجه دا وه چه دوی کښې تکبر وو او تکبر پدې غرور کښې راوستی وو چه خپل ځانونه به ئې په هغهٔ باندې غوره ګنړل چه مونږ سرداران، مشران، مالداره او قوی يو، نو مونږ سره دا لائق نهٔ دی چه د هغه چا پسې روان شو چه هغه زمونږ نه په عمر، قوت، مالدارئ او عصبيت کښې کم دی۔ او پدې وجه چه دا قانون تولو روستنو خلکو ته شامل شی الله تعالىٰ دا په (سَاَصۡرِفُ) مضارع صيغه سره ذکر کړو۔ (المنار)

دغه شان يهود او نصارىٰ او هر کافر چه د قرآن نه محروميږی نو د هغې وجه تکبر دے۔ اهل بدعو ته هدايت ولے نهٔ کيږی؟ ځکه چه تکبر پکښې دے، وائی چه زهٔ عالِم يم او شيخ يم او زهٔ په هر څه پوهه يم۔

بِغَيۡرِ الۡحَقِّ : دا صله د تکبر ده يعنی ناحقه تکبر کوی، او کله تکبر په حق سره وی لکه د باطل پرستو نه ځان لوی ګنړل، يا د جبارينو اِهانت کول او د مُحاربينو سپکاوے کول۔ نو دا قيد احترازی شو۔ يا دا قيد واقعی دے چه بيان د واقع کوی ځکه چه تکبر وی په ناحقه۔

يا معنىٰ دا ده : اَیۡ يَتَكَبَّرُوۡنَ حَالَةَ كَوۡنِهِمۡ مُتَلَبِّسِيۡنَ بِغَيۡرِ الۡحَقِّ اَیۡ مُنۡغَمِسِيۡنَ فِی الۡبَاطِلِ۔

يعنی تکبر کوی په داسې حال کښې چه مشتمل او انښتی وی په ناحقه، يا ننوتی وی په باطل کښې ځکه تکبر کوی۔ نو ددے خلکو په زړونو کښې د حق هيڅ قيمت نشته نو نهٔ هغه طلب کوی او نهٔ د هغې تالاش کوی۔ (کله فی المنار)

وَاِنۡ يَّرَوۡا كُلَّ اٰيَةٍ : دا نښه د تکبر ده۔

سَبِيۡلَ الرُّشۡدِ : اَیِ الصَّلَاحُ وَالۡاِسۡتِقَامَةُ ۔ يعنی دے خلکو ته فساد او ګمراهی دومره ښائسته ښکاره شويده چه د هدايت او نيغې لارے نه نفرت کوی، نو که دوی د هدايت لاره ښکاره وينی نو هغه ځان دپاره لاره نهٔ جوړوی، چه هغه په خپل زړه طريقه باندے غوره کړی۔ دا ډيره غلطه طريقه ده، البته بعض خلك داسې وی چه په ګمراهئ باندے په ناپوهئ سره روان وی خو کله چه پوهه شی نو ځان د زړے لارے نه وباسی او د هدايت په لاره پسے روان شی۔

يَتَّخِذُوۡهُ سَبِيۡلًا : دا د ټولو باطل پرستو طريقه ده چه په کتابونو کښې ښے مسئلے ګوری نو هغه ترے نهٔ راخلی او عمل پرے نکوی او چه کله د دوی د باطل موافق خبره وی نو

هغه ترې راخلي او عمل پرې کوي۔

او ددې دواړو درجو ترمينځ بله درجه دا ده چه يو تن ته د نفس تزکيه او د بصيرت رڼړا نهٔ وي حاصله چه د هغې په وجه هغه د هدايت په لاره روان شي کله چه هغه ورته ښکاره شي، ځکه چه همت ئې کمزورې وي، ليکن گمراهي او فساد بد گڼړي نو ددهٔ فطرت بيمار وي او په بصيرت کښې ئې تيارهٔ وي نو پدې وجه هغه د جهالت په وجه د حق په لاره روان نشي۔ او کله چه بنده کښې دا حالات يا دا صفات راجمع شي نو دا هغه شخص دې چه الله دهٔ لره سره د علم نه گمراه کړيدې او ددهٔ په غوږونو او زړه ئې مهر وهلې دې نو ددهٔ دپاره د حق او هدايت هيڅ اسباب پاتې نهٔ دي۔ (المنار)

ذٰلِكَ : ١ – اشاره ده صَرْفَ (اړولو) ته۔ يعنې دا د آيتونو نه اړول پدې وجه دي چه د دوی د تکذيب او غفلت په وجه په دوی کښې تکبر راغې او د تکبر په وجه الله تعالىٰ د خپلو آيتونو نه محرومه کړل۔ ٢ – يا دا کبر او عدم ايمان ته اشاره ده يعنې دا کبر کول او ايمان نهٔ راوړل د تکذيب او د غفلت په وجه پيدا شو۔ او دا دواړه خبرې واقع دي او په يو بل باندې مرتبې دي، نو اول دوی کښې غفلت راغلو بيا ئې تکذيب وکړو بيا د ايمان نه محرومه شو۔

او پدې کښې اشاره ده چه د آيتونو نه اړول الله تعالىٰ په دوی کښې طبعاً نهٔ وو پيدا کړي او نهٔ پرې الله زور کړې وو بلکه دا دوی په خپل اختيار سره غوره کړې وو۔

وَالَّذِيْنَ : اُوس تخويف بيانوي د منکرينو دپاره۔

وَلِقَآءِ الْاٰخِرَةِ : د قرآن او د آخرت ډېر تعلق دې پدې وجه ئې دلته هم جمع کړل، د آخرت په ملاقات کښې اشاره ده چه دوی نه د توبې اميد نشي کيدې ځکه چه دوی آخرت نهٔ مني۔

حَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ : يعنې که په حالت د تکذيب کښې بغير د توبې کولو نه مړ شي نو عملونه به ئې برباد شي۔ او د عملونو بربادېدل دا دي چه نهٔ به ورته دنيا کښې فائده ورکړي او نهٔ په آخرت کښې۔ او دا سزا الله ولې ورکوي ؟ وجه دا ده چه د انسان لويه سرمايه عمل دې چه پدې باندې کاميابي موقوف ده، نو هر کله چه عمل برباد شو نو پوره هلاکت راغې۔ پدې وجه الله تعالىٰ په قرآن کريم کښې د عملونو د بربادولو ډيره دهمکي ورکوي۔

اَعْمَالُهُمْ : ددې نه د دوی نيک عملونه مراد دي لکه صدقه، صله رحمي، او ښه اخلاق او نور عبادات۔

| وَاتَّخَذَ قَوْمُ مُوسٰى مِنْ بَعْدِهٖ مِنْ حُلِيِّهِمْ عِجْلًا جَسَدًا |
|---|
| او جوړ کړو قوم د موسیٰ روستو (د تللو) د هغهٔ نه د ګاڼړو د دوی نه سخے یوه جثه وه |
| لَّهٗ خُوَارٌ ؕ اَلَمْ يَرَوْا اَنَّهٗ لَا يُكَلِّمُهُمْ |
| چه هغے لره آواز وو، آیا نهٔ ګوری دوی چه یقیناً دے خبرے نشی کولے د دوی سره |
| وَلَا يَهْدِيْهِمْ سَبِيْلًا ۘ اِتَّخَذُوْهُ وَكَانُوْا ظٰلِمِيْنَ ﴿۱۴۸﴾ |
| او نهٔ خودلے شی دوی ته سمه لار، ونیوو دوی سخے په الوهیت سره او وو دوی ظالمان۔ |

**تفسیر:** اُوس هغه حالت بیانوی چه کله موسیٰ علیہ السلام طور ته تلے وو نو خلکو څه وکړل؟ کله چه موسیٰ علیہ السلام د الله تعالیٰ د حکم مطابق د څلویښتو ورځو دپاره د طور غرته لاړو نو شیطان بنی اسرائیلو لره په شرك کښې مبتلا کړل۔ معلومیږی چه دوی په مصر کښې د غلامئ په دور کښې د غیر الله د عبادت او د شرکی اعمالو سره داسے عادت شوی وو چه د فرعون نه د نجات موندلو نه روستو هم چه څه موقعه به راتله، نو فوراً به ئے شرك طرف ته منډه وهله، کله چه دوی د سینا په طرف راتلل او په لاره کښې ئے یو بت پرست قوم ولیدو نو د موسیٰ علیہ السلام نه ئے مطالبه وکړه چه زمونږ دپاره هم یو معبود جوړ کړه۔

او کله چه موسیٰ علیہ السلام په طور غر کښې د الله تعالیٰ سره خبرے وکړے نو د شیطان په وسوسه کښې راغلل او د هغه سخی عبادت ئے شروع کړو کوم چه سامری (د بنی اسرائیلو یو فرد) د قبطیانو د زیوراتو نه د هغوی دپاره جوړ کړے وو۔ دا زیورات بنی اسرائیلو سره عاریةً راغلی وو، لیکن د قبطیانو د هلاك کیدو نه روستو ددے مالکان جوړ شو۔

سامری په هغه سخی کښې هغه خاوره واچوله کومه چه د جبریل علیہ السلام د آس د خپے لاندے نه هغه راخستے وه، چه د هغے په وجه به د هغهٔ نه د غوا آواز وتلو۔ او دا امتحان وو په بنی اسرائیلو او په سامری باندے چه داسے ناشنا کارنامه ئے د لاس نه صادره شوه، نو سامری دوی لره دهوکه کړل او ویے وئیل چه همدا زمونږ معبود دے چه دهٔ مونږ ته د فرعون نه نجات راکړو۔ تولو د هغه خبره ومنله سوئ د لږ کسانو نه، او د هارون علیہ السلام د ډیرو پوهولو باوجود د هغه سخی عبادت ئے شروع کړو۔

(ددے نه معلومه شوه چه د چا د الله تعالیٰ سره صحیح تعلق نهٔ وی او هغه ئے صحیح نهٔ وی پیژندلے، نو د هغه سره به دغه شان کار کیږی چه د خلکو د دهوکو او د فتنو ښکار

کيږي به، ددې وجه نه د مسلمان دپاره بصيرت پکار دے چه معبود او غير معبود جدا جدا صفاتو سره وپيژني، بنی اسرائيل د سخی په آواز دهوکه شو او دے ته ئے الـه وئيل شروع کړل، دارنګه الله تعالیٰ او قبر، محمد رسول الله ﷺ او يو عَالِم، جدا جدا پيژندل پکار دی، ورنه انسان به دغه شان ګمراه کيږي او د هرے فتنے ښکار کيږي به).

او پدے کښې د مکے په مشرکانو هم ردونه دی چه د الله تعالیٰ پيغمبران بتان ماتوی او هغه درياب ته ګوزاری او په شرك باندے غصه کوی او تاسو لګيا يئ شرکونه کوئ.

الله تعالیٰ موسیٰ ؑ ته ددے بت پرستئ خبر د طور په غر کښې ورکړے وو. کله چه د مودے پوره کيدو نه روستو واپس راغلو نو په غصه کښې ئے د الله د طرف نه ورکړے شوے تختئ په زمکه کيخودے او د هارون ؑ د سر ويښته ئے ونيول او خان ته ئے راخکل او هغه ته ئے زجر او توبيخ ورکړو چه ستا په موجودګئ کښې داسے ولے وشو ؟ نو هغوی خپله مجبوری وخودله چه د هغه د ډير کوشش باوجود بنی اسرائيل خلق په شرك کلك ولاړ وو، بلکه د هغوی د سرکشئ حالت دا وو چه نزدے وه چه تولو په شريکه زهٔ وژلے وے. ددے آيتِ کريمه نه مسلسل شپږو آيتونو پورے د بنی اسرائيلو هـذا ګمراهی بيان شويده.

نو موسیٰ ؑ چه کله دوی ته خطاب وکړو چه تاسو دا کار ولے کړيدے؟ نو هغوی سامرے وخودلو چه مونږ دهٔ ګمراه کړو. نو موسیٰ ؑ دوی ته غصه وکړه او د الله وحدانيت ئے ورته ښکاره بيان کړو، نو په هغوی کښې اکثرو خلکو توبه وويستله او لږ کسان د منافقت په طريقه په شرك باندے پټ پاتې شو چه په ظاهره کښې ئے توبه وويستله. نو د هغوی حال په روستو رکوع کښې راځي (اِنَّ الَّذِيْنَ اتَّخَذُوا الْعِجْلَ) دوی هغـه خلك دی چه توبه ئے نهٔ ده ويستلے او پدے رکوع کښې د توبه ويستونکو حال بيانيږي.

عِجْلًا : د غوا او ميخے بچی ته عِجل وائی.

جَسَدًا : يعنی يو جُثه وه. جسد په اصل کښې د انسان د بدن دپاره استعماليږي.

لَهٗ خُوَارٌ : حافظ ابن کثيرؒ فرمائی : چه د مفسرينو پدے کښې اختلاف دے چه آيا دا سخے غوښه او وينه ګرځيدلے وه چه آواز ئے کولو، يا دا چه همغه سرهٔ زر وو (اِلَّا اَنَّهٗ يَدْخُلُ الْهَوَاءُ فَيُصَوِّتُ كَالْبَقَرِ) چه هواء به په هغه کښې د شا نه داخليده او د غوا په شان آوازا به ئے کولو.

ابن جريرؒ وائی چه په دُبر کښې به ورته هوا ننوته او په خوله به ترے وتله نو پدے سره به ترے يو آواز وتلو (لکه بوتل کښې چه خلك شڼګه آواز کوی)

مګر راجح دا ده چه د غوا په شان آواز به ئے کولو او دا امتحان وو په بنی اسرائيلو باندے

او داسې امتحانات کله نا کله په کمزورو عقیدو والو باندې راځي چه د قبر خوا ته ورشي نو د قبر نه ورته شیطان آواز وکړي، او کله نا کله ئې حاجت هم الله پوره کړي نو دې وائي چه بابا بنه کرم۔

أَنَّهُ لَا يُكَلِّمُهُمْ وَلَا يَهْدِيهِمْ سَبِيلًا : د بنی اسرائیلو په سترګو د جهالت او ګمراهئ پټئ تړلې شوې وې څکه خو دوی ته ددې سوچ توفیق نهٔ وو ورکړې شوې چه دا سخې نهٔ د دوی سره خبرې کوی او نهٔ کوم خیر طرف ته د دوی لارخودنه کوی، بیا د زمکې او د آسمان د پیدا کونکی په ځای هغه د دوی څنګه معبود کیږی ؟۔

لَا يُكَلِّمُهُمْ : دا دلیل دې چه رب هغه ذات ته وائی چه د خبرو والا به وی څکه چه خبرې کمال دې۔ نو کوم متکلمین چه د الله کلام لفظی نهٔ منی نو دوی د الله ډیره بې ادبی کوی او د الله تشبیه د یو جَماد (بې ساه شی) سره ورکوی چه خبرې اترې نشی کولے۔

اِتَّخَذُوهُ وَكَانُوا ظَٰلِمِينَ : یعنی دوی چه دا سخې په بندګئ نیولے وو نو دا څه د دلیل یا د مشابه د دلیل د وجه نه نهٔ وو بلکه تقلید وو چه دوی مصریان د (اَبِیس) سخې په عبادت لیدلی وو، او یو قوم ئې په لاره کښې لیدلے وو۔ او دوی ظلم کونکی وو پدې نیولو د سخې په جهالت او تقلید سره چه دې ورته ضرر ورکړو او فائده ئې ورنکړه۔ (المنار)

| وَلَمَّا سُقِطَ فِىٓ أَيْدِيهِمْ وَرَأَوْا أَنَّهُمْ قَدْ |
|---|
| او هر کله چه وغورزولے شو د دوی په مخکښې او پوهه شو دوی چه بیشکه |
| ضَلُّوا قَالُوا لَئِن لَّمْ يَرْحَمْنَا رَبُّنَا |
| دوی ګمراه شویدی، نو ووئیل دوی که چرې رحم ونکړو په مونږ باندې رب زمونږ |
| وَيَغْفِرْ لَنَا لَنَكُونَنَّ مِنَ الْخَٰسِرِينَ ﴿١٤٩﴾ |
| او بخنه ئې ونکړه مونږ ته خامخا شو به مونږ د تاوانیانو نه۔ |

**تفسیر**: د موسیٰ عليه السلام د نوی کوشش نه روستو کله چه بنی اسرائیل په خپله ګمراهئ پوهه شو او په غلطئ پښیمانه شو نو دوی د الله نه د رحم او بخنې دعا وکړه۔

سُقِطَ فِىٓ أَيْدِيهِمْ : لفظی معنیٰ ئې ده : (ګوزار کړې شو په لاسونو د دوی کښې) او په عربئ کښې دا کنایه وی د سخت ندامت (پښیمانتیا) نه۔ زجاج وائی : (وَلَمَّا سَقَطَ النَّدَمُ فِی

قُلُوبِهِمْ) هرکله چه پښیمانتیا د دوی په زړونو کښې پریوته)۔ دا تفسیر باللازم دے۔
او کومو علماؤ چه ضمیر سخی ته راجع کړیدے او داسے معنیٰ ئے کړیده چه هرکله چه سخے د دوی مخامخ دریاب ته گوزار کړے شو۔نو دا بعیده ده۔
لَئِنْ لَّمْ يَرْحَمْنَا : دا دعاء آدم ﷺ هم کړے وه، چه قبوله شوے وه۔

| |
|---|
| وَلَمَّا رَجَعَ مُوْسٰٓى اِلٰى قَوْمِهٖ غَضْبَانَ اَسِفًا ۙ قَالَ |
| او هرکله چه راواپس شو موسیٰ (ﷺ) قوم خپل ته چه غصه وو، غمژن وو، وے وئیل |
| بِئْسَمَا خَلَفْتُمُوْنِيْ مِنْ بَعْدِيْ ۚ اَعَجِلْتُمْ اَمْرَ |
| بد دے هغه کار چه کړیدے تاسو روستو زما نه آیا جلتی وکړه تاسو د وعدے |
| رَبِّكُمْ ۚ وَاَلْقَى الْاَلْوَاحَ وَاَخَذَ بِرَاْسِ اَخِيْهِ |
| د رب ستاسو نه، او په جلتیٔ ئے کیخودے تختے د تورات او وے نیولو سر د ورور خپل |
| يَجُرُّهٗٓ اِلَيْهِ ۙ قَالَ ابْنَ اُمَّ اِنَّ الْقَوْمَ اسْتَضْعَفُوْنِيْ |
| راخکلو ئے خانته، ووئیل (هارون ﷺ) اے د مور خویه! یقیناً دے قوم کمزورے گنړلے وو ما لره |
| وَكَادُوْا يَقْتُلُوْنَنِيْ ۖ فَلَا تُشْمِتْ بِيَ الْاَعْدَآءَ وَلَا تَجْعَلْنِيْ |
| او نزدے وه چه وژلے ئے وے زهٔ، پس مهٔ خوشحالوه په ما باندے دشمنان او مهٔ گرخوه ما |
| مَعَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۵۰﴾ قَالَ رَبِّ اغْفِرْ لِيْ وَلِاَخِيْ |
| د قوم ظالمانو سره۔ ووئیل (موسیٰ ﷺ) اے ربه زما بخنه وکړه ما ته او ورور زما ته |
| وَاَدْخِلْنَا فِيْ رَحْمَتِكَ ۖ وَاَنْتَ اَرْحَمُ الرّٰحِمِيْنَ ﴿۱۵۱﴾ |
| او داخل کړه مونږ په رحمت خپل کښې او ته ډیر رحم کونکے ئے د رحم کونکو نه۔ |

**تفسیر**: دا واقعه مخکښې وه لیکن د شرك د بدیٔ او د بد عاقبت خودلو د وجه نه ئے د هغوی پښیمانتیا مخکښې کړه چه شرك هغه شے دے چه انسان به پرے پښیمانه کیږی۔
موسیٰ ﷺ د طور غر د واپسیٔ نه روستو ولیدل چه د څه کسانو نه سویٔ تول بنی اسرائیل د سخی نه گیر چاپیره راجمع دی او د هغے په عبادت کښې لگیا دی، نو خپل ورور هارون ﷺ او نورو مؤمنانو ته ئے ووئیل چه تاسو زما ډیر خراب نیابت کړیدے، څلوبښتو

ورځو پورې هم په نيغه لاره قائم پاتې نشوئ او بت پرستى مو شروع كړه. او د الله او د هغه د دين د خاطره په غصه كښې ئې تختئ په زمكه واچولې، وائى چه دغه تختئ د كاڼړى وې، ماتې شوې، هغه دا گمان وكړو چه د هارون ﷺ نه كوتاهى شويده، پدې وجه ئې د هغه د سر ويښتـه راونيول او راتې خكلو. ليكن كله چه دوى خپل عذر پيش كړو چه ما خو پوره كوشش كړې چه دوى په نيغه لاره راولم ليكن دوى زما خبره نهٔ آوريده او د سخى عبادت ئې شروع كړو.

أَسِفًا : يعنى د غم نه ډك وو. أَسَف : شِدَّةُ الْحُزْنِ وَالْغَضَب (سخت غم او غصے) ته وائى. يعنى سخت غصه او سخت غمژن وو. نو (أَسِفًا) تاكيد د غَضْبَانَ دے. يا غضبان وو ورور ته او غمژن وو په كار د قوم باندے.

خَلَفْتُمُونِي : تاسو كړيدے روستو زما نه. يعنى زما نائبان شوى يئ روستو زما نه.

أَمْرَ رَبِّكُمْ : ١- د امر نه مراد د الله عذاب دے. ځكه چه شرك سره عذابونه راځى.

٢- ظاهر دا ده چه دوى ته د الله امر دا وو چه تاسو به انتظار كوئ ترځو چه تاسو ته موسىٰ ﷺ نهٔ وى راواپس شوے او كتاب ئې نهٔ وى راوړے. وهو الراجح.

٣- يا د امر نه مراد كار دے چه هغه وعده د څلوېښتو ورځو وه، الله دوى سره وعده كړے وه د موسىٰ ﷺ په ژبه.

يعنى تاسو جلتى وكړه د وعدے د خپل رب نه يا تاسو جلتى وكړه د حكم د خپل رب نه شرك ته. يعنى د الله حكم لا راغلے نهٔ دے دوى د مخكښې نه د ځان نه دين جوړ كړو او د سامرى گمراه پسے روان شو، لكه دا د اهل بدعو طريقه ده چه د قرآن او حديث تپوس نكوى خو د مخكښې نه د ځان نه دين جوړوى.

وَأَلْقَى الْأَلْوَاحَ : دلته امام رازى ليكلى دى چه موسىٰ ﷺ دا تختے په جلتئ سره كيخودے د غصے د وجه نه او د غورزولو معنىٰ نهٔ ده او ماتے شوے نهٔ وے لكه په سورة يوسف آيت (٩٦) كښې دى ﴿أَلْقَاهُ عَلَى وَجْهِهِ فَارْتَدَّ بَصِيرًا﴾ قميص ئې په مخ د يعقوب ﷺ واچولو. مطلب ئې دا دے چه گوزارول او بيا د تورات تختئ ماتيدل خو بى ادبى ده او دا د نبى د شان سره نهٔ ښائى.

ليكن صحيح دا ده چه په صحيح حديث كښې راغلى دى، رسول الله ﷺ فرمائى :

[لَيْسَ الْخَبَرُ كَالْمُعَايَنَةِ، إِنَّ اللَّهَ تَعَالَى أَخْبَرَ مُوسَى بِمَا صَنَعَ قَوْمُهُ فِي الْعِجْلِ فَلَمْ يُلْقِ الْأَلْوَاحَ فَلَمَّا عَايَنَ مَا صَنَعُوا أَلْقَى الْأَلْوَاحَ فَانْكَسَرَتْ]. (صحيح الجامع : ٥٣٧٤ ومسند احمد)

خبر د لیدو په شان نهٔ وی کله چه الله تعالیٰ موسیٰ علیه السلام تـه د قوم د شرك خبر ورکړو نو تـختـے تـرے گـوزار نشـوے (صرف غـصـه شو او زړه کښې ئے خفگان راغلو او کله چه دلته راغـے) او بـنـی اسـرائـیـل ئے پـه عـمـلـی شرك ولیدل (نو سم غصه شو او (په اصطلاح) بلاء پریشرئے وختو نو د ډیرے غصے نه په ځان پو هه نشو) او تورات ئے گوزار کړو نو هغه تختے (بعضے) ماتے شوے، آه. نو موسیٰ علیه السلام پدے باندے نهٔ دے گنا هگار شوے بلکه دا د الله دپاره غـصـه ده پدے وجه خپل ورور چه نبی دے هغه ئے هم وهلے دے، او د نبی وهل خو گناه وی لیـکـن دے پـرے نـهٔ دے گـنهگار شوے ځکه چه دا هر څه د الله دپاره وو. لکه په سیدنا عمر فاروق رضی الله عنه کـښې دا قسـم جلالی خوئی وو، د حاطب بن ابی بلتعه رضی الله عنه پـه باره کښې ئے ووئیل (دَعْنِیْ أَضْرِبْ عُنُقَ هٰذَا الْمُنَافِقِ) مـا پـریده چه ددے منافق څټ ووهم. حال دا چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فـرمـایـلـی وو چه دا مؤمن دے څه ورته مهٔ وایئ او هغه ورته منافق وائی، دا د جلال د وجـه نـه. یعنی عمر فاروق رضی الله عنه پـه دومره جلال کښې وو چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم دا خبره ئے وانهٔ وریده) او دے قول ته علامه قاسمیؒ په محاسن التاویل کښې ترجیح ورکړیده.

او عـلا مه ابن عاشورؒ وائی چه قرآن کریم د اِلقاء (گوزارولو) لفظ د همدے نکتے او عبرت دپاره ذکر کـړو چـه بـنـی اسرائیلو ته وښائی چه ستاسو د شرك په وجه موسیٰ علیه السلام دومره غـصـه شـوے وو چـه د هـغـه نـه د تـورات تـختـے وغورزیدے نو دا فعل د دوی ډیر فظیع او کبراهټ والا او شنیع (ناکاره) وو. (التحریر والتنویر ۲۹۷/۸)

صاحب الـمـنـار وائی چه دلته اِلقاء په خپله معنیٰ ده او اِلقاء په خپله معنیٰ سره لغةً او عـادةً د اهانت معنیٰ نهٔ ورکوی لکه موسیٰ علیه السلام خپـلـه امسا د حجت قائمولو دپاره گوزار کړه، اهانت به هله وی چه ددے قصد او اراده وکړی او دا د نبی نه قطعاً ممتنع دی، آه.

اِبْنَ اُمَّ : دائے د مور او پلار دواړو نه ورور وو لیکن مور ئے د شفقت په وجه ذکر کړه یعنی د مورِ په بچی رحم وی نو ته هم په ما باندے رحم وکړه.

اسْتَضْعَفُوْنِیْ : یـعـنـی دے خلکو زهٔ ضعیف وگنړلم، ځکه بنی اسرائیل د موسیٰ علیه السلام نه د هغه د تیز خوئی د وجه نه یریدل.

وَ كَادُوْا یَقْتُلُوْنَنِیْ : دا دلیل دے چه هارون علیه السلام دوی لره ښه منع کړی وو تردے چه د هغه د قتل اراده ئے وکړه.

فَلَا تُشْمِتْ بِیَ الْاَعْدَاءَ : شـمـاتـة : د دشمن په بد حالئ باندے خوشحالی کولو ته وائی او دا اشاره ده چـه د مـوحـدینـو پـه خـپـل مـیـنـځ کـښې اختـلاف د مشرکانو او مخالفینو د

خوشحالئ سبب گرځي نو پدے وجه دا اختلاف حرام دے۔ (احسن الکلام)

قَالَ رَبِّ اغْفِرْلِیْ : کله چه هغه ته د هارون علیه السلام د براءت یقین وشو نو د الله نه د خپل ځان او د خپل ورور دپاره ئے د بخنے دعا وکړه۔

| اِنَّ الَّذِیْنَ اتَّخَذُوا الْعِجْلَ سَیَنَالُهُمْ غَضَبٌ |
| --- |
| یقیناً هغه کسان چه نیولے ئے دے سخے (معبود) زر دے چه وبه رسی دوی ته غضب |
| مِّنْ رَّبِّهِمْ وَذِلَّةٌ فِی الْحَیٰوةِ الدُّنْیَا ؕ وَکَذٰلِكَ نَجْزِی |
| د طرف د رب د دوی نه په ژوند دنیوی کښ، او دغسے بدله ورکوو مونږ |
| الْمُفْتَرِیْنَ ﴿۱۵۲﴾ وَالَّذِیْنَ عَمِلُوا السَّیِّاٰتِ ثُمَّ تَابُوْا مِنْ بَعْدِهَا |
| دروغ جوړونکو ته۔ او هغه کسان چه کړی ئے دی بدیانے بیا توبه وباسی روستو د هغے نه |
| وَاٰمَنُوْۤا اِنَّ رَبَّكَ مِنْ بَعْدِهَا لَغَفُوْرٌ رَّحِیْمٌ ﴿۱۵۳﴾ |
| او ایمان راوړی یقیناً رب ستا روستو ددے نه خامخا بخونکے رحم کونکے دے۔ |

**تفسیر** : پدے کښ د هغه بنی اسرائیلو حال دے چه شرك ئے کړیدے او توبه ئے نهٔ ده ویستلے بلکه منافقت ئے کړیدے۔ یعنی کومو خلکو چه د سخی عبادت کړے، هغوی د الله د غضب نه نشی بچ کیدے۔ نو الله تعالیٰ د هغوی دا توبه مقرر کړه چه د دوی موحدین به د سخي عبادت کونکی قتل کوی لکه چه په سورة بقره کښ راغلی دی او په دنیاوی ژوند کښ به ذلت او رسوائی هیڅکله دوی نهٔ پریدی۔

اتَّخَذُوا الْعِجْلَ : دے سره دا مراد دے (وَلَمْ یَتُوْبُوْا) او توبه ئے نهٔ ده ویستلے۔ او پدے کښ هغه اولاد د بنی اسرائیلو هم داخل دی چه پدے عمل باندے راضی دی۔

فِی الْحَیٰوةِ الدُّنْیَا : دا د دواړو سره متعلق دے۔ (مهایمیؒ)

او د الله غضب دا دے چه بنده ته د تکلیف رسولو او د سزا ورکولو اراده وکړی په دنیا او په آخرت کښ، یا په یو د دواړو کښ۔ او د ذلت معنیٰ دا ده چه دوی به د خلکو نه مغلوبه کیږی چه دشمنان به پرے مسلط کیږی، یا به ئے بزدله کوی چه هر وخت به د شمنانو نه یریږی اگرکه په دوی مسلط شوی نهٔ وی۔ یا د ذلت نه مراد دا دے چه دوی به همیشه د سفر د ژوند سره اخته وی لکه دوی همیشه دپاره د ارض مقدسه نه محروم وو نو په ټول ژوند

کښې دوی بې وطنه وو تردې چه دغه ډله توله ختمه شوه۔ او دا دنیاوی سزا وه۔ (التحریر)
وَكَذٰلِكَ نَجْزِي الْمُفْتَرِيْنَ : په الله دروغ جوړونکو کښې هر مشرك، هر کافر، هر وضاع (ځان نه حدیث جوړونکے)، هر بدعتی داخل دے۔ ابو قلابة وائی : [هِيَ وَاللهِ جَزَاءُ كُلِّ مُفْتَرٍ إِلَى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ] قسم په الله ! دا تر قیامته پورے د هر مفتری (دروغ جوړونکی) سزا ده۔ (قرطبی والبغوی)
سفیان بن عُیینة وائی : كُلُّ صَاحِبِ بِدْعَةٍ ذَلِيْلٌ۔
هر بدعتی ذلیل دے۔ ځکه چه دا مفتری دے۔
امام مالك فرمائی : مَا مِنْ مُبْتَدِعٍ إِلَّا وَتَجِدُ فَوْقَ رَأْسِهٖ ذِلَّةً] نشته یو بدعتی مګر ته به د هغه د سر دپاسه ذلت مونده کوے، بیا ئے دا آیت ولوستو۔ (القرطبی)
وَالَّذِيْنَ : په دے کښې ترغیب دے توبې ته۔ او اشاره ده چه بنی اسرائیلو کښې دوه ډلے وے او ډلته هم اشاره ده چه چا شرك او کفر کړے وی، بیا ئے توبه ویستله او ایمان او عمل صالح ئے وکړو نو الله بخښنه کونکے دے۔ او که په خپل حالت باندے پاتے شو نو الله ئے نهٔ معاف کوی۔

| وَلَمَّا سَكَتَ عَنْ مُّوْسَى الْغَضَبُ أَخَذَ الْأَلْوَاحَ ج صلے |
| --- |
| او هر کله چه په آرام شوه د موسیٰ (علیه السلام) نه غصه، راوائے خستلے تختے، |
| وَفِيْ نُسْخَتِهَا هُدًى وَّرَحْمَةٌ لِّلَّذِيْنَ |
| او په لیکلے شوی د هغے کښې هدایت وو او رحمت وو دپاره د هغه کسانو |
| هُمْ لِرَبِّهِمْ يَرْهَبُوْنَ ﴿١٥٤﴾ |
| چه هغوی د رب خپل نه یره کوی۔ |

**تفسیر:** د موسیٰ (علیه السلام) غصه چه کله سړه (په آرام) شوه او هغه ته خیال راغلو چه په حالت د غصه کښې دوی د الله د طرف نه ورکړے شوے تختئ په زمکه ګوزار کړے وے نو هغه ئے فوراً راپورته کړے ځکه چه هغه خو د الله نه یریدونکو خلقو دپاره د هدایت او رحمت چینه وه۔
سَكَتَ : سکوت په معنیٰ د سکون (آرام) سره دے۔ او د کلام پریخودلو معنیٰ ډلته نهٔ

ده مراد۔
أَخَذَ الْأَلْوَاحَ : امام رازیؒ وائی چه دا دلیل دے چه تختئ نهٔ وے ماتے شوے مگر دا د حدیث خلاف تفسیر دے، که تختئ دوه ځای شی هم راخستل ئے کیدے شی، او که هرڅنګه ماتے شی نو راخستل ئے پکار دی، او دا تختئ خو ذره ذره شوے نهٔ وے چه راخستل ئے ممکن نهٔ وی۔
وَفِي نُسْخَتِهَا : یعنی ددے په لیکلے شوی مضمون کښې هدایت او رحمت وو۔ دا داسے دے لکه ذٰلِكَ الْكِتٰبُ لَارَيْبَ فِيهِ هُدًى لِّلْمُتَّقِينَ ۔ او نُسْخَتِهَا کښې اشاره ده چه موسیٰ علیه السلام ته تورات په یو ځل (په تختو) کښې ورکړے شوے وو۔
نسخه : لیکلے شوی کتاب ته وائی۔ او دا معنیٰ بعیده ده چه هرکله تختئ ماتے شوے نو ددے نه ئے بله نسخه تیاره کړه او هغه دلته مراد ده۔
يَرْهَبُونَ : کښې اشاره ده چه رهبت (یعنی یره) د الله د کتاب نه د فائدے اخستو سبب دے۔

| وَاخْتَارَ مُوسٰى قَوْمَهٗ سَبْعِيْنَ رَجُلًا لِّمِيْقَاتِنَا ج |
| --- |
| او غوره کړل موسیٰ (علیه السلام) د قوم خپل نه اویا سړی دپاره د وخت مقرر زمونږ |
| فَلَمَّا أَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ قَالَ رَبِّ لَوْ شِئْتَ |
| نو هرکله چه ونیول دوی لره زلزلے، ووئیل هغهٔ اے ربه زما ! که تا غوختے |
| أَهْلَكْتَهُمْ مِّنْ قَبْلُ وَإِيَّايَ ۖ أَتُهْلِكُنَا بِمَا |
| نو هلاك کړی به دے وے دوی مخکښې ددینه او ما لره آیا هلاکوے تهٔ مونږ لره په هغه کار |
| فَعَلَ السُّفَهَآءُ مِنَّا ج اِنْ هِيَ اِلَّا فِتْنَتُكَ ۖ تُضِلُّ بِهَا |
| چه کړیدے کم عقلانو زمونږ نه، نهٔ دے دا مګر امتحان دے ستا، ګمراه کوے تهٔ پدے سره |
| مَنْ تَشَآءُ وَتَهْدِيْ مَنْ تَشَآءُ ۖ اَنْتَ وَلِيُّنَا فَاغْفِرْ |
| چا له چه وغواړے او هدایت کوے چا له چه وغواړے، تهٔ مددګار ئے زمونږ نو بخنه وکړه |
| لَنَا وَارْحَمْنَا وَاَنْتَ خَيْرُ الْغٰفِرِيْنَ ﴿۱۵۵﴾ |
| مونږ ته او رحم وکړه په مونږ او تهٔ ډیر غوره ئے د بخنه کونکو نه۔ |

**تفسير** : ددې ځاى نه ددې واقعې بل مقام او حال دې. موسىٰ عليه السلام چه كله قوم ته ووئيل چه تاسو ګناه كړيده الله ته توبه وباسئ نو هغوى توبه ويستله او څه نا څه قتلونه پكښې وشو او خلك د شرك نه راواپس شو، نو د توبې د اتمام دپاره موسىٰ عليه السلام دوى ته د الله په حكم ووئيل چه تاسو اويا (۷۰) كسان مشران كومو چه شرك نهٔ دې كړې ما سره طور ته لاړ شئ او هلته الله تعالىٰ ته توبه وباسئ او پدې كښې دوه مقصده وو يو دا چه د خپل قوم دپاره كومو چه شرك كړيدې د الله نه استغفار وغواړئ چه زمونږ قوم معاف كړه.

او دويم مقصد دا وو چه دې اويا كسانو هم يو قسم ګناه كړې وه چه دوى د نهى عن المنكر نه غلى پاتې شوى وو، ځكه چه دلته شرك كيږى او دلته قولو او شملو والا مليان او مشران او بزرګان موجود دى او څه ورته نهٔ وائي او پدې خفه كيږى هم نهٔ چه زمونږ عوام شرك كوى، كه دا اويا كسان په غصه شوى وې نو ډيره فضاء به برابره شوې وې، كله چه مشران كشرانو ته غصه نكوى، نو معاشره به داسې خرابه وى لكه د بنى اسرائيلو او زمونږ ددې آخرى زمانې معاشره واخله، كيبل او وى سى آر، او فلمونو باندې به كشرانو ته غصه نكوى، ډيره بنه به داسې معاشره سمه شي؟!. او پدې بنى اسرائيلو كښې هغه ډله هم هلاكه شوه چه د مهيانو د ښكار نه ئې خلك نهٔ منع كول لكه لړ روستو به راشي.

ليكن دوى چه كله طور ته لاړل نو هلته ئې نور فساد وكړو.

وَاخْتَارَ مُوسٰى قَوْمَهٗ سَبْعِيْنَ رَجُلًا لِّمِيْقَاتِنَا :

**سوال** دا دې چه اِخْتَارَ يو مفعول ته متعدى كيږى او دلته دوه مفعولونو ته متعدى شويدې؟ (۱) مشهور جواب دا دې چه قَوْمَهٗ منصوب بنزع الخافض دې اَىْ مِنْ قَوْمِهٖ. نو سبعين ئې مفعول دې. (۲) جواب: امام رازىؒ پدې كښې بنه وجه دا ذكر كړيده چه (قَوْمَهٗ) مُبَيَّن دې او سبعين رجلًا ئې عطف بيان دې او اصل عبارت داسې وو: (وَاخْتَارَ مُوسٰى قَوْمَهٗ لِمِيْقَاتِنَا سَبْعِيْنَ رَجُلًا) (يعنى غوره كړو موسىٰ عليه السلام خپل قوم زمونږ د وخت مقرر دپاره چه دغه قوم اويا كسان وو). او د قوم نه مراد هغه خلك دى چه هغوى عبرت اخستې وو يعنى دغه اويا كسان او هغوى ته ئې قوم ووئيل (اګركه قوم كښې نور كسان هم شامل وو) ځكه چه دغه لړ خلك پكښې اصل وو. نو د جنس اطلاق ئې په دغه اويا كسانو وكړو. (مفاتيح الغيب والشربينى)

فَلَمَّآ اَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ : كله چه دوى مقرر ځاى ته ورسيدل نو پدې تولو ناځاپى يو زلزله راغله او تول په توله هلاك شو. او ددې زلزلې دوه سببه وو.

یو سؤال الرؤیة، (د الله د لیدو سوال) چه دوی ونیلی وو ﴿لَن نُّؤۡمِنَ لَكَ حَتَّىٰ نَرَى ٱللَّهَ جَهۡرَةً﴾ یعنی هیڅرې مونږ ستا خبره نهٔ منو ترڅو چه مونږ الله ښکاره وینو)۔ نو دے تناقض ته وګوره چه هلته توبې له تلي دي، مجرمان دي او بیا ځان بزرګان ګنړي الله لره ښکاره لیدل غواړي او د الله بې ادبي کوي۔

دویم سبب: دوی ته په دغه ځای کښې پدے وجه سزا ورکړے شوه [سُكُوتُهُمۡ عَنۡ عِبَادَةِ الۡعِجۡلِ] چه دوی د سخي د عبادت نه منع نهٔ وه کړے او په هغے باندے غلي پاتې شوي وو لکه مخکښې بیان شو۔ (فتح البیان ونقله القرطبي عن ابن عباس۲۹۵/۷)

نو موسیٰ علیه السلام په ژړا ژړا دعا وکړه چه اے الله! که تا غوختے نو دوی به دے مخکښې هلاك کړي وے او زهٔ به دے هم ورسره هلاك کړے وے چه ددے لاتجو نه بیغمه شوی وے (حَتَّىٰ لَا أَقَعَ فِي حَرَجٍ شَدِيدٍ مَعَ بَنِي إِسۡرَائِيلَ) (المنار) چه زهٔ د بني اسرائیلو سره په سخت حرج کښې واقع نشم۔ بني اسرائیل به په ما اعتراض کوي چه دا کسان زمونږ مشران تا بوتلل او هلته دے مړه کړل،

او بله دا چه د موسیٰ علیه السلام دے ته خیال نهٔ وو چه دا کسان د نهي عن المنکر په پرېښودو هلاك شو نو ځکه وائي چه دے کسانو خو شرك نهٔ دے کړے بلکه هغه خو بیوقوفانو کړیدے کوم چه اکثر بني اسرائیل وو، نو د هغوی په وجه باندے دا نیکان خلك تهٔ ولے هلاك کوے۔ (بیا روستو ورته د سبب پته ولګیده)

او ددے ارمان خلاصه ئے دا ده چه اے الله! چه بل ځای کښې دے زما نه جدا دوی هلاك نکړل نو زهٔ ستا نه ستا په رحمت سره سوال کوم چه اوس ئے هم مهٔ هلاکوه چه په ما باندے تهمت رانشي۔ (المنار)

لِعَلَّ السُّفَهَآءُ : دے نه مراد یا شرك دے چه بیوقوفانو کړے وو، او بعض علماء پکښې طلب د رؤیة (د الله د لیدو طلب) هم داخلوي چه دا بعض کسانو کړے وو، نو ددے بعض جاهلانو په وجه دا ټول مهٔ هلاکوه۔

او ددے نه دا فائده معلومیږي چه کله لږو کسانو بیوقوفانو ښکاره ګناهونه کول او ډیرو خلکو نهٔ منع کول نو الله عمومي عذاب راولي، دا هله چه کله د دوی وس کیږي، او چه کله ئے بیخي په هیڅ طریقه وس نهٔ کیږي نو بیا دوی د هغوی په ګناهونو نهٔ رانیولے کیږي۔ او دے خبرے ته د هر چا ضرورت دے په شاګردانو، په خپل اهل وعیال او کشرانو کښې چه ددے لحاظ به ساتي، هسے نهٔ چه د هغوی په وجه هلاك شي۔

او حافظ ابن القیمؒ په ((اغاثة اللهفان)) کښې وئیلي دي چه پدې جمله (رَبِّ أَهْلَكْتَهُمْ مِنْ قَبْلُ وَإِيَّايَ) کښې ظاهر دا ده چه دا د موسیٰ علیه السلام د خپل رب نه استعطاف دے (یعنې د هغه رحم طلب کول دي) او هغه ته وسیله نیول دي په مخکښې عفوه د هغه باندې تردې چه د هغه قوم د سخې عبادت کولو او دوی په هغوی باندې انکار ونکړو.

مطلب به دا راوځي چه مخکښې نه دوی کښې د دوی د هلاکولو سبب موجود وو او سره ددې نه چه تا دوی ته عفو او مغفرت وکړو او په هغه وخت کښې دې هلاك نکړل (کوم وخت چه دوی نهي عن المنکر پریخې وو) نو نن ورځ هم خپله عفوه دوی ته فراخه کړه کومه چه مخکښې دوی ته فراخه شوې وه. او ددې مثال داسې دې چه یو مشر یو تن لره په یو جرم باندې وئیسي نو هغه ورته وائي چه که ستا خوښه وې تا به زۀ ددې جرم نه په لوی جرم باندې نیولے وې لیکن اول کښې دې معاف کړے یم نو اُوس مې هم معاف کړه. آه. (محاسن التاویل)

إِنْ هِيَ إِلَّا فِتْنَتُكَ : ۱- هِيَ ضمیر رَجْفَه ته راجع دے، یعنې دا رجفه چه تا راوستله نو تۀ په بندګانو ابتلاء کوې، ګرۀ او کوږه خلکو ته ښکاره کوې.

۲- یا دا ضمیر روستو فتنه ته راجع دے. یعنې همیشه امتحان صرف هُم تۀ راولې او دا ستا عادت دې چه دا تا د خلکو د استعدادونو د راښکاره کولو دپاره سبب ګرځولے دے چه تۀ پدې سره ګرۀ او کوږه خلکو ته ښکاره کوې او دې دپاره چه خبیث او طیب جدا کړې او په هغې باندې چه کوم ثواب او عقاب مرتب دي هغه خلکو ته ورکړې، نو پدې امتحان کښې ستا کمال دے، او پدې تقدیر کښې تۀ په دوی باندې ظلم کونکې نۀ ئې، بلکه ستا مشیت د عدل او فضل ترمینځ دائر دے، ستا اختیار چلیږي نو تۀ زمونږ د کارونو ولي (متصرف) ئې. (المنار)

او پدې خبره کښې د موسیٰ علیه السلام غرض په الله باندې اعتراض او پره ور اړول نۀ دي لکه بعض مفسرینو وئیلي دي چه موسیٰ علیه السلام ووئیل چه اے الله! دا سخې چا پیدا کړو؟ تا. پدې کښې آواز چا واچولو؟ تا، بیا چه دې خلکو عبادت کولو نو دوی یو قسم معذور وو. دا قسم خبرې غلطې دي.

او دا قول (إِنْ هِيَ إِلَّا فِتْنَتُكَ) موسیٰ علیه السلام د الله تعالیٰ ددې قول نه اخستې وو چه الله ورته په طور کښې وئیلي وو ﴿إِنَّا قَدْ فَتَنَّا قَوْمَكَ مِنْ بَعْدِكَ وَأَضَلَّهُمُ السَّامِرِيُّ﴾ (طه : ۸۵). مونږ ستا قوم ستا نه روستو په امتحان کښې واچولو او هغوی لره سامري ګمراه کړل.

تُضِلُّ بِهَا : په هر امتحان کښې دا کار کیږي چه بعض ګمراه شي، او بعض هدایت والا ترديږي چه حدیث کښې دي: که باران وشي نو هم څه کسان پرې مؤمنان شي او څه کافران۔

(بخاري: ٨٤٦) ومسلم: ١٤٣ وغيره)

وَلِيُّنَا : زمونږ دوست ئې۔ یا زمونږ د کارونو متصرف (واکدار) ئې۔

وَاَنْتَ خَيْرُ الْغٰفِرِيْنَ : غوره د بخنه کونکو نه څکه دې چه هر څومره ګناهونه معاف کوي، او بیا درته هغه ګناهونه یادوي هم نهٔ۔ حدیث قدسي کښې دي:

[يَا ابْنَ آدَمَ! لَوْ بَلَغَتْ ذُنُوْبُكَ عَنَانَ السَّمَاءِ ثُمَّ اسْتَغْفَرْتَنِيْ وَرَجَوْتَنِيْ غَفَرْتُ لَكَ وَلَا اُبَالِيْ]

اے د آدم څویه ! که ستا ګناهونه د آسمان وریځے ته ورسي بیا تهٔ ما نه بخنه وغواړے او امید وساتے، زهٔ به تا ته بخنه وکړم او هیڅ باك نکوم۔ (الترمذي ٣٥٤٠ بسند صحيح)

وَاكْتُبْ لَنَا فِيْ هٰذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّفِي الْاٰخِرَةِ اِنَّا هُدْنَآ

او ولیکهٔ مونږ له پدے دنیا کښې ښهٔ ژوند او په آخرت کښې (هم) یقیناً مونږ رجوع کړے

اِلَيْكَ ۭ قَالَ عَذَابِيْٓ اُصِيْبُ بِهٖ مَنْ اَشَاۗءُ ۚ وَرَحْمَتِيْ وَسِعَتْ كُلَّ

تا ته (په توبه) ووئیل الله، عذاب زما رسوم دا چا له چه وغواړم او رحمت زما فراخه دے هر

شَيْءٍ ۭ فَسَاَكْتُبُهَا لِلَّذِيْنَ يَتَّقُوْنَ وَيُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ

شي ته نو زر دے چه لیکم به دا دپاره د هغه کسانو چه یریږي د الله نه او ورکوي زکاة

وَالَّذِيْنَ هُمْ بِاٰيٰتِنَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿١٥٦﴾ اَلَّذِيْنَ يَتَّبِعُوْنَ

او هغه کسان چه دوی په آیتونو زمونږ ایمان لري۔ هغه کسان دي چه تابعداري کوي

الرَّسُوْلَ النَّبِيَّ الْاُمِّيَّ الَّذِيْ يَجِدُوْنَهٗ مَكْتُوْبًا

ددے رسول چه نبي دے امي دے هغه چه موندهٔ کوي دوی ذکر د هغهٔ لیکلے شوے

عِنْدَهُمْ فِي التَّوْرٰىةِ وَالْاِنْجِيْلِ ۡ يَاْمُرُهُمْ بِالْمَعْرُوْفِ وَيَنْهٰىهُمْ

د دوی سره په تورات او انجیل کښې، حکم کوي دوی ته په نیکئ او منع کوي دوی

عَنِ الْمُنْكَرِ وَيُحِلُّ لَهُمُ الطَّيِّبٰتِ وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبٰۗىِٕثَ

د بدئ نه او حلالوي دوی ته پاك څیزونه او حراموي په دوی باندے ګنده څیزونه

| وَيَضَعُ عَنْهُمْ اِصْرَهُمْ وَالْاَغْلٰلَ الَّتِيْ كَانَتْ |
|---|
| او لرے کوی د دوی نه بوجونه (درانهٔ حکمونه) د دوی او سختیے سزاگانے هغه چه وے |
| عَلَيْهِمْ ؕ فَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِهٖ وَعَزَّرُوْهُ |
| په دوی باندے پس هغه کسان چه ایمان ئے راوړے په دهٔ او تعظیم ئے کړیدے |
| وَنَصَرُوْهُ وَاتَّبَعُوا النُّوْرَ الَّذِيْٓ |
| (یا مدافعت ئے کړیدے) ددهٔ او مدد ئے کړیدے ددهٔ او تابعداری ئے کړیده د رڼړا هغے |
| اُنْزِلَ مَعَهٗٓ ۙ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ﴿۱۵۷﴾ |
| چه نازل شویده ددهٔ سره، دا کسان هم دوی کامیاب دی۔ |

**تفسیر:** موسیٰ ﷺ دعاگانے وکړے نو الله تعالیٰ ددے آخری امت دپاره قبولے کړے۔خلاصه: مخکښې موسیٰ ﷺ د بنی اسرائیلو د گناهونو معافی وغوختنه، او ددے نه روستو د دنیا او د آخرت هر خیر ئے وغوختو۔ الله تعالیٰ د دوی د دعا دا جواب ورکړو چه زهٔ د گناهگارانو نه چا لـه چه غوارم عذاب ورکوم او ددے په حکمت ما نه سویٔ څوك نهٔ پو هیږی، او ددے بنیاد په عدل او انصاف وی، او چا له چه غوارم نو معاف کوم ئے۔ لیکن زما رحمت خو هر نیك او بد او تمامو مخلوقاتو دپاره عام دے۔ یعنی د الله په نیز اصل شے عذاب او غضب نهٔ دے بلکه رحمت دے۔ د همدے حقیقت بیانولو دپاره الله تعالیٰ د عرش د پورته کونکو ملائکو په ژبه فرمائی: ﴿رَبَّنَا وَسِعْتَ كُلَّ شَيْءٍ رَّحْمَةً وَّعِلْمًا﴾ چه (اے زمونږ ربه! ستا رحمت هر شی ته شامل او ستا علم هر شے راگیر کړیدے)۔

امام احمدؒ، مسلمؒ او ابوداوٗدؒ د جندب البَجَلی ﷺ نه روایت کړیدے چه د الله تعالیٰ د رحمت سل حصے دی، ددے نه صرف د یوے حصے رحمت په ذریعه سره تمام مخلوق په خپل مینـځ کښې په یو بل رحم کوی، او صحرائی ځناور په خپلو بچو خیال ساتی، او نهه نوی حصے رحمت د قیامت ورځے ته روستو کړے شویدے۔ (مسلم: ۷۱۵۱)

**حَسَنَةً:** د حسنے نه مراد د نیك اعمالو توفیق دے، او عافیت او نعمت دے، یا علم نافع او رزق واسع او عمل صالح دے (السعدی) او په آخرت کښې حسنه بخښنه او جنت دے۔

**هُدْنَآ اِلَيْكَ:** یعنی مونږ تا ته رجوع کړیده، تاته مو توبه ویستلے ده۔

مَنْ اَشَآءُ : ددې نه معلومېږي چه عذاب د الله ځينو کسانو ته رسيږي، او رحمت ئې هر شي ته.

وَرَحْمَتِىْ وَسِعَتْ كُلَّ شَىْءٍ : په دنيا کښې د الله تعالىٰ رحمت هر شي ته عام دې، او ددې عام رحمت په وجه په دنيا کښې هر ساه والا ته روزي ورکوي. په دنياوي نعمتونو کښې هر نيك او بد شريك دې. ليکن د آخرت نعمت چه هغې ته رحمتِ خاصه وئيلې شي هغه به صرف د الله د هغه بندګانو دپاره خاص وي چه پدې دنياوي ژوند کښې د ګناهونو نه ځان ساتي، زکاة ورکوي او کوم خلق چه د الله په آيتونو ايمان لري او په هغې عمل کوي لکه چه الله تعالىٰ ددې سورت په آيت (۳۲) کښې فرمايلي دي : ﴿ قُلْ هِىَ لِلَّذِيْنَ آمَنُوْا فِى الْحَيَاةِ الدُّنْيَا خَالِصَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ ﴾ چه (د دنيا ډول او حلال رزق به د مؤمنانو دپاره په دنيا کښې وي او په آخرت کښې به د دوی دپاره خاص وي).

فَسَاَكْتُبُهَا : هر کله ئې چه وفرمايل چه زما رحمت هر شي ته عام دې، نو کافران هم په طمع شو چه مونږ ته به هم دا رحمت عام وي، نو الله ددې رحمت دپاره شرط بيان کړو چه دا به هغه چا ته ملاويږي چه په هغوی کښې د تقوىٰ او زکاة ورکولو صفت وي.

او پدې کښې د کلام رُخ هغه بني اسرائيلو ته راتاو شويدې چه د نبی کريم ﷺ په زمانه کښې وو، او دارنګه ددې امت صحابه کرامؓ ته هم چه د قيامت په ورځ د الله د خاص رحمت مونډونکو چه کوم شرائط د موسىٰ ؑ په زمانه کښې وو، همغه اُوس هم دي، ليکن د هغه تمامو شرائطو بنيادي شرط دا دې چه دوی به په نبی کريم ﷺ ايمان راوړي او د هغه اتباع به کوي او دا بني اسرائيل ډه لره ډير ښه پيژني، ځکه چه ددهٔ نوم او ددهٔ صفات په تورات او انجيل کښې بيان کړې شويدي.

**فائده** : مفسرين ليکي : چه پدې آيت کښې بيان د اسبابو د رحمت د الله تعالىٰ دې چه هغه تقريباً شپيته اسباب دي دلته پکښې څلور ذکر دي. (۱) تقوىٰ (۲) زکاة ورکول. (۳) د الله په ټولو آيتونو ايمان راوړل (چه هغه ټول احکام منزله دي چه په تورات، انجيل او قرآن کښې دي) (٤) اتباع د آخري رسول.

وَيُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ: په مکي سورتونو کښې چه زکاة ذکر شي نو مراد ترې نه تزکيه د نفس وي مګر ظاهر دا ده چه زکاة په ټولو اديانو کښې فرض دې، او په مکه کښې هم فرض وو مګر مقادير ئې په مدينه کښې بيان شو. او د زکاة تخصيص ئې ځکه وکړو چه يهودو کښې، او دارنګه د مکې مشرکانو کښې د زره سختي زياته وه، صحابه کرامؓ ته به ئې هيڅ نهٔ

ورکول۔
زکاة انسان ته وروکے عمل ښکاری مگر دا د ډیرو ښو صفاتو نښه ده۔
اَلَّذِیْنَ یَتَّبِعُوْنَ الرَّسُوْلَ : بیا یهود او نصاریٰ هم د الله د رحمت په طمع شو چه مونږ کښې هم تقویٰ او زکاة ورکول شته نو الله بل شرط کیخودو چه د آخری رسول تابعداری به کوی۔ پدیے کښې اشاره ده چه کوم اهل کتاب او نور خلك چه د رسول الله ﷺ په زمانه کښې موجود دی، او ددیے آخری رسول تابعداری نهٔ کوی نو دوی ته به الله هیڅکله خپل رحمت ورنکړی، نو پدیے کښې د هغه زمانے په مشرکانو رد شو چه اے مشرکانو! د محمد رسول الله ﷺ د تابعداریٔ شرط الله تعالیٰ په بنی اسرائیلو لګولے دے نو تاسو خو به ئے خامخا کویٔ، او حال دا چه تاسو ته دا نبی وروکے ښکاری۔

## د رسول او نبی فرق

اَلنَّبِیَّ : رسول هغے ته وائی چه کتاب ورسره وی او نبی عام دے۔ یا دا چه رسول د الله د طرفنه وی او نبی هغه دے چه تعلق ئے د خلکو سره وی۔
اَلْاُمِّیَّ : دا صفت د رسول الله ﷺ په باره کښې د کمال صفت دے، اُمی منسوب دے اُم ته، ځکه چه نبی ﷺ په لیکلو او لوستلو نهٔ پوهیدو۔ په هغه حالت پاتے وو څنګه چه د مور نه نا خوانده پیدا شوے وو، او ددے معنیٰ دا هم ده (اَلَّذِیْ لَمْ یَحْصِلْ عِلْمًا مِنْ بَشَرٍ) (قاسمی)
د هیڅ انسان نه ئے علم نهٔ دے حاصل کړے۔
او دا د نبی ﷺ دپاره یوه معجزه او د کامل فخر خبره وه چه د لیکلو او لوستلو باندے نهٔ پوهیدو سره ئے قرآن کریم د الله د طرف نه د وحی په ذریعه حاصل کړو، او د هغه سینه د علومو او حکمتونو نه ډکه شوے وه چه امت د هغه علمونو نه عاجز دے۔
یَجِدُوْنَهٗ مَکْتُوْبًا عِنْدَهُمْ : داسے ئے ونهٔ وئیل چه د هغه صفات موندہ کوی بلکه بعینه دا نبی په تورات او انجیل کښې لیکلے شوے پروت دے، دا ځکه چه ددهٔ ډیر زیات صفات بیان شویدی که څوك هغه ولولی نو داسے به شی لکه چه بعینه رسول الله ﷺ ته ګوری۔
د نبی کریم ﷺ صفات په تمامو آسمانی کتابونو کښې بیان شوی وو، او ټولو انبیاء کرامو علیهم السلام خپلو امتونو ته د نبی کریم ﷺ د بعثت زیرے ورکړے وو، او هغوی ته ئے د نبی کریم ﷺ د اتباع حکم کړے وو۔ په تورات او انجیل کښې بالخصوص هغه صفات باقی پاتے شویدی۔ او د دوی عالمانو ته دا ښه معلوم وو۔

کعب الاحبارؒ وغیره ددے خبرے تصدیق کړیدے چه د نبي کریم ﷺ کوم صفات په قرآن کریم کښې بیان شویدي، بعینه همدغه صفات په تورات کښې موجود وو، لکه چه تفسیر طبري او مسند احمد کښې د عطاء بن یسارؒ د روایت نه معلومیږي.

په تیر شوي آسماني کتابونو کښې د نبي کریم ﷺ دا صفت هم بیان شوے وو چه نبي ﷺ به د نیکئ حکم کوي، د بدئ نه به منع کوي او ښائسته او پاك څیزونه به د خلقو دپاره حلالوي، کوم چه مخکښې په دوي حرام وو، لکه وازده او څاروي چه مشرکانو به په ځان حرامول او د اخستو او خرڅولو او د تجارت هغه تول قسمونه چه د حرام خورئ نه خالي وي. او نقصان ورکونکي څیزونه په دوي باندے حراموي لکه د خنزیر غوښه، سود او هغه تمام محرمات چه الله حرام کړيدي.

ددے نه معلومیږي چه هر شے چه په مونږ باندے حرام دے، دے کښې به ضرور خباثت وي، او کوم چه حرام نۀ وي هغه به په طیباتو کښې داخل وي.

**وَيُحِلُّ** : د حل او حرمت نسبت ئے نبي کریم ﷺ ته وکړو ښکه چه هغه ئے بیانونکے دے.

**الطَّيِّبٰتِ** : ددے نه مراد هغه څیزونه دي چه مشرکینو او یهود او نصاراو بغیر د دلیل نه په ځان باندے حرام کړي وو چه هغے ته تحریم د غیر الله وئیلے شي.

**وَالْاَغْلٰلَ الَّتِيْ** : د نبي ﷺ صفت به دا هم وي چه د هغه دین به آسان وي، لکه چه نبي کریم ﷺ فرمایلي دي : [بُعِثْتُ بِالْحَنِيفِيَّةِ السَّمْحَةِ] چه (زۀ د توحید په دعوت او آسان دین رالیږلے شوے یم))۔ (مسند احمد حدیث صحیح).

او کله چه نبي کریم ﷺ معاذ او ابو موسی اشعري رضی الله عنهما د اسلام د دعوت دپاره یمن ته لیږل نو ورته فرمایل : [بَشِّرَا وَلَا تُنَفِّرَا، يَسِّرَا وَلَا تُعَسِّرَا] چه تاسو دواړه به خلقو ته زیرے ورکوئ، د دین نه نفرت به نۀ ورکوئ، هغوي دپاره آساني پیدا کوئ او هغوي په سختئ او پریشاني کښې مۀ اچوئ (بخاري :٤٣٤٤).

## د اصر او اغلال فرق

**اِصْرَهُمْ وَالْاَغْلٰلَ** : د دواړو فرق دا دے چه اِصر هغه گناهونه دي چه بغیر د توبې نه نۀ معاف کیږي، یا ددے نه مراد گران گران احکام دي. او اغلال نه مراد سختے سزاگانے دي په سبب د عملونو د دوي. یا سخت شرطونه او سختے وعدے او عهدونه دي.

نو اسلام ډیر مشکل او تکلیف ورکونکي احکام منسوخ کړل کوم چه د موسیٰ علیه السلام په

دین کښې موجود وو لکه د نفس په بدله کښې نفس قتلول وو، (دیت یا معافي نهٔ وه)، د خالي په ورځ کار کول حرام وو، په هر اُوم کال فصلونه کول حرام وو، که چا به والدین وهل یا به ئې ورته کنځل کول نو هغه به وژلے شو وغیره چه هغه د سورة البقرے په آخر کښې تیر شویدی۔ او اُوس کتاب مقدس (بائیبل) کښې د احکامو باب وګورئ چه څومره ګران دی۔

دوی باندے الله تعالیٰ ګران احکام ولے ایخودی وو؟ نو وجه دا وه چه پدے سره الله تعالیٰ د بعض بندګانو وقتی طور سره تربیت کولو دے دپاره چه د دوی استعداد یو درمیانه شریعت ته پوره شي کوم چه نرم او آسان شریعت دے چه په هغے باندے بُه خاتم الرسل محمد مصطفیٰ ﷺ رالیږلے کیږی۔ (المنار)

فَالَّذِيْنَ : اُوس پدے کښې د محمد رسول الله ﷺ په امت باندے څلور حقونه بیانوی او څوك چه دا پوره کړی د هغوی دپاره زیرے د کامیابئ ورکوی۔

وَعَزَّرُوْهُ : یعنی دده توقیر او تعظیم وکړی کوم چه د هغه د شان سره لائق دے لکه نوم به ئې په عزت اخلي، درود به پرے وائي، او ددے نه مراد د رسول الله ﷺ د دین حفاظت دے په رد کولو د مشرکانو او مبتدعینو سره۔

وَنَصَرُوْهُ: په ژوند کښې د هغه مدد دا دے چه د هغه په ملګرتیا کښې په قتال او جهاد کولو سره به د هغه ددین دفاع کوی، او د هغه د دین اشاعت به کوی۔ نو څوك چه د رسول الله ﷺ د سنتو دفاع نکوی او په تقلیدونو سره ئې بربادوی، او څوك په احادیثو باندے ردونه کوی، او ددے په خلاف کتابونه لیکی نو په مونږ باندے واجب ده چه ددے رد او مقابله وکړو۔ دا نصرت په اُمت باندے واجب دے که دا څوك نهٔ کوی جنت ته نهٔ شي داخلیدے۔

وَاتَّبَعُوا النُّوْرَ الَّذِيْٓ اُنْزِلَ مَعَهٗ : مَعَه ضمیر نبی ته راجع دے نو مراد ترے اتباع د قرآن ده۔ یا (مَعَه) متعلق دے د (وَاتَّبَعُوْا) پورے نو بیا مراد دا دے چه تابعداری وکړی د هغه رڼړا (قرآن) چه نازل شویدے په دهٔ باندے سره د اتباع د نبی نه یعنی د قرآن او سنت دواړو تابعداری به کوی۔

دلته قرآن کریم ته نور ونیلے شویدے ځکه چه دده نول عالَم رڼړا کول پخپله دده د الهی معجزه کیدو ښکاره دلیل دے، او پدے وجه هم چه دا به تر دنیا ختمیدو پورے د انسانانو دپاره د رڼړا یوه مناره وی، او د ژوند په هر دور او هر حالت کښې به د دوی لارخودنه کوی۔

قُلْ يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اِنِّیْ رَسُوْلُ اللّٰهِ اِلَيْكُمْ جَمِيْعًا ۨ الَّذِیْ لَهٗ

ووايه ! اے خلقو يقيناً زۀ رسول د الله يم تاسو ټولو ته، هغه الله چه خاص هغۀ له

مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ يُحْیٖ

بادشاهي د آسمانونو او د زمکے ده، نشته حقدار د بندګئ سوئ د هغه نه، ژوندی کول کوی

وَيُمِيْتُ ۠ فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهِ النَّبِیِّ الْاُمِّیِّ الَّذِیْ

او مرۀ کول کوی نو ايمان راوړئ په الله او په رسول د هغه چه نبی اُمی دے هغه

يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَكَلِمٰتِهٖ وَاتَّبِعُوْهُ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ ﴿۱۵۸﴾

چه ايمان لری په الله او په کلمو د هغه او تابعداری وکړئ د هغه دے دپاره چه هدايت ومومئ۔

**تفسير** : دلته استطراداً د رسول الله ﷺ عمومی نبی کيدل او د هغه فضائل بيانيږی۔ په مخکنو آيتونو کښ د موسیٰ عليه السلام مناقب او فضائل په ډير تفصيل سره بيان شويدی، پدے وجه د چا په ذهن کښ دا خبره راتلے شی چه په انبياء او رسولانو عليهم السلام کښ به د ټولو نه اعلیٰ مقام ددۀ وی۔ پدے وجه الله تعالیٰ د نبی کريم ﷺ بنائسته تذکره چيړلے ده دے دپاره چه معلومه شی چه نبی کريم ﷺ په ټولو کښ افضل دے، او اُوس تر دنيا ختميدو پورے به د تمامو انسانانو همدا هادی او رهبر وی۔او په ضمنی توګه يهود او نصاراؤ ته خبر ورکړے شويدے چه اُوس تمام مخکنی دينونه منسوخ شو او هر څوک چه په آخرت کښ د جهنم د اُور نه نجات غواړی نو هغه دپاره به د اسلام قبلول وی او د نبی کريم ﷺ په رسالت به ايمان راوړل وی۔

امام احمدؒ د ابن عباس رضی الله عنه نه روايت کړيدے چه رسول الله ﷺ وفرمايل :

[أُعْطِيْتُ خَمْسًا لَمْ يُعْطَهُنَّ نَبِیٌّ قَبْلِیْ وَلَا أَقُوْلُهُنَّ فَخْرًا، بُعِثْتُ إِلَى النَّاسِ كَافَّةً الْأَحْمَرِ وَالْأَسْوَدِ) (مسند احمد :۲۷۴۲ باسناد حسن) (ما ته پنځه څيزونه راکړے شويدی چه ما نه مخکښ هيڅ نبی ته نۀ دی ورکړے شوی، او دا خبره د فخر په طريقه نۀ وايم : زۀ سور او تورو ټولو انسانانو ته نبی راليږلے شوے يم)) الحديث۔

او مسلمؒ د ابو موسیٰ اشعری رضی الله عنه نه روايت کړيدے چه رسول الله ﷺ وفرمايل : ((قسم په هغه ذات چه زما روح د هغه په لاس کښ دے، د امت هر چا ته چه زما خبر وشی که هغه

یهودي وي یا نصراني او په ما ایمان رانهٔ وړي نو هغه به جهنم ته داخلیږي))۔ (مسلم : ۴۰۳)

**فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ** : یهود او نصارئ او ټولو انسانانو ته الله تعالیٰ حکم وکړو چه په نبي امي ایمان راوړئ او ددهٔ اتباع وکړئ لکه چه ددهٔ بشارت په تیر شوي آسماني کتابونو کښې وړکړے شویدے۔ دلته هم د نبي کریم ﷺ صفت (اُمي) په خاص توګه سره پدے وجه راوړے شویدے چه د اهل کتابو توجه دے ته راواړولے شي چه دا هغه نبي دے د کوم صفت (امي) چه په تورات کښې ذکر شویدے۔

**يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ** : دا دلیل دے چه پیغمبر هم د الله په احکامو مکلف دے۔ او دلیل دے چه ددے نبي عقیده د خپل دعوت سره موافقه ده۔

**وَكَلِمٰتِهٖ** : کلمات شرعیه او کلمات کونیه (تقدیر او وعدے) دواړه مني۔ یعنی ددے رسول عقائد هم برابر دي او اعمال هم۔ (السعدي)

**وَاتَّبِعُوْهُ** : مخکښې اتباع خاص د قرآن کریم په باره کښې وه او دا مطلق اتباع د رسول الله ﷺ مراد ده۔ یعنی ددهٔ تابعداري وکړئ په هر هغه کارونو کښې چه دهٔ تاسو ته راوړي وي که هغه فعلي وي او که ترکي۔ (پریخودو والا)۔

او دلته ئے د ایمان سره اتباع د رسول سبب د هدایت ګرځولے دے، نو معلومه شوه چه صرف د نبي تصدیق په غیر د اتباع د هغه نه فائده نهٔ ورکوي۔

**لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ** : (اِلٰى مَصَالِحِكُمُ الدِّيْنِيَّةِ وَالدُّنْيَوِيَّةِ) یعنی دے دپاره چه تاسو دیني او دنیاوي فائدو ته ورسیږئ (السعدي) او ددے په دنیا کښې دلیل دا دے چه هر قوم چه په خپل نبي ایمان راوړیدے نو د مخکښې حالت نه ئے ژوند مزیدار شویدے او عزت او کرامت ورته حاصل شویدے۔ او ددے ښکاره دلیل تاریخ د امت محمدیه دے۔ (المنار)۔

| وَمِنْ قَوْمِ مُوْسٰٓى اُمَّةٌ يَّهْدُوْنَ بِالْحَقِّ وَبِهٖ يَعْدِلُوْنَ ﴿۱۵۹﴾ |
|---|
| او د قوم موسیٰ (علیه السلام) نه یوه ډله ده چه بیان کوي د حق او پدے باندے فیصلے کوي۔ |

**تفسیر** : ددے ځای نه د کلام سلسله بیرته د هغه بني اسرائیلو متعلق ده کوم چه د موسیٰ علیه السلام په زمانه کښې وو۔ او پدے کښې د مکے مشرکانو او مؤمنانو ته تنبیهات غرض دي او په یهودو باندے رد او د هغوی اصلاح غرض ده۔

کله چه د سامري او د هغه د تابعدارو ذکر وشو نو شبهه کیدے شوه چه په دوی کښې به

هیڅوك هم مؤمن او ښه سړے نهٔ وو۔ نو ددے وجه نه الله تعالیٰ وفرمایل چه په دوی کښې داسے خلق هم وو چه خپله په حق باندے ولاړ وو او نورئے هم دے طرف ته رابلل او د خلقو ترمینځ به ئے په عدل او انصاف سره فیصلے کولے۔

یَّهۡدُوۡنَ بِالۡحَقِّ : ددے دوه مطلبه دي (۱) یو دا چه یهدون په معنیٰ د یَدۡعُوۡنَ اِلَی الۡحَقِّ سره دے، یعنی دوی حق طرفته هدایت کوی یعنی دعوت ورکوی او په هغے باندے د عدل فیصلے کوی۔ یعنی عمل پرے کوی۔ (۲) دویم دا چه یهدون په معنیٰ د یَهۡتَدُوۡنَ بِالۡحَقِّ سره دے، یعنی لازمی معنیٰ ده۔ یعنی په حق باندے کلك ولاړ دي، او په حق باندے د خلکو فیصلے هم کوی۔ او همدا د کامیابئ لاره ده چه انسان خپله په حق ولاړ وی او بل ته د هغے دعوت ورکوی۔ نو پدے کښې د مؤمنانو دپاره هم سبق دے چه تاسو هم داسے وکړئ او یهودو ته دعوت دے چه ستاسو بعض مشران خو حق طرفته منده وهونکی وو او تاسو پدے نبی ایمان نهٔ راوړئ۔

| |
|---|
| وَقَطَّعۡنٰهُمُ اثۡنَتَیۡ عَشۡرَةَ اَسۡبَاطًا اُمَمًا ؕ وَاَوۡحَیۡنَاۤ اِلٰی مُوۡسٰۤی |
| او جدا جدا کړل مونږ دوی لره دولس خاندانونه او وحی وکړه مونږ موسیٰ (علیه السلام) ته |
| اِذِ اسۡتَسۡقٰهُ قَوۡمُهٗۤ اَنِ اضۡرِبۡ بِّعَصَاكَ الۡحَجَرَ ۚ |
| کله چه اوبه غوختے د هغهٔ نه قوم د هغهٔ چه ووهه په امسا خپلے سره کانړی لره |
| فَانۡۢبَجَسَتۡ مِنۡهُ اثۡنَتَا عَشۡرَةَ عَیۡنًا ؕ قَدۡ عَلِمَ كُلُّ اُنَاسٍ مَّشۡرَبَهُمۡ ؕ |
| نو راووتلے د هغے نه دولس چینے، یقیناً معلومه وه هرے ډلے ته ځای د څکلو د هغوی |
| وَظَلَّلۡنَا عَلَیۡهِمُ الۡغَمَامَ وَاَنۡزَلۡنَا عَلَیۡهِمُ الۡمَنَّ |
| او سورے کړے مونږ په دوی باندے وریځے او راولیږل مونږ په دوی باندے ترنجبین |
| وَالسَّلۡوٰی ؕ كُلُوۡا مِنۡ طَیِّبٰتِ مَا رَزَقۡنٰكُمۡ ؕ وَمَا ظَلَمُوۡنَا |
| او مرزان، خورئ د پاك هغے نه چه درکړیدی مونږ تاسو ته او ظلم نهٔ وو کړے دوی په مونږ |
| وَلٰكِنۡ كَانُوۡۤا اَنۡفُسَهُمۡ یَظۡلِمُوۡنَ ﴿۱۶۰﴾ |
| او لیکن وو دوی چه په خپلو ځانونو به ئے ظلم کولو۔ |

**تفسیر** : بنی اسرائیل چه کله په میدان تیه (صحرائے سینا) کښې وو هغه احوال الله تعالیٰ دلته بیانوی، پدے کښې بعض فوائد راوځي، هغه دا چه دے خلکو کښې چه کله د الله طاعت وو، او اتباع د مَا اُنْزِلَ ئے کوله، نو الله تعالیٰ څنګه نعمتونه پرے کول، او کله ئے چه د ما اُنزل تابعداری ونکړه نو څنګه عذابونه پرے راغلل نو پدے کښې موجوده یهودو او مشرکانو او مؤمنانو ته تنبیه ده۔

**وَقَطَّعْنٰهُمُ** : د یعقوب علیه السلام د دولسو ځامنو اولادو او د هغوی د اولادو په اولادو کښې الله تعالیٰ ډیر برکت اچولے وو، د هغوی شمار ډیر په تیزئ سره ډیر شو، او د هغوی طبیعتونه او عادتونه هم دیو بل نه مختلف شول، پدے وجه ضرورت محسوس شو چه دا په مختلفو ډلو تقسیم کړے شي، او د هرے ډلے یو مشر مقرر کړے شي، دے دپاره چه هره ډله د خپل جدا جدا نظم او نسق مطابق ژوند تیر کړي، او د الله تعالیٰ د احکامو پابندي وکړي، په بنی اسرائیلو د الله تعالیٰ دا یو احسان وو۔

**اثْنَتَيْ عَشْرَةَ اَسْبَاطًا اُمَمًا** : ددے تمییز پټ دے [اَیْ قِطْعَةً وَفِرْقًا] یعنی دولسو حصو او ډلو ته مے تقسیم کړل۔ اسباطا د هغے بیان دے، دے دپاره چه د هغوی نوم معلوم شي چه دے ډلو ته به ئے اَسْبَاطُ بَنِیْ اِسْرَآئِیْلَ وئیل۔ (یعنی د بنی اسرائیلو قبیلے او خاندانونه) لکه عربو به فِرقو ته قبائل وئیل۔ او (اُمَمًا) دا بیان دے د معنیٰ اصطلاحي د اسباط، چه دا اسباط جماعتونه وو چه هر یو په خاص نظام او د ژوند په بعض کارونو کښې جدا جدا وو۔ او امة هغه جماعت ته وائی چه د هغوی د افرادو ترمینځ رابطه او یو مصلحت او یو نظام وي۔ (المنار)

**وَاَوْحَیْنَآ** : دلته نه د آخر د آیت پورے الله تعالیٰ په بنی اسرائیلو نور درے احسانات ذکر کړیدي، اول احسان دا چه الله تعالیٰ د دولسو قبیلو دپاره د اُوبو انتظام وکړو، دویم دا چه د ګرمئ نه د بچ کیدو دپاره ئے د هغوی په ځایونو وریځ راوسته ویدروله، او دریم احسان دا چه د دوی د خوراك دپاره ئے د آسمان نه (من او سلویٰ) راولیږل، دا ټولے خبرے په تفصیل سره د سورة البقره آیت (۵۷) نه تر آیت (۶۰) پورے بیان شویدي۔

**اِذِاسْتَسْقٰهُ قَوْمُهٗٓ** : دلته ئے ووئیل چه قوم ترے د باران مطالبه کړے وه او په سورة البقره کښې ئے ووئیل چه موسیٰ علیه السلام د الله نه باران طلب کړو د قوم دپاره نو دواړه خبرے واضحه شوے۔

**فَانْۢبَجَسَتْ** : دلته ئے انبجاس ذکر کړو او سورة البقره کښې انفجار ځکه چه انبجاس لږے

لړے اُوبو راوتلو ته وائي، او انفجار ډیرو ته، نو اول کښې لږے راروانے شوے بیا ډیرے شوے، نو په سورة البقره کښې تفصیل د انعاماتو وو پدے وجه هلته انفجار لفظ مناسب وو۔

مګر ځینی علماؤ د انبجاس او انفجار هیڅ فرق نهٔ دے کړے، او وئیلی ئے دی چه دواړه په یوه معنیٰ باندے یو شان استعمالیږی او ددے دپاره ئے د لغت نه ډیر شواهد جمع کړیدی کما في المنار)

وَالسَّلْوٰى: دا مرزان بـه د افریقا نـه (او خاصکر د مصر نه) راوالوتل او سینا ته چه به راورسیدل نو سخت ستړی به وو نو په زمکه به راپریوتل، بنی اسرائیلو به راونیول۔ (المنار)

كُلُوْا مِنْ طَيِّبٰتِ : یعنی هغوی ته مو دا ووئیل چه دا پاك رزقونه خورئ، د (كُلُوْهَا) ضمیر په ځاي ئے دا الفاظ ذکر کړل پدے کښې په دوی باندے زیات احسان زبادول دی۔

ومَا ظَلَمُوْنَا : یعني دوی ددے نعمتونو په ناشکرئ سره زمونږ هیڅ نقصان ونکړو بلکه د دوی عادت دا وو چه خپلو ځانونو سره به ئے ظلم کولو او هرکله چه د ظلم نقصان او ضرر به صرف دوی پورے پیوسته کیدو نهٔ د الله پورے، نو پدے وجه ئے (اَنْفُسَهُمْ) مقدم کړو۔ او دا حال بـه د هر ظالم او مجرم وی چه په جرم او ظلم سره د خپل ځان فائده لټوی مګر هغه ته به پرے نقصان رسي۔

وَلٰـكِنْ كَانُوْٓا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ : کښې د دوی دوام او تمادی او همیشوالے د ظلمونو ته اشاره ده لکه اُوس هم دوی د روسیانو په علاقو کښې د اشتراکی نظام تعلیمونه ورکوی، او غواړی چه فلسطین د عربی امت نه جدا کړی او ځانله ئے راکاړی۔ (المنار)

| وَاِذْ قِيْلَ لَهُمُ اسْكُنُوْا هٰذِهِ الْقَرْيَةَ وَكُلُوْا مِنْهَا حَيْثُ |
|---|
| او کله چه ووئیلے شو دوی ته وسیږئ پدے کلی کښې او خورئ ددے نه کوم ځای |
| شِئْتُمْ وَقُوْلُوْا حِطَّةٌ وَّادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا |
| چه خوښه شي ستاسو او وایئ لفظ د حِطَّةٌ او داخل شئ دروازے ته سجده کونکی |
| نَّغْفِرْ لَكُمْ خَطِيْٓـٰٔتِكُمْ ؕ سَنَزِيْدُ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۱۶۱﴾ |
| بخنه به وکړو تاسو ته د ګناهونو ستاسو، زردے چه زیات به کړو نیك عمل کونکو لره۔ |

فَبَدَّلَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مِنْهُمْ قَوْلًا غَيْرَ الَّذِيْ

نو بدل کړه هغه کسانو چه ظلم ئې کړے وو د دوی نه وینا لره په غیر د هغې

قِيْلَ لَهُمْ فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِجْزًا مِّنَ السَّمَآءِ

چه وئیلې شوے وه دوی ته نو راولیږو مونږه په دوی باندې عذاب د آسمان نه

بِمَا كَانُوْا يَظْلِمُوْنَ ﴿١٦٢﴾

په دې وجه چه دوی به ظلم کولو۔

**تفسیر**: د بنی اسرائیلو اخلاقی حالت دومره خکته تلے وو چه دوی د الله تعالیٰ ذکر شوی تمام احسانات هیر کړل، او سرکشی او نافرمانی د دوی عادت جوړ شو، او د الله د احکامو پورے توقے کول د دوی دویم فطرت جوړ شو، کله به هم چه الله تعالیٰ دوی ته یو حکم وکړو نو د هغے نافرمانی به ئې کوله او د هغے سره به ئې د سپکاوی معاملے کولے۔ پدے دواړو آیتونو کښې الله تعالیٰ د دوی ددے قسم یو بل اخلاقی او دینی انحطاط (تنزل/خکته والی) بیان کړیدے۔

الله تعالیٰ دوی ته حکم کړے وو چه ددے نعمتونو په مقابله کښې به تاسو بیت المقدس ته داخلیږئ خو دوه کارونه به کوئ۔ یو د «حِطَّةٌ» وئیلو په حالت کښې داخل شئ۔ یعنی اے الله ! زمونږ گناهونه معاف کړه۔ دویم دا چه د سر ټیټولو (عاجزئ) په حالت کښې داخل شئ، لیکن دوی د الله د حکم مخالفت وکړو او په خپلو کوناتو سره داخل شو او د «حِطَّةٌ» په ځای ئې (حِنْطَةٌ) ووئیل (یعنی زمونږ دپاره غنم پکار دی) چه ددے په بدله کښې الله تعالیٰ دوی په طاعون بیماریئ کښې اخته کړل او زرگونو خلق ئې هلاك شول۔ لکه ددے تفصیلات په سورة البقره آیت (۵۸/۵۹) کښې بیان شویدی۔

اُسْكُنُوْا : بقره کښې ئې ووئیل چه (اُدْخُلُوْا) او دلته ئې ووئیل چه وسیږئ پدے کلی کښې۔ نو دلته فائده زیاته ده هلته دخول د وسیدو دپاره وو۔

سَنَزِيْدُ الْمُحْسِنِيْنَ : کومو خلکو کښې چه احسان وی او د الله حکمونه په ښائسته طریقه عملی کوی د هغوی احسان الله تعالیٰ وخت په وخت زیاتوی۔

فَبَدَّلَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مِنْهُمْ قَوْلًا غَيْرَ : بَدَّلَ کښې معنیٰ د اَخَذَ پرته ده یعنی وائے خسته۔ یا بَدَّلَ په خپله معنیٰ دے او د غیر نه مخکښې (وَاَخَذُوْا) (وائے خسته)، لفظ پټ مراد دے۔

يَظْلِمُوْنَ : ظلم وَضْعُ شَيْءٍ فِيْ غَيْرِ مَوْضِعِهٖ ته وائي، يعني يو شے بي خايه كيخودل او استعمالول دي، نو د الله په آيتونو تصديق پكار وو دوى پرے تكذيب وكړو، په سورة بقره كښې ئے (يَفْسُقُوْنَ) وئيلي وو ځكه چه هلته د دوى ترك العمل ذكر كيدو نو فسق لفظ ورسره زيات مناسب وو.

| |
|---|
| وَاسْئَلْهُمْ عَنِ الْقَرْيَةِ الَّتِيْ كَانَتْ حَاضِرَةَ الْبَحْرِ ۘ اِذْ |
| او تپوس وكړه د دوى نه په باره د كلي هغه كښې چه وو نزدے درياب ته كله چه |
| يَعْدُوْنَ فِي السَّبْتِ اِذْ تَأْتِيْهِمْ حِيْتَانُهُمْ يَوْمَ |
| د حد نه تيروتل كول دوى په ورځ د خالي كښې كله چه راتلل دوى ته مهيان د دوى په ورځ |
| سَبْتِهِمْ شُرَّعًا وَّيَوْمَ لَا يَسْبِتُوْنَ ۙ |
| د خالي د دوى كښې ښكاره، او كله چه به ورځ د خالي نۀ وه په دوى باندے، |
| لَا تَأْتِيْهِمْ ۛ كَذٰلِكَ ۛ نَبْلُوْهُمْ بِمَا |
| نۀ به راتلل دوى ته (مهيان)، دغسے، امتحان كوو مونږ په دوى باندے په سبب د هغے |
| كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ ﴿۱۶۳﴾ وَاِذْ قَالَتْ اُمَّةٌ مِّنْهُمْ لِمَ تَعِظُوْنَ |
| چه دوى به نافرماني كوله. او كله چه ووئيل يوے ډلے د دوى نه ولے نصيحت كوئ تاسو |
| قَوْمَا ۙ لا اللّٰهُ مُهْلِكُهُمْ اَوْ مُعَذِّبُهُمْ |
| هغه خلقو ته چه الله تعالىٰ هلاكونكے د هغوى دے يا عذاب وركونكے دے هغوى ته |
| عَذَابًا شَدِيْدًا ؕ قَالُوْا مَعْذِرَةً اِلٰى رَبِّكُمْ |
| عذاب سخت، ووئيل دوى (دا ځكه كوو) دپاره د عذر پيش كولو رب ستاسو ته |
| وَلَعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ ﴿۱۶۴﴾ فَلَمَّا نَسُوْا مَا |
| او دے دپاره چه دوى بچ شي (ددے ګناه نه). نو هر كله چه هيره كړه دوى هغه خبره |
| ذُكِّرُوْا بِهٖۤ اَنْجَيْنَا الَّذِيْنَ |
| چه نصيحت وركړے شوے وو دوى ته په هغے نو نجات وركړو مونږ هغه كسانو ته |

| يَنْهَوْنَ عَنِ السُّوْٓءِ وَاَخَذْنَا الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا |
|---|
| چه منع به ئې كوله د بدئ نه او راونيول مونږ هغه كسانو لره چه ظلم ئې كړے وو |
| بِعَذَابٍ بَئِيْسٍ بِمَا كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ ﴿١٦٥﴾ |
| په عذاب سخت سره په سبب د هغې چه دوی نافرماني كوله۔ |

**تفسير**: دلته د بنی اسرائيلو يوه دريمه نافرماني او اخلاقي او ديني خكته والے بيان شويدے چه دوی د مخكښ نه په دے قبائحو او رذائلو اموخته دی، دوی مخكښ هم دا كار كړيدے۔ ۲– بله فائده: په كلي كښ څه خلك نافرماني كوی او نور خلك ئې نهٔ منع كوی نو الله په نهٔ منع كونكو هم عذاب راولي۔ نو پدے كښ اشاره ده مؤمنانو ته چه كه ستاسو په علاقه (مثلاً مكه) كښ خلك كفر او شرك كوی او تاسو ئې نهٔ منع كوئ نو د الله عذاب به راشي، تاسو به هم راګير كړی۔

۳– او بنی اسرائيلو چه كله اتباع د مَا اُنْزِلَ پريخوده نو الله ښكه پريشانه كړل۔

ددے تفصيل په سورة البقره آيت (٦٥) كښ ذكر شويدے چه الله تعالىٰ د بحر قُلْزُم په غاړه واقع يو يهودی كلي والو باندے د خالي د ورځے د مهيانو ښكار حرام كړے وو، او د دوی د امتحان دپاره د الله په حكم سره د خالي په ورځ به مهيان ډير او ښكاره راتلل او د درياب په سرونو به روان وو او په نورو ورځو كښ به مهيان غائب وو۔ دا خلق د الله تعالىٰ پدے امتحان كښ ناكام شو او داسے طريقه ئې اختيار كړه چه د خالي په ورځ مهيان د اُوبو نه واپس لاړ نشي دے دپاره چه د اتوار په ورځ هغه ښكار كړی۔ الله تعالىٰ دوی پدے امتحان كښ د دوی د مخكنو ګناهونو په وجه اچولي وو، دے دپاره چه د دوی سركشي ښكاره راشي او د عذاب مستحق شي۔

وَاسْئَلْهُمْ : دا تپوس د تقريع او زجر (زورنے) دپاره دے چه د دوی مشرانو كښ دا عيبونه وو نو ښكه پرے دغه عذابونه راغلل نو تاسو هم د دوی نه عبرت واخلئ۔

حَاضِرَةَ الْبَحْرِ : ابن عباس ﷺ وائي چه ددے كلي نوم (اَيْلَات) يا (اَيْلَه) وو چه د بحر قلزم په غاړه آباد وو۔ (عقبهٔ داود هم ورته وائي) نن صبا پدے ځاى د اسرائيلو بندرګاه واقع ده۔ دا كلے د مدين او طور ترمينځ واقع دے۔ (القاسمي)

حَاضِرَةَ الْبَحرِ : يعني درياب ته نزدے وه۔

شُرَّعًا : دا جمع د شارع ده د شَرَع نه دے، په معنیٰ د نزدے والی او ښکاره والی سره۔ اَیۡ ظَاهِرَةً عَلٰی وَجۡهِ الۡمَاءِ۔ یعنی ښکاره د اُوبو په سر به روان وو۔ (القاسمیؒ)

ضحاکؒ وائی : مُتَتَابِعَةً مُصۡطَفَّةً۔ پرله پسے صفونه صفونه به راروان وو۔ (التحریر)

ابن عاشورؒ وائی : چه شُرَّعًا د شارع نه دے هغه اُوښانو ته وائی چه اُوبو ته د څکلو دپاره داخلیږی، نو دلته ئے ددے ماهیانو په اُوبو کښ د ډیروالی تشبیه ورکړیده د هغه اُوښانو سره چه اُوبو ته راداخلیږی۔

لَا یَسۡبِتُوۡنَ : اَیۡ لَا یَدۡخُلُوۡنَ فِی السَّبۡتِ۔ کله چه به دوی په خالی ورځ کښ نهٔ وو۔

کَذٰلِكَ ۚ نَبۡلُوۡهُمۡ بِمَا كَانُوۡا یَفۡسُقُوۡنَ : دا استیناف بیانی دے جواب د سوال دے چه ددے واقعے څه فائده ده سره ددے نه چه الله پو هیدو چه دوی د خالی د ورځے د بی حرمتیٔ نه نهٔ منع کیدل ؟ (التحریر) نو جواب وشو چه زهٔ په دوی باندے د د دوی د فسق په وجه امتحان کوم۔ او ددے مطلب دا دے چه یو تن د الله د حکمونو پرواه نهٔ لری، نو په ده باندے الله تعالیٰ امتحانات راولی، او ګناه او د ګناه اسباب ورته زیاتوی دے پکښ واقع کوی، او کوم انسانان چه صحیح مؤمنان دی، او د الله د حکم پرواه لری نو الله د هغوی نه دفاع کوی او فتنه او د ګناه اسباب ترے جدا کوی۔ (اِنَّ اللّٰهَ یُدٰفِعُ عَنِ الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا)

ددے مثال دا دے چه یو تن کیره وخریوی او ځان نه تامی جوړ کړی نو دهٔ ته به هره ورځ د زنا موقعه ملاویږی، او بدکاره زنانه هم ددهٔ سره تعلق په آسانه جوړوی، او بل یو تن ښائسته کیره پریښے ده او دیندار دے نو بدکاره خلك ددهٔ نه ځان جدا کوی څکه چه دا ګمان ئے وی چه ددهٔ نه زما حاجت نهٔ پوره کیږی۔ پدے مثال کښ سوچ وکړه۔

نو که دے خلکو دا پابندی او کلك عزم کړے وے چه مونږ به په هیڅ حالت کښ د خالی په ورځ د مهیانو ښکاره نهٔ کوو نو الله به ورته د بل طرفنه ډیر مهیان ورکړی وے ﴿وَمَنۡ یَّتَّقِ اللّٰهَ یَجۡعَلۡ لَّهٗ مَخۡرَجًا﴾ یو تن د یو حرام نه ځان وساتی نو بل طرفته ورله الله تعالیٰ ډیر حلال ورکړی، د الله سره خو حلال کم نهٔ دی۔

وَاِذۡ قَالَتۡ اُمَّةٌ مِّنۡهُمۡ : د جمهورو مفسرینو وینا ده چه ددے کلی وسیدونکی اسرائیلی خلق د مهیانو د ښکار په باره کښ په دریے ډلو تقسیم شوی وو۔ یوے ډلے (چه د هغوی شمار اویا (۷۰) زره کسان وو) نافرمانی وکړه او ښکار ئے وکړو۔ دویمے ډلے نهی عن المنکر وکړو۔ او دریمے ډلے نهٔ نافرمانی وکړه او نهٔ ئے نور منع کړل بلکه نهی عن المنکر والا ئے منع کړل۔

لِمَ تَعِظُوْنَ : دریمے ډلے دویمے ډلے ته ووئیل چه تاسو داسے خلقو ته ولے نصیحت کوئ چه الله هغوی لره یا هلاکونکے دے یا عذاب ورکونکے دے؟ دا خلك خوشبین وو چه ګناه خو ورته خپله بدی ښکاره کیدله لیکن همت ئے کمزورے وو، او دا ئے وئیل چه هر سړے به خپل کار کوی او د نهی عن المنکر والا خپے ئے وهلے (داسے قسم خلك د حق دعوت ته ډیر نقصان ورکوی، په ځای ددے چه منکراتو والا منع کړی دوی رالګی د حق داعی منع کوی چه ګوزاره وکړه).

اللّٰهُ مُهْلِكُهُمْ : ددے نه مراد استیصالی عذاب دے چه بیخی ئے ختم کړی او عذاب شدید نه مراد دا دے چه په دنیا کښې بل درد ورکونکے عذاب پرے راشی.

دا خبره دوی په غالب ګمان کړے وه ځکه چه په عمومی توګه سره داسے کیږی چه الله تعالیٰ نافرمانه خلق هلاکوی یائے په بل عذاب کښې اخته کوی. دویمے ډلے ووئیل چه مونږ دا پدے وجه کوو چه د الله په نیز زمونږ عذر ثابت شی او کیدے شی چه دا خلق په نیغه لاره راشی. لیکن نافرمانو ددے نیکانو یوه خبره وانهٔ وریده او په خپلو ګناهونو همیشه پاتے شو، نو الله تعالیٰ دا نیکان بچ کړل او ظالمان نافرمان ئے د هغوی د ګناهونو په وجه په سخت عذاب کښې مبتلا کړل او د هغوی د کبر او ګناهونو د همیشوالی په وجه ئے د هغوی شکلونه مسخ کړل او شادوګان ئے ترے جوړ کړل.

مَعْذِرَةً اِلٰی رَبِّكُمْ : ددے نه د دعوت دوه فائدے معلومیږی یو دا چه الله تعالیٰ ته عذر پیش شی، او دویم دا چه د الله نه امید وساتی چه خلك به ښهٔ شی. او دا دلیل دے چه نهی عن المنکر فرض دے اګرکه آوریدونکے پرے عمل نکوی.

## آیا دریمه ډله هلاکه شوه ؟

وَاَخَذْنَا الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا : علامه شوکانیؒ وائی چه د قرآن ظاهری الفاظ همدا وائی چه د عذاب نه صرف هغه خلق بچ شو چه هغوی منع کړے وه، او شکلونه د هغه چا مسخ شو چه هغوی نافرمانی کړے وه. دریمه ډله یعنی کومو خلقو چه نهٔ نافرمانی کړے وه او نهٔ ئے نور منع کړی وو د هغوی په باره کښې د تفسیر د علماؤ اختلاف دے.

چا وئیلی دی چه هغوی هم هلاك شویدی. او چا وئیلی دی چه هغوی نهٔ دی هلاك شوی. د ابن عباسؓ همدا رائے وه چه هغوی هلاك شویدی، لیکن عکرمهؒ چه کله هغوی ته ووئیل چه دے خلقو د مخکنۍ ډلے عمل بد ګڼلے وو او د هغوی مخالفت ئے کړے وو نو

د هغه رائے بدله شوے وه. مګر راجح دا ده چه دوی هم هلاك شویدی دوه وجے دی، یوه دا چه دلته نجات صرف د ناهین عن المنکر دپاره ذکر دے، که هغه خلك بچ شوی وے، نو هغوی دپاره به هم نجات ذکر شوے وے. او دویم دا چه د الله تعالیٰ دا اصول دی چه کله یو تن په یو جرم باندے رد نکوی او عذاب راشی نو په دواړو راځی ځکه چه دا نهٔ منع کونکے هم مجرم دے ځکه چه دهٔ نهی عن المنکر پریښے دے، بلکه نهی عن المعروف ئے کړیدے. نو دوی ته به هم الله تعالیٰ کوم عذاب ورکړے وی اګر که هغه ئے دلته نهٔ دے ذکر کړے. او صرف د مجرمانو ظالمانو عذاب ئے ذکر کړیدے چه هغه عذاب بئیس دے او د هغے تشریح روستو په (کُوۡنُوۡا قِرَدَةً خَاسِئِیۡنَ) سره شویده.

حافظ ابن القیم رحمه الله په «اِغَاثَةُ اللهفان» کښې په دین کښې د حیلے جوړولو په حرمت باندے ددے آیت نه دلیل نیولے دے. لیکی: د اسلام او د مسلمانانو په خلاف د شیطان یو چال په دین کښې حیله او مکر او دهوکے ورکولو ته لاره ورکول دی، چه د هغے په ذریعه د الله تعالیٰ حرام کړی څیزونه حلالولے شی، فرائض ساقطولے شی او اوامر او نواهی ختمولے شی، او دا هغه باطله رایه دهٔ چه ددے په بدئ د سلفو صالحینو اتفاق دے، مخکښې تلو سره لیکی: چه د حیلے په یو قسم سره واجبات ساقطولے شی، او محرمات حلالولے شی. دا هغه حیله دهٔ چه ټولو سلفو صالحینو بده ګڼړلے دهٔ، او د داسے تمامو حیلو په خلاف ئے آواز راپورته کړیدے. دے نه روستو د خالی والا یهودیانو په باره کښې ئے لیکلی دی چه کله دوی د خالی ورځے د مهیانو د ښکار حرمت په حیلے جوړولو سره حلال کړل نو الله د دوی شکلونه مسخ کړل او شادوګان ئے ترے جوړ کړل، په دین کښې حیلے جوړونکی لره د دیر بد انجام نه یره پکار دهٔ. (محاسن التاویل).

| فَلَمَّا عَتَوۡا عَنۡ مَّا نُهُوۡا عَنۡهُ قُلۡنَا |
|---|
| پس هرکله چه نافرمانی وکړه دوی د هغے نه چه منع شوی وو د هغے نه ووئیل مونږ. |
| لَهُمۡ كُوۡنُوۡا قِرَدَةً خٰسِئِیۡنَ ﴿۱۶۶﴾ |
| دوی ته شئ شادوګان (بیزوګان) ذلیله. |

**تفسیر**: دا خلك ځان ته مسلمانان هم وائی او د الله د حکم د تابعدارئ دعوه هم کوی، او ښکاره ئے دا حکم هم نهٔ ماتولو بلکه په چل چل کښې ئے ماتولو مګر بیا هم الله تعالیٰ

ملعون او هلاك كړل- او مهيان يو حلال شي دي ليكن صرف په يوه ورځ كښې ترې منع راغلې وه- نو د هغه انسانانو به څه حال وي چه هغوي لوي لوي (كبائر الذنوب) گناهونه كوي او ښه ښكاره ئې كوي- كه د دې امت سره د محمد رسول الله ﷺ په وجه بركت نهٔ وے نو دوي نه به هم د هغوي نه لوي شادوگان جوړيدلے-

چونكه د دې ډلې جُرم د دريمې ډلې نه سخت وو نو ځكه ئې د دوي دپاره د (عَتَوْا) لفظ استعمال كړو- او چونكه په حيلې سره د دين مسخ كول راخي نو پدې وجه دوي ته د مسخ سزا وركړې شوه-

خٰسِئِيْنَ: د دې فائده مونږ وئيلې وه چه شادو خپله ښائسته حيوان دے ليكن كله چه انسان شادو شي نو دا انتهائي بد ښكاري ځكه چه دا عذاب وي-

| وَاِذْ تَاَذَّنَ رَبُّكَ لَيَبْعَثَنَّ عَلَيْهِمْ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ |
|---|
| او كله چه اعلان وكړو رب ستا خامخا راليږم به په دوي باندې تر ورځې د قيامت پورې |
| مَنْ يَّسُوْمُهُمْ سُوْٓءَ الْعَذَابِ ؕ اِنَّ رَبَّكَ لَسَرِيْعُ الْعِقَابِ ۚ صلے |
| هغه څوك چه رسوي به دوي ته بد عذاب، يقيناً رب ستا خامخا زر عذاب وركونكے دے- |
| وَاِنَّهٗ لَغَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۶۷﴾ وَقَطَّعْنٰهُمْ فِى الْاَرْضِ |
| او يقيناً هغه خامخا بخونكے رحم كونكے دے- او تس تس كړل مونږ دوي لره په زمكه كښې |
| اُمَمًا ۚ مِنْهُمُ الصّٰلِحُوْنَ وَمِنْهُمْ دُوْنَ ذٰلِكَ ز |
| مختلفې ډلې، بعض د دوي نه نيكان وو او بعض د دوي نه سوئې دي د دې نه |
| وَبَلَوْنٰهُمْ بِالْحَسَنٰتِ وَالسَّيِّاٰتِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ ﴿۱۶۸﴾ |
| او امتحان وكړو مونږ په دوي باندې په خوشحالو او تكليفونو سره دې دپاره چه دوي راوگرځي |

**تفسير**: د دوي د سركشئ او د الله د اوامرو د مخالفت او د حيلې په ذريعه حرامو له د حلالو لو په وجه الله تعالىٰ تر قيامته پورې ذلت او رسوائي د بني اسرائيلو دپاره اعلان كړه او دا فيصله ئې وكړه چه د دنيا نور قومونه به دوي هميشه په از ميښت او امتحان او قسماقسم مصيبتونو كښې اچوي-

تَاَذَّنَ : ۱ - اَیْ اَعْلَمَ- اعلان وكړو- او دا اعلان ئې په ژبه د انبياؤ كړيدے-

۲- حُكْمَ رَبُّكَ۔ (عطاء)۔ یعنی فیصله وکړه رب ستا۔ (بغوی)
صاحب المنار وائی: تأذن او ایذان هغه اعلان ته وائی چه د خلکو غوږونو ته ورسیږی او خلك ئے په غوږونو محسوس کړی۔ او دا اعلان الله تعالیٰ په خپل ځان لیکلے وو او په خپل علم کښې ئے ددے فیصله کړیده۔
مفسرین لیکی چه د تولو نه مخکښې خپله موسیٰ علیه السلام اُوه کالو پورے د دوی نه تیکس وصول کړو۔ د سلیمان علیه السلام نه روستو د بابل بادشاه بخت نصر د دوی ملك تباه او برباد کړو، سړی ئے قتل کړل او ښځے او ماشومان ئے غلامان کړل او په هغوی ئے جزیه نافذ کړه، او د هغوی نه ډیر خلق ئے بابل طرف ته جلا وطن کړل چرته چه دوی اویا (۷۰) کالو پورے حیران وسیدل، دے نه روستو هم مختلفو یونانی، کشدانی او کلدانی بادشاهانو دوی خپل غلامان کړل، او د ذلت او رسوائی دا دور چلیدلو تردے چه د عیسیٰ علیه السلام د پیدائش نه یو اویا (۷۱) کاله روستو د دوی په ملك باندے د رومانیانو قبضه وشوه چه هغوی دوی لره د هغه ځای نه وویستل او د دنیا په مختلفو حصو کښې ذلیل او خوار تس نس شول۔
بیا دوی د رسول الله ﷺ مخالفتونه وکړل سره ددے نه چه هغه ورته د نفسونو امن ورکړے وو او د خپل دین آزادی ئے ورکړے وه، نو دوی د هغه سره دوکے وکړے او د مشرکانو ملګرتیا ئے اعلان کړه او لوظونه ئے مات کړل، نو الله پرے رسول الله ﷺ مسلط کړو چه تول یهودیان د مدینے نه، او بیا لږه زمانه روستو د عمر فاروق رضی الله عنه په زمانه کښې د تول جزیرة العرب نه وشړلے شو تردے چه سیدنا عمر رضی الله عنه سوریه فتح کړه بعض په صلح سره لکه بیت المقدس او بعض په زوره سره نو دوی د روم د سیادت (سرداریٔ) نه پریوتل او د اسلام د تسلط لاندے راغلل مګر بیا هم دوی ذلیله دی او هیڅ استقلال ئے نشته۔ (القاسمی والمنار)
نن صبا چه د دوی په ظاهره کښې یو حکومت د فلسطین په زمکه قائم شویدے نو دا د قرآن کریم ددے خبر خلاف نهٔ دے، بلکه د سورة آل عمران آیت (۱۱۲) مطابق امریکه او نور غیر مسلم حکومتونو په تعاون او اشارے سره قائم دے۔ که دا حکومتونه ترے لاسونه راکاږی نو اسرائیلی حکومت باقی نشی پاتے کیدے۔
او اُوس هم چه کوم حکومت قائم دے، په هغے کښې هیڅ مصلحت او فائده نشته، ورنه د دوی د ذلت حالت دا دے چه یهودیانو ته هلته یوے ورځے دپاره هم سکون حاصل نهٔ دے۔
او بل طرفنه د مسلمانانو نه ذهنی او عملی سخت پریشانه دی۔
مَن يَسُومُهُمْ سُوءَ الْعَذَابِ: امام بغوی وائی چه ددے نه مراد محمد ﷺ او د هغه

امت دی چه دوی سره به جنگونه کوی تردے چه اسلام راوړی یا جزیه ورکړی۔ (بغوی)
سُوْٓءَ الْعَذَابِ : دا هغه عذاب ته وائی چه صاحب خفه کوی او ذلیله کوی دلته تربے مراد د دوی نه ملك (بادشاهی) اخستل دی او په زوره باندے عاجز کول دی۔
وَقَطَّعْنٰهُمْ : مخکښی د دوی تقطیع (ډلے ډلے) کول نعمت وو دے دپاره چه ژوند ئے برابر شی او د اختلافاتو نه بچ شی، او دا تقطیع د عذاب دپاره ده څکه چه یو قوم تس نس شی او در په در شی نو دا لوی هلاکت دے، او دا پدے وجه هم الله تعالیٰ تس نس کړل چه دوی ډیر شریان ظالمان قوم دے که په یو ځای راجمع شی نو فسادونه کوی پدے وجه الله ورله طاقت تقسیم کړو۔
فِي الْاَرْضِ اُمَمًا : [فَلَيْسَ لَهُمْ اِقْلِيْمٌ يَسْكُنُوْنَهٗ وَلَاتَجِدُ قَرْيَةً اِلَّا وَفِيْهَا مِنْهُمْ] ۔ نو د دوی یو اقلیم نشته چه دوی په هغے کښی په شریکه ژوند تیر کړی او ته به په هر ملك کښی د دوی نه څه کسان مومے۔ لکه الله تعالیٰ دوی ته وئیلی وو : ﴿ وَقُلْنَا مِنْۢ بَعْدِهٖ لِبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ اسْكُنُوا الْاَرْضَ فَاِذَا جَآءَ وَعْدُ الْاٰخِرَةِ جِئْنَا بِكُمْ لَفِيْفًا ﴾ (اسراء:۱۰٤)۔
(په زمکه کښی وسیږئ کله چه روستنئ وعده (د آخرت) راشی نو تاسو به په یو ځای راولو)۔ او په یهودو څو مره ډیرے زمانے تیرے شوے او هیڅ ریاست ورته ملاؤ نشو صرف د یو څو کسانو محله ورته ملاؤ ده هغه هم د ذلتونو نه ډکه ده لکه مخکښی بیان شو۔
مِنْهُمُ الصّٰلِحُوْنَ : دا د قرآن عدل دے چه څه خلك ذکر کړی نو د هغوی په نیکانو کړ نۀ راکاږی بلکه هغه جدا بیانوی، او دا صالحین په هغه زمانه کښی وو چه رسول الله ﷺ لا نۀ وو راغلے، او کله چه رسول الله ﷺ راغے او دوی پرے ایمان رانۀ وړو نو ټول ظالمان دی۔
یا دے کښی اشاره ده هغه مؤمنانو ته چه د اهل کتابو نه ئے ایمان راوړے وو لکه عبد الله بن سلام ﷛ وغیره۔ یا دا چه په هره زمانه کښی په دوی کښی څه خلق نیکان شو چه د خپلے زمانے په انبیاؤ علیهم السلام ئے ایمان راوړو، او د دوی نه هغه خلك هم وو چه د نبی کریم ﷺ زمانه ئے وموندله او په اسلام مشرف شو۔
وَمِنْهُمْ دُوْنَ ذٰلِكَ : یعنی غیر صالحین، نو ددے بیا ډیرے درجے دی د چا کفر او ظلم او فسق زیات او د چا کم۔ یا دا چه دوی کښی مقتصدین یا ظالمین دی۔ یا د صالحینو نه خکته دی د کفر په وجه یا د فسق په وجه۔ (القاسمیؒ)
یعنی دوی کښی څه خلك داسے شو چه هغوی د الله تعالیٰ د اوامرو مخالفت وکړو او ایمان ئے رانۀ وړو۔ دا گناهگاران الله تعالیٰ په مختلف قسم ازمینښتونو کښی واچول، کله ئے په

دوی د خیراتو او برکاتو دروازه راکولاوه کړه نو کله ئې دوی په تنګسیا کښې اخته کړل او مقصد دا وو چه کیدے شی دوی به د خپلو ګناهونو نه توبه ویاسی او ایمان به راوړی۔

بِالْحَسَنٰتِ وَالسَّيِّاٰتِ : یعنی په نعمتونو او سزاګانو باندے په سبب د صلاح او د فسق سره۔ (التحریر) یا په یسر او عسر سره۔ (سعدی) (یعنی آسانئ او سختئ سره)

یا حسنات : اَلْخِصْبُ وَالْعَافِيَةُ (سبزکالی، فراخیانی او روغ حالت) او سیئات نه مراد : اَلْجَدْبُ وَالشِّدَّةُ ۔ یعنی قحطونه او سختیانے۔ یا عامه معنیٰ مراد ده حسنات، ښه حالتونه او سیئات بد حالتونه۔

لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ : دے ټولو حالتونو راوستو کښې مقصد دا وو چه بندګان الله ته راواپس شی او د هغه صحیح بندګی وکړی۔

| فَخَلَفَ مِنْۢ بَعْدِهِمْ خَلْفٌ وَّرِثُوا الْكِتٰبَ |
|---|
| پس راپیدا شول روستو د دوی نه ناکاره خلق، په میراث کښې ئې واخستو کتاب (تورات)، |
| يَأْخُذُوْنَ عَرَضَ هٰذَا الْاَدْنٰى وَيَقُوْلُوْنَ سَيُغْفَرُ لَنَا ج وَاِنْ |
| اخلی سامان ددے ذلیل ژوند او وائی دوی زر دے چه بخښنه به وکړے شی مونږ ته او که |
| يَّأْتِهِمْ عَرَضٌ مِّثْلُهٗ يَأْخُذُوْهُ ؕ اَلَمْ يُؤْخَذْ |
| راشی دوی ته نور سامان په شان د هغے، اخلی هغے لره (هم)، آیا نۀ وه اخستے شوے |
| عَلَيْهِمْ مِّيْثَاقُ الْكِتٰبِ اَنْ لَّا يَقُوْلُوْا عَلَى اللّٰهِ اِلَّا الْحَقَّ |
| د دوی نه کلك لوظ په کتاب کښې چه نۀ به وائی دوی د الله په باره کښې مګر حقه خبره، |
| وَدَرَسُوْا مَا فِيْهِ ؕ وَالدَّارُ الْاٰخِرَةُ |
| او لوستلی دی دوی هغه حکمونه چه په دے کتاب کښې دی او کور روستنے (جنت) |
| خَيْرٌ لِّلَّذِيْنَ يَتَّقُوْنَ ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿۱۶۹﴾ |
| ډیر غوره دے هغه کسانو لره چه یریږی (د الله نه) آیا نو عقل نۀ لرئ تاسو۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښې د هغه اهل کتابو بدی بیانیږی چه د رسول الله ﷺ او د هغه نه روستو زمانه کښې پیدا شویدی چه دوی ټول بدکاره دی او د مخکنو نه په شر کښې زیات

دي ځکه چه مخکنو کښې خو صالحين او ظالمين دواړه وو، او دوی سراسر شريان دی۔
او فرمائی چه دوی نهايت بد خليفه گان وو، هر غوره والے د دوی نه رخصت شوے وو، او د تورات احکام بدلول او په هغے سره دنيا گټل د دوی پيشه گرځيدلے وه، رشوت اخستو سره به ئے د تورات په خلاف فيصلے کولے، او د خپلو ځانونو په دهوکه کښې اچولو دپاره به ئے وئيل چه الله به دوی نهٔ رانيسی او دوی به معاف کوی حال دا چه دوی په خپل زړهٔ کښې پدے خبره هميشوالے کولو چه که چا دوباره هم رشوت ورکړو نو هغه به اخلی او د زړهٔ نه توبه ويستونکی نهٔ وو۔ د دوی دينی او اخلاقی خکته والے انتهاء ته رسيدلے وو،
د الله تعالیٰ په باره کښې د دوی تحکمانه انداز چه دوی به الله معاف کوی، په الله دروغ جوړول وو، او د هغه عهد او ميثاق خلاف وو کوم چه د دوی نه اخستے شوے وو چه دوی به د الله په باره کښې رشتينے خبرے بيانولو نه کار اخلی، او دوی ته د تورات په مطالعے سره د هغه لوظ علم هم وو۔ داسے نهٔ وه چه دوی پرے پوهه شوی نهٔ وو۔ دے نه روستو الله وفرمايل چه د آخرت کاميابی، د دنياوی سپکو مفاداتو نه ډيره غوره دهٔ۔ (تيسير الرحمن)
**خَلْفٌ**: په سکون د لام سره ناکاره خلکو ته وائی دا د (خَلُوْفُ فَمِ الصَّائِمِ) نه اخستے شويدے د خولے بد بوئی ته وائی۔ نو دوی بدبويه ناکاره خلك دی چه هيڅ خير پکښې نشته۔
**وَرِثُوا الْكِتٰبَ**: يعنی په ميراث کښې ئے واخستو کتاب د الله چه تورات دے۔
**يَأْخُذُوْنَ عَرَضَ هٰذَا الْاَدْنٰى**: عرض جَمِيْعُ مَتَاعِ الدُّنْيَا ته وائی۔ يعنی د تولے دنيا سامان۔ او عرض ورته ځکه وائی چه عارضی دی، زر ختميږی۔
سوال دا دے چه د دنيا سامان او متاع خو مونږ هم اخلو نو دا ځنګه عيب شو؟ جواب دا دے چه دلته ورسره دا مراد دے چه [وَيُبَدِّلُوْنَ الْاَحْكَامَ لِذٰلِكَ وَيُحَرِّفُوْنَ كِتَابَ اللهِ لِذٰلِكَ] ددے سامان په بدله کښې د الله د کتاب احکام بدلوی او تحريفونه پکښې کوی۔
اَیْ يَأْخُذُوْنَ عَرَضَ هٰذَا الْاَدْنٰى فِیْ مُقَابَلَةِ الْكِتَابِ ۔ يعنی د الله د کتاب په مقابله کښې د دنيا متاع غوره کوی۔
**وَيَقُوْلُوْنَ سَيُغْفَرُلَنَا**: ۱–يعنی کوی گناه (د الله په کتاب کښې تحريف کوی او ايمان پريدی) او بيا وائی چه الله غفور رحيم دے، دے ته اغترار بالله (په الله باندے دهوکه کيدل) وائی۔
۲– يا مطلب دا دے: [اِنَّا لَا نُوَاخَذُ بِهٰذَا] مونږ به پدے کار باندے نهٔ رانيولے کيږو ځکه چه

دا مونږ د خپل دین او یهودیت دپاره غیرت کوو، نو دوی به غټ کفرونه کول او دا به ئے وئیل چه پدے کښې ګناه نشته. لکه ددے امت ډیر مجرمان هم بدعات او شرکیات کوی او بیا وائی چه دا خو مونږ د اولیاؤ او د بزرګانو احترام کوو. او تقلیدونه کوی او دے ته د امام احترام وائی.

او د یهودو ملیانو به د دین په ذریعه حرام مالونه خوړل او دا به ئے وئیل چه دا مونږ له حلال دی ځکه چه مونږه بخښلے شوی یو، لکه دا مرض ددے امت د بعض پیرانو او ملیانو دے چه حرامه خوری او بیا دا بهانه کوی چه دا مونږ له حلال دی لکه علامه آلوسیؒ ددے په تشریح کښې د بعض پیرانو او صوفیاؤ حال ذکر کړیدے.

دا خبره د هغه مؤمن دپاره صحیح ده چه یو ځل ترے ګناه وشی او بیا پښیمانه شی او توبه ویاسی او بیا ووائی چه الله غفور رحیم دے او چه کله یو بنده ګناه کوی او بیا وریسے بله کوی، او بنه زړه ورووی او بیا وائی چه غفور رحیم دے نو دا د خپل ځان سره دهوکه ده ځکه چه الله خو عَزِیْزٌ ذُو انْتِقَام هم دے.

وَاِنْ يَّاْتِهِمْ عَرَضٌ مِّثْلُهٗ : پدے کښې الله د دوی بی اخلاصی بیانوی چه د دوی دا ګمان غلط دے چه مونږ ته به بخښنه وکړے شی، وجه دا ده چه دوی دغه جرمونه د زړه نه نۀ پریدی او بیا بیا ئے کوی او توبه ترے نۀ وباسی. نو که دوی ته دغه شان حرام مال بیا راشی هم دوی پرے صرفه نۀ کوی. نو که دوی د مغفرت طمع کولے دا کار به ئے نۀ کولے بلکه دوی دروغژن دی.

اَلَمْ يُؤْخَذْ : دا پرے رد دے چه که دوی بخښلے شوی وے نو بیا د دوی نه دا لوظ ولے اخستلے کیدو.

اَنْ لَّا يَقُوْلُوْا عَلَى اللّٰهِ اِلَّا الْحَقَّ : یعنی دوی نه وعده اخستے شوے وه چه په الله به دروغ نۀ وائی، او دلته ئے دروغ ووئیل چه الله به مونږ ته بخنه کوی. الله کوم ځای وئیلی دی چه دوی به تحریفونه کوی او زۀ به ورته معافی کوم.

وَدَرَسُوْا مَا فِيْهِ : جواب د سوال دے که څوک ووائی چه دوی به په دغه کتاب او دغه حکم باندے نۀ پوهیدل؟ نو الله فرمائی : چه دوی ددے احکام لوستلی وو او بنه پرے پوهه شوی وو ځکه چه څوک د الله کتاب ولولی نو هغه په حلال او حرامو پوهه شی.

ددے نه دا فائده معلومیږی چه په الله تعالیٰ باندے ناحقه خبره دوه قسمه خلك كوی يا ناکاره دنیا پرست علماء، او بل اصحاب الرياسة. (دنیاوی مشران) لکه حافظ ابن قیمؒ

ونیـلـی دی چه هر څوك چه دنیا غوره کړی نو خامخا به هغوی د حق په خلاف کښې خبره کوی ځکه چه د الله تعالیٰ احکام او حق ډیر کرته د خواهش خلاف راځی۔ (الفوائد)

وَالدَّارُ الْاٰخِرَةُ : دے کښې ترغیب دے دوی ته چه آخرت طلب کړی۔ د الدار الآخرة نه مراد جنت دے۔

يَتَّقُوْنَ : یعنی چه د الله د مخالفتونو نه ځان ساتی چه یو پکښې تحریف دے۔

| وَالَّذِيْنَ يُمَسِّكُوْنَ بِالْكِتٰبِ وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ ؕ |
|---|
| او هغه کسان چه منګولے لګوی (عمل کوی) په کتاب او پابندی کوی د مانځه |
| اِنَّا لَا نُضِيْعُ اَجْرَ الْمُصْلِحِيْنَ ﴿۱۷۰﴾ |
| یقیناً مونږ نۀ ضائع کوو اجر د اصلاح کونکو۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښې د نیکانو اهل کتابو او ددے امت د مؤمنانو دپاره زیرے دے۔

ربط : مخکښې د بنی اسرائیلو د بعض ناکاره ملیانو تذکره وشوه چه په بنی اسرائیلو کښې څه خلقو د تورات علم لرلو او د الله د اوامرو او نواهیو نه بنه خبر وو لیکن په هغے به ئے عمل نۀ کولو۔ اُوس وائی چه په هغوی کښې څه خلق داسے هم وو چه په دینی کارونو کښې به ئے د تورات د احکامو پابندی کوله او دے پابندئ دوی لره په نبی کریم ﷺ باندے د ایمان په راوړو مجبوره کړل، او آخر دا چه دوی مسلمانان شو۔ نو الله دوی ته زیرے ورکړو چه الله تعالیٰ به د دوی اجر نۀ ضائع کوی۔

يُمَسِّكُوْنَ : د الله کتاب کلك رانیول دا دی چه په هغے کښې څه وی په هغے عمل کول او نور ئے تفصیلات دی چه حلال به ئے حلال او حرام به ئے حرام ګڼړی او اقامت د حدودو به ئے کوی۔

وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ : د قرآن د مانځه سره تعلق دے، ځکه چه دا کتاب په سړی کښې عاجزی پیدا کوی او په بندګئ باندے ئے آماده کوی۔

دا دلیل دے چه څوك د الله کتاب باندے عمل کوی او هغه خلکو ته بیانوی او د مانځه پابندی کوی نو دوی اصلاح کونکی دی اګر که مخالفین به ورته شریان وائی۔

| وَاِذْ نَتَقْنَا الْجَبَلَ فَوْقَهُمْ كَاَنَّهٗ ظُلَّةٌ |
| --- |
| او کله چه راپورته کړو مونږ غر لره دپاسه د دوی نه ګویا که هغه وریځ (یا چترۍ) وه |
| وَّظَنُّوْٓا اَنَّهٗ وَاقِعٌۢ بِهِمْ ۚ خُذُوْا |
| او یقین وکړو دوی چه یقیناً دا راپریوتونکے دے په دوی باندے (مونږ ورته ووئیل) ونیسئ |
| مَآ اٰتَيْنٰكُمْ بِقُوَّةٍ وَّاذْكُرُوْا مَا فِيْهِ |
| هغه څه چه درکړیدی مونږ تاسو ته په طاقت سره او یاد کړئ هغه چه په دے کښې دی |
| لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ ﴿۱۷۱﴾ |
| دے دپاره چه تاسو تقویٰ والا شئ۔ |

**تفسیر** : د اهل کتابو آخری بدی ده چه دا هغه خلك دے چه د الله تعالیٰ کتاب ته ئے غاړه نهٔ کیخودله۔

دا واقعه د طور غر په لمن کښې په هغه وخت کښې راپیښه شوے وه چه کله موسیٰ علیه السلام بنی اسرائیل ځان سره هلته بوتلی وو دے دپاره چه الله تعالیٰ د دوی نه په تورات د عمل کولو لوظ او عهد واخلی، او مقصد دا وو چه د دوی په زړونو د الله تعالیٰ هیبت طاری شی، او ددے لوظ او عهد د اهمیت احساس د دوی په زړونو کښې همیشه باقی پاتے شی، لیکن کله چه دوی ته ووئیل شو چه پدے به عمل کوئ نو دوی ووئیل چه دا خو ګران احکام دی پدے باندے مونږ عمل نشو کولے، نو الله تعالیٰ پرے غر راپورته کړو لکه د وریځے په شان شو نو د دوی یقین راغے چه اُوس راباندے راغورزیږی نو په سجده پریوتل او په یوه سترګه به ئے غر ته کتل نو الله ورته ووئیل چه منئ او که نهٔ؟ نو دوی مجبوراً هغے ته تیار شو۔

او پدے کښې په دوی باندے بل رد دے چه که تاسو بخښلے شوی یئ نو بیا ستاسو په مشرانو باندے الله تعالیٰ ولے د لوظ اخستو په وخت کښې غر پورته کړے وو۔

او پدے کښې دے ته هم اشاره ده چه څوك اتباع د مَا اُنْزِلَ نهٔ کوی نو د هغوی سره الله تعالیٰ داسے کار هم کړیدے۔ او داسے خلك ددے لائق دی چه غرونه په دوی راپورته کړے شی او دوی راګیر کړے شی۔

نَتَقْنَا : نَتَق دے ته وائی چه د زمکے نه راوسستلے شی۔ دا دلیل دے چه دا غر په دوی

باندے په حقیقت کښې راپورته شوے وو او هسے د همکۍ نۀ وه لکه بعض مفسرینو وئیلی دی چه دا ئے ورته وونیل چه دا غر دریاندے راپورته کوم، دا خبره خطاء ده ځکه چه د نتق د معنیٰ او د (کَاَنَّهٗ ظُلَّةٌ) د معنیٰ نه مخالفه ده۔

صاحب المنار وائی چه نتق په لغت کښې [اَلزَّعْزَعَةُ وَالْهَزُّ وَالْجَذْبُ وَالنَّفْضُ وَالْاِقْتِلَاعُ] خوزول، رانښکل او څنډلو او د بیخ نه راویستلو ته وائی)۔

ظُلَّةٌ : دا هر هغه شی ته وئیلے شی چه سورے کوی، چهت وی یا وریځ وی یا چترئ وی۔ یعنی د څپر (سائبان) په شان وو، یا د وریځے په شان وو۔

| وَاِذْ اَخَذَ رَبُّكَ مِنْۢ بَنِيْٓ اٰدَمَ مِنْ ظُهُوْرِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ |
|---|
| او کله چه واخستو رب ستا د بنیادمانو نه د شاګانو د هغوی نه اولاد د هغوی |
| وَاَشْهَدَهُمْ عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ ج اَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ ط قَالُوْا بَلٰى ج |
| او ګواهان ئے کړل دوی په ځانونو خپلو چه آیا نۀ یم زۀ رب ستاسو؟ ووئیل دوی ولے نۀ، |
| شَهِدْنَا ج اَنْ تَقُوْلُوْا يَوْمَ الْقِيٰمَةِ |
| ګواهی کوو مونږ (دا وعده مونږ درته رایاده کړه) چه ونۀ وایئ په ورځ د قیامت کښې |
| اِنَّا كُنَّا عَنْ هٰذَا غٰفِلِيْنَ ﴿۱۷۲﴾ اَوْ تَقُوْلُوْٓا اِنَّمَآ اَشْرَكَ اٰبَآؤُنَا |
| چه یقیناً مونږ ددے نه ناخبره وو۔ یا ونۀ وایئ چه یقیناً شرك کړے وو پلارانو زمونږ، |
| مِنْ قَبْلُ وَكُنَّا ذُرِّيَّةً مِّنْۢ بَعْدِهِمْ ج اَفَتُهْلِكُنَا بِمَا |
| مخکښې او وو مونږه اولاد روستو د دوی نه آیا نو هلاکوے تۀ مونږ په هغه کار |
| فَعَلَ الْمُبْطِلُوْنَ ﴿۱۷۳﴾ |
| چه کړیدے باطل پرستو۔ |

**تفسیر** : ددے نه روستو تعقیبات دی په مخکنو واقعاتو باندے چه اوله رکوع کښې غالباً په بنی اسرائیلو او نورو مشرکانو ردونه دی، او په دویمه رکوع کښې د غفلت د اسبابو د زائل کولو خبره ئے کړیده، او په دریمه رکوع کښې تفصیلاً د شرك رد دے، او په آخر کښې د دعوت آداب دی۔

## ربط او مناسبت

۱- مخکښې میثاق الکتاب وو اُوس میثاق الفطرة بیانیږي. په بل تعبیر مخکښې خاص میثاق د بنی اسرائیلو ذکر شو اُوس عام میثاق د ټولو بنیاد مانو ذکر کوي.
۲- د تیر شوي آیت په اختتام کښې د موسیٰ ﷺ او د بنی اسرائیلو د واقعاتو تسلسل ختم شو، او اُوس خبره عامو انسانانو او خاصکر د نبی کریم ﷺ د زمانې خلقو طرف ته راتاوېږي او هغوي ته وئیلې کیږي چه الله تعالیٰ صرف د بنی اسرائیلو نه لوظ نهٔ وو اخستې بلکه دا لوظ خو هغه د هر فرد انسان نه اخستې دې چه د هغې تفصیل په راتلونکي آیت کښې راروان دې. (تیسیر الرحمن)
د آیت ظاهري مطلب دا دې چه الله تعالیٰ د بني آدم ټول اولاد (چه قیامته پورې پیدا کیږي) په ازل کښې د دوي د پلارانو د شاګانو نه را وویستل او د هغوي نه ئې د دې خبرې ګواهي واخسته چه هم زهٔ ستاسو رب او ستاسو خالق او مالك یم.
د دې آیت په تفسیر کښې دوه رائې دي ❁ (۱) د اکثرو اهل علمو رایه،
(او دا په ډیرو روایاتو کښې هم راغلې ده لکه مشکاة کښې پنځه روایات دي چه د هر یو په سند کښې څه نا څه کلام شته لیکن په مجموع الطرق سره حسن درجې ته رسیږي او هغه په بدائع التفسیر او تفسیر الدر المنثور کښې راجمع دي، شوکانيؒ همدې رائې ته ترجیح ورکړیده او وئیلي ئې دي چه په صحیح مرفوع او موقوف احادیثو سره ددې تائید کیږي، او په صحیح الجامع رقم (۱۷۰۱) کښې شیخ البانيؒ صحیح ګرځولې دی)
دوي وائي چه په عالَم ارواح کښې الله تعالیٰ د آدم ﷺ د شا نه د ټولو انسانانو روحونه راوویستل د نرو (سرو) میږانو په شکل په نُعمان علاقه کښې چه د عرفات په خوا کښې دې، او دې ارواحو ته الله تعالیٰ شکلونه ورکړل، مالدار، غریب، مؤمن او کافر هر یو پکښې بیل بیل معلو میدل، نو الله ورسره مخامخ خبرې وکړې چه آیا زهٔ ستاسو رب نهٔ یم، نو هغوي ووئیل چه آؤ تهٔ زمونږ رب ئې. نو الله ورته درې خبرې وکړې چه ما به رب ګڼرئ، زما بندګي به کوئ او زهٔ به رسولان درلیږم د هغوي تابعداري به کوئ. نو کله چه انسانان دنیا ته راغلل نو دوي ته خو هغه وعده اُوس نهٔ ده یاده نو الله تعالیٰ د انبیاء علیهم السلام په واسطه مونږ ته رایاده کړه اګرکه بیا هم زمونږ یاده نشوه لیکن نبی چه په معجزه سره یوه خبره کوي نو هغه انسان منلو ته مجبوره کوي څکه چه د هغه په رشتینوالي کښې هیڅ شك شبهه نهٔ وي او بنده په خپل ځان باندې شك کولې شي، نو ګویا که مونږ ته رایاده شوه.

(بیا دا وعده الله تعالیٰ ولې اخستله، ددې څه فائده وه؟ نو پدې آیت کښې الله تعالیٰ د هغې وجې هم بیانوي چه قیامت کښې به الله تعالیٰ د بندګانو سره حساب کوي نو دوی به وائي چه اې الله! مونږ غافله وو او د حق نه مو غفلت کړیدې، یا مو د پلارانو تقلید کړیدې پدې وجه مونږ په غلطه لاره روان وو، نو الله فرمائي چه ما درنه وعده واخسته او د پیغمبرانو په ژبه مې درته رایاده کړه چه په قیامت کښې راته د غفلت او د تقلید بهانه ونکړئ)

نو دا حالت د عالَم الذَّرّ وو چه په هغې کښې د بندګانو نه دا وعده واخستې شوه۔ ددې سره دا روستو آیت ولګوه:

اَنْ تَقُوْلُوْا : دلته اَخْبَرْنَا او لا مقدر دې (اَیْ اَخْبَرْنَا کُمْ لِئَلَّا تَقُوْلُوْا) مونږ درته خبر درکړو دې دپاره چه تاسو دا خبره ونکړئ چه مونږ غافل وو الخ۔

* دویم تفسیر: (چه هغه محققینو علماؤ غوره کړیدې لکه شیخ الاسلام ابن تیمیة، حافظ ابن القیم، حافظ ابن کثیر، ابن قتیبة وغیره چه دوی دغه روایات ضعیف ګڼړلي دي) او وئیلي ئې دي چه دا ګواهي په دنیا کښې مراد ده (نهٔ په عالَم ارواح او عالَم الذر کښې) د دوی سره دوه قرینې دي (۱) یو خو دغه روایات ضعیف دي۔ (۲) دویم دا چه پدې آیت کښې (مِنْ بَنِیْ آدَمَ مِنْ ظُهُوْرِهِمْ) الفاظ دي یعني د هر بنیادم د شا نه ئې د هغه روح راویستلې دې۔ او دا کار په دنیا کښې شویدې او هغه روایاتو کښې خو دا دي چه په عالم الارواح کښې ئې د آدم عليه السلام د شا نه راویستلي دي۔

بیا په دنیا کښې الله څنګه وعده اخستې ده؟ نو هغه داسې چه انسانان الله پیدا کړل، عقل ئې ورکړو او دوی ئې ګواه کړل په خپلو ځانونو په ادله عقلیه او فطریه سره یعني فطرت ئې ورله داسې ورکړو چه الله پیژني، داسې فطرت ئې ورله جوړ کړو چه د الله نه باغي نهٔ دې بلکه الله ته مائل دې، کافر انسان هم یو رب مني، دارنګه عقلي دلیلونه الله وډرول دومره زیات چه شمار ئې نشته، لکه آسمانونه او زمکه او نور کائنات او خپله ددې انسان وجود، دې دپاره چه د خلکو بهانه ختمه شي چه اې الله! مونږ غافله وو۔

د دوی مطلب دا دې چه الله په ازل کښې دا تول روحونه نهٔ وو راجمع کړي بلکه د بنیادم پیدائش ددې خبرې ګواهي ورکوي چه الله تعالیٰ د دوی خالق دې، او هر بچې الله تعالیٰ په توحید باندې پیدا کوي۔

ددې قول مطابق د (وَاَشْهَدَهُمْ عَلٰی اَنْفُسِهِمْ) معنیٰ دا ده: اَوْجَدَهُمْ شَاهِدِیْنَ بِذٰلِكَ، قَائِلِیْنَ لَهٗ حَالًا وَقَالًا] یعني د دوی وجود ئې داسې جوړ کړو چه دوی پدې باندې ګواهي کوي او پدې

باندے قائل دي په زبان حال او زبان قال سره. (ابن کثیر ۵۰۶/۲)

او د ﴿ قَالُوا بَلَىٰ شَهِدْنَا ﴾ مطلب به دا وي چه د انسان په تخلیق (پیدائش) کښ د الله تعالیٰ د کاملے کاریگرئ او د هغه د وجود کوم آثار او دلائل دي د هغے د مخه گویا که انسانانو ووئیل چه آو، اے زمونږ الله ! ته زمونږ رب ئے، ځکه چه شهادت (گواهی) کله په زبان قال (ژبے ویلو) سره ادا کیږي او کله په زبانِ حال (یعنی د حال په ژبه) سره. نو دلته دا گواهی په زبان حال سره ده.

ان تقولوا : یعنی دا دلائل عقلیه او فطریه الله تعالیٰ ددیے دپاره ودرول چه تاسو په قیامت کښ د غفلت بهانه ونکړئ الخ.

مگر راجح دا ده چه دا دواړه خبرے جمع کول پکار دي ځکه چه د جنت او جهنم مسئله څه وړه مسئله نهٔ ده، بلکه ډیره لویه خبره ده پدے وجه الله دوه قسمه وعدے اخستي نو الله په عالم الذر کښ هم دا وعده اخستے ده، او بیا ئے د پیغمبرانو په واسطه د هغے خبر هم ورکړو او دلته ئے دلائل هم ودرول، د انسانانو پیدائش ئے په داسے طریقه وکړو چه هغه خپله گواهی د الله د ربوبیت ورکوي، او دا آوازونه کوي چه د دوي خالق الله دے او د هغه نه سوئ بل هیڅوك د عبادت لائق نشته، لکه سیدنا علی ﷺ فرمائی :

| وَتَزْعَمُ اَنَّكَ جِسْمٌ صَغِيْرٌ | ❁ | وَفِيْكَ انْطَوَى الْعَالَمُ الْاَكْبَرُ |
| --- | --- | --- |

ستا دا خیال دے چه ته یو وړوکے جسم ئے، حال دا چه په تا کښ لوی عالَم راټاو شویدے.

او دا تفسیر د هغه روایاتو سره منافی ځکه نهٔ دے چه د هر انسان د شا نه د هغهٔ روح او د آدم ﷺ د شا نه تهول روحونه راویستلو مطلب یو دے. یا داسے وئیلے شي چه الله تعالیٰ د آدم ﷺ د شا نه د هغوي اولاد راویستل او د هغوي د اولادو نه ئے د هغوي اولاد راویستل تر قیامته پورے نو ځکه دلته (مِنْ بَنِىٓ اٰدَمَ مِنْ ظُهُوْرِهِمْ) لفظ استعمال شویدے چه ټولو ته شامل شي. نو په حدیث کښ آدم ﷺ ذکر شو او په قرآن کریم کښ د عموم او شمول دپاره بنی آدم لفظ ذکر شو. (قاله الحسن بن یحیی الجرجانیؒ – المنار)

وَاَشْهَدَهُمْ عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ : یعنی هغوئ ئے په خپلو ځانونو گواهان کړل چه تاسو په خپلو ځانونو دا گواهی کوئ چه زهٔ ستاسو رب یم؟- نو هغوي گواهی وکړه.

۱ – **فائده** : دا آیت دلیل دے چه توحید ربوبیت یو ډیر آهم شے وو پدے وجه الله تعالیٰ د انسانانو په فطرت کښ دا خبره کیخوسته چه د یو رب گواهی به کوي، که دا الله نهٔ وے

ایخودے نو د توحید ربوبیت مسئله به یوه نظری مسئله جوړه شوے وے چه په هغے
باندے به تول خو پریده اکثر خلك هم نهٔ وے متفق شوی، پدے وجه په دنیا کښې چه
هرخومره د رائے اختلاف ذے، خو تول د عقل خاوندان د ربوبیت اقرار کوی اګرکه مشرکان
وی لکه قرآن کریم ددے ګواه دے۔ او هرکله چه د بنده په زړهٔ کښې توحید ربوبیت کامل
شی نو بیا توحید الوهیت آسانیږی، بنده چه کله یو رب او مالك ویږنی نو بیا به د هغه
بندګئ ته مجبوره کیږی۔ ددے ازلی او فطری تعلیم داسے نمایان اثر تر نن پورے په انسانی
سرشت کښې موجود راروان دے، چه هر انسان ئے د الله د حجت مخے ته مُلزَم کړیدے نو کوم
شخص چه خپل الحاد او شرك حق ګنړلو سره د غفلت او بی خبرئ یا د پلار نیکه د روند
تقلید عذر کوی نو د هغه په مقابله کښې د الله همدا حجت قاطعه چه په هغے کښې اصل
فطرت انسانی طرفته توجه ورکړے شویده یو فیصله کُنْ جواب دے۔

۲ – **فائده** : که څوك دا شبهه وکړی چه هغه عهد خو مونږ ته یاد پاتے نشو نو ددے څه
فائده شوه ؟۔ جواب دا دے چه ددے نښه د هر چا په زړه کښې شته او په هره ژبه باندے
مشهوره ده چه د هر چا خالق الله دے، پدے باندے تول جهان قائل دے، او څوك چه ددے نه
منکر وی یا شرك کوی نو هغه د خپل ناقص عقل په وجه سره ځان دروغژن کوی۔

دارنګه الله په خپل وحدانیت باندے دلائل قائم کړیدی او رسولانو د هغے خبر ورکړیدے
نو څوك چه د هغے نه منکر شی نو هغه به عنادی وی، د لوظ ماتونکے به وی او په هغه
باندے به حجت لازم شوے وی او د دوی په هیرولو او نهٔ یادولو باندے د دوی بهانه نهٔ
جوړیږی کله چه پیغمبرانو د هغے یادګیرنه کړی وی۔ (بغویؒ)

ان تَقُولُوا: قانون دا دے چه په آخرت کښې یو تن عذر پیش کوی نو دوه خبرے ذکر کوی یو
غفلت عن الحق (یعنی د حق نه غافله کیدل) او دویم تقلید فی الضلال (یعنی په ګمراهئ
کښې د مشرانو تقلید کول) او دا دواړه د خسران (تاوان) اسباب دی۔ نو قیامت کښې به هم
خلك دا دواړه بهانے پیش کوی نو الله تعالیٰ دا دواړه بهانے په دنیا کښې ختمے کړے۔

اَوْ تَقُولُوٓا : یا چرته ما ته دا خبره ونهٔ وایئ چه زمونږ مشران مشرکان وو او مونږ د
هغوی اولاد وو نو مونږ د هغوی تقلید وکړو یعنی مونږ خپله نهٔ پوهیدو نو الله فرمائی
چه ما اُوس پوهه کړئ دا بهانه به راته نهٔ کوئ۔ نو ددے نه معلومه شوه چه د مشرك پلار
او نیکه تقلید مهٔ کوئ ځکه چه الله خبر درکړو په دلائل عقلیه او نقلیه سره۔

کله چه د یو انسان فطرت د آوازونو آوازونو سره د الله تعالیٰ د توحید ګواهی ورکوی او

الله تـه نهٔ تابع کیږي یا د هغه نه سوئ د نورو د تابعدارئ نه انکار کوي، نو د قیامت په ورځ به د یو مشرك او کافر سره کوم عذر باقي پاتے کیږي۔

علامه سعديؒ وائي چه کله نا کله یو بنده ته د گمراه پلارانو اقوال او د هغوی فاسد مذاهب راپیښ شي چه دیے پریے د حق گمان وکړي او دا کار پدیے وجه کیږي چه دهٔ د الله د حُجَجُو (دلائلو) او ښکاره نخو نه اِعراض کړیے وي او د اُفُقي او انفسي دلائلو نه ئے مخ اړولے وي او د مبطلینو اقوالو ته متوجه شویے وي، نو ډیر کرته ئے داسے حالت ته ورسوي چه د هغې په وجه باطل په حق باندے غوره کوي۔ (تفسیر السعدي ۱/۳۰۸)

| وَكَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ وَلَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ ﴿۱۷۴﴾ |
|---|
| او دغسے په تفصیل سره بیانوو مونږ آیتونه او دیے دپاره چه دوی را وګرځي (الله ته)۔ |

**تفسیر** : یعني دغه شان په کامل تفصیل سره مونږ د بنیادمانو دپاره آیتونه او دلیلونه بیانوو دیے دپاره چه دوی پکښې عقلونه استعمال کړي او دیے دپاره چه دوی په هغې سره د جهالت او تقلید نه راواپس شي۔ (المنار)

وَكَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الْآيَاتِ لِيَهْتَدُوا۔ او دغه شان مونږ تفصیل سره آیتونه بیانوو دیے دپاره چه خلك پریے هدایت مونده کړي او دیے دپاره چه هریو د یهودیانو او نصارئ او مشرکانو نه پدیے دلائلو کښې سوچ وکړي او حق طرفته او د الله بندګئ ته راواپس شي۔

یهودو ته ئے دا قصه واوروله پدیے کښې اشاره ده چه هغوی هم د مخکنی عهد نه اوړیدلی دی لکه څنګه چه مشرکان اوړي۔

| وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَاَ الَّذِيْٓ اٰتَيْنٰهُ اٰيٰتِنَا |
|---|
| او بیان کړه په دوی باندے خبر د هغه چاچه ورکړي وو مونږ هغه ته آیتونه خپل |
| فَانْسَلَخَ مِنْهَا فَاَتْبَعَهُ الشَّيْطٰنُ فَكَانَ مِنَ الْغٰوِيْنَ ﴿۱۷۵﴾ |
| نو ووتلو د هغې نه (یعني عمل ئے پریخودو) نو وروسته شو شیطان نو شو د ګمراهانو نه۔ |
| وَلَوْ شِئْنَا لَرَفَعْنٰهُ بِهَا وَلٰكِنَّهٗٓ |
| او که چریے غوښتلے مونږ خامخا پورته کړیے به وو مونږ دهٔ لره په هغې سره لیکن دیے |

| أَخْلَدَ إِلَى الْأَرْضِ وَاتَّبَعَ هَوٰهُ ج فَمَثَلُهٗ كَمَثَلِ |
|---|
| مائل شو زمکے (دنیا) ته او روان شو د خواهش خپل پسے نو حال ددهٔ په شان د حال |
| الْكَلْبِ ج إِنْ تَحْمِلْ عَلَيْهِ يَلْهَثْ أَوْ تَتْرُكْهُ يَلْهَثْ ط |
| د سپی دے که حمله کوے تهٔ په هغه نو تګاه وهی او که پریږدے هغه نو تګاه وهی، |
| ذٰلِكَ مَثَلُ الْقَوْمِ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا ج فَاقْصُصِ الْقَصَصَ |
| دا مثال د هغه قوم دے چه دروغژن کنړی آیتونه زمونږ پس بیان کړه دا بیان |
| لَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُوْنَ ﴿۱۷۶﴾ سَآءَ مَثَلًا نِ الْقَوْمُ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا |
| دے دپاره چه دوی فکر وکړی۔ بد دے په مثال کښی هغه قوم چه دروغژن ئے کړل |
| بِاٰيٰتِنَا وَأَنْفُسَهُمْ كَانُوْا يَظْلِمُوْنَ ﴿۱۷۷﴾ |
| آیتونه زمونږ او د خپلو ځانونو سره دوی ظلم کوی۔ |

**تفسیر**: پدے آیت کښی یو بل مثال بیان شویدے چه د اتباع د مَا اُنْزِلَ سره ئے تعلق دے یعنی اتباع د مَا اُنْزِلَ که څوک ونکړی نو ګمراه کیږی لکه د یو مُلا مثال ئے ورکړیدے چه دهٔ ته الله تعالیٰ خپل آیتونه ورکړی وو نو هغه ئے ګوزار کړل او د هغے په مقابله کښی ئے دنیا غوره کړه نو ګمراه شو او سپے ترے جوړ شو۔

۲- ددے ربط داسے هم دے چه مخکښی د بنی اسرائیلو میثاق او د هغے مخالفت بیان شو نو اُوس په هغوی کښی د یو خاص شخص د میثاق مخالفت بیانوی۔ (القاسمیؒ)

او پدے آیت کښی الله تعالیٰ د یو عالِم او یو هه سړی د ګمراه کیدو څلور اسباب بیان کړیدی (۱) اَلتَّشَبُّهُ بِالْعَوَامِّ الْفُسَّاقِ۔ د عوامو فاسقانو سره په ناسته پاسته او خبرو اترو کښی ځان مشابه کول۔ یعنی بی پرواه ژوند تیرول۔ (۲) حُبُّ الدُّنْيَا ۔ (د دنیا سره مینه) چه په هغے سره د الله حکمونه پریدی۔ (۳) اِتِّبَاعُ الْهَوٰى۔ غلط او حرام خواهش پسے تلل او د الله حکم ماتول۔ (٤) اَلْغَفْلَةُ عَنِ اللّٰهِ۔ د الله تعالیٰ نه غفلت کول۔

مطلب: پدے آیتِ کریمه کښی الله تعالیٰ د یو داسے سړی خبر ورکړیدے چه هغهٔ ته الله تعالیٰ د آسمانی کتاب علم ورکړے وو چه د هغے تقاضا دا وه چه هغه پدے کښی د موجوده دلائلو او براهینو نه فائده حاصله کړے وے او د الله سره ئے خپل تعلق جوړ کړے وے او د

صلاح او تقویٰ ژوند ئے اختیار کړے وے، لیکن خبره اُلټه شوه، هغه د دنیاوی عارضی مفادو د خاطره د الله نه انکار وکړو او هغه کتاب ئے شا ته گوزار کړو او لمن ئے راخکله او د هغے نه داسے جدا شو لکه یو مار چه د خپلے ځرمنے تیکی نه بهر وځی۔
او کله چه هغه دے حال ته ورسیدو نو شیطان هغه لره ومونډو او هغه ئے خپل دوست او ملگرے جوړ کړو، او هغه ئے د ضلالت او گمراهئ سختو تیارو ته ورسولو۔
الله تعالیٰ فرمائی: که مونږ غوختلے نو ددے آسمانی کتاب په وجه به مونږ دا د ثُریّا ستوری ځای ته رسولے وے، لیکن هغه ددے اهل نۀ وو، هغه دنیاوی فائدو ته ترجیح ورکړه او د خپل نفس غلام شو او دنیا د هغه آخری مقصد شو، هیڅ کله ورته قناعت حاصل نشو۔ کله چه ورته یوه فائده حاصله شوه نو بلے پسے ئے منډه کړه، او پدے دنیا حاصلولو کښې حیران او پریشان شو، هیڅ کله ورته سکون او آرام حاصل نشو۔ د هغه سپی په شان چه په هر حال کښې ئے ژبه راوېستلی وی او تږګاه وهی، که هغه منډه وهی او که ناست وی۔ نو څوک چه د آسمانی کتاب د علم لرلو سره د هغے نه د ایمان او عمل صالح فائده نۀ اخلی، هغه شا ته گوزاری او د کفر لاره اختیاروی، د هغه مثال په هر دور کښې د هغه مار دے چه د خپلے ځرمنے د تیکی نه رابهر شی، او د هغه سپی دے چه په هر حال کښې ئے ژبه راویستلی وی، تږګاه وهی۔

## د آیت مصداقات او شان نزول

۱- د سیدنا عبد الله بن مسعود ﷺ د یو روایت مطابق چه امام شوکانیؒ د احادیثو د کتابونو نه په لسو حوالو سره نقل کړیدے چه دا آیت د بلعام بن باعورا په باره کښې نازل شوے وو چه د موسیٰ ؑ په زمانه کښې د بنی اسرائیلو یو فرد وو او د تورات علم ئے لرلو، لیکن د دنیاوی مصالحو (فائدو) د خاطره ئے د هغے نه انکار وکړو او د کفر لاره ئے اختیاره کړه۔ او اسرائیلی تاریخی روایاتو کښې ورسره داسے راغلی دی چه موسیٰ ؑ په عمالقه ؤ حمله کوله، او بلعام د هغوی سره وسیدو نو عمالقه راغلل او بلعام ته ئے ووئیل چه دا خلك په مونږ حمله کوی په مونږ ظلم کوی، تۀ دوی او موسیٰ ؑ ته ښیرے وکړه چه زمونږ نه واوړی نو هغه ووئیل چه دا خو د الله رسول دے څکه ورته ښیرے نشم کولے، نو هغوی ورته د مال لالچ ورکړو نو ښځے هم ورته ووئیل چه پیسے واخله او الله غفور رحیم دے، نو هغه ښیرے وکړے نو د هغه دا ښیرے به د هغه په ملگرو لگیدلے نو ددۀ ژبه راووتله

او گمراه شو نو دهٔ ووئیل چه زهٔ خو هسے هم گمراه شوم نو هغوی ته ئے د گمراهئ طریقه وخودله چه که بنی اسرائیل خرابول غواړئ نو پیغلے جینکئ پیدا کړئ او هغوی دولی کړئ او د بنی اسرائیلو فوجیانو ته ئے ولیږئ چه هغوی ورسره زنا وکړی نو د هغوی نه به د الله مدد کټ شی نو تاسو به پرے غالبه شئ، لکه دا طریقه اُوس هم د ټولو کفارو خصوصًا د امریکایانو او برطانیانو ده، هغوی چه دا کار وکړو نو بنی اسرائیل په همدے وجه پیل هم شو۔ دا یوه تاریخی قصه ده کیدے شی چه داسے شوی وی او کیدے شی چه نهٔ وی شوی۔

۲- یو بل قول (د عبد الله بن عمرو بن العاص ﷺ، سعید بن المسیبؒ، زید بن اسلمؒ -بغویؒ) دا دے چه دا آیت د اُمیه بن ابی الصلت په باره کښې نازل شوے وو چه هغه ته د آسمانی کتابونو علم وو او پو هیدو چه نزدے یو رسول راتلونکے دے، او امید به ئے کولو چه هغه رسول به زهٔ یم۔ پدے وجه چه کله نبی کریم ﷺ پیغمبر شو نو هغه د ایمان راوړو نه انکار وکړو او د کفر په حالت کښې مړ شو۔ تفصیل دپاره المنار او بغویؒ او ابن کثیرؒ ته رجوع پکار ده۔

۳- یو دریم قول دا دے چه دا آیت د ابوعامر راهب په باره کښې نازل شوے وو (د حنظله ﷺ پلار وو) دا یو بزرگ وو چه خلکو به ئے خبره منله ځکه د جاهلیت په زمانه کښې ئے د رهبانیت ژوند اختیار کړے وو، (خو متکبر وو) نو کله چه الله تعالیٰ خپل رسول راولیږلو او مدینے ته ئے هجرت وکړو نو دے په حسد کښې راغے او په هغه باندے ئے کفر وکړو او دا ئے ووئیل چه اُوس خو بادشاهي ددهٔ شوه، ما ته څوك کوری هم نهٔ، نو رسول الله ﷺ ته ئے بنیرے وکړے او دا ئے ووئیل: [أَمَاتَ اللّٰهُ الْكَاذِبَ مِنَّا وَحِيْدًا طَرِيْدًا] ما او تا کښې چه څوك ډیر دروغژن وی الله دے ئے په یوازے ځای کښې هلاك کړی، رسول الله ﷺ وفرمایل: آؤ، الله دے داسے وکړی، کله چه د بدر غزا وشوه نو دهٔ ته ډیره غصه ورغله، دے لاړو هرقل بادشاه ته وتښتیدو او هلته وسیدو، او د هرقل بادشاه نه ئے فوج اخستو چه په مدینه باندے حمله وکړی (لکه سورة توبه کښې هغه واقعه راځی چه دهٔ منافقانو ته جواب راولیږو چه په مدینه کښې مسجد ضرار جوړ کړی چه دا زمونږ مورچه شی)

دا د تبوك د غزا وخت وو چه رسول الله ﷺ تبوك ته تلے وو نو پدے وخت کښې دے د شپے صحراء ته وتلے وو، نو یوے ناشنا اژدها وچیچلو چه هلته ئے په صحراء کښې یوازے مردار کړو۔ دا یو شخص وو چه اول کښې نیك وو او الله تعالیٰ ډیره پوهه ورکړے وه لیکن روستو

تکبر کښې راغلو نو ګمراه شو۔ (کبر ډیر لوی مرض دے چه انسان د نبی ﷺ او د الله تعالیٰ نه محروموی)

٤– نو ددے تولو نه زیاته غوره خبره دا ده چه [هٰذَا مَثَلٌ ضَرَبَهُ اللّٰهُ لِلْيَهُوْدِ وَالنَّصَارٰى]

دا یو مثال دے چه الله تعالیٰ د یهود او نصاراؤ دپاره بیان کړیدے چه دوی ته الله تعالیٰ علم ورکړو او بیا راولګیدل دغه څلور مرضونه پکښې پیدا شو او ورسره تکذیب هم، نو الله ترے سپی جوړ کړل نو اُوس د سپو نه متأثره کیدل پوره بیوقوفی ده۔

٥– صاحب المنار وائی : هٰذَا مَثَلٌ ضَرَبَهُ اللّٰهُ لِلْمُكَذِّبِيْنَ بِآيَاتِ اللّٰهِ الْمُنَزَّلَةِ عَلٰى رَسُوْلِهٖ عَلٰى مَا اَيَّدَهَا بِهٖ مِنَ الْآيَاتِ الْعَقْلِيَّةِ وَالْكَوْنِيَّةِ وَهُوَ مَثَلُ مَنْ آتَاهُ اللّٰهُ آيَاتِهٖ فَكَانَ عَالِمًا بِهَا حَافِظًا لِقَوَاعِدِهَا وَاَحْكَامِهَا قَادِرًا عَلٰى بَيَانِهَا وَالْجَدَلِ بِهَا وَلٰكِنَّهٗ لَمْ يُؤْتَ الْعَمَلَ مَعَ الْعِلْمِ بَلْ كَانَ عَمَلُهٗ مُخَالِفًا لِعِلْمِهٖ تَمَامَ الْمُخَالَفَةِ فَسُلِبَهَا...... ] دا مثال دے چه الله تعالیٰ د هغه کسانو دپاره بیان کړیدے چه د الله د آیتونو تکذیب کوی کوم چه الله په خپل رسول ﷺ باندے نازل کړیدی او د هغے تائید ئے په عقلی او کونی دلائلو سره کړیدے، نو دا مثال د هغه چا دے چه الله ورته آیتونه ورکړی وی او هغه په هغے باندے عالِم (پوهه) وی، د هغے د قواعدو او احکامو حافظ وی، د هغے په بیانولو او په هغے باندے په بحث کولو قادر وی لیکن هغه ته د علم سره عمل نۀ وی ورکړے شوے بلکه د هغه عمل د هغه د علم پوره مخالف وی نو د هغه نه دغه آیتونه واخستے شی ځکه چه هغه علم چه په هغے عمل ونشی زر اخستلے کیږی، نو دے مشابه شو د هغه مار سره چه د خپلے ځرمنے نه وځی او ځرمن ددۀ نه وځی او هغه په زمکه پریدی،

یا دے د عمل او د علم نه په جدائی کښې د هغه شخص په شان شو چه د علم نه وځی او هغه پریدی لکه زړے جامے چه مالک ئے ګوزار کړی، یا مار خپل ځرمن ګوزار کړی چه هیڅ اثر پرے پاتے نشی۔ نو حاصل معنیٰ د مثال دا شوه چه کوم کسان چه د الله د آیتونو تکذیب کوی کوم چه الله تعالیٰ په خپل رسول ﷺ باندے نازل کړیدی او هغه په دلیلونو او حجتونو سره واضح شویدی په شان د هغه عالِم دی چه د خپل علم د میوے د فائدے اخستو نه محروم شی ځکه چه دے هر یو د الله په آیتونو کښې د سوچ او فکر او د عبرت او د اخلاص نظر ونکړو۔

بهرحال د آیت د نزول سبب که هر څه وی خو ددے حکم عام دے، لکه علامه سعدیؒ وائی چه (اَلَّذِیْٓ آتَيْنٰهُ) جنس دے هر چا ته شامل دے چه الله ورته آیتونه ورکړی وی او هغه

تری وځي، (نو پدې کښې د مکې مشرکان هم داخل دي چه الله ورته قرآن رالیږلو او دوی پرې پوهه شو بیا ئې ترې د دنیا پرستئ د وجه نه مخ واړولو، او زمونږ د امت د اهل بدعو دپاره هم مثال ګرځي او خپله هم ترې ډیره یره پکار ده)۔

او پدې کښې ډیر لوئي وعید دے هغه علماءِ سوء (ناکارو) دپاره چه د دنیا د عارضي خوندونو د خاطره آخرت هیروي او دنیا پسې لګیږي۔ او دا دلیل دے چه د خواهش تابعداري او شهواتو ته مائل کیدل سبب د شرم دے۔ او څوك چه په علم عمل کوي الله به ئې پورته کوي، او د شیطان نه به محفوظ کیږي، او که څوك پرې عمل نکوي نو خکته کیږي به او شیطان به پرې مسلط کیږي۔ (تفسیر السعدي ۱/۳۰۸)

الله تعالیٰ دې د اسلام تمام نیکان علماء ددې آیت د مصداق جوړیدو نه محفوظ وساتي، آمین۔

وَاتْلُ عَلَيْهِمْ : دا ضمیر یهودو ته او دارنګه د هغه زمانې مشرکانو او ټول امت ته راجع دے۔

نَبَأَ: دا هغه خبر ته وائي چه د هغې لوی شان وي۔

فَانْسَلَخَ : انسلاخ په اصل کښې پوستکي وتلو ته وائي، نو دے نه معلومیږي چه قرآن او حدیث د انسان دپاره جامه ده، نو که تا سره دا موجود وي، نو ته به عزتمند ئې، عالِم که ډیر ګنهګار وي خو خلکو ته ئې عیبونه نهٔ ښکاره کیږي خلك ورته بزرګ وائي۔ نو د انسلاخ معنیٰ دا ده چه عملونه ئې پریخودل، او دے آیتونو ته ئې هیڅ نهٔ کتل، نهٔ د هدایت دپاره او نهٔ د عبرت حاصلولو او نهٔ د عمل دپاره۔ (المنار)

او د فاسقانو سره ئې ځان مشابه کړو چه هغوی نهٔ د خبرو پرواه لري او نهٔ د عمل او نهٔ د ناستې پاستې، بلکه چه مجلس کښې ئې څه ووئیل او څه ئې وخوړل او چرته لاړو هیڅ پرواه ورسره نهٔ وي۔ علماء به داسې نهٔ وي بلکه ددې ټولو خبرو پابندي او احتیاط به کوي۔ علم کول آسان دي لیکن په هغې باندې عمل کول او د هغې لحاظ ساتل سخت دي۔

فَاَتْبَعَهُ الشَّيْطٰنُ : اَيْ اَدْرَكَهُ وَلَحِقَهُ ۔ (المنار والقاسمیؒ) یعنی شیطان ورپسې سم ولګیدو او سمه فائده ئې ترې واخسته، اتباع دے ته وائي چه یو تن پسې روان شي او هغه رالاندې کړي او هغه پورې ونښلي۔ او تَبِعَه ئې ونهٔ وئیل ځکه چه په هغې کښې دا کمال نشته۔

الْغٰوِيْنَ : غاوي هغه چا ته وائي چه د علم نه روستو ګمراه شي۔ ❁ یا د عقیدې او د عمل دواړو ګمراه۔ (احسن الکلام) ❁ یا فاسد او مُفسد (یعنی خپله خراب او نورو لره

خرابو نکړي)۔ (المنار)

وَلَوْ شِئْنَا لَرَفَعْنٰهُ : د الله په کتاب باندې انسانان پورته کيږي لکه حديث کښې دي :

[اِنَّ اللّٰهَ يَرْفَعُ بِهٰذَا الْكِتَابِ اَقْوَامًا وَيَضَعُ بِهِ آخَرِيْنَ]۔ (صحيح مسلم : ۱۹۳۴)

الله تعالىٰ پدې کتاب باندې څه خلك پورته کوي او څه پرې ښکته کوي)۔

وَلٰكِنَّهٗٓ اَخْلَدَ اِلَى الْاَرْضِ : سوال پيدا شو چه الله تعالىٰ ولې دده د پورته کولو اراده ونکړه؟ جواب راځي چه دهٔ کښې دوه بد صفتونه نور پيدا شو۔ ځان دپاره ئې خکته والے غوره کړو۔

اَخْلَدَ اِلَى الْاَرْضِ : اَىْ رَكَنَ اِلَى الْاَرْضِ كَاَنَّهٗ مُخَلَّدٌ فِيْهَا۔ (راغبؒ) زمکې (يعنې دنيا) ته داسې مائل شو گويا که دې به په کښې هميشه وي۔ او مرګ ته ئې فکر نهٔ وو۔

(دا خبره بار بار کيږي چه تجارتونه کول، کاړي موټرې پيدا کول، ښځه او اولاد طلب کول دنيا ته ميلان نهٔ دې بلکه ددې په وجه دين پريخودل يا کمزورې کول او د الله امر پدې باندې ماتول دنيا پرستي ده او دا عيب دې)۔

وَاتَّبَعَ هَوٰىهُ : دا تشريح ده د (اَخْلَدَ اِلَى الْاَرْضِ) چه خواهشاتو پسې روان شو۔

يعنې زړه چه ئې څه غوښتل هغه ئې کول، د الله د حکمونو هيڅ پابندي ئې نهٔ کوله۔

او دا د الله طريقه ده چه څوك په خپله خوښه د خواهش پسې روان شي، نو هغه ئې د نيغې لارې نه اړوي کومه چه د دنيا او د آخرت سعادت ته رسونکې ده او د شيطان هلاکونکو لارو باندې ئې وراړوي۔ (المنار)

صاحب المنارؒ وائي : ددې شرط او استدراك حاصل معنىٰ دا ده چه چا ته د الله آيتونه ورکړې شو نو دده نفس کمالاتو ته رسيدو او درجات ئې پورته کيدل ځکه چه پدې کښې هدايت او کاميابي او نصيحت دې، ليکن دا هغه چا ته حاصليږي چه دا آيتونه ئې په همدغه نيت باندې حاصل کړي وي، او که چا ددې نيت نهٔ وي کړې نو دده نفس هغې ته نهٔ متوجه کيږي بلکه هغه د الله آيتونه بغير د قصد نه (اتفاقي طور سره) حاصل کړيدي يا ئې د دنيا او مال د حاصلولو نيت کړيدې۔ او ددې سره ئې په نفس کښې هغه مرض (خواهش) هم دې چه ددې آيتونو د هدايت نه ئې منع کوي نو هيڅ فائده ئې ترې وانخسته او په جلتئ سره د هغې نه ووتو۔ الى آخر ما قال۔

فَمَثَلُهٗ كَمَثَلِ الْكَلْبِ : يعنې دې د سپي په شان وګرځيدو۔

يَلْهَثْ : لَهث او لُهاث، په پښتو کښې ئې ترجمه ده : تيګاه وهل۔ او په عربئ کښې سُرْعَةُ

اَلتَّنَفُّسِ مَعَ اِخْرَاجِ اللِّسَانِ مَعَ الْحَرَكَةِ) ته وائی- یعنې زر زر ساه اخستل سره د ژبې راویستلو او د ژبې خوزولو نه. دا د سپي عادت دے برابره ده چه ستړے یا تږے وی او که نهٔ، او نور حیوانات ئے د ستړی والی نه پس کوی او برابره ده چه په هغه باندے تا حمله کړې وی یا نهٔ وی کړې خو دا کار به کوی ځکه چه د سپي په معده کښې انتهائی حرارت (گرمائش) دے که دا ونکړی نو زړه ئے چوی.

## د مثال حاصل :

هر هغه عالِم چه هغه قرآن او سنت پریدی او بې دینه شی نو په هغه کښې به د سپو صفات راځی، لکه د سپي صفات دا دی : ۱- (يَأْكُلُ الْعُذْرَةَ) گندگی خوری.

۲- يَرْجِعُ فِیْ قَيْئِهٖ) خپل قئ دوباره ځټی. ۳- (اَلْمَيْتَةُ اَحَبُّ اِلَيْهِ مِنَ اللَّحْمِ الطَّرِيِّ) مرداره ورته د تازه غوښے نه ډیره مزه ورکوی. ٤- (لَوْ اَلْقَيْتَ اِلَيْهِ كِسْرَةَ خُبْزٍ لَا يَنْبَحُ عَلَيْكَ) که تا ورته د ډوډئ قطره گوزار کړه نو نهٔ به غاپی ورنه بیا دریاندے چك لگوی.

٥- (يُطْرِقُ رَأْسَهٗ عِنْدَ مَشْيِهٖ) د مزل په وخت کښې ئے سر خکته کړے وی.

٦- (يَصُوْلُ عَلٰی جِنْسِهٖ)په خپلو ملگرو باندے حمله کوی.

٧- (يَخْشٰی مِنَ التَّهْدِيْدِ) د دهمکئ نه یریږی. یعنی یروندك هم دے.

٨- په لاره چه روان وی نو خرطم په زمکه راکاږی او بویه ول کوی.

٩- دارنگه د بدن نور اجزاء نهٔ بویه وی سوئ د خپل دُبر نه.

۱۰- کله چه په گټه باندے وویشتل شی نو د گټه پسے منډه وهی او په هغې چك لگوی. ۱۱- او چه متیازے کوی نو خپه اُوچته کړی او په پاك بوټی باندے متیازے کوی ددے دپاره چه زهٔ پلیت نشم. ۱۲- د ذبح نه مخکښې د سپو جنگ وی. او دا ټول ډیر ناکاره او د ذلت او حرص صفتونه دی چه په ناکاره مُلا کښې راځی، مردارے دوی خوری، او په خپلو هِبُو، هدیو کښې رجوع کوی، په ریاست کښې د وخت نه مخکښې جگړے کوی.

## د مثال تطبیق

اَوْ تَتْرُكْهُ يَلْهَثْ : ۱- ددے مثال تطبیق دا دے چه دا شخص که مالداره وی او که غریب په دواړو حالتونو کښې حرص کونکے دے. ۲- حسن بصریؒ وائی : دُعِيَ اَوْ لَمْ يُدْعَ، وُعِظَ اَوْلَمْ يُوْعَظْ) (القاسمی) که دهٔ ته دعوت ورکړے شی او که ورنکړے شی، او دهٔ ته نصیحت

وکړے شي او که ونکړے شي، په دواړو صورتونو کښې ناکاره دے یعنې دین پرے اثر نکوي۔

۳– صاحب المنار وائي : دا شخص په ډیر بد حالت کښې دے، دے همیشه په غم کښې اخته وي برابره ده چه دغه څیزونه چه دے پرے غم کوي د اهتمام والا وي یا خسیس کارونه او بیکاره شهوات وي لکه هغه کسان چه د خواهشاتو بندګان وي او کم همت والا وي ته به دوي وینے چه د سپي په شان تګاه به وهي د سترګې والي او ستوماني نه اګرکه هغه شے چه دوي ئے قصد کوي او د هغے دپاره غمونه کوي هغه سپک شے وي چه د سترګې والي لائق نهٔ وي، او ته به د دوي نه هیڅوک ونهٔ وینے چه کوم خواهشات او شهوات حاصلوي چه په هغے باندے راضي وي بلکه د هغے نه ئے طمع او سترګې والے نور هم زیاتیږي۔ (المنار۹/۳٤۲) دا د عامو دنیا پرستو خوئي دے فکر پکښې وکړه۔

٤– قتادة وائي : دا مثال د کافر دے چه زړه ئے مړ شویدے لکه څنګه چه د سپي زړه مړ وي۔ (ابن جریر)

۵– [وَذٰلِكَ لِاَنَّهُ اسْتَوٰى فِيْ حَقِّهٖ اِيْتَاءُ الْآيَاتِ وَالتَّكْلِيْفُ بِهَا وَالتَّعْظِيْمُ مِنْ اَجْلِهَا وَعَدَمُ ذٰلِكَ الخ) یا دا چه که دهٔ ته آیتونه ورکړے شي یا نهٔ او په هغے باندے مکلف کړے شي یا نهٔ او د هغے په وجه ددهٔ تعظیم وکړے شي یا نهٔ دا ټول ددهٔ په حق کښې یو برابر دي۔ لکه سپي باندے حمله وکړے شي او که نهٔ او څه ورته ووئیل شي یا نهٔ په دواړو صورتونو کښې تګاه وهي۔ (القاسمي)

كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا : یعنې دوي آیتونه پدے وجه دروغژن ګنړي چه د دوي دا ګمان دے چه پدے باندے ایمان لرل او عمل کول د دوي عزت او عظمت ختموي کوم باندے چه دوي فخر کوي ځکه چه د بل چا تابع به شي، او د دوي د پلارانو نیکونو مرتبه راښکته کوي، او د دوي خواهشات او لذات خرابوي، نو ددے باطل ګمان په وجه دوي په آیتونو کښې په عقلمندئ سره ونهٔ کتل، بلکه دے ته ئے پدے نظر وکتل چه پدے سره د دوي مرتبه راښکته کیږي، او دا د دوي د مشرانو د ګمراهئ اقرار شمارلے کیږي، نو پدے سره په آیتونو کښې عیب نشته بلکه عیب په دے خواهش پرستو کښې دے چه دوي بد اختیار وکړو نو د آیتونو د فائدے نه محرومه شو۔ ځکه چه ډیر انسانان داسے شته چه الله ورته فطري هِبي (عقلونه) ورکړي وي لیکن هغه ئے صحیح استعمال نکړل چه د دوي د علم او عمل درجات پورته کړي، او ډیر انسانان شته چه هغوي خپل حواس په ضرر کښې او عقل او ذکاوت ئے په شر کښې استعمال کړو نو الله په دوي باندے ظلم نهٔ دے کړے لیکن دوي د

خپلو ځانونو سره ظلم کوي۔ (المنار)

فَاقْصُصِ الْقَصَصَ : اَیْ فَاقْصُصْ اَیُّهَا الرَّسُوْلُ قَصَصَ ذٰلِكَ الرَّجُلِ الْمُشَابَهَةِ حَالُهٗ لِحَالِ هٰؤُلَاءِ الْمُكَذِّبِیْنَ بِمَا جِئْتَ بِهٖ مِنَ الْآیَاتِ الْبَیِّنَاتِ] یعنی اے رسوله ! د مکے مشرکانو ته د دغه سړي قصه بیان کړه چه د هغه حال ددے مکذبینو د آیاتونو د حال سره مشابه دے چه دوی ته هم آیتونه راغلي دي او پرے پوهه شویدي، کیدے شي چه د هغه بد حالت او بد مثال دوی لره په فکر او سوچ کولو باندے راولي نو کله چه دوی په هغے کښ فکر وکړي نو د هغے نه د خلاصي فکر به هم وکړي او په آیتونو کښ به سوچ وکړي په سترګه د عقل او بصیرت سره نهٔ د خواهش او د دشمنۍ په سترګه (کیدے شي چه عبرت حاصل کړي او کفر او عناد پریدي او د ایمان لاره اختیار کړي) ځکه چه ددے فکر نه علاوه بله لاره د هدایت نشته۔ (المنار)

لَعَلَّهُمْ یَتَفَکَّرُوْنَ : بعض علماء الغرب وائي : چه د انسان مدني او انسان وحشي ترمینځ فرق کونکے شے تفکر دے۔ انتهیٰ، او چه څومره انداز د الله په مُنزَل آیتونو او په آفاقي او اَنفُسي دلیلونو کښ فکر وي نو په دغه اندازه به د خلکو په علومو او اعمالو کښ ارتقاء (ترقي) وي برابره ده که دنیاوي علوم او اعمال وي او که دیني۔ (المنار)

سَآءَ مَثَلًا : یعنی د دغه قوم مکذبینو مثال په مثالونو کښ او صفت په صفتونو کښ ډیر بد دے۔

او د بد والي وجه دا ده چه دوی د سپو سره مشابه شو، یا په استواء د حالتینو کښ چه په دوارو حالتونو کښ په نقصان کښ دي او ګمراه دي، که دوی ته نصیحت کیږي او که نهٔ، یا په خِست او ذلت کښ ځکه چه د سپو د خوراك او د شهواتو نه علاوه بل هیڅ همت نهٔ وي۔ نو څوك چه د هدایت او علم نه وځي او خپل خواهش ته متوجه شي، نو دا د سپي مشابه شو چه ډیر بد مثال ئے دے۔ ددے وجه نه په حدیث کښ دي چه زمونږ دپاره بد مثال نشته، کوم شخص چه خپله هبه کښ رجوع کوي د سپي په شان دے چه په خپل قيء کښ رجوع کوي۔ (القاسمي)

بعض ناپوهه خلك چه د قرآن نه ئے توپك جوړ کړے وي دا قسم مثالونه په اهل حقو او حق قبلونکو باندے لګوي الله دِے د هغوی سره خپله معامله وکړي او مونږ دِے ددا سے بدو صفاتو نه بچ وساتي۔ آمین۔

| مَنْ يَّهْدِ اللّٰهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِيْ ج |
|---|
| چا ته چه هدايت وكړي الله تعالىٰ نو همدا هدايت موندونكے دے |
| وَمَنْ يُّضْلِلْ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿۱۷۸﴾ |
| او چا له چه ګمراه كړي نو دغه كسان هم دوي تاوان والا دي. |

**تفسير :** پدے كښ د الله تصرف بيانيږي او داسے جمله چه په قرآن كښ راشي نو ډيره فائده منه وي، ۱- يوه فائده ئے د الله تصرف شوه او مطلب دا دے چه وعظ او نصيحت د هدايت د موندلو صرف ظاهري اسباب دي، هدايت خو په اصل كښ د الله د طرف نه ملاويږي، هغه چه چا له غواړي هدايت كوي او چه چا له غواړي ګمراه كوي.
۲- پدے كښ دويمه فائده دا وي چه كوم كسانو ته هدايت شويدے نو دا ورته الله تعالىٰ كړيدے دا د دوي خپل ذاتي كمال نۀ دے، او څوك ئے چه ګمراه كړيدي نو دا په دوي كښ نقصان دے. ۳- دريمه فائده پكښ زياته غوره او عجيبه ده چه پدے كښ بندګانو ته دا تلقين وركوي چه هدايت او ګمراهي زما په لاس كښ ده، نو ما ته ځان نزدے كړئ چه هدايت درته وكړم او ما نه هدايت وغواړئ. او زما نه سرغړونه مۀ كوئ ورنه ګمراه به شئ. او دارنګه ما پورے د ګمراهئ نه پناهي وغواړئ چه زۀ مو ترے بچ كړم.

| وَلَقَدْ ذَرَاْنَا لِجَهَنَّمَ كَثِيْرًا مِّنَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ زصلے لَهُمْ قُلُوْبٌ |
|---|
| او يقيناً پيدا كړيدي مونږ د جهنم دپاره ډير د پيريانو او د انسانانو نه، دوي له زړونه دي |
| لَّا يَفْقَهُوْنَ بِهَا ز وَلَهُمْ اَعْيُنٌ لَّا يُبْصِرُوْنَ بِهَا ز |
| چه نۀ پوهيږي په هغے سره او دوي لره داسے سترګے دي چه ليدل نۀ كوي په هغے سره |
| وَلَهُمْ اٰذَانٌ لَّا يَسْمَعُوْنَ بِهَا ط اُولٰٓئِكَ |
| او دوي لره داسے غوږونه دي چه آوريدل نۀ كوي په هغے سره، دا كسان |
| كَالْاَنْعَامِ بَلْ هُمْ اَضَلُّ ط اُولٰٓئِكَ هُمُ الْغٰفِلُوْنَ ﴿۱۷۹﴾ |
| په شان د چارپيانو دي بلكه دوي ډيرے لارے دي (د هغوي نه) دا كسان هم دوي ناخبره دي. |

**تفسير :** ربط :

۱- دغه مُلا ولے گمراه شو؟ دا په سبب د غفلت د هغه سره. الله تعالیٰ دلائل ورکړی وو نو د هغے نه ئے غفلت وکړو. نو غفلت اولنے سبب دے، ددے نه روستو په سړی کښ (اِنْسَلَخَ مِنْهَا) پیدا شی، (یعنی د الله د آیتونو نه وځی) بیا خلود الی الارض، (دنیا ته مائل شی) بیا اتباع الهوی (د خواهش تابعداری) بیا تکذیب. دا پنځه صفات په یو بل دغسے مرتب دی. نو هرکله چه الله تعالیٰ دلائل رالیږلی دی او انسان ته ئے غوږونه او سترګے او زړونه ورکړیدی او بیا هم ددے نه عبرت نهٔ اخلی نو لوی بدبخته دے.

۲- بعض علماء دا آیت د ﴿وَاِذْ اَخَذَ رَبُّكَ مِنْ بَنِیْٓ اٰدَمَ﴾ سره لګوی ځکه چه هلته دلائل بیان شو نو دلته وائی چه ددے دلائلو نه به غفلت نکوئ. او که څوك ددے نه غفلت کوی معلومیږی چه دا خلك د جهنم دپاره پیدا شویدی.

۳- یا مخکښ د هدایت او ګمراهئ او د الله د توفیق او نهٔ توفیق خبره ذکر شوه نو ددے په مناسبت سره الله تعالیٰ دلته خبر ورکړیدے چه الله جنات او انسانان ددے دپاره پیدا کړیدی چه هغوی د خپل عقل او بصیرت نه کار واخلی او خپل حقیقی معبود وپیژنی، او د هغه عبادت وکړی او د هغه د احکامو او اوامرو مطابق ژوند تیر کړی.

د ډیرو جناتو او انسانانو حال دا دے چه هغوی د الله د دین نه انکار کوی، د الله د رالیږلے شوی انبیاء او رسولانو په خلاف جنګ کوی، او د هغه د بندګئ لاره پریدی او د عناد او د استکبار لاره اختیاروی، او د هغوی حال داسے وی چه د هغوی زړونه او سترګے او د هغوی غوږونه بیکاره وی، د هیڅ خیر خبرے د قبلولو صلاحیت ئے باقی پاتے نهٔ وی.

د الله د توحید او د طاعت او د هغه دپاره د بندګئ خالص کولو تول دلائل او براهین که هغه ته پیش کړے شی لیکن د هغے نه هیڅ فائده نهٔ اخلی بلکه د هغه تکبر او غرور نور هم زیاتیږی، د هغه حالت د څناورو نه بدتر کیږی ځکه چه څناور خو کم نه کم د خپلے نفع او نقصان ترمینځ تمییز کوی، او هغه کار کوی کوم دپاره چه پیدا شویدے، لیکن کافر او متکبر جنی او انسان د خیر او شر ترمینځ د تمییز صلاحیت ختموی. نو ګویا که د هغه حالت داسے شی لکه چه الله هغه د جهنم دپاره پیدا کړیدے، هغه د جهنم په لاره مخکښ روان وی، تردے چه د هغه مرګ راشی او جهنمی جوړ شی. او دا خبره د الله په ازلی علم کښ ده چه څوك د حق دعوت قبلوی او څوك انکار کوی، چا ته د خیر توفیق ملاویږی او چا ته نهٔ، څوك د جنت په لاره روانیږی او څوك د جهنم په لاره.

لَا يَفْقَهُوْنَ بِهَا : اَیْ لَا یَتَدَبَّرُوْنَ فِیْ آیَاتِ اللّٰهِ. د الله په آیتونو کښ په هغے سره سوچ

نکوی۔
لَا يُبْصِرُوْنَ بِهَا : اَیْ اَدِلَّةَ التَّوْحِيْدِ۔ د توحيد دلائلو ته نهٔ گوری۔
لَا يَسْمَعُوْنَ بِهَا : يعنی قرآنی آيتونه نهٔ آوری او کائناتو ته هم نهٔ گوری۔
بَلْ هُمْ اَضَلُّ : دوی ته د چارپيانو نه زيات گمراه ځکه ووئيل شو چه دا حواس الله تعالیٰ حيواناتو تـه هم ورکړيدی ليکن انسان ئے په عقل سره خاص کړيدے، نو کله چه دهٔ پدے سره هيڅ هدايت حاصل نکړو او مقصد ته پرے ونهٔ رسيدو نو دا دلالت کوی چه دا د حيوان نه هم ډير گمراه دے۔ بله دا چه حيوان ته چه کوم ذمه واری سپارل شويده هغه کوی او ښه او بد پيژنی، او دا انسان خپل ښه او بد نهٔ پيژنی، کندے (جهنم) ته پريوزی او نهٔ پوهيږی۔
هُمُ الْغٰفِلُوْنَ : جهنم له الله تعالیٰ غافلان او بی عقله خلك پيدا کړيدی۔

## سوال وجواب

سوال دا دے چه بندگان خو عبادت له پيدا دی او دلته وائی چه ډير د دوی نه جهنم له پيدا دی؟ جواب دادے چه (لِجَهَنَّمَ) کښې لام د عاقبت دے يعنی عاقبت ئے دا شی چه جهنم تـه ورسيږی کله چه دوی د خپل رب بندگی ونکړی کوم له چه پيدا دی۔ او دا مطلب ئے نهٔ دے چه اول نـه الله جهنم له پيدا کړيدی عبادت کوی او که نهٔ؟۔ ددے وجه نه ئے دلته كَثِيْرًا مِّنَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ ووئيل، يعنی د ډيرو خلکو عاقبت جهنم جوړ شی۔
الْغٰفِلُوْنَ : قـرآن کريـم د غفلت تکی ډير ذکر کوی ځکه چه غفلت ډيره لويه بيماری ده، هر کفر او شرك او فساد د غفلت نه پيدا کيږی نو سوال پيدا شو چه هر کله غفلت دومره بد شے دے نو دا بـه مونږ پـه څـه زائـل کـوو او ددے نـه بـه مونږ څنگه بهر راوځو؟ نو روستو آيتونو کښې الله جل خودلے دے۔

| وَلِلّٰهِ الْاَسْمَآءُ الْحُسْنٰى فَادْعُوْهُ بِهَا ص |
|---|
| او خاص الله لره نومونه دی ښائسته نو دعا غواړئ د هغه نه په وسيله د هغے سره |
| وَذَرُوا الَّذِيْنَ يُلْحِدُوْنَ فِيْٓ اَسْمَآئِهٖ ط |
| او پريږدئ هغه کسان چه کوږوالے کوی په نومونو (او صفتونو) د الله کښې |

سَيُجْزَوْنَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۸۰﴾

زردے چه بدله به ورکړے شی دوی ته د هغے عملونو چه دوی نے کوی۔

**تفسیر:** ربط:

۱- پدے آیتونو کښ الله تعالیٰ د غفلت نه د بهر وتلو اته اسباب خودلی دی، شپږ پکښ ډیر ظاهر دی، ۱- اول سبب: (وَلِلّٰهِ الْأَسْمَآءُ الْحُسْنٰى) دے یعنی د الله نه د هغه په اسماء او صفاتو او افعالو سره دعا کول دی۔ ۲- دویم وممن خلقنا امة: اَلدَّعْوَةُ اِلَى اللّٰهِ۔ (یعنی حق بیانول)۔ ۳- دریم: اَلتَّفَكُّرُ فِيْ شَخْصِيَّةِ الرَّسُوْلِ الْفَذَّةِ د رسول الله ﷺ په شخصیت کښ فکر کول، دے ته په معجزاتو د رسول الله ﷺ کښ فکر کول هم وائی، د رسول الله ﷺ شان پیژندلو سره انسان د غفلت نه راوځی۔

۴- اَلتَّدَبُّرُ فِي الْكَوْنِ (کائناتو کښ سوچ وکړه)

۵- اَلتَّدَبُّرُ فِي الْمَوْتِ۔ په مرګ کښ سوچ وکړه (وَاَنْ عَسٰى اَنْ يَّكُوْنَ قَدِ اقْتَرَبَ اَجَلُهُمْ)۔

۶- اِسْتِحْضَارُ يَوْمِ الْقِيٰمَةِ۔ د قیامت استحضار (او هغے ته متوجه کیدل) (يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ السَّاعَةِ)۔

۲- مناسبت: مخکښ آیت کښ بیان شو چه کوم خلق د غرور لاره اختیاروی او دا لله تعالیٰ نه په نیغه لاره روانیدو توفیق نهٔ غواړی، د هغوی ځای به جهنم وی۔ دا آیت کریمه دے خبرے ته اشاره کوی، یو خو دا چه بنده دے په هر وخت کښ الله ته ژړا او زاری کوی او د دنیا او د آخرت هر خیر دِے د هغه نه غواړی، د هغه سره دِے تعلق جوړ کړی، ځکه چه د هر څه مالك هم هغه دے۔ په صحیح حدیث کښ راغلی دی چه دعا عین عبادت دے۔ او په صحیح حدیث کښ دا هم راغلی دی چه کوم بنده د الله نه نهٔ غواړی نو الله د هغه نه ناراضه کیږی۔ (تیسیر الرحمن)

## د الله نومونو ته حسنیٰ ولے وائی؟

**اَلْحُسْنٰى:** د الله نومونو او صفتونو ته حسنیٰ ولے وائی؟[لِاَنَّهَا دَالَّةٌ عَلٰى صِفَاتٍ وَلَيْسَتْ اَعْلَامًا مَحْضَةً] (السعدی) ځکه چه دا په صفتونو باندے دلالت کوی او خالص نومونه نهٔ دی چه د صفاتو نه خالی وی لکه د بندګانو نومونه شو۔ نو الله ته چه الرحمن وائی نو دا د الله نوم دے او په رشتیا په الله کښ رحم هم شته۔ او که مونږ ته دا نوم کیخودے شی نو دا

به پوره حقیقت نهٔ لری۔ ❁ بلـه دا چه معانی ئے ډیرے مزیدارے دی۔ نو کوم نوم کښې چه مدح او قدح (عیب) دواړه وی نو دا به په (حسنیٰ) کښې داخل نهٔ وی۔ ❁ او حسنیٰ پدے وجه هم دی چه د الله هر نوم چه د کوم لفظ نه مشتق وی نو د هغے تولـه معنیٰ به پکښې مراد وی لکـه (العلیم) معنیٰ دا ده چه د الله دپاره ټول علمونه دی یعنی علم ئے محیط دے په هر شی باندے وغیره۔ (تفسیر السعدی)

او ددے آیت نه معلومیږی چه د الله تعالیٰ ددے ښائسته نومونو نه روستو چه کومه دعا کیږی هغه دعا قبلیږی۔

فَادْعُوْهُ بِهَا : ددے درے مصداقه دی (۱) سَمُّوْهُ بِهَا ۔ یعنی هغه نومونه الله ته کیږدئ او هغه ورته یادوئ کوم چه الله تعالیٰ خانله ایخی وی۔ او قرآن او حدیث کښې راغلی وی۔

(۲) اُعْبُدُوْهُ بِهَا ۔ په دغه صفاتو بندگی وکړئ یعنی د هغے وِرْد کوئ، دا د الله تعالیٰ د نومونو بندگی ده۔

(۳) حاجتونه وغواړئ د هغے په وسیله سره۔ دا درے واړه معانی صحیح دی۔

## د الله په نومونو کښې د الحاد صورتونه

اَلَّذِیْنَ یُلْحِدُوْنَ : الحاد په حقیقت کښې مائله کول ددے نومونو دی ددے د حقائقو نه۔ نو د الله په نومونو کښې الحاد (کجروی) په ډیرو طریقو سره ده :

(۱) [بِاَنْ یُسَمّٰی بِهَا مَنْ لَا یَسْتَحِقُّهَا] د الله نومونه مخلوق ته ورکول لکه مشرکانو به خپلو معبودانو ته آلهه وئیل۔ (سعدیؒ)

(۲) بِاِطْلَاقِ اسْمِ اللّٰهِ عَلَی الْغَیْرِ ۔ یعنی د الله نوم په بل چا باندے کیخودل لکه بندگانو ته رحمن، یا رب العالمین وئیل۔ (۳) [تَسْمِیَةُ اللّٰهِ بِشَیْءٍ لَمْ یُسَمِّ بِهِ نَفْسَهٗ] (المنار) الله ته داسے نوم کیخودل چه هغه خان دپاره نهٔ وی ایخودے۔ددے وجه نه محققین علماؤ وئیلی دی چه هغه نومونه چه په عوامو کښې مشهور دی دا د الله دپاره کیخودل نهٔ دی جائز لکه الله ته خدا، خدائے، خلائے یا گاډ یا تغرن (د ازبکانو په نیز) یزد متعال، یزدان او اهرمن (د فارس والو، ایرانیانو په نیز) یا بگوان او ایشور (د هندوانو په نیز) دا هم په الحاد کښې داخل دی۔

(٤) د الله تعالیٰ نومونه بدلول او نور نومونه ترے جوړول لکه چه مشرکانو د الله نه (لات) او د عزیز نه (عُزّٰی) او د مَنَّان نه (مَنَات) جوړ کړے وو۔

(٥) د الله نه نومونه نفی کول او د هغے نه انکار کول لکه مُعَطِّله او جهمیه ؤ ترے انکار

کړیدے۔

(٦) دغه شان د الله تعالیٰ د نومونو په تاویل کولو سره د هغے ظاهری معانی بدلول، یا د هغے هیڅ معنیٰ نۀ اخستل، یا هغه د مخلوق د نومونو سره مشابه کول، دا ټول د الله په نومونو کښې د الحاد صورتونه دی۔

(٧) الله تعالیٰ ته د عیبژن صفت نسبت کول لکه د یهودیانو یو خبیث ونیلی وو: إِنَّ اللَّهَ فَقِيرٌ ۔ (الله غریب دے) (العیاذ بالله) یا وائی: الله تعالیٰ د خالی په ورځ استراحت (دمه) کړیده۔ یا وائی: ید الله مغلولة۔ (د الله لاس بند کړے شویدے) (الارشاد الی صحیح الاعتقاد لصالح الفوزان ص ١٣٦)

(٨) تفسیر خازن لیکی: وَالْمُرَادُ حُسْنُ مُرَاعَاةِ الْأَدَبِ ۔ ددے نه مراد دا دے چه د الله د نومونو ښائسته رعایت او ادب دے وکړے شی او بے ادبی دے ونکړے شی۔

په صحیحینو کښې د ابو هریره ﷺ نه روایت شویدے چه «د الله تعالیٰ نهه نوی (٩٩) نومونه دی، څوک چه دا وشماری نو جنت ته به داخل شی»۔ (بخاری: ٢٧٣٦) ومسلم (٦٩٨٥)

ددے مطلب دا دے چه څوک د الله تعالیٰ نهه نوی نومونه یاد کړی او د هغے مطابق عقیده وساتی او د هغے په وسیله دعا کوی، هغه به د جنت حقدار وی۔ ددے مطلب دا نۀ دے چه د الله صرف نهه نوی نومونه دی بلکه د الله نومونه ددے نه زیات دی چه د هغے شمار الله تعالیٰ ته معلوم دے، لکه چه د ابن مسعود ﷺ د هغه حدیث نه معلومیږی چه احمدؒ، ابو عوانهؒ، ابو یعلیؒ او بزارؒ او حاکمؒ روایت کړیدے چه په هغے کښې رسول الله ﷺ صحابه ؓ ته یوه لویه دعا خودلے ده په هغے کښې راغلی دی: [اَسْأَلُكَ بِكُلِّ اسْمٍ هُوَ لَكَ سَمَّيْتَ بِهِ نَفْسَكَ اَوْ اَنْزَلْتَهُ فِيْ كِتَابِكَ اَوْ عَلَّمْتَهُ اَحَدًا مِنْ خَلْقِكَ اَوِ اسْتَأْثَرْتَ بِهِ فِيْ عِلْمِ الْغَيْبِ عِنْدَكَ] یعنی زۀ ستا نه د هر هغه نوم په ذریعه سوال کوم چه تا خپل ځان له ایخودے دے، یا هغه چه تا په خپل کتاب کښې نازل کړیدے یا هغه چه تا د مخلوق نه یو تن ته خودلے دے، یا هغه چه تا خپل ځان سره په علم غیب کښې پټ ساتلے دے)۔ (احمد: ٣٧١٢) واسناده صحیح، الصحیحة ٣٣٧/١ رقم (١٩٩) امام نوویؒ د علماؤ اتفاق نقل کړیدے چه د الله تعالیٰ یو زر نومونه دی۔

| وَمِمَّنْ خَلَقْنَآ اُمَّةٌ يَّهْدُوْنَ بِالْحَقِّ |
|---|
| او د هغه چا نه چه پیدا کړیدی مونږه یوه ډله ده چه بیانوی (خلقو ته) حق |

| وَبِهٖ يَعْدِلُوْنَ ﴿۱۸۱﴾ |
|---|
| او پدے سره فیصلے کوی۔ |

**تفسیر**: دا آیت مخکښې هم تیر شوے وو لیکن هغه د بنی اسرائیلو په باره کښې وو او دا ددے امت په باره کښې دے۔

نو دلته د «امة» نه د امتِ محمدیه ﷺ یو جماعت مراد دے چه د هغوی صفت دا دے چه هغوی حقه خبره کوی او نوروته د حق دعوت ورکوی او خپله په هغے عمل کوی او د خلقو ترمینځ د هغے مطابق فیصلے کوی، او دا هغه خلق دی چه د هغوی په باره کښې رسول الله ﷺ په صحیحینو کښې د معاویه ﷺ نه په نقل شوی یو حدیث کښې خبر ورکړیدے چه زما د امت یوه ډله به همیشه په حق ولاړه وی تردے چه قیامت راشی۔

سلفو علماؤ لیکلی دی چه دا هغه خلق دی چه په قرآن او سنت هیڅ شے نهٔ مخکښې کوی، اګرکه هغه د یو امام قول (وینا) وی، یا د یو پیر او مرشد رائے وی، یا خوب وی یا یو داسے اجتهاد چه د دوارو موافق نهٔ وی۔ یا د عبادت او د تسبیحاتو او د الله د ذکر هغه تولے طریقے چه د هغے په جواز د قرآن او سنت نه صریح دلیل نهٔ ملاویږی۔

| وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا سَنَسْتَدْرِجُهُمْ |
|---|
| او هغه کسان چه دروغژن ګنړی آیتونه زمونږ زردے چه په چل چل به ئے راونیسو |
| مِّنْ حَيْثُ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۸۲﴾ وَاُمْلِيْ لَهُمْ |
| د هغه ځای نه چه دوی به نهٔ پو هیږی۔ او مهلت ورکوم دوی ته |
| اِنَّ كَيْدِيْ مَتِيْنٌ ﴿۱۸۳﴾ |
| یقیناً چل (تدبیر) زما مضبوط دے۔ |

**تفسیر**: د نیکانو ډله ذکر شوه نو اوس د الله د آیتونو دروغژن ګونکو حال بیانوی۔

**سَنَسْتَدْرِجُهُمْ**: استدراج دیته وائی چه الله تعالیٰ د دوی دپاره د روزی تولے دروازے کولاوه وی تردے چه دوی په دهوکه کښې پریوزی او ګمان وکړی چه الله د دوی نه خوشحاله دے، بیا دوی د الله تعالیٰ شکر ادا کول بیخی هیر کړی، او په مقرر وخت د الله تعالیٰ عذاب دوی لره راونیسی۔ (ابن کثیر)

نو د کوم انسان نعمت چه ډیریدو او د هغه نافرمانی زیاتیدله نو هلاکت ته روان دے۔ ددے مثال داسے دے لکه چرگ یا گډ چه انسان د ذبح کولو دپاره پیروی۔

د استدراج یوه معنیٰ ده، په آرام آرام، په درجه درجه رانیول۔ او دویمه معنیٰ ئے ده هلاکول او راتاوول۔ او دلته دواړه معانی صحیح دی۔ (المنار)

وَأُمْلِي لَهُمْ : دلته مراد ابوجهل او نور د مکے کافران دی چه دوی ته الله تعالیٰ مهلت ورکړے وو، تردے چه د بدر په میدان کښ تول په توله ووهلے شو۔ او بعض وائی چه دا د مستهزئینو په باره کښ نازل وو چه الله تعالیٰ تول په یوه شپه کښ هلاك کړل۔ (بغوی)

املی : د إملاء نه دے [اَلْإِمْدَادُ فِي الزَّمَنِ وَالْإِمْهَالُ وَالتَّاخِيْرُ] په زمانه کښ اُوږدوالے او مهلت او تاخیر ورکول۔ مشتق دے د مُلْوَةٌ او مَلَاوَةٌ نه د زمانے اُوږدے حصے ته وائی، او مَلَوَان او مَلَوَيْن شپه او ورځ ته وائی۔

أَمْلَى لَهُ۔ إِذَا أَمْهَلَهُ طَوِيْلًا (المنار) یعنی اُوږد مهلت ئے ورکړو۔

| أَوَلَمْ يَتَفَكَّرُوْا ۜ مَا بِصَاحِبِهِمْ مِّنْ جِنَّةٍ ؕ |
|---|
| آیا فکر نهٔ کوی دوی چه نشته په ملگری د دوی هیڅ لیونتوب |
| اِنْ هُوَ اِلَّا نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿۱۸٤﴾ |
| نهٔ دے دا مگر یره ورکونکے دے ښکاره۔ |

**تفسیر** : پدے کښ په تکذیب باندے رد او د غفلت إزاله ذکر کوی۔

ربط : [أَكَذَّبُوا الرَّسُوْلَ وَلَمْ يَتَفَكَّرُوْا فِيْ حَالِهِ فِيْ أَوَّلِ نُشْأَتِهِ وَفِيْ حَقِيْقَةِ دَعْوَتِهِ وَدَلَائِلِ رِسَالَتِهِ وَآيَاتِ وَحْدَانِيَّةِ رَبِّهِ] آیا دوی د رسول الله ﷺ تکذیب کوی او سوچ نکوی دهٔ په حال کښ د اول د پیدائش دهٔ نه او سوچ نکوی دهٔ د دعوت په حقیقت کښ او دهٔ د رسالت په دلائلو کښ او دهٔ د رب د وحدانیت په نښو کښ۔ (المنار)

أَوَلَمْ يَتَفَكَّرُوْا : یعنی د رسول الله ﷺ په باره کښ خو لږ سوچ وکړئ چه دهٔ کښ څومره ښکلی صفات او ښکلی اخلاق دی، څومره ښائسته معجزات لری، د رسول الله ﷺ لیدل د ایمان ذریعه وه، آیا دا په یو پیرانی کښ چرته موندے شی؟

ددے وجه نه اهل علم وائی : [اَلتَّفَكُّرُ فِيْ مُعْجِزَاتِ الرَّسُوْلِ سَبَبٌ لِزِيَادَةِ الْإِيْمَانِ]

د رسول الله ﷺ په معجزاتو کښ فکر کول د ایمان د زیاتیدو سبب دے۔

مِنْ جِنَّةٍ : دا مصدر دے لکه د جِلْسَةٌ په شان، په معنیٰ د جنون (لیونتوب) سره او ددے نه مراد پیران نهٔ دی، ځکه چه هغه بغیر د (ة) نه استعمالیږی.

د قریشو کافرانو رسول الله ﷺ لره د وړوکوالی نه بنه پیژندلو چه هغه په دوی کښې په هر اعتبار سره اُوچت دے، (عقلی او اخلاقی اعتبار سره) لیکن کله ئے چه د اسلام دعوت راواخستو او دوی طرف ته راروان شو نو وے وئیل چه دا خو لیونے دے، ځکه دا قسم خبرے کوی. الله تعالیٰ په دوی رد وکړو او وے وئیل چه محمد (ﷺ) نهٔ خو لیونے دے لکه د قریشو کافران دا د وړوکوالی نه پیژنی، او نهٔ کومے خبرے چه دا کوی د کوم پاګل او لیونی خبری دی بلکه دا خو د الله تعالیٰ پیغام رسوی.

| |
|---|
| أَوَلَمْ يَنظُرُوا فِي مَلَكُوتِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا خَلَقَ |
| آیا نهٔ ګوری دوی په بادشاهیٔ د آسمانونو او د زمکه کښې او هغه چه پیدا کړیدی |
| اللَّهُ مِن شَيْءٍ وَأَنْ عَسَىٰ أَن يَكُونَ قَدِ اقْتَرَبَ |
| الله تعالیٰ د څیزونو نه او (پدے کښې چه) کیدے شی چه وی به رانزدے شوی |
| أَجَلُهُمْ ۖ فَبِأَيِّ حَدِيثٍ بَعْدَهُ يُؤْمِنُونَ ﴿١٨٥﴾ |
| نیته (د مرګ) د دوی نو په کومه خبره روستو ددے (قرآن، یا الله) نه ایمان راوړی. |

**تفسیر** : پدے کښې دوی ته دعوت دے سوچ کولو ته په ګُونی او عقلی دلائلو کښې.

یعنی د قریشو کافرانو ته د فکر او سوچ دعوت ورکولے شی دے دپاره چه د الله په وحدانیت او د هغه په خالقیت او مالکیت ایمان راوړی، او د اسلام په کړیٔ کښې راداخل شی. هغوی ته وئیلے کیږی چه دوی د نمر، سپوږمیٔ او ستورو او ووریځے او دریابونو او غرونو او چارپیانو او نورو مخلوقاتو په باره کښې فکر ولے نهٔ کوی دے دپاره چه د دنیا نه د رخصتیدو نه مخکښې ایمان راوړی، او په آخرت کښې کامیاب شی. دوی د قرآن په شان د مُعجز او جامع کتاب نه روستو د کومے معجزے انتظار کوی چه د هغے په لیدلو سره ایمان راوړی ؟.

مَلَكُوتِ السَّمَاوَاتِ : ملکوت : لوئی بادشاهی ته وائی، لکه فَعَلُوتٌ وزن پدے دلالت کوی.

وَأَنْ عَسَىٰ : یعنی پدے کښې دے هم سوچ وکړی چه کیدے شی د دوی نیته د مرګ به

رانزدے شوی وی او دوی پدے بدو اعمالو کښې په الله باندے ورتلو نکی دی نو که دوی سوچ کړے وے نو دوی به د خپلو ځانونو دپاره ډیر احتیاط کړے وے، او دا یقین به ئے کړے وے چه هوښیارتیا دا ده چه د رسول الله ﷺ انذار قبول کړی ځکه چه ددے خیریت ورته په دنیا کښې ښکاره وو، او هر چه د آخرت خیریت دے نو هغه خو ددے نه هم لوی دے، نو پدے احتیاط کښې د دوی دپاره څه ضرر وو۔ نو لیونے پدے وخت کښې هغه څوک دے چه د دنیا سعادت پریدی په خپل اعتراف سره او د آخرت سعادت پریدی اګرکه ددهٔ په نیز احتمالی (ګمانی) وی۔ (المنار)

**فَبِاَيِّ حَدِيْثٍۢ بَعْدَهٗ يُؤْمِنُوْنَ** : حدیث په اصل کښې هغه خبرے ته وائی چه نقل کیږی او دلته ترے قرآن مراد دے۔ یعنی د الله کتاب د ټولو کتابونو نه کامل دے، او دلیل ئے د ټولو نه مضبوط دے، او هر خیر پکښې موجود دے، نو کله چه پدے کتاب ایمان نهٔ راوړی نو د دوی نه هیڅ طمع د ایمان نشته چه په نورو به ایمان راوړی۔ څوک چه په صفا خالصو یخو اُوبو باندے تنده ماته نکړی نو کوم شے به د هغه تنده ماته کړی۔

یا (بَعْدَهٗ) ضمیر الله ته راجع دے یعنی د الله تعالیٰ نه اخوا بل کومه خبره ده چه دوی به پرے ایمان راوړی، بس د الله ذات د ټولو څیزونو او خبرو دپاسه دے۔

| مَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ ؕ |
| --- |
| هغه څوک چه الله ئے ګمراه کړی نو نشته هیڅوک هدایت کونکے هغه ته |
| وَيَذَرُهُمْ فِيْ طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُوْنَ ﴿۱۸۶﴾ |
| او پریدی دوی لره په سرکشئ د دوی کښې چه پریشانه به وی۔ |

**تفسیر** : دا د مخکښې مضمون تاکید کوی، مطلب دا دے چه الله تعالیٰ قرآن کریم د هدایت عظیم سبب ګرځولے دے، او ددے نه فائده متقیان اخلی، نهٔ منکرین مُعاندین، نو څوک چه په دے کتاب ایمان نهٔ راوړی سره ددے نه چه ددے د حقانیت نښے ښکاره دی، نو معلومیږی چه دا شخص الله ګمراه کړیدے ځکه چه ددے کتاب نه ئے فائده وانخسته، نو دهٔ ته به د الله نه روستو څوک هدایت وکړی؟ او الله دا خلک په همدغه شان طغیان او سرکشئ کښې پریدی چه پریشانه به ګرځی۔

**وَيَذَرُهُمْ فِيْ طُغْيَانِهِمْ** : دا د خَتَمَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ په شان سزا ده، چه هر کله دوی ته حق

کتاب راغلو او دوی ترے انکار وکړو نو الله همدغه شان په سرکشئ کښې پریخودل۔

نو پدے کښې د دوی سبب د ګمراهئ ذکر شو چه هغه ددوی طغیان دے۔ یعنی دوی په کفر او ګمراهئ کښې دومره پاخه شوی وو او دومره زیات شوی وو چه په طغیان (سرکشئ) کښې د عَمَه (د زړهړوندوالی) حد ته رسیدلی وو۔ (المنار)

| |
|---|
| يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ السَّاعَةِ اَيَّانَ مُرْسٰهَا ؕ |
| تپوس کوی دوی ستا نه په باره د قیامت کښې چه کله به وی ودریدل د هغے، |
| قُلْ اِنَّمَا عِلْمُهَا عِنْدَ رَبِّيْ ۚ لَا يُجَلِّيْهَا |
| ووایه ! یقیناً علم د قیامت زما د رب سره دے نهٔ به راښکاره کوی هغے لره |
| لِوَقْتِهَآ اِلَّا هُوَ ۛؕ ثَقُلَتْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ لَا تَاْتِيْكُمْ |
| په وخت د هغے مګر الله تعالیٰ۔ درنه ده په آسمانونو او زمکه کښې، نهٔ به راځی تاسو ته |
| اِلَّا بَغْتَةً ؕ يَسْـَٔلُوْنَكَ كَاَنَّكَ حَفِيٌّ عَنْهَا ؕ قُلْ |
| مګر ناڅاپه، تپوس کوی دوی ستا نه ګویا که تهٔ تلاش کونکے ئے د هغے، ووایه ! |
| اِنَّمَا عِلْمُهَا عِنْدَ اللّٰهِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۸۷﴾ |
| یقیناً علم د هغے د الله تعالیٰ سره دے او لیکن ډیر د خلقو نه نهٔ پوهیږی۔ |

**تفسیر:** مناسبت دا دے چه مخکښې دعوت وو فکر کولو ته په نتیجه د انسانانو کښې نو اُوس دعوت ورکوی فکر کولو ته په باره د قیامت کښې چه په هغے سره به د ټولو انسانانو نیتے ختمیږی۔ او په بل تعبیر سره مخکښې کلام وو په خاص قیامت کښې اُوس عام قیامت بیانیږی۔ (المنار)

## شان نزول

د قریشو بعض کافرانو د قیامت واقع کیدل لرے ګڼړلو او د قرآن او د رسول الله ﷺ د تکذیب کولو سره به ئے تپوس کولو چه قیامت به کله راځی؟ نو دا آیت نازل شو چه که ستا نه د قیامت په باره کښې تپوس وشی نو ووایه ! چه ددے علم صرف الله سره دے، په آسمان او زمکه کښې وسیدونکی ددے علم نهٔ لری، او قیامت به بالکل ناڅاپی راځی، د

صحیح احادیثو نه هم ددے تائید کیږی. دوباره د زیات تاکید په توګه الله وفرمایل چه دا خلق د قیامت په باره کښې تا نه داسے تپوس کوی ګویا که چه تا سره ددے علم دے.تهٔ ووایه چه د قیامت علم صرف الله تعالیٰ ته دے.

مُرْسٰهَا : مصدر میمی دے په معنیٰ د اِرْسَاءْ سره، او اِرْسَاء اثبات او اقرار (قائمیدلو) ته وائی.

لَا يُجَلِّيهَا لِوَقْتِهَآ : یعنی نهٔ به ئے راښکاره کوی په خپل وخت مګر صرف الله تعالیٰ.
لام په لِوَقْتِهَا کښې په معنیٰ د (فِیْ) دے.

ثَقُلَتْ : دا د قیامت صفت دے. ۱- یعنی دغه ساعت په آسمانونو او زمکو ډیر درووند دے چه آسمانونه به رامات کړی، او په زمکه به زلزلے راولی. او هموار میدان به ترے جوړ کړی.

۲- یا ددے د وخت علم په آسمان او زمکے والو درووند دے. یعنی ددے علم ورته نشته.

۳- یا قیامت په آسمان او زمکے والو باندے درووند دے ځکه چه پدے کښې به سخت اهوال راځی او حساب او بدلے به خلکو ته ورکړے کیږی. (محاسن التاویل)

لَا تَاْتِيْكُمْ اِلَّا بَغْتَةً : ناڅاپی به راځی چه خلك به بیع شراء او خوراك څكاك او لوبو کښې مشغول وی چه پرے رابه شی.

يَسْـَٔلُوْنَكَ : دا ئے دوباره راوړو، زجر دے په ډیرو تپوسونو د قیامت په باره کښې.

حَفِيٌّ عَنْهَا : ۱- یعنی تالاش کونکے ئے. نو نبی خو چرته تلے نهٔ دے چه د قیامت تالاش ئے کړے وی او هغه ئے معلوم کړے وی چه خلکو ته د هغے جواب ورکړی. نو دا خلك بیا ولے تا نه تپوس کوی؟!.

۲- حفی کله په تپوس کښې مبالغه کونکی ته وائی. یعنی ګویا که تا ددے په باره کښې د الله نه ډیر تپوسونه کړیدی او هغه درته علم درکړیدے نو ځکه درنه دا خلك تپوس کوی.

۳- حفی عالِم ته هم وائی. (ابن عباسؓ) مطلب دا دے چه تپوس خو د عالِم نه کیږی او رسول الله ﷺ خو پدے مسئله باندے عالِم نهٔ دے. دا معنیٰ ابن کثیرؒ راجح کړیده.

٤- حفی په معنیٰ د مهربان سره هم راځی. لکه ﴿اِنَّهٗ كَانَ بِیْ حَفِيًّا﴾ (مریم) اَیْ يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنْهَا كَاَنَّكَ حَفِيٌّ بِهِمْ] یعنی دوی تا نه داسے تپوسونه کوی چه دوی ګمان لری چه محمد (ﷺ) په دوی باندے مهربان دے، هغه به ورته د قیامت حال ووائی، لکه قتادهٔ وائی چه قریشو ووئیل چه زمونږ او ستا مینځ کښې قرابت دے نو مونږ ته ووایه چه قیامت

به كله وي؟ (ابن كثيرؒ و القاسميؒ والمنان)۔
بيا پدې آيت كښې دوه ځله تپوس د قيامت ذكر دې، نو ځينې علماء وائي چه دا تكرار د تاكيد دپاره دې ځكه چه د قيامت مسئله ډيره أهمه ده۔ او الله چه په خپل كتاب كښې كوم تكرار كوي نو د هغې سره ضرور يوه بله فائده ملګرې كوي لكه دلته د مخكښې تپوس سره (كَأَنَّكَ حَفِيٌّ) ملګرې كول وو، نو ددې وجه نه ئې دوباره (يَسْـَٔلُوْنَكَ) راوړو او د هغې متعلق ئې هم ددې غرض دپاره ذكر نكړو۔ (القاسميؒ) او پدې تكرار كښې غرض تخطئه د سائلينو ده او هغوی پوره نا اميده كول دي د علم د وخت د راتللو د هغې نه۔
ځينې وائي چه اول تپوس په باره د وخت د قيامت كښې دې، او دويم تپوس په باره د حقيقت او تفصيل د قيامت كښې دې، پدې وجه اول سره ئې رب لفظ ذكر كړو ځكه چه وخت مقررول او بيا په هغې كښې قيامت راوستل د ربوبيت متعلق كار دې، او دويم كښې ئې (الله) لفظ ووئيلو ځكه چه تفصيل د احوالو او اهوالو سره د الله لفظ مناسب دې چه دا اسم اعظم دې۔ (احسن الكلام)

| قُلْ لَّآ أَمْلِكُ لِنَفْسِيْ نَفْعًا وَّلَا ضَرًّا إِلَّا مَا شَاءَ اللّٰهُ ۚ |
|---|
| ووايه! زۀ اختيار نۀ لرم د خپل ځان دپاره د فائدې او نۀ د ضرر مګر هغه چه الله ئې غواړي |
| وَلَوْ كُنْتُ أَعْلَمُ الْغَيْبَ لَاسْتَكْثَرْتُ مِنَ الْخَيْرِ ۚ |
| او كه چرته زۀ پوهيدلې په غيبو خامخا ډير به حاصل كړي وې ما د فائدو نه |
| وَمَا مَسَّنِيَ السُّوْٓءُ ۚ إِنْ أَنَا إِلَّا نَذِيْرٌ |
| او نۀ به وو رارسيدلې ماته هيڅ تكليف، نۀ يم زۀ مګر يره وركونكې |
| وَّبَشِيْرٌ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴿۱۸۸﴾ |
| او زيرې وركونكې يم دپاره د هغه قوم چه ايمان راوړي۔ |

**تفسير**: دا هم ترقي ده په جواب د مخكني سوال كښې چه ځان لره د نفع او د ضرر اختيار نۀ لرم نو د قيامت علم به څنګه ولرم۔

شان نزول

مشرکانو وونیل چه هرکله تا سره د قیامت علم نشته نو د راتلونکے زمانے خبر خو راکړه چه څه به گرانیږی چه مونږ ورله غم وکړو؟ او آیا مصیبت به راځی او که راحت؟ څکه چه ته نبی ئے الله به خبر درکوی؟ جواب وشو چه الله ما ته دا اختیار نهٔ دے راکړے نو پدے کښې نفی د شرك فی التصرف هم ده چه نبی سره د څیزونو اختیار نشته۔

نو الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ ته حکم وکړو چه ته د الله دپاره د کامل عبودیت اعلان وکړه، او د خپل ځان په باره کښې خلقو ته ووایه چه زهٔ د غیبی کارونو نه خبر نهٔ یم، ما ته صرف هغه خبرے معلومے دی چه د هغے خبر ما ته الله تعالیٰ د وحی په ذریعه راکړیدے۔

په سورة یونس (٤٨/٤٩) آیتونو کښې هم همدا خبره شویده۔

وَلَوْ كُنْتُ اَعْلَمُ الْغَيْبَ : پدے کښې زیات تاکید کوی پدے خبره چه زهٔ په غیبو نهٔ پو هیږم څکه که زهٔ په غیبو پو هیدلے نو د مخکښې نه به مے اسباب تیارولو سره خپل ځان دپاره د دنیا ډیر فوائد او منافع جمع کړی وے مثلاً د قحط سالئ زمانے دپاره به مے د زرخیزئ او خوشحالئ په ورځو کښې تیاری کړے وے نو ما ته به هیڅ تکلیف نهٔ رارسیدلے لیکن داسے نشی کیدے۔ دا دلیل دے چه زهٔ د غیبو علم نهٔ لرم۔ زهٔ خو د الله د وحی مطابق په الله ایمان لرونکو ته صرف د هغه پیغام رسولو دپاره راغلے یم۔

مِنَ الْخَيْرِ : خیر دلته د دنیا فائدو ته وائی۔ لکه ابن عباسؓ د خیر تفسیر په مال سره کړیدے۔ او په یو روایت کښې د ابن عباسؓ نه نقل دی: که زهٔ پو هیدے نو ما به هغه شے اخستے چه په هغے کښې ما گټه کولے او ما به څه نهٔ خرڅولے مگر په هغے کښې به مے گټه کولے (وَمَا مَسَّنِيَ السُّوْءُ) یعنی فقر به راته نهٔ وے رارسیدلے۔ (ابن کثیرؒ)

ابن جریرؒ او نور وائی چه که زهٔ په غیبو پو هیدے نو ما به د قحط د کال دپاره د مخکښې نه تیاری کولے او د گرانئ دپاره به مے د ارزانئ د وخت نه تیاری کولے۔

او که دینی فائدے واخستے شی هم صحیح ده، او دا به په باره د هغه کارونو کښې وی چه په آینده زمانه کښې د هغے توقع کیدے شی، او ددے مثال په حدیث کښې دا قول د نبی ﷺ دے په حجة الوداع کښې [لَوِ اسْتَقْبَلْتُ مِنْ اَمْرِيْ مَا اسْتَدْبَرْتُ مَا اَهْدَيْتُ] (بخاری ومسلم)

وَلَوْ كُنْتُ : لَوْ په عربئ ژبه کښې د نفی د جزئینو (شرط او جزاء) دپاره راځی، او دغه شان که په مثبت داخل شی منفی کوی ئے او که په منفی داخل شی نو مثبت ئے گرځوی۔ او په معطوف کښې ئے هم دغه قانون دے۔

یعنی زهٔ په غیبو نهٔ پو هیږم که زهٔ پو هیدے نو ما به د دنیا ډیرے فائدے (مال وغیره)

حاصلی کړی وی، او ما ته به تکلیفونه نهٔ وی رارسیدلی حال دا چه ما نه د دنیا ډیرے فائدے فوت شویدی او تکلیفونه راته رارسیدلی دی د علم غیب د نشتوالی د وجه نه۔ هر چه د دین خیر دے هغه الله تعالیٰ په قرآن او حدیث کښې اچولے دے که چا ته غیب معلوم وی او که نهٔ۔

نو پدے آیت کښې الله تعالیٰ طبیعة الرسالة بیان کړو چه د رسالت طبیعت او مزاج دا دے چه رسول سره به د غیبو علم نهٔ وی، هغه صرف د الله د طرفنه بیانونکے وی۔

**نکته**: دلته ئے نفع په ضرر مقدم کړه او په سورة یونس (۴۹) آیت کښې ضرر مقدم دے په نفع باندے، فرق دا دے چه دلته مخکښې د قیامت د تپوس خبره وه، او د قیامت د علم لویه فائده د هغے دپاره په عمل صالح سره تیاری ده، او د هغے د عذابونو نه ځان ساتل دی، او په سورة یونس کښې د کافرانو د عذاب طلب کول وو نو هلته ضرر مخکښې کول مناسب دی۔ (المنار)

| هُوَ الَّذِىْ خَلَقَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ وَّجَعَلَ مِنْهَا |
|---|
| الله هغه ذات دے چه پیدا کړی یئ تاسو د نفس یو نه او ګرځولے ئے ده د هغے نه |
| زَوْجَهَا لِيَسْكُنَ اِلَيْهَا ج فَلَمَّا تَغَشّٰهَا |
| بی بی د هغه دے دپاره چه آرام وکړی هغے ته نو هر کله ئے چه پټه کړه هغے لره (نزدیکت |
| حَمَلَتْ حَمْلًا خَفِيْفًا فَمَرَّتْ بِهٖ ج فَلَمَّآ |
| ئے ورسره وکړو) نو حمل ئے واخستو په حمل سپک سره نو تله راتله د هغے سره نو هر کله |
| اَثْقَلَتْ دَّعَوَا اللّٰهَ رَبَّهُمَا لَئِنْ اٰتَيْتَنَا |
| چه درنه شوه هغه، دعا وکړه دواړو د الله تعالیٰ نه چه رب د دوی دے، که راکړو تا مونږ ته |
| صَالِحًا لَّنَكُوْنَنَّ مِنَ الشّٰكِرِيْنَ ﴿۱۸۹﴾ فَلَمَّآ اٰتٰهُمَا |
| روغ موټ بچے خامخا شو به مونږ د شکر کونکو نه۔ نو هر کله چه ورکړو دوی ته الله |
| صَالِحًا جَعَلَا لَهٗ شُرَكَآءَ فِيْمَآ اٰتٰهُمَا ج |
| روغ بچے نو وګرځول دواړو الله تعالیٰ لره شریکان په هغه بچی کښې چه ورکړے ئے وو دوی ته |

| فَتَعٰلَى اللّٰهُ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴿۱۹۰﴾ |
| --- |
| نو اُوچت دے الله د هغے نه چه دوی ورسره شريكان جوړوی۔ |

**تفسير** : پدے آیت کښې تر (خُذِ الْعَفْوَ) پورے رد د شرك اعتقادی دے چه څوك توحيد اُلوهيت خرابوی په هغوی باندے تفصيلاً رد دے، ځکه په اتباع د مَا اُنْزِلَ کښې اصلی مقصد د الله بندگی ده، نو څوك چه د الله سره شريكان جوړوی نو هغه د الله تعالیٰ د ټولو کتابونو خلاف کوی او پدے کښې رد دے په عربو مشرکانو چه دوی د کاڼړو او لرګو نه معبودان جوړ کړی وو، او د هغوی په بندګئ باندے بوخت وو،

او پدے کښې به په هغه مشرکانو هم رد کيږی چه بت پرست خو نهٔ وی مګر قبر پرست وی ځکه چه د دواړو فرق نشته سوئ ددے نه چه يو ولاړ بت دے او بل پروت دے، دواړه يو شان عاجز مخلوق دے۔ بيا د (خُذِ الْعَفْوَ) نه اخوا لس آداب د دعوت بيانيږی او د مکی سورتونو په آخر کښې اکثر د دعوت آداب ذکر کيږی لکه سورة النحل او سورة الشعراء وغيره کښې۔

دلته الله تعالیٰ د انسان پيدائش بيانوی چه الله ورسره څومره انعام وکړو چه پيدا ئے کړو او ښځه ئے ورکړه، بيا ئے د هغے نه اولاد ورکړل بيا دا انسان رالګيږی د الله تعالیٰ سره شريكان جوړوی په خپل ځان او په خپلو اولادو کښې، نو پدے آيتونو کښې زجر دے هغه کسانو ته چه د الله سره شريكان جوړوی او د دوی د عقلونو عيب بيانوی چه دا ډير ناقص عقلونه دی۔

نو الله فرمائی: چه د دوی خالق هغه الله دے چه دوی ئے د آدم عليه السلام نه پيدا کړی، او د آدم عليه السلام نه ئے حواء رضی الله عنها پيدا کړه او بيا د هر سړی دپاره ئے د هغه د جنس نه د هغه ښځه پيدا کړے، دے دپاره چه د هغے په نزديکت سره هغه ته سکون حاصل شی، ځکه که ښځه همجنس نهٔ وی نو دواړو به د يو بل سره اُنس نهٔ حاصلولے۔

نو کوم الله چه دوی او د دوی ښځے پيدا کړی نو هغه ذات يوائے د عبادت لائق دے۔

بيا د مشرك يو بل حالت دا دے چه کله دا خپلے ښځے سره نزديکت کوی او حمل ئے قرارے ونيسی او د ډيرو مراحلو نه په تيريدو سره کله چه په خيټه کښې بچے حرکت کوی نو دواړه ښځه او خاوند په شريکه دعا کوی چه که الله مونږ ته صحيح سالم بچے راکړو نو د الله ښه شکر به کوو، ليکن د صحيح سالم بچی پيدا کيدو نه روستو دواړه دا وينا شروع کړی چه دا

خو زمونږ د بتانو او معبودانو دین دے. لکه په هره زمانه کښې مشرکانو داسے کړی راروان دی چه اولاد ورکونکے او روزی ورکونکے د الله نه سوئ نور منی.

ډیر مفسرین ددے آیت په تفسیر کښې خطاء شویدی او د واهیات روایاتو او آثارو په بنیاد ئے ددے آیت مصداق آدم او حواء علیهما السلام ګرځولی دی چه دا صحیح نهٔ دے. حافظ ابن کثیرؒ او صاحب د محاسن التنزیل وغیرهم پدے سخت انکار کړیدے، او د آیت تفسیر ئے هغه کړیدے کوم چه مخکښې تیر شو. د حسن بصریؒ نه هم دا تفسیر نقل شویدے. لکه ددے تفصیل روستو راځی.

## ددے آیت درے تفسیرونه

د آیت په ظاهر باندے دا اشکال کیږی چه د (نفس واحدة) نه مراد آدم علیه السلام دے او د (زوجها) نه مراد د هغه بی بی (حواء) ده چه دوی ته الله بچی ورکړل نو بیا دوی څنګه په هغے کښې شرك کوی؟ (جَعَلَا لَهٗ شُرَكَاءَ فِيْمَا آتَاهُمَا)

(۱) نو ځینې مفسرینو دا جواب کړیدے چه دا شرك فی التسمیه دے، او دا شرك حقیقی نهٔ دے او هسے د ناپوهئ د وجه نه شویدے او دا په روایت د ترمذیؒ کښې هم راغلے دے چه د حواء رضی الله عنها بچی به نهٔ پاتے کیدل نو ابلیس ورله راغے چه که ته غواړے چه ستا دا بچے پاتې شی نو کله چه پیدا شو زما نوم (عبد الحارث) پرے کیده نو بیا به پاتې شی. دویمه طریقه ددے روایت داسے ده چه کله حواء (رضی الله عنها) حمل واخستو نو هغے ته دا ناشنا ښکاره شو نو ابلیس ورله د یو نیك شخص په شکل راغے او دا ئے ورته ووئیل چه ستا په خیټه کښې څه دی؟ هغے ووئیل: نهٔ یم خبره، دهٔ ورته ووئیل چه زما یره ده چه دے کښې چرته حیوان، سپے یا خنزیر نهٔ وی او تا ته پته شته چه دا به د کوم طرفنه وځی؟ که ستا د شا نه وځی نو مره به دے کړی او که د مخے نه وځی نو خیټه به دے څیری کړی نو حواء ددے نه ویریدله نو هغے دا خبره آدم علیه السلام ته ذکر کړه نو دواړه پدے غم کښې وو چه ابلیس حواء (رضی الله عنها) ته بیا راغے او دا ئے ورته ووئیل چه زهٔ د الله یو مقبول بنده یم، که زهٔ د الله نه دعا وغواړم نو تا ته به روغ بچے درکړی او ددے راوېستل به آسان کړی خو شرط دا دے چه په دهٔ باندے به عبد الحارث نوم ایږدے نو هغے دا خبره آدم علیه السلام ته ذکر کړه نو هغه ورته ووئیل کیدے شی چه دا زما هغه صاحب نهٔ وی کوم باندے چه ته خبره ئے (یعنی ابلیس) نو ابلیس حواء ته بیا راغے او همداسے ورپورے انبنتے وو تردے چه دواړه ئے

په دهوکه کښې واچول نو کله چه پیدا شو، عبد الحارث نوم ئے پرے کیخودو۔ (الترمذی وسنده ضعیف معلول من ثلاثة اوجه کما قال ابن کثیر، عمر بن ابراهیم البصری وثقه ابن معین وقال ابوحاتم الرازی: لا یحتج به، والثانی: انه من قول سمرة بن جندب ولیس مرفوعا والثالث: ان الحسن نفسه فسر الآیة بغیر هذا فلو کان عنده عن سمرة مرفوعا لما عدل عنه وضعفه الالبانی وجمیع المحققین)۔

دا قول والا وائی چه دا شرك فی التسمیه دے او پدے سره بنده د ایمان نه نهٔ وځی، صرف د ګناه کبیره په درجه کښې دے۔

مګر دا تفسیر محققینو مفسرینو په ډیرو طریقو رد کړیدے، یو خو دا چه ددے په باره کښې چه څومره روایات راغلی دی نو هغه اسرائیلیات دی او د سندونو په اعتبار سره سخت ضعیف دی، منقطع او مضطرب دی، او راویان پکښې ضعیف دی، او د حسن بصریؒ نه ددے روایت خلاف نقل دے۔ بله دا چه نبی د شرك نه بیخی پاك وی، دریم دا چه دا واقعه د سیاق د آیتونو سره موافقت نهٔ کوی ځکه چه دلته ﴿فَتَعَالَى اللهُ عَمَّا يُشْرِكُونَ﴾ او ﴿أَيُشْرِكُونَ مَا لَا يَخْلُقُ﴾ دا صیغے د جمع دی، معلومیږی چه ددے نه آدم ؑ او حواء رضی الله عنها نهٔ دی مراد۔

بله دا چه شرك فی التسمیه هم څه وړوکے شرك نهٔ دے چه ددے نسبت انبیاء علیهم السلام ته وشی، او آیا آدم ؑ تر اُوسه پورے د الله د توحید نه خبر نهٔ وو څه؟ دا څومره قبیحه خبره ده۔ او آیا آدم ؑ د ابلیس د چالونو نه خبر نهٔ وو [لَا يُلْدَغُ الْمُؤْمِنُ مِنْ جُحْرٍ وَاحِدٍ مَرَّتَيْنِ] مؤمن سړے د یوے سوړے نه دوه ځل نهٔ چیچلے کیږی۔ (بخاری: ٦١٣٣ ومسلم) نو دا د آدم ؑ په حق کښې انتهائی بعیده خبره ده۔

(۲) نو دویم تفسیر (چه صحیح دے) دا دے چه (۱) د نفس واحدة نه مراد جنس واحد دے یعنی نفس انسانی او د (جَعَلَ مِنْهَا زَوْجَهَا) نه مراد ښځه انسانه ده۔ نو پدے کښې الله په بندګانو باندے د اول نه احسان ذکر کوی چه وګوریئ تاسو سره الله څومره احسان وکړو چه ستاسو ښځه ئے ستاسو د جنس نه پیدا کړه ځکه چه سکون په انسان سره ملاویږی، که دا چرته پیریٔ وے نو انسان به د خپلے ښځے نه یریدلے او که د حیوان سره ئے نکاح کړے وے نو بیا به ترے حاجتونه او خدمتونه نهٔ اخستلے کیدے۔ او روستو الفاظو کښې هم دغه مطلق انسانان مراد دی۔

(۳) دریم د تهولو نه غوره تفسیر دا دے چه د نفس واحدة نه مراد آدم ؑ او (زوجها) نه

مراد حواء ده چه دا الله د آدم ﷺ د سکون دپاره پیدا کړه. او د (فلما تغشاها) نه روستو آخر پورې الله تعالیٰ د هغوی د اولادو تذکره کړیده او دیته انتقال من الفرد الی النوع وائی. یا انتقال من النوع الی الجنس دے (السعدی)

یعنی د یو فرد تذکره شروع وی بیا د هغے نه نوع انسانی ته خبره نقل شی لکه مخکښ د بنی اسرائیلو د خبرے نه انتقال وشو آخری نبی ته ﴿ اَلَّذِیْنَ یَتَّبِعُوْنَ الرَّسُوْلَ النَّبِیَّ الْاُمِّیَّ الَّذِیْ یَجِدُوْنَهٗ مَکْتُوْبًا﴾ او په سورة الانعام کښ تیر شویدی ﴿ وَمَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖ– بیا وائی –تَجْعَلُوْنَهٗ قَرَاطِیْسَ تُبْدُوْنَهَا﴾ هلته انتقال د یوے نوع نه بلے نوع ته شویدے.

او مطلب به دا وی چه الله تعالیٰ آدم ﷺ پیدا کړو او بیا ئے د هغه د سکون دپاره د هغه ښځه پیدا کړه او ددے نه بیا انسانان راخوارهٔ شو نو ددے انسانانو ناشکرئ ته وګورئ چه ښځه او خاوند کله د یو بل سره ملاو شی او الله ورله حمل ورکړی نو الله نه دعاګانے غواړی چه روغ بچے راکړه او چه کله ئے الله ورکړی نو بیا نسبتونه باباګانو او غیر الله ته کوی، کله وائی چه پیربخش (پیر بخښلے) حسین بخش (حسین بخښلے)، او کله وائی چه فلانی ولی او میاں صاحب او کاکا صاحب او بزرګ راوبښلو، کله وائی چه ددے باباګانو په مونږ نظر وو، یا د هغه نوم عبد النبی یا عبد الرسول کیږدی یا هغه اولاد د غیر الله په نوم نذر کړی او منجورانو ته ئے وسپاری لکه پدے طریقو باندے په اولاود کښ شرك کیږی، دا ټول اقسام د شرك حقیقی دی لکه الله فرمائی (فَتَعَالَى اللّٰهُ عَمَّا یُشْرِکُوْنَ) . الله تعالیٰ د دوی د شرکونو نه ډیر پورته دے.

## فوائد الالفاظ :

هُوَ الَّذِیْ : پدے کښ الله تعالیٰ خپل تعارف بیانوی چه ما وپیژنئ او بیا ستاسو ناشکرئ ته وګورئ.

وَّجَعَلَ مِنْهَا زَوْجَهَا : حواء رضی الله عنها ئے د آدم ﷺ د ګس طرف پښتئ نه پیدا کړه لکه ددے تفصیل په ابتداء د سورة النساء کښ تیر شویدے.

لِیَسْکُنَ : صیغه ئے د مذکر راوړه ځکه چه د نفس واحدة نه مراد آدم ﷺ وو.

فَلَمَّا تَغَشّٰهَا : دا ډیر د ادب لفظ دے او کنایه ده د جماع او نزدیکت نه، په اصل کښ تغشي دے ته وائی چه یو شے د بل دپاره غِشَاء (پرده) او بستره جوړه شی.

حَمْلًا خَفِیْفًا : ځکه چه نطفه په بیضه د زنانه کښ واقع شی نو پرے سړے پو هیږی، نه

پرے زنانه تر ډیرے مودے پورے۔
فَمَرَّتْ بِهٖ : یعنی ګرځی راګرځی یعنی ژوند تیره وی پدے حمل سره۔ او هرڅه کول ورته آسان وی۔
فَلَمَّآ اَثْقَلَتْ : څلور میاشتے بعد په ماشوم کښې روح وا چولے شی نو ښځه په درونډ والی باندے پو هه شی۔
لَئِنْ اٰتَیْتَنَا: دے وخت کښې ئے صرف الله تعالیٰ ته فکر وی او د هغه نه دعاګانے غواړی خو د نعمت نه روستو ناشکره شی۔
صَالِحًا: اَیْ سَوِیًّا سَالِمًا بِبَدَنِهٖ یعنی روغ بدن والا۔ څکه چه دلته د مشرکانو خبره کیږی او هغوی نیك عمله نهٔ غواړی بلکه چه ظاهری روغ رمټ وی۔ مګر ظاهر دا ده چه صالح نیك عمل ته وائی، او مشرکان هم صالح بچے غواړی، او صلاحیت کله د دنیا وی او کله د آخرت، نو صالح دیته وائی چه شری او فسادی نهٔ وی او مور او پلار ترے په عذاب نهٔ وی۔ او دا د ټولو انسانانو خواهش دے، لهذا قرآنی تعبیر ښه دے۔
او دے نه دا معلومیږی چه انسان په خپل صلاحیت، تقویٰ او عباداتو دومره خوشحاله نهٔ وی لکه د بچو په صلاحیت ډیر خوشحاله وی۔
جَعَلَا لَهٗ شُرَكَآءَ : یعنی الله لره ئے حقیقی شریکان جوړ کړل چه نسبت ددے اولادو ئے غیر الله ته وکړو چه موږ د ډیرو باباګانو نه غوښتے وو، هغوی راکړو، یا ما نذرونه د هغوی په نوم کول څکه ئے بچے راکړو او نورو خلکو ته هم د هغے دعوت ورکوی۔ او بعض صورتونه مخکښې تیر شو۔
فَتَعٰلَى اللّٰهُ عَمَّا یُشْرِكُوْنَ : یعنی دوی چه د الله سره کوم شریکان جوړوی الله ددے نه ډیر زیات اُوچت دے اشاره ده چه دا شراکت د خلکو په دماغو کښې دے او په حقیقت کښې د الله سره هیڅوك شریك نشته۔

| اَیُشْرِكُوْنَ مَا لَا یَخْلُقُ شَیْـًٔا وَّهُمْ یُخْلَقُوْنَ ﴿۱۹۱﴾ |
|---|
| آیا شریکان جوړوی دوی هغه څا لره چه نشی پیدا کولے هیڅ شے او دوی پیدا کړے شویدی |
| وَلَا یَسْتَطِیْعُوْنَ لَهُمْ نَصْرًا وَّلَآ اَنْفُسَهُمْ یَنْصُرُوْنَ ﴿۱۹۲﴾ |
| او طاقت نهٔ لری دوی لره د مدد کولو او نهٔ د ځانونو خپلو سره مدد کولے شی۔ |

**تفسیر** : څنګه عجیبه خبره ده چه مشرکان د الله سبحانه مخلوق لره د هغه سره شریکان جوړوي، چه هغوي يو مچ هم نشي پيدا کولے لکه په سورة الحج آيت (۷۳) کښې راغلی دی او پيدائش خو لا لرے خبره ده، دوي د هغوي سره مدد هم نشي کولے، هغوي لا څه چه د خپلو ځانونو سره هم مدد نشي کولے لکه په سورة الحج آيت (۷۳) کښې ئې فرمايلي دي چه که مچ د دوي نه څه شے وتختوي نو هغه هم ترے واپس نشي اخستے۔ نو دا خو مره لوي ظلم او لويه ناشکري ده چه داسے کمزورے مخلوق الله تعالیٰ سره شريکوي دا د انسانانو خوښې دے۔

| وَاِنۡ تَدۡعُوۡهُمۡ اِلَى الۡهُدٰى لَا يَتَّبِعُوۡكُمۡ ؕ سَوَآءٌ |
|---|
| او كه اوبلئ تاسو دوي لره لارخودنے ته نوتابعداري نۀ کوي ستاسو، برابره ده |
| عَلَيۡكُمۡ اَدَعَوۡتُمُوۡهُمۡ اَمۡ اَنۡتُمۡ صَامِتُوۡنَ ﴿۱۹۳﴾ |
| په تاسو که رابلئ دوي لره يا چپ يئ۔ |

**تفسیر** : ددے معبودانو نوره کمزوري بيانيږي۔

**اَلۡهُدٰى** : رهنمائي ته وائي او حاصل معنیٰ ئې ده د فائدے خبره او کار۔ يعني که مشرکان د خپلو بتانو نه په يو کار کښې رهنمائي اخلي او د يو ے فائدے کار ته ئې راوبلي چه زۀ سفر وکړم که نۀ ؟، يا فلانے تجارت وکړم او که نۀ؟ نو هغوي تاسو پسے نشي راتللے، چه ستاسو رهنمائي وکړي بلکه هغوي خو بې ساه بتان او قبرونه دي۔ هغوي ته آواز کول او نۀ کول دواړه حالتونه د هغوي په حق کښې برابر دي۔ بلکه پدے وخت کښې ژوندے انسان ددے معبودانو نه په حالت کښې ښه دے، نو کله چه يو عاقل هوښيار انسان ددے حالت تصور وکړي نو يقين به وکړي چه ددے معبودانو الوهيت باطل او عبادت کونکي ئې بيوقوف دي۔ (السعدي)

يا د (الهدى) نه مراد ظاهري هدايت دے يعني که مشرکان د معبودانو نه د هدايت سوال وکړي چه مونږ ته هدايت وکړه نو هغوي ورته هدايت نشي کولے ځکه چه هغوي څه آوري نۀ۔ او که بالفرض وائے وري نو طاقت ئې نشته چه دوي ته هدايت وکړي۔

| اِنَّ الَّذِیْنَ تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ |
| --- |
| یقیناً هغه کسان چه بلئ تاسو هغوی لره (په حاجتونو کی) سِوئ د الله تعالیٰ نه، |
| عِبَادٌ اَمْثَالُكُمْ فَادْعُوْهُمْ فَلْيَسْتَجِيْبُوْا لَكُمْ اِنْ كُنْتُمْ |
| بندګان دی ستاسو پشان پس وو بلئ دوی نو قبول والے دِے وکړی تاسو لره که یئ تاسو |
| صٰدِقِيْنَ ﴿۱۹۴﴾ اَلَهُمْ اَرْجُلٌ يَّمْشُوْنَ بِهَآ اَمْ لَهُمْ اَيْدٍ |
| رشتینی۔ آیا دوی لره خپے شته چه مزل وکړی په هغے یا د دوی لاسونه شته |
| يَّبْطِشُوْنَ بِهَآ ز اَمْ لَهُمْ اَعْيُنٌ يُّبْصِرُوْنَ بِهَا ز اَمْ لَهُمْ اٰذَانٌ يَّسْمَعُوْنَ بِهَا ط |
| چه رانیول وکړی په هغے سره، یا د دوی غوږونه شته چه آوریدل وکړی په هغے سره؟ |
| قُلِ ادْعُوْا شُرَكَآءَكُمْ ثُمَّ كِيْدُوْنِ فَلَا تُنْظِرُوْنِ ﴿۱۹۵﴾ |
| (نشته) ووایه را اُوبلئ شریکان ستاسو بیا چل جوړ کړئ ما ته او مهلت مهٔ راکوئ ما ته۔ |

**تفسیر**: پدے کښ د معبودانو عجز او کمزوری په نورو طریقو بیانوی او پدے کښ د مشرکانو په عقل ماتم دے چه دوی د داسے څیزونو او بندګانو عبادت کوی چه په کُلی توګه سره د هغوی د جواب ورکولو نه عاجز دی۔

عِبَادٌ : د عباد اطلاق اکثر په انسانانو او ملائکو باندے کیږی، نو دا ښکاره رد دے په هغه کسانو چه د بندګانو عبادت کوی، ژوندی وی او که مړه، او د هغوی نه حاجتونه غواړی چه اے پیره بابا! او کاکا صاحبه! راورسیږه۔ نو ملائك هم د انسانانو په شان دی په کمزورئ او الله ته په محتاجئ کښ، اګر که هغوی له الله تعالیٰ خپل ډیر طاقتونه ورکړیدی لیکن بیا هم الله تعالیٰ ته محتاج دی۔ او اشاره ده چه کله یو شخص عبد (بنده) شو نو د هغه عبدیت د معبودیت سره منافی دے، او پدے کښ قبرونو والا او بتان هم داخلیږی ځکه چه مشرکانو خپل بتان د انسانانو په شکلونو جوړ کړی وو، نو الله سبحانه فرمائی که دوی واقعی ستاسو په شان ژوندی انسانان هم شی نو هم ستاسو حاجت نشی پوره کولے، پاتے لا دا چه د خاورو ډیرے یا د لرګو او د کاڼو پنډ وی، څه مدد به وکړی۔ نو کوم خلك چه دا قسم آیتونه د بتانو پورے خاص کوی دا صحیح نهٔ ده۔

فَادْعُوْهُمْ : دا د توبیخ او زورنے دپاره وائی او دا مطلب نهٔ وی چه الله تعالیٰ د هغوی په

رابللو باندے حکم کوي، او دا په محاوره بناء دے چه یو تن چا ته زورنه ورکول غواړي نو داسے ورته وائي چه ته دا غلط کار او شرك کوے نو کوه ئے۔

او دارنګه پدے کښ تحدی ده مشرکانو ته چه که ستاسو معبودان تاسو سره مدد کولے شي نو بیا ئے راوبلئ چه وګورو چه دوی ستاسو کوم قبول والے وکړو۔ (السعدي)

**أَلَهُمْ أَرْجُلٌ** : یعني که تاسو د دوی په شکلونو کښ فکر وکړو نو تاسو ته به خپله معلومه شي چه د دوی سره د فائدے هیڅ نښته ځکه د دوی نۀ خپے شته چه مزل پرے وکړي او نۀ لاسونه چه رانیول پرے وکړي، او نۀ سترګے چه لیدل پرے وکړي، او نۀ غوږونه چه آوریدل پرے وکړي، نو د دوی نه تول هغه آلات او طاقتونه ختم دي کوم چه په انسان کښ دي، نو هرکله چه دوی ستاسو په شان دي بلکه تاسو د دوی نه ډیر کامل او په ډیرو څیزونو قادر یئ نو بیا تاسو ولے د دوی عبادتونه کوئ۔ (السعدي)

**لَهُمْ** : دا ضمیرونه یقیني دلیلونه دي چه ددے نه مراد ذوی العقول (قبرونو والا) دي که ددے نه صرف بتان مراد وے بیا به ئے (آلهَا أَرْجُلٌ) الفاظ وئیلے، کوم چه په غیر ذوی العقولو دلالت کوي۔

د زیات بصیرت دپاره مشرکانو ته دا وئیلے شي چه تاسو چه د الله نه سوئ نورو مخلوقاتو (قبرونو) ته آواز کوئ نو آیا دوی ستاسو غائبانه آواز آوري او د ورانديے نه درته رسیږي؟ حقه دا ده چه نۀ رسیږي که بالفرض ومنو چه آواز ئے واوریدو، نو آیا ستا په ژبه باندے پو هیږي، ځکه چه یو تن به پښتو، بل به اُردو بل به انګلش او بل به پنجابي، او بل به فارسي وائي نو پدے تولو ژبو پو هیږي او که نۀ هغه په یوه ژبه پو هیدو؟ بیا که ومنو چه ډیر ماهر دے او په تولو ژبو پو هه دے، نو دریم تپوس دا دے چه آیا دا د قبر نه راپاڅیدے شي چه د قبر نه راوځي او منډه ووهي او تا سره مدد وکړي او که بالفرض ومنو چه راپاڅیدو او د قبر نه راووتو نو بیا چه په یو ساعت کښ ورته شلو کسانو د مختلفو ځایونو نه آواز کړے وي نو پدے یو ساعت کښ به چا له ورځي؟ او که ته وائے چه تولو ته په یو ځل رسیدلے شي، نو بیا ددۀ او د الله ترمینځ څه فرق شو؟ (بیا ورته اولیاء الله څنګه وائي؟)

(انظر کتاب ((قرة عیون الموحدین)) لعبد الرحمن بن حسن بن محمد بن عبد الوهاب)

ددے نه معلومه شوه چه شرك تول د اوهامو او خیالاتو نه جوړ دے۔

**قُلِ ادْعُوا** : د مشرکانو نوره بدي او د هغوی په عقلونو باندے د بار بار ماتم په تو که الله تعالیٰ رسول الله ﷺ ته حکم وکړو چه تۀ مشرکانو ته ووایه چه کوم بتان تاسو د الله سره

شریك کنړئ، دوی زما په خلاف د خپل مدد دپاره راوبلئ او تاسو ټول ما ته مهلت هم مهٔ راکوئ (یعنی تاسو هم ورسره ملګری شئ) نو آیا تاسو ما له ضرور راکولے شئ؟ هیڅرے نهٔ، ځکه چه تاسو ته پته ده چه بتان په کُلي توګه سره عاجز دی، او تاسو ته هم الله تعالیٰ دا قدرت نهٔ دے درکړے. او دا ډیر اعلیٰ توکل دے په الله تعالیٰ باندے چه رسول الله ﷺ ته الله تعالیٰ ددے طریقه خودلے ده.

او دا بیان داسے دے لکه د هود علیه السلام چه هغه خپل قوم ته وئیلی وو ﴿ فَكِيدُونِي جَمِيعًا ثُمَّ لَا تُنظِرُونِ ﴾ (هود:۵۵) تاسو ما ته چلونه جوړ کړئ او ما ته هیڅ مهلت مهٔ راکوئ.

فَلَا تُنظِرُونِ : کله کله یو سړی ته خلك د وهلو او وژلو اراده وکړی پدے وجه چه هغه یو فساد کوی نو یو څو ورځے مهلت ورله دے دپاره ورکړی چه پدے ورځو کښې د غلط عمل نه توبه وباسه ورنه په تا به ددے ورځو نه پس قتل نافذ کیږی، نو دلته ورته نبی وائی چه تاسو ما ته مهلت مهٔ راکوئ داسے به نهٔ وایئ چه څو ورځے مهلت درکوو چه تهٔ دا بیان او دعوت الی الله پریدے، ځکه چه زهٔ پدے خبره په یقین یم چه زهٔ په حقه یم او مهلت خلك هغه چا ته ورکوی چه هغه په خپله خبره کښې شکی وی، او د مهلت په وخت کښې په خبره سوچ وکړی او زهٔ خو دا خپل حق په هیڅ شان نهٔ پریدم.

| إِنَّ وَلِـيِّـيَ اللَّهُ الَّذِي نَزَّلَ الْكِتَابَ ۖ وَهُوَ يَتَوَلَّى |
|---|
| یقیناً دوست زما الله دے هغه ذات چه نازل کړے ئے دے کتاب او هغه دوستی کوی |
| الصَّالِحِينَ ﴿۱۹۶﴾ وَالَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِهِ لَا يَسْتَطِيعُونَ نَصْرَكُمْ |
| د نیکانو سره. او هغه کسان چه رابلئ تاسو سوئ د الله نه طاقت نهٔ لری د مدد کولو ستاسو |
| وَلَا أَنفُسَهُمْ يَنصُرُونَ ﴿۱۹۷﴾ وَإِن تَدْعُوهُمْ إِلَى الْهُدَىٰ |
| او نهٔ د خپلو ځانونو سره مدد کولے شی. او که را وبلئ تاسو دوی لره لارخودنے ته |
| لَا يَسْمَعُوا ۖ وَتَرَاهُمْ يَنظُرُونَ إِلَيْكَ وَهُمْ لَا يُبْصِرُونَ ﴿۱۹۸﴾ |
| نو نهٔ آوری دوی او وینے به تهٔ دوی چه ګوری به تا ته او حال دا چه دوی نهٔ وینی. |

**تفسیر** : یعنی زهٔ خو ستاسو او ستاسو د معبودانو هیڅ پرواه نهٔ کوم، ځکه چه زما حامی او مددګار خو هغه الله دے چه هغه په ما قرآن نازل کړیدے، او هغه همیشه د خپلو

نیکو بندګانو حمایت کونکے او مددګار وی۔
وَلِيِّۦَ : وَلی په معنیٰ د دوست، ناصر او مُؤید (تائید کونکی) سره دے اَیِ الَّذِیۡ يَتَوَلّٰی حِفۡظِیۡ۔ هغه ذات چه زما د حفاظت ذمه واری ئے اخستے ده۔
الَّذِیۡ نَزَّلَ الۡکِتٰبَ : ددے ربط دادے چه لکه څنګه چه الله تعالیٰ د کتاب (قرآن) د حفاظت ذمه واری اخستے ده، نو دغه شان زما حفاظت به هم کوی۔ او دا لفظ ئے په آخر کښې پدے وجه هم راورو چه اتباع د کتاب ددے سورت موضوع ده او مشرکانو ته دعوت دے چه الله تعالیٰ تاسو ته کتاب نازل کړیدے او تاسو د دغه کتاب بیانونکی سره دشمنی کوئ۔ او دغه کتاب په شرك او ستاسو په ګمراهئ رد کړیدے، او د مخلوق عجز ئے بیان کړیدے نو پدے وجه به زهٔ د هغے بیان کوم او د هیڅا نه به پکښې نهٔ یریږم۔
او د الله تعالیٰ کتاب انسان ته بصیرت ورکوی او د توکل طریقه ورته ښائی او د خالق او مخلوق فرق ورته بیانوی۔ پدې وجه ئے دا جمله ذکر کړه۔ او داسے ئے ونهٔ وئیل چه (اِنَّ وَلِیِّۦَ اللّٰهُ الَّذِیۡ هُوَ قَادِرٌ، وَعَالِمٌ) چه زما مددګار قادر او عالِم دے۔
يَتَوَلَّى الصّٰلِحِيۡنَ : دا ئے ورپسے د تعمیم دپاره بیان کړو څکه چه ولیے کښې رسول الله ﷺ څان ته نسبت وکړو چه زما مددګار صرف الله دے نو وَهم پیدا شو، نو تعمیم دپاره ئے دا ووئیل چه الله د ټولو نیکانو سره دوستی کوی او د هغوی حفاظت کوی۔ او پدے کښې بل رد د شرك دے چه الله تعالیٰ خو د نیکانو سره مدد کوی په خلاف ستاسو د آلهه وُ چه هغوی د خپلو عابدانو سره مدد نشی کولے۔ څوك چه د الله تعالیٰ توحید ومنی او د هغه بندګی کوی نو هر ځای کښې به ئے حاجت پوره کیږی او چه غیر الله ته متوجه وی نو هسے به ستړے کیږی او هیڅ فائده به نهٔ ورکوی۔ ﴿عَسٰۤی اَنۡ لَّاۤ اَکُوۡنَ بِدُعَآءِ رَبِّیۡ شَقِیًّا﴾۔
لَا يَسۡتَطِيۡعُوۡنَ نَصۡرَکُمۡ : ستاسو معبودان، او ستاسو د کانړو نه بتان ستاسو هیڅ نصرت او حمایت نشی کولے۔
تَدۡعُوۡنَ : دعا دلته په معنیٰ د عبادت هم صحیح ده، او دعاء په معنیٰ د آواز سره هم صحیح ده۔
اِلَی الۡهُدٰی : مخکښې اعلیٰ درجه بیان شوه اُوس ادنیٰ درجه بیانیږی چه اعلیٰ کار نشی کولے نو ادنیٰ هم نشی کولے۔ هغه دا چه که تاسو دا معبودان یو خیر خودلو ته متوجه کړئ چه ایے بابا! ما ته فلانے خیر راکړه نو هغه ستاسو آواز قدرے هم نهٔ آوری نو راتلل خو په ځای پریده۔

دا آیت دلیل دے په نفی د سماع موتیٰ باندے چه بتان نۀ آوری نو دغه شان قبرونو والا هم نۀ آوری۔

وَتَرٰهُمْ : ۱– یو د سترګو لیدل دی نو (هُمْ) ضمیر به اصنام (بتانو) ته راجع وی یعنی اګرکه داسے معلومیږی چه دوی په خپلو کانړو الا سترګو باندے تاسو ته ګوری لیکن دننه روح پکښې نشته۔ ۲– یا رؤیتِ علمی دے په معنیٰ د اعتقاد سره، او (هُمْ) ضمیر د قبرونو والو مړو ته راجع دے او خطاب مشرك ته دے یعنی تۀ به په دوی باندے عقیده لرے چه دا آلهه تا ته ګوری او حاضر ناظر دی لیکن دوی هیڅ نۀ وینی۔ لکه مشرکان دا وائی چه باباګان نر چینچنړ او چینچنړه جدا جدا پیژنی۔

ډیرو ملیانو لیکلی دی چه د مړی د قبر زیارت له لاړ شی نو د خپو د طرفنه به ورته راشی ځکه چه که د سر د طرفنه راشی نو بیا به انسان ته مړے ګوری نو تکلیف به ورته رسیږی۔ لکه شامی دا خبره لیکلے ده۔

ځینی مفسرینو لکه (خازن) دا آیت د عابدانو (مشرکانو) سره لګولے دے، او مطلب دا دے چه اے موحدینو! که تاسو مشرکان هدایت طرفته راوبلے چه راشئ د الله او د رسول تابعداری وکړئ نو دوی خبره نۀ آوری، نۀ ئے قبلوی، بلکه د ضد د وجه نه اعراض کوی او ته به دوی وینے چه دوی به تا ته ګوری په ظاهره کښې او ستا خبره به اوری لیکن په حقیقت کښې دوی هیڅ شے نۀ وینی لکه په سورة یونس کښې هم دا مضمون راغلے دے۔ لیکن اول تفسیر په کښې ښه ظاهر دے۔

| خُذِ الْعَفْوَ وَأْمُرْ بِالْعُرْفِ وَأَعْرِضْ عَنِ الْجٰهِلِيْنَ ﴿۱۹۹﴾ |
| --- |
| عمل کوه په معافئ کولو او حکم کوه په نیکئ او مخ اړوه د جاهلانو نه۔ |

**تفسیر** : ددے ځای نه آخر د سورت پورے د دعوت آداب بیانیږی، ۱– او تعلق لری د اول آیت ددے سورت سره (فَلَا يَكُنْ فِيْ صَدْرِكَ حَرَجٌ) یعنی قرآن بیان کړه پدے لسو آدابو سره۔ هغه آداب دا دی : (۱) اَلْعَفْو، (۲) اَلْاَمْرُ بِالْعُرْفِ۔ (په نیکئ باندے حکم کول)

(۳) اِعْرَاض عَنِ الْجَاهِلِيْنَ (د جاهلانو نه مخ اړول)

(٤) تَعَوُّذ بِاللهِ عِنْدَ نَزْغَةِ الشَّيْطَانِ۔ (د شیطان د وسوسے په وخت اعوذ بالله وئیل)

(٥) تَذَكُّر (خبره رایاده ول) (٦) اتباع د وحی۔ (٧) دَعْوَة اِلَى اللهِ بِالْقُرْآن (وَاِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ)

(الله ته په قرآن سره دعوت ورکول)۔
(۸) وَاذْكُرْ رَبَّكَ فِي نَفْسِكَ۔ (د الله ذکر کول)
(۹) عَدَمُ الْغَفْلَةِ۔ (غفلت نکول)۔
(۱۰) عَدَمُ الْاِسْتِكْبَار (تکبر نکول) او د الله عبادتونه، تسبیحات کول او سجدے لګول۔ که دا آداب په داعی کښې نۀ وی نو یا به ئے دعوت بې اثره کیږی، یا به ئے دعوت غلط وی لکه د قرآن او حدیث نه علاوه په نورو څیزونو دعوت واخله۔
۲- مخکښې د مشرکانو رد وشو نو اُوس نبی کریم ﷺ ته طریقه د رد ښائی۔
خُذِ الْعَفْوَ : ددے آیت په باره کښې د جعفر صادقؒ نه نقل دی چه [لَيْسَ فِي الْقُرْآنِ أَجْمَعُ آيَةٍ لِمَكَارِمِ الْأَخْلَاقِ مِنْهَا] په قرآن کریم کښې ښائسته اخلاقو لره ډیر راجمع کونکے آیت ددے نه سوئ بل نشته) آیت د معنیٰ په لحاظ آسان لیکن عمل پرے ګران دے۔ (قرطبی، بغوی، المنار)

العفو : د عفو مصداقات

۱- مَا فَضَلَ مِنْ أَمْوَالِ النَّاسِ۔ یعنی د خلکو زیاتی مالونه واخله یعنی د خپلو صحابه کرامؓ نه زکاة واخله۔ دا تفسیر بعید دے۔
(۲) عفو۔ معافی کولو ته وائی۔ یعنی د غصه کیدو په ځای د خلقو سره د عفو او معافی معامله کوه، ځکه چه په وعظ او نصیحت کښې همدا فائده مند دے، یعنی د خلکو په اخلاقو کښې یو خوئی عفوه ده نو دا ځان سره راواخله، نو ظاهر دا ده چه دلته مطلب دا دے چه د معافیٔ نه کار واخله یعنی عفو عَنِ الْمُسِيئِيْنَ۔
یعنی څوك چه تا سره بدی وکړی د هغوی نه معافی وکړه۔ خو په عرف کښې داسے استعمالیږی ((معافی ونیسه))، بیا ئے داسے تعبیر وکړو او داسے ئے ونۀ وئیل چه معافی کوه، پدے کښې اشاره ده چه معافی به دومره زیاته کوے چه ګویاکه خارج کښې جُثه ولری او هغه به تا لاس کښې نیولی وی ځکه چه داعی ته خلك ډیر ضرر ورکوی، نو که د عفو ماده پکښې نۀ وی نو سینه به ئے پرسیدلی وی او همیشه به په غصه وی، ځکه چه څوك به کنځل کوی، څوك به غیبت کوی او څوك به بهتانونه لګوی ځکه چه عامو انسانانو کښې د مار او لړم خویونه دی چه خلکو ته ضرر ورکوی، نو که تا کښې د معافی ماده نۀ وی نو زندګی به دِرے ډیره تنګه شی۔

بِالْعُرْفِ : په معنیٰ د معروف سره دا ټولو طاعاتو ته شامل دے۔ عطاءؒ وائي چه ددے لوی مصداق لا اله الا الله دہ۔ ظاهر دا ده چه عرف : كُلُّ قَوْلٍ حَسَنٍ وَفِعْلٍ جَمِيلٍ وَخُلُقٍ كَامِلٍ ۔ ټولو ته شاملیږی یعنی هره ښائسته وینا او ښائسته کار او کاملو اخلاقو ته وائی۔

وَاَعْرِضْ عَنِ الْجٰهِلِيْنَ : یعنی د ناپوهو سره د سختئ معامله مۀ کوه، یعنی د جاهلانو جواب په جهل سره مۀ ورکوه، لکه دا صفت د مؤمنانو په سورة الفرقان (٦٣) آیت کښې ذکر شویدے۔ لکه سیدنا عمر فاروق ﷺ ته حُر بن قیس د هغه د غصے په وخت کښې چه د هغه تره (عُيَيْنَه بن حِصْن) ته ئې کړے وه دا آیت ولوستلو نو امیر المؤمنین پرے سمدست عمل وکړو او هغه شخص ئې معاف کړو۔

حدیث کښې دی چه کله دا آیت نازل شو نو رسول الله ﷺ جبریل ﷺ ته وفرمایل: [مَا هٰذَا يَا جِبْرِيْلُ؟] ددے څه مطلب دے اے جبریله ! (یعنی مصداق ئې څه دے؟) نو هغه ته نۀ ورتللو نو هغه لاړو د الله نه ئې تپوس وکړو بیا راغے وے فرمایل چه الله تا ته دا حکم کوی :[أَنْ تَصِلَ مَنْ قَطَعَكَ وَتَعْفُوَ عَمَّنْ ظَلَمَكَ وَتُعْطِيَ مَنْ حَرَمَكَ] (ذكره ابن ابى الدنيا فى مكارم الاخلاق باسانيد كثيرة رقم :٢٥ وابن مردويه باسانيد حسان- تخريج احاديث الاحياء للعراقى ٣/٢٥) ته به هغه چا سره صله رحمي کوے چه تا سره ئې قطع کوی او هغه چا ته به معافي کوے چه تا سره ظلم کوی، او هغه چا ته به ورکړه کوے چه ته ئې محرومه کړے) او پدے کارونو باندے عمل کول نفس لره ډیر زور ورکوی۔

امر بالمعروف ډیر تریخ شے دے، او دوائی چه کله ډیره ترخه وی نو هغه په کیپسول کښې بندولے شی، نو امر بالمعروف گویا که ترخه دوائی ده، او دا رابنده شویده د (خُذِ الْعَفْوَ) او د (أَعْرِضْ عَنِ الْجَاهِلِيْنَ) ترمینځ۔ اول نه هم وائی چه معافي کوه او روستو هم وائی چه جاهلانو سره به ځان نۀ سموے۔ او ددے حاصل دا راوځی چه کله ستا اُوچت اخلاق نۀ وو نو د دین کار نشے کولے۔ ځکه چه ته به د خلکو خیرخواهي کوے، او هغوی به درته کنځلے کوی، او ظالم او کافر او مشرك او بد اخلاقه به درته وائی، او دا د انبیاؤ علیهم السلام طریقه وه، ددے مثال داسے دے لکه ماشوم ډاکټر ته کنځلے کوی او ډاکټر ورته خاندی او دوائی ورکوی۔

| وَاِمَّا يَنْزَغَنَّكَ مِنَ الشَّيْطٰنِ نَزْغٌ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ ؕ |
|---|
| او که ورسی تا ته د شیطان نه څه وسوسه نو پناهي غواړه په الله |

| اِنَّهٗ سَمِيۡعٌ عَلِيۡمٌ ﴿۲۰۰﴾ |
|---|
| یقیناً هغه آوریدونکے پوهه دے۔ |

**تفسیر** : کله نا کله به شیطان تا د خلکو په ناپوهۍ او بد اخلاقۍ باندے د هغوی په خلاف را اُوپاروی او غصه به درولی او په زړهٔ کښې به وسوسه پیدا کړی چه د معافۍ او نیکۍ لاره پریدے، نو فوراً په الله پورے د شیطان مردود نه پناه غواړه او دعا وکړه چه الله دا ستا نه لرے کړی ځکه چه د شیطان د فتنو نه د بچ کیدو همدا یوه لاره ده چه انسان د الله تعالیٰ په پناه کښې راشي۔ او رسول الله ﷺ هم د غصے په وخت همدا علاج خودلے دے۔
او په بعض روایاتو کښې چه په سند کښې ئے مقال دے نور علاجونه دا راغلی دی چه که ولاړ وے کینه، او که ناست وے نو څمله، یا اودس وکړه پدے سره هم غصه سړیږی۔ (مسند احمد ۱۵۲/۵) والضعیفة: رقم: (٦٦٦٤)
او الله تعالیٰ دلته دا علاج پدے وجه خودلے دے چه که انسان خپله غصه نافذه کړی او بدله واخلی نو جائز ده، لیکن پدے سره به د دعوت کار بند شي۔
او په سورة المؤمن آیت (٥٦) کښې دا په هغه وخت کښې راغلے دے چه یو مشرك یا بدعتی ته د حق خبره وکړے او هغه په کبر او غصه کښې راشي، او ددے خلاف شروع کړی نو دغه وخت به تعوذ وکړے ﴿اِنۡ فِیۡ صُدُوۡرِهِمۡ اِلَّا کِبۡرٌ مَّا هُمۡ بِبَالِغِیۡهِ فَاسۡتَعِذۡ بِاللّٰهِ﴾ نو د مناظرے او بیان او د قرآن د تلاوت په وخت کښې تعوذ راغلے دے۔

| اِنَّ الَّذِيۡنَ اتَّقَوۡا اِذَا مَسَّهُمۡ طٰٓئِفٌ مِّنَ الشَّيۡطٰنِ |
|---|
| یقیناً هغه کسان چه یریږی د الله نه کله چه ورسی دوی ته څه وسوسه د شیطان نه |
| تَذَكَّرُوۡا فَاِذَا هُمۡ مُّبۡصِرُوۡنَ ﴿۲۰۱﴾ وَاِخۡوَانُهُمۡ |
| یاد کړی الله تعالیٰ نو دغه وخت دوی لیدونکی وی۔او ورونه ددے شیطانانو |
| يَمُدُّوۡنَهُمۡ فِى الۡغَىِّ ثُمَّ لَا يُقۡصِرُوۡنَ ﴿۲۰۲﴾ |
| زیاتوی دوی لره په سرکشۍ کښې بیا کمے نهٔ کوی دوی۔ |

**تفسیر** : د شیطان وسوسه مشرکانو ته هم راځی او مؤمنانو ته هم، د دواړو فرق دا دے چه د الله تعالیٰ نه یریدونکو خلکو ته چه د شیطان کومه وسوسه ورسیږی نو دوی زر

خبره رایاده کړی چه زما دا غصه خو د شیطان د طرفنه ده نو فوراً اعوذ بالله من الشیطان الرجیم ووائی۔

تَذَكَّرُوْا : یعنی خبره رایاده کړی چه په الله بهروسه کول پکار دی، او خپلے غلطیانے ذهن ته راولی او د شیطان سازشونه ورته معلوم شی، او د الله تعالیٰ په فضل او کرم سره ددے سازشونو نه محفوظ کیږی۔

یا تَذَكَّرُوْا عِقَابَ اللّٰهِ وَجَزِيْلَ ثَوَابِه، وَوَعْدَهٗ وَوَعِيْدَهٗ فَتَابُوْا وَأَنَابُوْا وَاسْتَعَاذُوْا بِاللّٰهِ وَرَجَعُوْا اِلَيْهِ مِنْ قَرِيْبٍ] ۔ یعنی رایاد کړی د الله سزا او زیات ثواب د هغه او وعده او عذاب د هغه نو الله ته توبه وباسی او رجوع وکړی او په هغه پورے پناه وغواړی او هغه ته زر راواپس شی۔(ابن کثیر۳/٤)

طٰٓئِفٌ : طائف او طَيْف هغه تخیل ته وائی چه په زړه کښ راشی، یا په خوب کښ ولیدلے شی، او په لغت کښ ګرځیدونکی ته هم وائی، دلته ترے مراد وسوسه، غصه، ګناه کول، د ګناه اراده کول، او د پیریانو حمله کول دی۔ (ابن کثیرؒ دا تول مصداقات ذکر کړیدی)

یعنی پدے ټولو وختونو کښ الله رایاد کړی نو د ټولو کارونو نه توبه وباسی او په الله پورے پناهی طلب کړی۔ علامه شوکانیؒ وائی چه شیطانی وسوسه هم د خیالی تصوراتو مشابه ده۔ (فتح القدیر)

په یو قراءت د ابوعمروؒ او کسائیؒ او یعقوبؒ او ابن کثیرؒ کښ (طَيْفٌ) لفظ دے نو هغه خیال ته وائی۔ او بعضو دواړه په یو معنی اخستی دی۔ (المنار)

مُّبْصِرُوْنَ : اَیْ مَوَاقِعَ الْخَطَاءِ۔ یعنی د خطائی ځایونه وینی۔ چه دے ځای کښ زهٔ خطا شوم۔

وَاِخْوَانُهُمْ : لیکن څوک چه د الله نه نهٔ یریږی او د شیطان وروڼه وی، هغوی ته په الله سره د شیطان د وسوسو نه پناه غوختل نهٔ یادیږی، او شیطانان د هغوی په زړونو او دماغو کښ ډیر شبهات پیدا کوی، ګناهونه ورته ښائسته کوی، او د هغے کول ورته آسانوی۔

آخر دا چه دا خلق په ګناهونو کښ واقع شی او په آینده کښ په همدغه لاره روان وی۔

يَمُدُّوْنَهُمْ فِی الْغَيِّ : یعنی راکاږی ئے په سرکشئ کښ۔ نو د وسوسے نه ئے ګناه ته بوځی او د ګناه نه ئے کفر ته او په کفر کښ ئے لوی سرکش وګرځوی۔

یا مد معنیٰ ده زیادت : اَیْ يَزِيْدُوْنَهُمْ۔ دوی لره زیاتوی په سرکشئ کښ۔ (ابن کثیرؒ)

ثُمَّ لَا يُقْصِرُوْنَ : ١-اَىْ فِىْ اِغْوَائِهِمْ. يعنى شيطانان د هغوى په گمراه كولو كښې هيڅ كوتاهى نۀ كوى. د اكثرو انسانانو دا حال دے چه خپل دشمن ئے پيژندلے نۀ دے، هغه پرے دومره تسلط او غلبه كړى وى چه هر شر هغه ته آسان وى. او شيطان ورته په ښت ناست وى، هر يے گناه ته ئے وراندے كوى. صرف ايمان او تقوىٰ والا ترے الله تعالىٰ محفوظ كوى.

٢- يا ضمير گمراه كړے شوو ته راجع دے يعنى دا كسان دومره سخت گمراه شى چه دوى بيا په هيڅ شر او گناه كښې كوتاهى نكوى بلكه هر شر ته متوجه وى. (ابن كثيرؒ)

| وَاِذَا لَمْ تَأْتِهِمْ بِاٰيَةٍ قَالُوْا لَوْلَا |
|---|
| او كله چه راڼۀ ورے تۀ دوى ته يوه نخه (چه دوى ئے غواړى) وائى دوى ولے |
| اجْتَبَيْتَهَا ؕ قُلْ اِنَّمَآ اَتَّبِعُ مَا |
| د ځان نه نۀ جوړوے دا (نخه)، ووايه! يقيناً زۀ تابعدارى كوم د هغے |
| يُوْحٰٓى اِلَيَّ مِنْ رَّبِّىْ ج هٰذَا بَصَآئِرُ مِنْ |
| چه وحى كيدے شى ما ته د رب خما نه، دا قرآن دليلونه د عقل دى د طرفه |
| رَّبِّكُمْ وَهُدًى وَّرَحْمَةٌ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴿٢٠٣﴾ |
| د رب ستاسو نه او هدايت او رحمت دے دپاره د هغه قوم چه ايمان راوړى. |

**تفسير** : پدے آيت كښې د هغوى د شر يوه نښه ذكره ده. د مشركانو د ډيرو گمراهيانو نه يوه گمراهى دا هم وه چه دوى به وخت په وخت د رسول الله ﷺ نه د خاصو نخو مطالبه كوله او مقصد ئے د رسول الله ﷺ پريشانه كول، او د هغه پورے توقے كول وو، ورنه د تولو نه لويه معجزه قرآن وه چه شپه او ورځ د دوى مخے ته نازليدو، او ددے آيتونه د ايمان والو د سترگو كولاوولو دپاره كافى وو. كله چه به مشركانو د يوے نخے مطالبه كوله او رسول الله ﷺ به هغوى ته پيش نكړه ځكه چه د هغے په باره كښې به د الله تعالىٰ اراده نۀ وه، نو دوى به د توقو په طريقه وئيل (د شيطان په وسوسه سره) چه تۀ دا د خپل طرف نه ولے نۀ جوړوے؟ اشاره ئے دے ته كوله چه قرآن ډے د ځان نه جوړ كړيدے نو معجزه به ډے هم د ځان نه جوړه كړے وے، او مونږ ته به ډے راښكاره كړے وے.

پدے جمله كښې د هغوى ډير فساد غرض وو، د رسول الله ﷺ نه هغه معجزے غوښتل

چه کوم د حکمة خلاف وو، دویم دا چه هغه ئے رانهٔ وړی نو بیا د نور قرآن تکذیب کول وو چه دا هم د ځان نه جوړ کړے شویدے، نو معجزه هم د ځان نه جوړه کړه. دا د شیطانانو طریقه ده چه د داعی د بندولو دپاره بی ځایه اعتراضونه کوی چه مقصد د هغه هدایت حاصلول نهٔ دی، (لکه دے وخت کښې هم ډیر اهل بدع به د حق داعی ته وائی چه قرآن او حدیث کښې دا مسئله وښایه او دا وښایه، تهٔ به وائے چه قرآن ددهٔ کتاب نهٔ دے او صرف د داعی کتاب دے نو مقصد د دوی هدایت نهٔ دے).

**لَوْلَا اجْتَبَيْتَهَا** : اِجتباء غوره کولو ته وائی. دلته ئے معنیٰ ده [اِخْتَرَعْتَهَا] یعنی دا به دِے هم د ځان نه جوړے کړے وے. یا مطلب دا دے : [لَوْلَا أَخَذْتَهَا مِنَ اللّٰهِ] دا به دِے هم د الله نه اخستی وے. (ابن کثیرؒ والبغویؒ)

**قُلْ اِنَّمَآ اَتَّبِعُ** : الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ ته وفرمایل چه ته ووایه چه زهٔ د الله بنده او د هغه رسول یم، زهٔ په الله تعالیٰ دروغ نشم جوړولے، ما ته چه د وحی په ذریعه څه خودلے کیږی د هغے تابعداری کوم. او دا قرآن عظیم خو د زړهٔ سترگے کولاووی، او هغے ته بصیرت ورکوی، او خیر طرف ته لارخودنه کوی، او د اُور د عذابٔ نه بچ کول کوی نو رحمت دے، نو نورو معجز طلب کولو څه ضرورت ؟.

مفسرین لیکی : دا آیت دلیل دے چه د نبی کریم ﷺ هر قول او فعل به د الله د وحی مطابق وو، او ترڅو پورے چه به د الله تعالیٰ حکم نهٔ ملاویدو نو نبی ﷺ به د خپل طرف نه هیڅ هم نهٔ کول.

**هٰذَا بَصَآئِرُ** : قرآن په ابتداء کښې بصیرت وی، بیا هدایت وگرځی بیا. چه انسان پرے مطلب ته ورسی نو د هغه دپاره رحمت وگرځی نو بیا به پرے خوشحاله وی.

| وَاِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ وَاَنْصِتُوْا |
|---|
| اوکله چه لوستلے شی قرآن نو غوږ کیدئ هغے ته او چپ شئ |
| لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ﴿٢٠٤﴾ |
| دے دپاره چه په تاسو رحم وکړے شی. |

**تفسیر** : ربط :

۱– په مخکنی آیت کښې د قرآن کریم فضائل او خصائص بیان شو چه دا لوئی کتاب د

زړهٔ سترګې کولاووی، او هغې ته بصیرت ورکوی او نیکئ طرف ته لارخودنه کوی او د اُور د عذاب نه د بچ کیدو ذریعه ده. پدې مناسبت سره دلته الله تعالیٰ مسلمانانو ته نصیحت وکړو چه کله د قرآن کریم تلاوت کیږی نو دا په سوچ سره واورئ دې دپاره چه ددې په معانیو پوهه شئ، او پدې کښې چه کوم پند او نصیحتونه دی د هغې نه فائده حاصله شی، او بیا دریاندې رحم وشی.

۲- مخکښې ئې ووئیل چه قرآن رحمت دې اُوس وائی چه دا به ستاسو دپاره هله رحمت جوړیږی چه تاسو دې ته غوږ کیدئ کله چه په تاسو لوستلې کیږی. (المنار)

۳- مخکښې ئې د شیطان وسوسه (نزغ) ذکر کړه، نو اُوس د هغې نه د حفاظت دپاره دوه څیزونه بیانوی، یو د قرآن کریم آوریدل او په هغې کښې تدبر کول، او بل د الله تعالیٰ عام ذکر کول چه په هغې سره تزکیه د نفس هم راځی او د شیطان نه حفاظت هم. (المنار)

## شان نزول

۱- دا آیت د قریشو کافرانو په مقابله کښې نازل شوې وو چه هغوی ځپلو ملګروته داسې وئیلی وو (لکه د هغوی وینا الله په سورة حم السجده (۲۶) آیت کښې نقل کریده:

﴿ وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَاتَسْمَعُوْا لِهٰذَا الْقُرْاٰنِ وَالْغَوْا فِيْهِ لَعَلَّكُمْ تَغْلِبُوْنَ ﴾

چه کله محمد (ﷺ) قرآن لوستل شروع کړی نو تاسو هغه مهٔ آورئ او تشویش پیدا کړئ دې دپاره چه تاسو غالبه شئ او څوك قرآن وانهٔ وری.

نو دلته الله تعالیٰ د هغوی په خلاف ایمان والو ته ووئیل چه تاسو دې قرآن ته غوږ کیږدئ او شور مهٔ کوی دې دپاره چه په تاسو باندې رحم وکړې شی. نو هغوی لَا تَسْمَعُوْا او وَالْغَوْا ووئیل نو الله وفرمایل: (فَاسْتَمِعُوْا وَاَنْصِتُوْا) هغوی (لَعَلَّكُمْ تَغْلِبُوْنَ) ووئیل دلته ووئیل شو (لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ)

د مشرکانو سره نور طاقت ختم شو نو په شور سره ئې د قرآن رڼړا ختموله، ددې مثال داسې دې لکه د نمر رڼړا په ګوته پټول.

۲- څوك وائی چه دا د جُمعې د خطبې د آوریدو په باره کښې نازل دې. (سعید بن جبیر، عطاء، مجاهد). صاحب المنار وائی دا قول خطاء دې ځکه چه دا سورت مکی دې او د جُمعې خطبه په مدینه کښې مشروع شویده.

فَاسْتَمِعُوْا: استماع د سمع نه ډیر کامل دې ځکه چه استماع دیته وائی چه په قصد او

نيت سره وي، او د يو كلام د پوهې دپاره خپل غوږ هغې ته متوجه كول دي. او سمع هغې ته وائي چه يو كلام غوږ ته راشي اگركه بغير د قصد نه وي،

او انصات: تَرْكُ الْمَشَاغِلِ ته وائي يعني نور مشاغل پريخودل. صاحب المنار ئې داسې تعبير كوي: اَلسُّكُوْتُ لِاَجْلِ الْاِسْتِمَاعِ حَتّٰى لَايَكُوْنَ شَاغِلًا عَنِ الْاِحَاطَةِ بِكُلِّ مَا يَقْرَأُ]

د غوږ كيخودو دپاره غلي كيدل دي دپاره چه د ټول قراءت د راگيرولو نه مشغوله نشي. نو څوك چه غوږ كيدی او غلي شي نو لائقه ده چه هغه به پوهه شي او تدبر به وكړي، او په همدهٔ باندې اميد دې چه رحم به پرې وكړې شي. (المنار)

## مسئله د فاتحه خلف الامام

څينې خلك دا آيت د فاتحه خلف الامام د رد دپاره ذكر كوي ليكن دا خبره د ډيرو وجو هاتو نه صحيح نهٔ ده (۱) اوله وجه دا ده چه د آيت شان نزول دليل دې چه دا په باره د رد د مشركانو كښې نازل وو نو ددې د سورة الفاتحې سره تعلق نشته.

مولوي اشرف علي تهانوي ديوبندي وائي: "زما په نيز (اذا قرئ القرآن فاستمعوا) كله چه قرآن لوستې كيږي نو هغې ته غوږ كيږدئ) دا په تبليغ باندې محمول دې، دلته قرائت في الصلاة (يعني په مانځه كښې قراوت) مراد نهٔ دې. د سياق نه همدا معلوميږي نو اوس كه په مجمع كښې ډير كسان په يو ځاى قرآن لولي نو هيڅ حرج نشته".

(الكلام الحسن: ۲/۲۱۲)

عبد الماجد دريا آبادي وائي: "ددې حكم مخاطبين ظاهره ده چه كفار او منكرين دي او اصلي مقصد دا دې چه كله چه قرآن د تبليغ په غرض ولوستې شي نو نو هغې ته په توجه او خاموشئ سره غوږ كيږدئ دې دپاره چه ددې معجز كيدل او ددې د تعليماتو خوبيانو باندې تاسو پوهه شئ او تاسو ايمان راوړو سره د رحمت مستحق جوړ شئ".

(تفسير ماجدي: جلد دوم ص ۲۶۳ حاشيه نمبر: ۳۰۰)

(۲) دويمه وجه دا ده چه كه ومنو چه اعتبار عموم د لفظ لره دې او خاص سبب لره نهٔ دې. نو بيا وايو چه ددې آيت عموم دلالت كوي چه مقتدي به د امام قراءت ته غوږ اړدي او بل آيت دې ﴿فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ﴾ (المزمل: ۲۰) (لولئ هغه چه تاسو ته آسان وي د قرآن نه) نو دا آيت دليل دې چه قراءت په هر چا باندې لازم دې، مقتدي وي او كه امام لكه صاحب د تلويح توضيح او صاحب د نور الانوار ص (۱۹۳/ ۱۹۴) او نورو

اصولینو د دوه آیتونو د تعارض مثال هم دا دواړه آیتونه ذکر کړیدی نو تعارض واقع شو، او اصولیین وائی چه کله د دوه آیتونو تعارض راشی نو رجوع به حدیث ته کولے شی. نو کله چه مونږ حدیث ته رجوع وکړه نو په صحیح حدیثونو کښې خو په هر مونځ کونکی باندے اګرکه مقتدی وی د فاتحے لوستل لازم شویدی. لکه هغه روستو ذکر کیږی. او دوی چه کوم حدیثونه پیش کوی چه قرائت د امام دا قرائت د مقتدی دپاره دے نو هغه د اکثرو ائمه کرامو په نیز مرسل ضعیف دے، او په هغے کښې د فاتحے ذکر نشته بلکه عام قرائت مراد دے او دا خو مونږ هم وایو چه په جهری مونځ کښې به د فاتحے نه زیادت نۀ کوی. او بل طرفته آیت کښې دی: ﴿وَاَنْ لَّيْسَ لِلْاِنْسَانِ اِلَّا مَا سَعٰى﴾ (سورة النجم: ۳۹) د هر انسان دپاره هغه شے پکار راځی چه د کوم کوشش ئے کړیدے) نو مقتدی به خپله فاتحه لولی. د امام فاتحه د هغه دپاره فاتحه نۀ ده. او دا آیت هم دلالت کوی چه د مقتدی به فاتحه خامخا لولی.

❁ بله وجه دا ده چه احناف علماؤ د آیت (اذا قرئ القرآن) اطلاق په حدیث (لَاصَلَاةَ اِلَّا بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ) سره مُقَيَد کول جائز نۀ دی ګڼړلی سره ددے نه چه هغه متفق علیه صحیح حدیث دے. او بل طرفته د همدغه آیت عموم ئے په همدغه مختلف فیه روایت (فَقِرَاءَةُ الْاِمَامِ لَهٗ قِرَاءَةٌ) سره خاص کړیدے. (قاله الالبانی فی صفة صلاة النبی)

(۳) دریمه وجه دا ده: ددے آیت په عموم باندے به دلیل نیول هله صحیح وے چه مونږ او محدثینو دا خبره په خپل عقل کولے چه فاتحه د امام دپاره ضروری ده نو تا به وئیل چه قرآن کریم کښې راغلی دی چه قرآن ته غوږ کیږدئ او هرکله چه مونږ دا خبره نۀ کوو، بلکه دا هغه پیغمبر وئیلی دی چه په هغه باندے دا قرآن نازل شویدے او هغه ددے په مطلبونو بنه پوهیدو، او هغه هر چاته د ټولو مونځونو په باره کښې دا حکم کړیدے:

[لَاصَلَاةَ لِمَنْ لَّمْ يَقْرَأْ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ] (بخاری ومسلم)

د هیچا مونځ نۀ کیږی چه فاتحه ونۀ وائی.

او ابو داودؒ او ترمذیؒ د عباده بن صامت ﷺ نه روایت کړیدے چه نبی کریم ﷺ د مانځه نه د سلام ګرځولو نه روستو تپوس وکړو: [لَعَلَّكُمْ تَقْرَؤُوْنَ خَلْفَ اِمَامِكُمْ؟ قُلْنَا نَعَمْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ! قَالَ: لَاتَفْعَلُوْا اِلَّا بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ فَاِنَّهٗ لَاصَلَاةَ لِمَنْ لَّمْ يَقْرَأْ بِهَا]

آیا تاسو د امام پسے قرائت کوئ؟ نو صحابه کرامو ووئیل چه آؤ، اے د الله رسوله! نو نبی ﷺ وفرمایل چه د ام القرآن (فاتحے) نه سوئ نور څه مۀ وایئ، ځکه چه څوک سورة

فاتحه ونهٔ وائي نو د هغه مونځ نهٔ کیږي۔ (ابوداؤد رقم: ۸۲۳ باسناد صحیح-البانی وغیره)

په یو روایت کښې دي چه نبي (ﷺ) وفرمایل:

[فَلَا تَقْرَؤُوا بِشَيْءٍ مِنَ الْقُرْآنِ إِذَا جَهَرْتُ إِلَّا بِأُمِّ الْقُرْآنِ] ابوداود: ۸۲٤ والترمذی: ۳۱۱)

(کله چه زهٔ په جهر (زور) سره قراءت کوم نو دأم القرآن (فاتحې) نه سیوئ نور څه مهٔ وایئ)۔ ددې حدیث تمام راویان ثقه دي۔

او په حدیث د انس بن مالك رضی الله عنه کښې دي:

[أَتَقْرَؤُونَ فِي صَلَاتِكُمْ وَالْإِمَامُ يَقْرَأُ؟ فَسَكَتُوا، فَقَالَهَا ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، فَقَالَ قَائِلٌ أَوْ قَائِلُونَ: إِنَّا لَنَفْعَلُ، قَالَ: فَلَا تَفْعَلُوا وَلْيَقْرَأْ أَحَدُكُمْ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ فِي نَفْسِهِ]

(آیا تاسو په خپل مانځه کښې لوستل کوئ، کله چه امام قراءت کوي؟ نو هغوی غلي شول، نبي کریم ﷺ درې کرته دا خبره وکړه، نو یو یا ډیرو ووېل چه، یقیناً مونږ دا کار کوو، نو نبي کریم ﷺ وفرمایل: پس داسې مهٔ کوئ، او ستاسو نه دې هر شخص سورت فاتحه په زړه کښې ولولي۔ (یعنې ځان سره) (جزء القراءة د بخاري، مسند ابی یعلی الموصلی (۵/ ۱۸۷، ۱۸۸ حدیث: ۲۸۰۵) صحیح ابن حبان (الاحسان ۳/ ۱٦۰، حدیث: ۱۸٤۱) وحدیث: (۱۸٤۹) ددې حدیث ټول راویان ثقه دي۔ او ټول راویان ئې د بخاري، مسلم او سنن اربعه ؤ راویان دي۔

د سیدنا عمر فاروق رضی الله عنه نه نقل دي چه هغه فرمایلي دي:

[سَيَأْتِي أُنَاسٌ يُجَادِلُونَكُمْ بِشُبُهَاتِ الْقُرْآنِ فَخُذُوهُمْ بِالسُّنَنِ فَإِنَّ أَهْلَ السُّنَنِ أَعْلَمُ بِكِتَابِ اللَّهِ مِنْهُمْ] - روستو زمانه کښې به داسې خلك راشي چه تاسو سره به د قرآن په شبهاتو باندې جګړې کوي نو دوی په سنتو (یعنې د نبي کریم ﷺ په سنتو) سره راونیسئ ځکه چه څوك په حدیثو ښه پوهیږي هغه د الله په کتاب باندې د دغه خلکو نه زیات پوهیږي۔ (سنن الدارمی رقم ۱۱۹) اصول السنة لابن ابی زمنین) واللالکائی فی السنة (۲۰۲)

نو ددې وجه نه څوك چه دا آیت د فاتحه خلف الامام د رد دپاره پیش کوي نو دا داسې ده لکه چه د رسول الله ﷺ او د قرآن مقابله پیش کول، چه نبي ﷺ د قرآن داسې تفسیر کړیدې چه هغه د قرآن خلاف دې۔ یا د رسول الله ﷺ رد کول دي۔

(٤) - الزامي سوال دا دې چه یو غیر مسلم شخص راشي او یو مقلد ته ووائي چه فاتحه دعا ده که نهٔ؟ هغه ووائي چه آو، نو هغه ورته ووائي چه بیا تاسو په سهار ماښام او ماسخوتن مونځونو کښې دا په جهر ولې وایئ؟ حال دا چه الله تعالی په سورة الاعراف کښې

وئیلی دی چه ﴿اُدْعُوْا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَّخُفْيَةً﴾ دعا په عاجزئ او پټه غوارئ نو تاسو ولې د قرآن خلاف کوئ؟ نو دلته به د مقلد څه جواب وي؟ ضرور به دا وائي چه صحیح ده چه دعا په پټه پکار ده، لیکن دلته رسول الله ﷺ پدې وختونو کښې فاتحه په جهر سره لوستلې ده، نو مونږه ئې د هغه د تابعدارئ په وجه په جهر سره لولو، نو دغه شان خبره د فاتحه خلف الامام په باره کښې هم ده. یعنی فاتحه خلف الامام ددې آیت نه د ډیرو صحیح احادیثو په وجه مستثنیٰ ده چه په هغې کښې د فاتحې لوستل د هر مقتدي دپاره واجب کړخولې شویدي. یعني د فاتحې په باره کښې دلیلونه خاص دي او دوی چه کوم دلیلونه ذکر کوي هغه عام دي او دا د ټولو علماؤ په نیز اتفاقي خبره ده چه خاص په عام باندې مقدم وي او تخصیص د قرآن په خبر واحد سره جائز دې لکه علامه آمديؒ متوفی (۶۳۱ هـ) فرمائي: (وَاَمَّا اِذَا كَانَتِ السُّنَّةُ مِنْ اَخْبَارِ الْآحَادِ فَمَذْهَبُ الْاَئِمَّةِ الْاَرْبَعَةِ جَوَازُهُ) که (د قرآن د عموم تخصیص کونکې) سنت خبر واحد وي نو د څلورو وارو امامانو مذهب دا دې چه دا جائز دې) (الاحکام في اصول الاحکام: ۳۴۷/۲)

علامه شوکانيؒ لیکي: (اِتَّفَقَ اَهْلُ الْعِلْمِ سَلَفًا وَّخَلَفًا عَلٰى اَنَّ التَّخْصِيْصَ لِلْعُمُوْمَاتِ جَائِزٌ) (پدې خبره باندې د سلفو او خلفو علماؤ اتفاق دې چه د عموماتو تخصیص جائز دې. (ارشاد الفحول ص: ۱۴۳).

لهذا ددې نه روستو هم عام دلائل د فاتحه خلف الامام په خلاف پیش کول غلط، مردود او بې اصولي ده، هرکله چه خاص په عام باندې مقدم وي نو بیا عام ولې د خاص په مقابله کښې پیش کولې شي. تفصیل دپاره رجوع وکړه کتاب ((الکواکب الدرية في وجوب الفاتحة خلف الامام في الصلاة الجهرية)) د حافظ زبير علیزئ ته.

(۵) علاوه لا دا چه سکوت او قراءت دواړه منافي نهٔ دي ځکه چه امام به قراءت کوي نو مقتدي به هغه ته غوږ هم کیږدي، او په وقفو وقفو کښې به خپله هم ورسره لګیا وي، نو په آیت هم عمل کیدې شي او په حدیث هم. مونږ چه امام پسې روستو فاتحه وایو نو مونږ چپ یو نهٔ قاري ته ضرر ورکوو، او نهٔ بل چاته، او احتیاط هم پدې قول کښې دې.

سیدنا ابو هریره رضی الله عنه چه کله حدیث د قرائت د فاتحې بیان کړو نو د هغهٔ نه د هغهٔ شاګرد تپوس وکړو (اِنَّا نَكُوْنُ وَرَاءَ الْاِمَامِ؟) چه مونږ چه کله د امام نه روستو یو؟ (یعنی آیا بیا به هم فاتحه لولو) نو سیدنا ابو هریره رضی الله عنه وفرمایل: (اِقْرَأْ بِهَا فِيْ نَفْسِكَ) (مسلم: ۱۶۹/۱ حدیث: ۳۹۵) ځان سره ئې په آرام وایه.

(نووی شرح مسلم ۱/۱۷۰) اشعة اللمعات ۱/۳۷۲)

(۶) شپږمه وجه دا ده چه آيت مکی دے او د سورة الفاتحه د ونا فرضيت په مدينه کښې شويدے، معلومه شوه چه پدے آيت کښې د مقتدی دپاره د فاتحے د نۀ لوستلو هيڅ خبره نشته.

(۷) (چيلنج) په هيڅ حديث کښې چرته هم دا منع نۀ ده راغلے چه تاسو د امام پسے فاتحه مۀ لولئ. او بل طرفته صراحةً راغلی دی چه ((زۀ کله قرائت کوم نو تاسو قراء ت مۀ کوئ مگر فاتحه لولئ)) (ابوداود والترمذی) (او هر هغه چا چه مونځ وکړو چه په هغے کښې ئے فاتحه ونۀ لوستله نو دا مونځ نيمګړے دے) (مسلم) (او مونځ نۀ دے صحيح د هغه چا چه په هغے کښې فاتحه ونۀ لولی)) (بخاری: ۷۵۶ومسلم: ۹۰۰) نو د نور قرائت نه منع شوه او فاتحه د هغے نه بهر شوه. دا د حق پرست دپاره انتهائی بنکاره دليل دے.

علامه عبد الحی لکهنوئ ليکی: [ لَمْ يَرِدْ فِیْ حَدِيْثٍ مَرْفُوْعٍ صَحِيْحٍ النَّهْیُ عَنْ قِرَاءَةِ الْفَاتِحَةِ خَلْفَ الْاِمَامِ وَكُلُّ مَا ذَكَرُوْهُ مَرْفُوْعًا فِيْهِ اِمَّا لَا اَصْلَ لَهٗ وَاِمَّا لَايَصِحُّ] (التعليق الممجد ص ۱۰۱ حاشيه ۱) په هيڅ صحيح مرفوع حديث کښې د امام نه روستو د فاتحے د قراء ت نه منع نشته او کوم مرفوع روايتونه چه خلکو پدے باره کښې ذکر کړيدی هغه يا بی اصله (بی بنياده) دی او يا صحيح نۀ دی.

(۸) وجه دا ده چه په (اِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ) باندے دوی د مقتدی دپاره فاتحه منع کوی حال دا چه امام بخاریؒ د زيد بن ارقم ﷺ نه نقل کړيدی چه هغه فرمائی: (كُنَّا نَتَكَلَّمُ فِی الصَّلَاةِ، يُكَلِّمُ اَحَدُنَا اَخَاهُ فِیْ حَاجَتِهٖ حَتّٰی نَزَلَتْ هٰذِهِ الْاٰيَةُ ﴿ حَافِظُوْا عَلَى الصَّلَوَاتِ وَالصَّلَاةِ الْوُسْطٰى وَقُوْمُوْا لِلّٰهِ قَانِتِيْنَ﴾ فَاُمِرْنَا بِالسُّكُوْتِ) مونږ به په مانځه کښې خبرے کولے، يو تن به د خپل ورور سره په يو حاجت کښې خبرے کولے تردے چه دا آيت (وَقُوْمُوْا لِلّٰهِ قَانِتِيْنَ) نازل شو (يعنی الله ته غلی ودريږئ) نو مونږ ته په غلی کيدو باندے حکم وشو. (بخاری: ۴۵۳۴) مسلم (۱۲۳۱) او دغه آيت مدنی دے.

او د ابن مسعود ﷺ نه روايت دے: [كُنَّا نُسَلِّمُ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ وَهُوَ فِی الصَّلَاةِ فَيَرُدُّ عَلَيْنَا فَلَمَّا رَجَعْنَا مِنْ عِنْدِ النَّجَاشِيِّ سَلَّمْنَا عَلَيْهِ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْنَا وَقَالَ: (( اِنَّ فِی الصَّلَاةِ لَشُغْلًا)). ابوداود: ۹۲۴) مونږ به په رسول الله ﷺ باندے سلام اچولو او هغه به په مانځه کښې وو نو مونږ ته به ئے جواب راکولو خو کله چه مونږ د نجاشی نه راواپس شو. (چه دا مدنی دور دے) مونږ په هغه باندے سلام واچولو نو هغه مونږ ته جواب رانکړو او بيا ئے

وفرمایل: (په مانځه کښې (د بنده د الله سره) مشغولتیا وی)۔ (یعنی خبرے منسوخ شوے)
نو سوال دا دے چه په (اِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ) سره فاتحه تاسو منع کوئ او حال دا چه عامے خبرے دے پرے نهٔ منسوخ کیږی او هغه دے په مدینه کښې منسوخ کیږی ځکه چه د خبرو اترو اجازه په مدنی ژوند کښې بنده شوه۔ نو عجیبه خبره ده چه په (اِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ) سره دے صرف فاتحه منسوخ کیږی او خبرے اترو اجازه دے وی او هغه دے بیا په مدینه کښې په (وَقُوْمُوْا لِلّٰهِ قَانِتِيْنَ) باندے منسوخ کیږی؟!۔
معلومیږی چه د (اِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ) فاتحے ته بیخی نهٔ دے شامل۔
(۹) وجه: که ومنو چه دا آیت فاتحے ته هم شامل دے نو بیا وایو چه پدے آیت کښې دی: قرآن ته غوږ کیږدئ او په روستو وروسته آیت کښې دی: ﴿وَاذْكُرْ رَّبَّكَ فِيْ نَفْسِكَ﴾ خپل رب ځان سره یادوه) نو گویا که داسے ووېل شو چه د امام د قراءت په وخت کښې فاتحه ځان سره وایه په پټه وایه۔ لکه دا خبره روستو آیت کښې د قتادهٔ نه نقل شویده۔
نو صحیح دا ده چه په مانځه کښې فاتحه د هر چا دپاره لوستل لازم دی برابره ده چه سرئ مونځ وی او که جهری او دا خبره امیر المؤمنین فی الحدیث امام بخارئ هم غوره کړیده او پدے باندے ئے مستقل کتاب (جزء القراءة) لیکلے دے او دا د نورو محدثینو هم مسلک پاتے شویدے۔ ددے مسئلے باقی تفصیل دپاره «الحق الصریح شرح مشکاة المصابیح» او «فتاوی الدین الخالص» او داسے نورو کتابونو ته رجوع پکار ده۔

| وَاذْكُرْ رَّبَّكَ فِيْ نَفْسِكَ تَضَرُّعًا وَّخِيْفَةً وَّدُوْنَ الْجَهْرِ مِنَ الْقَوْلِ |
|---|
| او یادوه رب خپل په زړه خپل کښې په عاجزئ او په یره سره او ځکته د اُوچتے وینا نه |
| بِالْغُدُوِّ وَالْاٰصَالِ وَلَا تَكُنْ مِّنَ الْغٰفِلِيْنَ ﴿۲۰۵﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ |
| په وخت د صبا او بیگاه کښې او مهٔ کیږه د غفلت کونکو نه۔ یقیناً هغه کسان |
| عِنْدَ رَبِّكَ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ عَنْ عِبَادَتِهٖ وَيُسَبِّحُوْنَهٗ |
| چه نزدے دی رب ستا ته لوئی نهٔ کوی د هغه د بندگئ نه او پاکی وائی هغه لره |
| وَلَهٗ يَسْجُدُوْنَ ﴿۲۰۶﴾ |
| او خاص هغهٔ ته سجدے کوی۔ |

**تفسیر** : د خاص ذکر (تلاوت) د قرآن نه روستو اُوس په عام ذکر باندے حکم کوی چه هغه تلاوت او د مانځه او بهر د مانځه نه تولو حالاتو کښې ذکر ته شامل دے، او پدے سره د نفس تزکیه او د شیطان نه حفاظت راځی. او دا د هر مؤمن صفت دے چه د الله تعالیٰ ذاکر به وی.

ابن الجوزیؒ د قتادةؒ نه نقل کړیدی چه که مخکښې آیت کښې د قراءت په وخت غلے کیدل فاتحے ته هم شامل شی، نو بیا دا آیت د هغې نه استثناء ده او د ذکر نه مراد به فاتحه وی (زاد المسیر) او دا به ئے یو مصداق وی اگرکه د آیت حکم عام دے. او دا خبره امام بغویؒ د ابن عباسؓ نه نقل کړیده چه دلته د ذکر نه مراد: په مانځه کښې قراءت دے یعنی په زړه کښې دے ئے خان سره پټ وائی. (معالم التنزیل۲/۲۲۱)

## شان نزول

دا حکم د مُعراج په شپه د پنځو مونځونو د فرضیت نه مخکښې دے. په هغه وخت مسلمانانو ته دا حکم وو چه صبا او بیگاه الله تعالیٰ یاد کړی. د مونځونو د فرضیت نه روستو ددے آیت عام حکم باقی پاتے شو. اگرکه خطاب نبی کریم ﷺ ته دے لیکن پدے کښې تمام مسلمانان داخل دی.

## په آیت کښې د ذکر آداب

علامه قاسمیؒ وائی چه ددے آیت نه د ذکر الٰهی لاندینی آداب حاصلیږی:

۱- (فِیْ نَفْسِكَ) اصل د الله په ذکر کښې دا ده چه بنده خپل رب لره په زړهٔ سره یاد کړی، یعنی که زړهٔ غافل وی او ژبه روانه وی نو دے ته ذکر الٰهی نشی وئیلے، او الله تعالیٰ په آرام آرام سره یاد کړی دے دپاره چه د ریاکارئ شبهه پاتے نشی او اخلاص ته زیات نزدے شی.

۲- (تَضَرُّعًا) د الله په دربار کښې ډیره ژړا او زاری اختیار کړی او د خپلو گناهونو اقرار وکړی.

۳- (وَخِيْفَةً) د الله یره او د هغه خشیت په زړهٔ باندے طاری وی چه په عملی ژوند کښې د تقصیر په وجه سره چرته بنده راونهٔ نیسی. دا دوه شرطونه ئے ولے لګول؟ ځکه که په یو ذکر کښې تضرع او خیفه (خوف) نهٔ وی نو د هغې خاص اثر نهٔ وی، او چه کله په تضرع او خوف سره وی نو ډیر اثر لری. دویم حکمة: د ذکر سره الله تعالیٰ تضرع او خیفه ځکه

شرط کړه چه ذکر انسان لره مست کوي او يو ژوند پيدا کوي بيا به خوشحالي او خندا ډيره کوي نو کله چه ورسره تضرع او خيفه ملګري وي نو بيا به د ذکر اثر په خپل ځاى پاتے شي او مستي به زائل کړي۔ ددے نه معلومه شوه چه کوم خلك داسے ذکر کوي چه بيا د عاجزئ نه خبره ګډا او نڅا ته ورسي هغه ذکر نهٔ دے بلکه شيطاني تسلط دے۔

٤- (وَدُوْنَ الْجَهْرِ) آواز پورته نکړي لکه چه په صحيحينو کښې د ابو موسیٰ اشعريؓ روايت راغلے دے چه رسول الله ﷺ وفرمايل: [يَا اَيُّهَا النَّاسُ ! اِرْبَعُوْا عَلٰى اَنْفُسِكُمْ فَاِنَّكُمْ لَا تَدْعُوْنَ اَصَمَّ وَلَا غَائِبًا اِنَّكُمْ تَدْعُوْنَ سَمِيْعًا قَرِيْبًا] اے خلقو ! په ځانونو رحم وکړئ ځکه چه تاسو کوم کوڼ او غائب ته آواز نهٔ کوئ، کوم ذات چه تاسو رابلئ هغه ډير زيات آوريدونکے او ډير قريب دے)۔ (بخاري: ٤٢٠٥) مسلم: ٧٠٣٧)

٥- ژبه د زړهٔ موافقت او ملګرتيا وکړي۔

٦- (بِالْغُدُوِّ وَالْاٰصَالِ) د الله تعالىٰ ذکر صبا او بيګاه وي۔ ددے آيت نه پدے دواړو وختونو کښې د الله تعالىٰ د ذکر اهميت معلوميږي۔

مخکښې د ذکر او ذاکر طريقه ئے بيان کړه اُوس د وخت تذکره کوي۔

غدو د صبا د راختلو نه تر نمر خاته پورے وي او آصال جمع د اصيل ده د مازيګر نه روستو تر نمر پريوتو پورے وي۔ لکه د ﴿ وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ بِالْعَشِيِّ وَالْاِبْكَارِ ﴾ (المؤمن :٥٥) کښې راغلي دي۔ او دا دوه وختونه ئے خاص کړل ځکه چه دا دواړه د ورځے دوه طرفه دي، څوك چه ورځ په ذکر شروع کړي، او په ذکر ئے ختمه کړي، نو لائقه ده چه دے به د الله تعالىٰ لحاظ کوي او دے به الله تعالىٰ لره ددے په مابين کښې هم نهٔ هيروي۔ او چونکه دا دواړه وختونه د کاروبار دي، اکثر خلك پدے کښې جلتي کوي، نو دا ئے خصوصي ذکر کړل، او پدے دواړو وختونو کښې آهم ذکر د سهار او مازيګر مونځ دے چه هغے ته د شپے او د ورځے ملائك حاضري ورکوي۔ پدے وجه ئے روستو وفرمايل چه د ملائکو سره ځان مشابه کړئ چه هغوي د الله تعالىٰ د ذکر نه نهٔ غافل کيږي۔

وَلَا تَكُنْ مِّنَ الْغٰفِلِيْنَ : يعني په عامو اوقاتو کښې هم د الله نه غفلت مهٔ کوئ۔ لکه سورة طه آيت (١٣٠) کښې دي : ﴿ وَاَطْرَافَ النَّهَارِ لَعَلَّكَ تَرْضٰى ﴾

اِنَّ الَّذِيْنَ : پدے کښې د ملائکو صفت بيانوي، پدے کښې مسلمانانو ته ترغيب ورکوي چه تاسو لره د ملائکو په شان شپه او ورځ په خشوع او خضوع سره د الله په ذکر کښې مشغول کيدل پکار دي او د هغوي په شان په تسبيح او تهليل کښې مصروف شئ،

مونځونه وکړئ او سجدے وکړئ۔

ملائك درے قسمه عبادتونه کوي (لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ) د زړۀ عبادت ئے دا دے چه ځانونه لوی نۀ ګڼړي۔ او د ژبے عبادت ئے تسبيحات دي او د نور بدن عبادت ئے سجدے دي۔

او پدے آيت کښ الله تعالیٰ خپله استغناء بيان کړيده چه اے بنده ! که ته د الله بندګی نۀ کوے نو الله تعالیٰ ستا عبادت ته محتاج نۀ دے د هغه سره دومره زيات مخلوق شته چه د هغه په بندګئ کښ مصروف دي نو که ته پکښ شامل نۀ شے د الله هيڅ نقصان نۀ کيږي۔

پدے مقام کښ رسول الله ﷺ ددے آيت د تلاوت نه روستو سجده هم پدے وجه کړيده چه سجدستي د ملائکو سره مشابهت راشي، او بنده په توجه سره قبلے ته مخ کړي او الله سبحانه وتعالیٰ ته سجده وکړي، او افضل دا ده چه سجده کونکے به په اوداسه کښ وي۔ په قرآن کريم کښ دا اولنئ سجده ده۔

په صحيحينو کښ د عبد الله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دے چه رسول الله ﷺ به کله د مانځه د حالت نه بيرونئ کوم سجدے والا سورت لوستلو، نو سجده به ئے کوله او مونږ به هم سجده کوله [حَتّٰى مَا يَجِدُ اَحَدُنَا لِجَبْهَتِهٖ مَوْضِعًا] او د ګڼړوالي (رش) په وجه به يو تن ز مونږ د خپل تندي دپاره ځای نۀ موندلو۔ (بخاري: ۱۰۷۶) مسلم: (۱۳۲۳)

په احاديثو کښ د الله تعالیٰ دپاره د سجدے کولو ډير فضيلت راغلے دے۔ امام مسلم د ثوبان رضي الله عنه نه روايت کړيدے چه ما د رسول الله ﷺ نه تپوس وکړو نو هغه وفرمايل: ((الله دپاره ډيرے سجدے کوئ، که الله دپاره يوه سجده کوے نو الله به ستا يوه درجه پورته کوي او يوه ګناه به ختموي))۔

د سيدنا ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دے چه رسول الله ﷺ وفرمايل: [اِذَا قَرَاَ ابْنُ آدَمَ السَّجْدَةَ فَسَجَدَ اعْتَزَلَ الشَّيْطَانُ يَبْكِيْ، فَيَقُوْلُ: يَا وَيْلَهٗ اُمِرَ هٰذَا بِالسُّجُوْدِ فَسَجَدَ فَلَهُ الْجَنَّةُ وَاُمِرْتُ بِالسُّجُوْدِ فَعَصَيْتُ فَلِيَ النَّارُ] (صحيح مسلم: رقم: ۸۱ باب اطلاق اسم الکفر علی من ترك الصلاة)

کله چه بنيادم د سجدے آيت ولولي او سجده وکړي، شيطان جدا شي ژاړي، او وائي چه هائے افسوس (هلاکت) دے ما لره، بنيادم ته د سجدے حکم وشو نو دۀ سجده وکړه نو دۀ دپاره جنت دے، او ما ته د سجدے حکم وشو خو ما نافرماني وکړه نو زما دپاره اُور دے)۔

رسول الله ﷺ مونږ ته د ابليس افسوس رانقل کړو نو په سجدے سره د شيطان افسوسونه زياتيږي، او بله دا چه ددے يوے سجدے په وجه جنت ملاويږي، کله چه په اخلاص سره وشي۔

په قرآن کریم کښې پنځلس سجدې دي بناء په راجح قول سره، او دا ټولې کول پکار دي، د علماؤ پکښې اختلاف دے چه واجبي دي یا مستحبي؟ خو سمدستي پرې عمل کول پکار دي، او ددے سجدے دپاره د مانځه احکام هم نشته، اودس هم ورله واجب نهٔ دے لکه امام بخاريؒ په خپل صحيح کښې د احاديثو نه ثابته کړيده چه رسول الله ﷺ سره مسلمانان او مشرکانو په شريکه د سورة النجم سجده کړے وه۔

## امتیازات او خصوصیات د سورة الاعراف

۱- ډیرے نرمے لهجے والا سورت دے۔

۲- په مختلفو طريقو سره اتباع د مَا اُنْزِلَ ته دعوت وو۔

۳- پدے کښې طواف عُرْيَانًا (په برښنډه) باندے او په حج کښې ښه خوراکونو نهٔ کولو باندے رد وو۔

٤- د قیامت تفصیل په ناشنا طرز چه د اصحاب الاعراف آوازونه او د جنتيانو او جهنميانو يو بل ته آوازونه پکښې ذکر شو۔

٥- د قرآن کریم د مخاطبینو مثال ئے په بلد طيب او بلد خبيث سره ورکړے وو۔

٦- پدے کښې شپږ قصے د انبياؤ عليهم السلام وے۔

۷- سُنَّةُ اللّٰهِ فِي الْاَنْبِيَاءِ وَفِيْ اُمَمِهِمْ۔ د الله عادت په باره د انبياء عليهم السلام او د هغوی د امتونو کښې ذکر شو۔

۸- د الله مکر په کښې بيان شويدے۔

۹- ميثاق الفطرة (ميثاق د عالَم الارواح) پکښې ذکر دے۔

۱۰- د يو خاص مُلا د ګمراهئ واقعه۔

۱۱- د غفلت د زائله کیدو اسباب او علاجونه پکښې ذکر دي۔

۱۲- د داعی آداب په کښې په ناشنا انداز ذکر دي۔

ختم شو تفسير د سورة الاعراف بحمد الله وحسن توفيقه، وسبحانك اللهم وبحمدك لا اله الا انت استغفرك واتوب اليك۔

المرقوم: ساعت: بعد العصر تاريخ: اُوم شوال، ۱٤۳٥ هجري۔

الموافق ۲۰۱٤/۸/۳ء اتوار ورځ۔

وکتبه: ابوزهير سيف الله في اسريت - کالام سوات۔

| آیاتها (۷۵) | (۸) سورة الانفال مدنیة (۸۸) | رکوعاتها (۱۰) |
| --- | --- | --- |

سورة الانفال مدنی دے، پدے کښې پنځه اویا آیتونه او لس رکوع دی۔

**نوم**: ددے سورت نوم (الانفال) د سورت د اولنی آیت نه اخستے شویدے۔ د عبد الله بن عباس ﷺ نه نقل دی چه دے ته سورة البدر هم وائی۔

**د نزول زمانه**: ټول سورت مدنی دے، امام بخاریؒ او نورو محدثینو د ابن عباس ﷺ نه روایت کړیدے چه د غزوهٔ بدر په دوران کښې د بدر په مقام کښې نازل شویدے، پدے کښې پنځه اویا (۷۵) آیتونه دی۔

## ربط او مناسبت:

۱- مخکښنو سورتونو کښې د دعوت مسائل وو، کله یهودو ته او کله نصاراؤ او کله نورو فِرقو ته، نو اُوس د جهاد احکام راوړی، چه پدے دواړو باندے دین ته ترقی ملاویږی۔ یعنی جهاد به د اعلاء کلمة الله دپاره کولے شی۔

۲- مخکښې اتباع د ما اُنزل بیان شو اُوس قتال هغه چا سره بیانیږی چه اتباع د ما اُنزل نهٔ کوی او د خپلې مرضیٔ مطابق ژوند تیروی لکه کفار۔

۳- جزوی مناسبت دا هم دے چه مخکښې د قرآن د استماع خبره وشوه نو اُوس وائی چه قرآن ته غوږ کیږدئ ځکه چه دا سبب د زیادت د ایمان دے (زَادَتْهُمْ اِيْمَانًا)۔

## موضوع د سورت

پدے سورت کښې درے اندازه دی، یو د جهاد او دویم ایمانی انداز، او دریم د حِکمو (حکمتونو) او اسرارو انداز دے۔ خو اکثر دا سورت په جهادی انداز وئیلے کیږی نو بیا پدے وخت کښې ئے دوه موضوع ګانی دی:

(۱) اَلْاَنْفَالُ لِلّٰهِ وَالرَّسُوْلِ۔ چه غنیمت به د الله او د رسول د حُکم مطابق تقسیمیږی او د هغے علتونه او وجوهات بیانوی۔ یعنی تاسو په غنیمتونو جګړے مهٔ کوئ بلکه الله او رسول ته ئے وسپارئ چه هغوی پکښې څنګه فیصله کول غواړی هغے ته تسلیم شئ۔ او

دا لویہ مسئلہ دہ چہ پدے کښې جګړے واقع کیږی، نو د مجاهدینو قوت کمزورے کیږی۔

(۲) اَلْقِتَالُ فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ اِلٰی اِنْتِهَاءِ الشِّرْكِ ۔ ﴿وَقَاتِلُوْهُمْ حَتّٰى لَا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ﴾ یعنی د شرک د ختمیدو پورے د الله په لاره کښې قتال کول۔ او ددے دپاره دیارلس قوانین بیانیږی۔ او ورسره به د اَلْاَنْفَالُ لِلّٰهِ وَالرَّسُوْلِ دپاره علتونه بیانیږی۔ نو کوم قتال چه د اصولو او قوانینو نه په غیر وی د هغے فائده به ختمیږی او بیا به ترے فساد جوړیږی۔

او ایمانی موضوع پکښې (۱) بَیَانُ اَنْوَاعِ الْمُؤْمِنِیْنَ وَبَیَانُ صِفَاتِهِمْ وَفَوَائِدِ الْاِیْمَانِ وَالتَّقْوٰی۔ د مؤمنانو اقسام او د هغوی صفات او د ایمان او د تقوی فوائد۔ او اسرار او رازونه به په هر آیت کښې راځی۔

بسم الله الرحمن الرحیم

| يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْاَنْفَالِ ؕ قُلِ الْاَنْفَالُ |
|---|
| تپوس کوی دوی ستا نه په باره د مال غنیمت کښې، ووایه (اختیار د) غنیمتونو |
| لِلّٰهِ وَالرَّسُوْلِ ۚ فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَصْلِحُوْا ذَاتَ بَیْنِكُمْ ۪ |
| الله او رسول لره دے، نو ویریږئ د الله نه او اتفاق راولئ په مینځ خپل کښې |
| وَاَطِیْعُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗۤ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِیْنَ ﴿۱﴾ |
| او تابعداری کوئ د الله او د رسول د هغهٔ که یئ تاسو مؤمنان۔ |

**تفسیر** : دا آیت د جنګ بدر نه روستو نازل شوے وو، چه دلته الله تعالی د هغے بعض تصویر هم بیان کړیدے (چه تفصیل ئے زمونږ په کتاب سیرتِ رسول کښې کتلے شی)

دے باندے ښه طریقے سره پوهیدو دپاره د غزوهٔ بدر حالات معلومول ضروری دی۔

نبی کریم ﷺ او صحابه کرامؓ باندے چه کله د قریشو کافرانو ژوند تنګ کړے وو نو الله تعالی دوی ته د هجرت حکم وکړو۔ او مسلمانانو په سختو مشکلو حالاتو کښې د مکے د کافرانو د یرے نه خپل هرڅه پریخودل او مدینے طرف ته ئے هجرت وکړو او د مکے کافرانو د مهاجرینو په مال او دولت قبضه وکړه۔

کله چه رسول الله ﷺ مدینے ته هجرت وکړو نو الله تعالی جهاد مشروع کړو، نو رسول الله ﷺ د بدر نه مخکښې اته (۸) غزوات وکړل خو په هغے کښې خاص جنګونه ونشو، بیا غټه معرکه د بدر وشوه چه د مشرکانو قافله د جمادی الثانیه نه مخکښې شام ته د تجارت

دپاره تلے وه او په رمضان کښې راواپس کیدله او ابوسفیان ئے مشري کوله چه په هغے کښې د یو لاکهه درهم نه زیات سامانونه جمع وو. او دا د هجرت دویم کال وو.

نبي کریم ﷺ صحابه کرامؓ راجمع کړل او وے وئیل چه مونږ له د دوي پسے تلل پکار دي او پدے تعاقب سره مقصد د قریشو کافرانو ته په ذهني توګه نقصان رسول او هغوي ته دا خودل وو چه مسلمانان اُوس د کفر او شرك د بیخکندي دپاره تیار شویدي. ددے سره دا مقصد هم وو چه لکه څنګه چه د قریشو کافرانو د مسلمانانو په مال او دولت او جائیداد باندے د هجرت په وخت قبضه کړے اُوس وخت راغلے دے چه مونږ د هغوي مال د خپل مال په عوض کښې واخلو. نو رسول الله ﷺ درے سوه دیارلس صحابه کرامؓ ځان سره واخستل او د دریاب په غاړه غاړه بدر طرف ته روان شو کوم چه مکے ته تلے لاره وه.

رسول الله ﷺ ټول ملګري ځان سره وانخستل او نه ئے ټولو ته دعوت ورکړو (څکه چه د قافلے وهل پدے کسانو کافي کیدل) ابوسفیان د جاسوسئ په ذریعه خبر شو چه رسول الله ﷺ او د هغه ملګري لارے ته راوتلي دي نو هغه لاره بدله کړه. د بدر شا ته لاره ئے اختیار کړه، او ابوسفیان فوراً ضمضم بن عمرو مکے ته ولیږلو دے دپاره چه مکے والو ته ددے خبر ورکړي. مکے والو فوراً تقریباً زر کسان لښکر راواخستو او د قافلے د حفاظت او د مسلمانانو د مقابلے دپاره روان شو او د بدر مقام ته راورسیدو. او الله تعالىٰ بغیر د مخکني میعاد (وخت مقرر) نه مسلمانان او کافران د یو بل سره مقابله کښې ودرول دے دپاره چه د حق او باطل فیصله وشي او مسلمانانو ته الله تعالىٰ د دوي په اولني جاتي دشمنانو غلبه ورکړي.

رسول الله ﷺ وریسے مدینے نه ووتلو او د غرونو مینځ مینځ کښې ئے ددے قافلے معلومات کولو، ابوسفیان پوهه شو نو په جلتئ سره ئے د مکے مشرکانو ته خبر ولیږلو چه مالونه مو هلاك کیږي، د خپلے قافلے غم وکړئ. ابوسفیان خپله قافله بني طرف ته د دریاب په غاړه ووېستله او مکے ته ئے ورسوله.

او په مکه کښې پدے موقعه یوے زنانه (عاتکه بنت عبد المطلب) خوب هم لیدلے وو چه د مکے نه خلك ووتل او ټول هلاك شول، ابوجهل ددے خوب نه خبر شوے وو نو هغه په غصه وو چه د بنو هاشمو سري هم پیغمبران دي او زنانه هم. عباسؓ ته په غصه شوے وو. ابوجهل مکے والو ته اعلان وکړو چه تیار شئ نو زر کسان تیار شو، اُمیه پکښې ځان روستو روستو کولو لیکن هغه ته ئے پیغورونه ورکړل او په زوره ئے ځان سره راروان کړو.

او خان سره ئې زنانه هم راواخستې چه دا به ګډه وي او عربو ته به ښايو چه زمونږ نه دشمن په مدينه کښې هم نشي خلاصيدې. په ډير تکبر کښې راووتل لکه قرآن کريم روستو د هغې نه تعبير په (بَطَرًا وَّرِئَاءَ النَّاسِ) سره کړيدې. دوی به هره ورځ نهه او لس اوښان ذبح کول تردې چه د بدر خواته راورسيدل او دلته رسول الله ﷺ ته ددې دشمن معلومات وشو (په ذريعه د عبد الله بن اُرَيْقِط سره) نو ملګرو سره ئې مشوره وکړه چه څه کوو؟ بعض ملګرو مشوره ورکړه چه مونږ ته ملګري په مدينه کښې پاتې دي، او مونږ خان سره وسله هم پوره نۀ ده راوړې، تولې اته يا لس توري وې. مګر بعض خوانانو مشوره ورکړه چه مونږ به خامخا جنګ کوو، او سيدنا مقداد بن الاسود ﷺ پاڅيدو او دائې وفرمايل: اې د الله رسوله! مونږ داسې نۀ وايو لکه څنګه چه بني اسرائيلو موسیٰ عليه السلام ته وئيلي وو چه تۀ او ستا رب ورې لاړ شئ، جنګ وکړئ مونږ به دلته ناست يو. بلکه مونږ وايو: تۀ لاړ شه او ستا رب ورې تا سره وي او مونږ هم تاسو سره يو، او که تۀ مونږ بَرْكُ الْغِمَادِ علاقې پورې بوځې نو مونږ به ستا مخې او شاته او ښي او ګس طرفته جنګ کوو.

بيا رسول الله ﷺ انصارو ته اشاره ورکړه چه تاسو څه وايئ؟ نو هغوی کښې سعد بن معاذ ﷺ هم پاڅيدو او دائې ووئيل: چه مونږ په تا ايمان راوړې او ستا د خبرو تصديق مو کړې نو مونږ بالکل تابعدار يو، ستا چه کوم طرفته تلل خوښ وي لاړ شه، قسم په هغه الله چه ته ئې په حق راليږلې ئې! که ته مونږ په درياب ورداخلوې مونږ به درسره داخليږو، زمونږ نه به يو تن هم نۀ پاتې کيږي. او مونږ به دا هيڅکله بده ونۀ ګڼړو چه ته مونږ صبا له د دشمنانو سره وجنګوې، يقيناً مونږ په جنګونو کښې صبرناك يو او د دشمنانو په مقابله کښې رشتيني يو. او اميد دې چه الله به تا ته زمونږ د طرفنه هغه څه وښائي چه ستا سترګې به پرې يخې شي، نو مونږ د الله په برکت سره روان کړه.

نو رسول الله ﷺ د سعد ﷺ پدې خبره ډير خوشحاله او تازه شو او روان شو. پدې کښې چه کله بدر ته نژدې شو، نو دوی په يو شړلن ځای کښې پړاؤ واچولو (دې ځای کښې د شړو غرونه دي چه انسان پکښې خوئيږي او چه کله پرې باران وشي نو بيا مضبوط شي)

پدې کښې د بعض مسلمانانو په زړونو کښې شيطان وسوسه واچوله چه مونږ په حقه يو او بيا هم داسې غلط ځای ورسيدو او د کافرانو مضبوط ځای رسيدلې دې، او پدې کښې په بعض ملګرو جنابت هم راغلې وو، نو پريشانۍ ئې زياته شوه نو الله تعالیٰ د شپې باران وکړو چه د دوی علاقه کلکه شوه، او د کفارو په علاقه کښې ختې جوړې شوې نو الله مؤمنان

مضبوط کړل، بیا جنګ شروع شو چه په هغې کښې د صحابه کرامو نه څوارلس کسان شهیدان شو، اول پکښې د سیدنا عمر فاروق رضي الله عنه غلام شهید شو بیا په مشرکانو باندې الله تعالیٰ شکست راوستلو نو د هغوی نه اویا (۷۰) کسان مردار شو۔ زر ملائك الله تعالیٰ د مدد دپاره راولیږل، په دوی کښې لوی لوی صنادید (مشران) د قریشو ووهلې شو (چه د هغوی شمار (۲۴) وو) او کوم چه په کښې د قتل نه بچ شو نو هغوی کښې اویا (۷۰) کسان قیدیان شول او باقی مکې طرف ته په تختیدو کښې کامیاب شو۔

رسول الله ﷺ په عریش (څپر) کښې ناست وو، ټوله شپه ئې دعاګانې کولې تردې چه ابوبکر صدیق رضي الله عنه ورته وفرمایل: اې د الله رسوله! تا په رب باندې ډیره مبالغه وکړه الله تعالیٰ ستا دعا نۀ رد کوی۔ څه صحابه کرامؓ د رسول الله ﷺ څوکیدارئ ته ودریدل چه مشرکان پرې حمله ونکړی، معرکه شروع شوه، رسول الله ﷺ به ورله تربیت ورکولو او خپله هم میدان ته راحاضر شو، پدې کښې الله تعالیٰ ایمان والو له غلبه ورکړه، بیا مؤمنانو ته د مدینې نه زیری راروان وو، او مشرکانو باندې لوی مصیبت راغې چه مشران ئې هم ووژل شو او قیدیان هم ترې ونیول شو، او بیا ترې فدیه غوښتلې کیدله۔

او حافظ ابن کثیرؒ لیکی چه دوی باندې الله تعالیٰ دا غم هم راوستو چه دوی فیصله وکړه چه ژاړو به نۀ څکه چه بیا را باندې مسلمانان خوشحالیږی او انسان چه ژړاو نکړی او غمژن وی نو زړه ئې مریٔ ته راځی څکه چه په ژړا سره زړه سپکیږی۔

پدې کښې بعض مسلمانانو ووئیل چه راځئ چه د ابوسفیان قافله هم راونیسو نو سیدنا عباسؓ ورته وفرمایل چه دا تاسو نشئ رانیولې څکه چه تاسو سره د (احۡدَى الطَّائِفَتَيۡنِ) یعنی د یوې ډلې وعده شوې ده۔

د اسلام دا اولنے جنګ په (۱۷/ رمضان المبارك د جمعې په ورځ شوې وو۔

## دغنیمت مسئله

دې ټولو مقتولینو او قیدیانو او تختیدونکو قریشو کافرانو د خپل ځانونو نه روستو ډیرې وسلې او نور د غنیمت مالونه پریخودل۔

څه مسلمانانو دا راجمع کړل او څه مسلمانان د دشمنانو پسې روان وو، او څه فدایانو د نبی کریم ﷺ نه ګیر چاپیره پهره ورکوله دې دپاره چه دشمنان په دۀ حمله ونکړی۔ د شپې په وخت کله چه دا ټول راجمع شو نو د دوئی د غنیمتونو په باره کښې خپل مینځ کښې

خبرے شروع شوے، او هرے ډلے د غنیمت د مالونو په سلسله کښې د خپل خپل محنت او کوشش مطابق خپل خپل حق ثابتول شروع کړل (دا په عالَم کښې انتهائی اُوچت مؤمنان دی مګر د مال سره محبت ساتل بده خبره نهٔ ده خو چه حکم شرعی پرے مات نشی)

نو کله چه د دوی اختلاف پیدا کیدو نو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو او مسلمانانو ته ئے ووئیل چه د جنګ په میدان کښې د غنیمت کوم مالونه چه په لاس راغلی دی، دا د الله او د رسول دپاره دی، د رسول الله ﷺ د حکم مطابق به په دے کښې تصرف کوئ. په دوه طریقو سره ترغیب ورکوی یو دا چه دا مالونه الله راوستی دی نو د هغه د حکم مطابق تقسیم ئے پکار دے. دویم دا چه مؤمن له پکار دی چه اُوچت همت وساتی نهٔ دا چه په مالونو کښې جګړے وکړی، دا وړے خبرے دی، نو الله ورله همت د دنیا نه اړوی او اُوچتو صفاتو طرفته ئے متوجه کوی، لکه دا د قرآن کریم د دعوت طریقه ده چه کله د یو انسان ذهن معمولی شان دنیا ته طرفته مائل شی نو زړئے د ایمان صفاتو او آخرت طرفته متوجه کړی.

## خلاصه د سورت

اول ئے د غنیمت متعلق حکم بیان کړے، بیا ئے د مؤمنانو اُوچت صفات بیا ئے د بدر د غزا تصویر او تفصیل بیان کړیدے تر (١٤) آیت پورے، بیا ئے د قتال قوانین شروع کړیدی. په (١٤) آیت کښې قانون د فِرَار مِنَ الزَّحْف دے. بیا ئے په (١٩) آیت کښې د اطاعة الله والرسول قانون ذکر کړیدے، بیا بل قانون چه مستحبات به د واجباتو په وخت پریخودلے شی، بیا بل قانون (وَاتَّقُوا فِتْنَةً) چه د جهاد سره به امر بالمعروف او نهی عن المنکر هم کیږی ورنه بیا به عمومی عذابونه راځی. بیا بل قانون دے چه د خیانت نه ځان وساتئ، بیا قانون د تقویٰ او د هغې فائدے. بیا دویمه موضوع د سورت ده (وَقَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللهِ) بیا بله موضوع د سورت ده چه د غنیمت تقسیم.

بیا د غزوه بدر تصویر او شکل دے تر رکوع پورے، بیا د رکوع نه روستو نور قوانین بیانوی چه د دشمن په مقابله کښې ثبات او د الله د ذکر پابندی کول، او جګړے نهٔ کول، صبر کول، تکبر نهٔ کول، د صد عن سبیل الله په نیت به نهٔ وی، دا قوانین عدمی دی. بیا په بله رکوع کښې ئے منافقانو ته زجر او هغه کافرانو دپاره تخویف چه هغوی په بدر کښې مړهٔ شول او نورو ځایونو کښې مرداریږی، بیا مسئله د نقض العهد ده، بیا د جهاد دپاره د تیاریٔ حکم، بیا مسئله د صلحے ده، بیا ترغیب الی الجهاد بیا مسئله د اساریٔ او په آخر د

سورت کښې ئې د مؤمنانو اقسام بیان کړیدی او مسئله د میراث پکښې ضمناً ذکر ده۔

**تفسیر**: يَسْئَلُوْنَكَ : صحابه کرامؓ د رسول الله ﷺ نه ددې غنیمت د تقسیم په باره کښې تپوس وکړو نو دا آیت نازل شو۔

انفال : دې اموالو ته الله تعالیٰ په ((نفل)) سره تعبیر وکړو ځکه چه نفل اضافي او زیاتې شي ته وائي، ګویا که د مسلمانانو په ذهن کښې دا خبره کینول مقصد دې چه د الله په لاره کښې د جهاد کولو اصل مقصد خو د الله رضا او د جنت حاصلول دی، هغه به ان شاء الله ملاویږي، او د غنیمت دا مالونه د آخرت د اجر نه زیاتې څیزونه دي۔ دویم دا چه دا د هغه څیزونو نه یو شے دے چه الله تعالیٰ د مخکنو امتونو دپاره حرام کړي وو، ګویا که دا ددې امت محمدیه دپاره د الله د احسان په طریقه یو زیاتې شے حلال کړے شویدے۔ پدې وجه مسلمانانو له ددې د حاصلولو دپاره خپل مینځ کښې اختلاف نۀ دے پکار، او د جاهلیت د عاداتو او اطوارو نه پورته د اعلیٰ اسلامي اخلاقو ثبوت ورکول پکار دی۔

## د غنیمت او مال فيء فرق

بیا د انفال اطلاق په غنیمت او فيء دواړو باندې کیږي۔ د غنیمت او فيء فرق دا دے چه غنیمت هغې ته وائي چه د مجاهدینو په کوشش سره ملاؤ شوے وي، او فيء هغې ته وائي چه د امیر په صلح یا هغه ته په هدیه سره حاصل شي، یا ورته په طریقه د جزیه حاصل شي۔

د غنیمتونو په باره کښې دلته اجمال شویدے او ددې تفصیل روستو په آیت (٤١) ﴿وَاعْلَمُوْا اَنَّمَا غَنِمْتُمْ مِنْ شَيْءٍ فَاَنَّ لِلّٰهِ خُمُسَهٗ﴾ کښې بیان کړیدے، لهذا د غنیمتونو د مالونو پنځمه حصه د رسول الله ﷺ سره پاتې شوه چه په هغې کښې هغه د خپلې مرضۍ مطابق تصرف وکړو، د هغې نه ئې بعض صحابه کرامؓ ته د خپل طرف نه تشجیعي انعامات ورکړل او باقي څلور حصې ئې د مجاهدینو تر مینځ تقسیم کړلې۔

او د مال فيء حکم دا وو چه دا ټول د رسول الله ﷺ وو چه هغه پرې څه کول د هغه خوښه وه، او د هغه د وفات نه روستو دا د ټولو مسلمانانو تر مینځ مشترك دے، د چا چه حاجت زیات وي هغه له به ورکولے شي، لکه قاضیانو له به ورکولے شي، د مجاهدینو تنخواه به ددې نه ورکولے شي، دارنګه کونډو، او یتیمانانو له، نو د چا چه څومره ضرورت وي د هغې مطابق به د وخت حاکم ته درخواست لیکي او هغه به ئې ورکوي۔

ابن جریرؒ وائی : غوره دا ده چه په آیت کښې د ((انفال)) نه مراد هغه مال دے چه رسول الله ﷺ بعض مجاهدینو ته د هغوی د حصو نه زیاتی ورکړے وو. لکه چه نبی کریم ﷺ سعد بن ابی وقاص ؓ ته د سعید بن العاص توره ورکړے وه.

لِلّٰهِ وَالرَّسُوْلِ : ددے مطلب دا نهٔ دے چه دا د الله او د رسول دی تاسو له به پکښې هیڅ نهٔ درکوی، بلکه مطلب دا دے چه حکم به پدے کښې د الله او د رسول چلیږی.

وَاَصْلِحُوْا ذَاتَ بَيْنِكُمْ : د مسلمانانو د دینی او اخلاقی تربیت د پاره د تقوی او خپل مینځ کښې د اُلفت او محبت او د الله او د رسول د اطاعت حکم وشو.

په صحیح حدیث کښې دی [اَلَا اُخْبِرُكُمْ بِاَفْضَلَ مِنْ دَرَجَةِ الصِّيَامِ وَالصَّلَاةِ وَالصَّدَقَةِ ؟، قَالُوْا : بَلٰى، قَالَ : اِصْلَاحُ ذَاتِ الْبَيْنِ وَفَسَادُ ذَاتِ الْبَيْنِ الْحَالِقَةُ].

(ابوداود : ٤٩٢١) والترمذی (٢٥٠٩)

آیا زهٔ تاسو ته د روژے، د مانځه او صدقے نه اوچتے درجے والا عمل نهٔ ښایم ؟ صحابه کرامو عرض وکړو، ولے نهٔ، وے فرمایل : خپل مینځ کښې جوړجاړے صائل دی، او خپل مینځ کښې فساد (وړانے) دین خریونکے (ختمونکے) دے.

پدے کښې دے ته اشاره ده چه مؤمنانو له د جاهلیت د عاداتو او اطوارو نه په کلی توګه وړاندے کیدل پکار دی، ځکه چه اسلام د مسلمانانو دپاره دینی او اخلاقی خکته والے نهٔ برداشت کوی.

اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ : مطلب دا دے چه پدے درے خبرو باندے د عمل نه بغیر ایمان مکمل نهٔ دے، او دا درے څیزونه د ایمان تقاضا ده، او د ایمان د لوازماتو نه دی. خاصکر د غنیمت په تقسیم کښې پدے درے حکمونو باندے عمل کول نهایت ضروری دی، ځکه د مال په تقسیم کښې خپل مینځ کښې د فساد سخته خطره شته، پدے وجه ئے اصلاح ذات البین باندے زور ورکړو او په غنیمت کښې د خیانت هم امکان شته پدے وجه ئے د تقوی حکم وکړو او ددے سره سره بیا هم که کومه کوتاهی کیږی نو د هغے حل د الله او د رسول په تابعداری کښې پټ دے.

| اِنَّمَا الْمُؤْمِنُوْنَ الَّذِيْنَ اِذَا ذُكِرَ اللّٰهُ وَجِلَتْ قُلُوْبُهُمْ |
| --- |
| یقیناً مؤمنان هغه کسان دی چه کله یاد کړے شی الله تعالیٰ ویریږی زړونه د هغوی |

| وَإِذَا تُلِيَتْ عَلَيْهِمْ آيَاتُهُ زَادَتْهُمْ إِيمَانًا |
|---|
| او کله چه لوستلے شی په دوی باندے آیتونه د هغهٔ نو زیاتوی دوی لره ایمان |
| وَعَلَىٰ رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ ﴿٢﴾ الَّذِينَ يُقِيمُونَ الصَّلَاةَ |
| او خاص په خپل رب باندے ځان سپاری دوی۔ هغه کسان دی چه پابندی کوی د مانځه |
| وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ يُنْفِقُونَ ﴿٣﴾ |
| او د هغه مال نه چه ورکړیدے مونږ دوی ته خرچ کوی۔ (په لار د الله کښې) |
| أُولَٰئِكَ هُمُ الْمُؤْمِنُونَ حَقًّا ۚ لَهُمْ دَرَجَاتٌ |
| دا کسان خاص دوی مؤمنان دی په رشتیا (یقیناً)، دوی دپاره درجے دی |
| عِنْدَ رَبِّهِمْ وَمَغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ ﴿٤﴾ |
| په نیز د رب د دوی او بخنه ده او رزق دے عزتمند۔ |

**تفسیر**: پدے آیت کښې اِنْتِقَال مِنَ الدُّنْيَا إِلَى خِصَالِ الْإِيمَان دے یعنی د دنیا نه د ایمان خصلتونو ته نقل کیدل دی او ایمان والو ته اُوچت همت ورکول دی۔

او پدے دوه آیتونو کښې الله تعالیٰ د مؤمنانو صفات بیان کړیدی: اولنے صفت دا دے چه کله دوی ته الله تعالیٰ رایاد کړے شی، نو د الله تعالیٰ د عظمت او هیبت په تصور سره په دوی رعب او یره راشی او د یرے په وجه د دوی وینسته ودریږی چه چرته داسے ونهٔ شی چه مونږ نه د الله تعالیٰ نافرمانی شوی وی او د هغه په نیو که کښې راشو۔

د حسن بصریؒ نه چا تپوس وکړو چه آیا ته مومن ئے؟ هغه ووئیل: که د سورة الانفال ددے آیت مؤمنان واخلے نو زهٔ نهٔ پو هیږم چه آیا زهٔ په دوی کښې داخل یم او که نهٔ؟ ځکه چه دا خو ډیر اوچت مؤمنان دی۔ او که چرته الله تعالیٰ او آخرت او رسول الله ﷺ او کتاب الله منل واخلے نو بیا مؤمن یم۔ مطلب دا دے چه یو د عقیدے والا ایمان دے، پدے معنیٰ باندے عام مسلمانان مؤمنان دی چه ټول ایمانیات منی، او دویم د ایمان کیفیت دے نو پدے اعتبار سره ډیر کسان پدے ایمان کښې نهٔ داخلیږی۔

اِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ: پدے کښې حصر ذکر شویدے یعنی مؤمن به نهٔ وی مگر هغه څوك چه دا صفات لری۔ یعنی که دا مجموعه صفات پکښې وی نو اُوچت مؤمن دے او که بعض

پکښې وی نو بیا به نفس مؤمن وی.

## د ایمان تعریف

او پدې آیت کښې د ایمان تعریف هم ذکر شویدې یعنی ایمان نوم دې د هغه کیفیتِ قلبی چه هغه د الله تعالیٰ نه یریدل او د هغه یادول او د الله تعالیٰ په ذات توکل او اعتماد کول او هغه ته توجه کول په مانځه سره او د هغه په مخلوق باندې شفقت کول دی. دا تول چه راغونډ کړې او ددې نه یو کیفیت جوړ شی نو دغې ته ایمان وائی. او ددې نه معلومه شوه چه ایمان کښې زیادت او کمې راځی لکه چه دا د محدثینو مسلك دې.

ذُكِرَ اللهُ : یعنی کله چه د الله تعالیٰ نوم واخستې شی، یا د الله تعالیٰ په باره کښې ورته څوك تذکره کوی، د هغه برهانی بیانوی.

وَجِلَتْ : وجل په معنیٰ د یرې او رپیدو سره دې، د الله تعالیٰ نه یره په دوه قسمه ده، یو د عوامو او بل د خواصو، د عوامو یره د عِقاب (عذابونو) نه ده، او د خواصو یره د الله تعالیٰ د هیبت او عظمت نه ده، چه د هغه جلال ډیر لوی دې، او د هغه مخې ته ودریدل ډیر سخت دی. نو د کاملو مؤمنانو په زړونو کښې دا یره وی چه د الله تعالیٰ هیبت ډیر سخت دې، د هغه مخې ته به څنګه ودریږو.

## سوال وجواب

سوال دا دې چه قرآن کښې دی ﴿اَلَا بِذِكْرِ اللّٰهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوْبُ﴾ (الرعد: ۲۸) د الله تعالیٰ په ذکر خو د زړونو اطمینان راځی، او دلته وائی چه یره پرې راځی؟ جواب دا دې چه یره په دوه قسمه ده، یو د مخلوق نه یره ده، او بل د خالق نه، د مخلوق نه یره اضطراب او پریشانی پیدا کوی، سوچ کوی چه بنده چرته لاړ شی، د خالق نه یره اطمینان پیدا کوی، په بنده کښې سکون وقار او جمال پیدا شی، او دا هسې پریشانی نۀ ده بلکه زړه مضبوطوی. نو د دواړو آیتونو ترمینځ –ولله الحمد– هیڅ منافات نشته.

تُلِيَتْ عَلَيْهِمْ : د دوی دویم صفت دا دې چه کله د دوی مخې ته د قرآن کریم تلاوت کیږی، نو د دوی په ایمان او یقین کښې زیادت کیږی، او د دوی زړونو ته سکون او اطمینان حاصلیږی.

دا آیت پدې باره کښې بالکل ښکاره دلیل دې چه د مؤمن ایمان خکته، پورته کیږی. او

ددے زیادت سبب ئے قرآن دے۔ شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله په خپل کتاب «الایمان» کښې د ابوعبید القاسم بن سلامؒ په حواله د یو سل شپږ دیرشو (۱۳۶) علماؤ نومونه ذکر کړیدی چه د هغوی عقیده وه چه ایمان کښې کمے زیاتے راتللے شی۔ امام بخاری رحمه الله وائی چه ما د زرو علماؤ نه د زیاتو سره ملاقات وکړو د هغوی ټولو همدغه عقیده وه۔

د ائمه کرامو (مالك، شافعی او احمد) رحمهم الله همدغه عقیده وه۔ امام ابوحنیفه رحمه الله پدے مسئله کښې سهوه شویدے، د هغه دا خیال وو چه ایمان کښې کمے زیاتے نهٔ کیږی چه دا د ښکاره آیت خلاف دے۔ او دا څومره بې انصافی ده چه د امام ابوحنیفةؒ او اشاعره او ماتریدیه ؤ دپاره بنده په آیت کښې تاویلونه شروع کړی چه د زیادت د ایمان نه ظهور د ایمان مراد کوی یعنی ایمان به ئے ښکاره شی او زړا پکښې پیدا شی او مخے ته راشی۔

وَّعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ : د دوی دریم صفت دا دے چه دوی په هر حال کښې صرف په خپل رب بهروسه لری او د غیر الله نه هیڅ امید نهٔ لری، او نهٔ یریږی او نهٔ غیر الله ته خپل معاملات سپاری۔ او دا د جهاد سره هم متعلق دے ځکه چه په جهاد کښې توکل ډیر پکار راځی، که د مجاهد توکل نهٔ وی نو هر ځای به یریږی چه دلته به مړ شم او هلته به مړ شم، او چه توکل ئے وی نو بیا به وائی چه دا د الله حکم دے چه هغه کومه ورځ ټاکلے ده زما مرګ لیکلے وی زهٔ ورته تسلیم یم۔ او توکل ئے دے دپاره هم راوړو چه که یو مجاهد ته مال ملاؤ نشو نو په الله دے ځان وسپاری او دا دے نهٔ وائی چه که دا مال راته ملاؤ نشو نو زهٔ به څه خورم؟۔ او په الله تعالیٰ توکل د هغه چا جوړیږی چه د الله تعالیٰ سره ئے تعلق وی ځکه وریسے بل صفت د مانځه راوړی۔

الَّذِيْنَ يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ : ددے مؤمنانو څلورم صفت دا دے چه دوی فرض مونځونه په اول وخت کښې د تمامو ارکانو او واجباتو د لحاظ سره ادا کوی۔

وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ : او د دوی پنځم صفت دا دے چه دوی د الله تعالیٰ د ورکړی رزق نه د هغه په لاره کښې خرچ کوی۔ نو مؤمن به صرف راجمع کولو والا نهٔ وی، بلکه لګولو والا به هم وی۔

هُمُ الْمُؤْمِنُوْنَ حَقًّا : یعنی دا خلك رښتینی مؤمنان دی، د دوی په ایمان کښې هیڅ شك او شبهه نشته، دا د الله تعالیٰ د طرفنه دوی ته سرټیفیکیټ (سند) ملاؤ شو۔

لَهُمْ دَرَجٰتٌ : درجات یو په دنیا کښې وی، بل په آخرت کښې، دنیا کښې درجات دا دی چه عزت به ئے ډیر شی، او په آخرت کښې د عزت ډیریدو سره سره به الله تعالیٰ په جنت کښې

اُوچتے درجے ورکړي-

وَرِزْقٌ كَرِيْمٌ : يعني دوی ته به په جنت کښې عزتمند رزقونه ملاوېږي- رزق کريم د ميلمنو رزق ته وائي، ميلمه له بنده څنګه خوراك په تياره راوړي، د هغې تصور ذهن ته راوله-

| |
|---|
| كَمَآ اَخْرَجَكَ رَبُّكَ مِنْۢ بَيْتِكَ بِالْحَقِّ م وَاِنَّ فَرِيْقًا |
| لکه څنګه چه راويستلے ئے ته رب ستا د کور ستا نه د حق دپاره او يقيناً يوه ډله |
| مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ لَكٰرِهُوْنَ ﴿٥﴾ يُجَادِلُوْنَكَ فِى الْحَقِّ بَعْدَ مَا |
| د مؤمنانو خامخا خفه وو (طبعاً)- بحث ئے کولو تا سره په حق کښې پس د هغے نه |
| تَبَيَّنَ كَاَنَّمَا يُسَاقُوْنَ اِلَى الْمَوْتِ وَهُمْ يَنْظُرُوْنَ ﴿٦﴾ |
| چه ښکاره شوے وو ګويا که بوتللے شي دوی مرګ ته او دوی ورته ګوري- |

**تفسير** : په مخکنو آيتونو کښې الله تعالىٰ دا خبره وکړه چه د غنيمت د تقسيمولو واك د الله تعالىٰ او رسول دپاره دے او د هغوی په حکم به تقسيمېږي، نو اُوس ددے علتونه بيانوي چه دا به څکه د رسول الله ﷺ په حکم تقسيمېږي چه الله تعالىٰ اے رسوله ! ته جهاد ته ويستلے ئے، مدد درسره الله تعالىٰ کړيدے، دعا درله الله تعالىٰ قبوله کړيده او ملائك الله تعالىٰ رالېږلي دي، باران الله تعالىٰ کړيدے، کافران الله تعالىٰ ذليله کړيدي نو بس مال به هم د هغه په حکم تقسيمېږي-

دويمه طريقه : پدے آيتونو کښې د ايمان او د تقوىٰ دپاره علتونه بيانوي چه د الله تعالىٰ نه ويرېږئ او په الله تعالىٰ صحيح ايمان راوړئ، دغه الله ته وګورئ چه په بدر کښې څومره لږ کسان وئ، او مدد ئے درسره وکړو او غلبه ئے درکړه، او په موقعه باندے ئے درباندے باران نازل کړو، او ملائك ئے راوليږل، او کافرانو ته ئے ونه سپارلئ، نو دا ټول ددے خبرے دلائل دي چه د الله تعالىٰ نه په هر ځاى کښې ويرېږئ او په هغه صحيح ايمان راوړئ، څکه دغه الله تعالىٰ نه بدليږي، په هر ځاى کښې به درسره مددونه کوي- نو پدے آيتونو کښې د الله تعالىٰ قدرتونه او د مؤمنانو سره د هغه مدد، او د هغه احسانات بيانيږي-

او د آيتونو په اسرارو کښې هم دا خبره ده چه الله تعالىٰ ته د مؤمنانو جهادي او انقلابي

ژوندگی ډیره خوښه ده۔ الله فرمائي : ﴿بَلۡ نَقۡذِفُ بِالۡحَقِّ عَلَى الۡبَاطِلِ﴾ (بلکه مونږ حق په باطل باندے ورولو) (انبیاء : ۱۸) ځکه ئے مؤمنان او کافر په جګړه اچولی دی، الله تعالیٰ ورته کوری چه څوك د الله تعالیٰ دپاره غیرت کوی او څوك ئے نهٔ کوی۔ او پدے آیتونو کښې دغسے اسرار نور هم شته۔

## شان نزول

حافظ ابن مردویهؒ د ابوایوب انصاری ﷺ نه روایت کړیدے چه کله صحابه کرامؓ د قریشو د قافلے د تعاقب (رالاندے کولو) دپاره یوه ورځ یا دوه ورځے لاړه ووهله نو نبی کریم ﷺ خلقو ته ووئیل چه کیدے شی چه ستاسو د قریشو کافرانو سره جنګ راشی نو صحابه کرامؓ ووئیل چه د دشمنانو سره د مقابلے طاقت په مونږ کښې نشته دے (ځکه چه مونږ د جنګ د تیاری کولو سره نهٔ یو راوتلی) زمونږ اراده خو صرف د قافلے والو سره مقابله ده۔ نبی کریم ﷺ دوباره دا سوال وکړو، او صحابه وُ د مخکښې په شان جواب ورکړو نو مقداد بن عمرو ﷺ ووئیل چه اے د الله رسوله ! مونږ تا ته داسے جواب نهٔ درکوو لکه څنګه چه د موسیٰ ؑ قوم هغه ته جواب ورکړے وو۔ ابو ایوب انصاریؓ وائی چه کله انصارو د مقداد دا خبره واوریده نو د هغوی نه هر یو دا ارمان وکړو چه کاش مونږ دا خبره وئیلے وے۔ ددے پس منظر بیانولو دپاره الله تعالیٰ ددے سورت آیت (۵) ﴿كَمَا أَخۡرَجَكَ رَبُّكَ مِنۢ بَيۡتِكَ بِالۡحَقِّ وَإِنَّ فَرِيقًا مِّنَ الۡمُؤۡمِنِينَ لَكَارِهُونَ﴾ نازل کړو۔ او اصل د حدیث په بخاری کتاب المغازی کښې دے۔

كَمَآ أَخۡرَجَكَ : ۱– بحر محیط کښې ابوحیانؒ لیکی چه دا د (ٱلۡأَنفَالُ لِلَّهِ وَٱلرَّسُولِ) سره متعلق دے، یعنی لکه څنګه چه الله تعالیٰ تهٔ د کور نه د قتال دپاره ویستلے نو پکار ده چه مال غنیمت هم د الله تعالیٰ او د هغه د رسول د حکم مطابق تقسیم شی۔

۲– علامه بغویؒ د مبردؒ نه داسے مناسبت نقل کړیدے [ٱلۡأَنفَالُ لِلَّهِ وَٱلرَّسُولِ وَإِنۡ كَرِهُوا كَمَا أَخۡرَجَكَ رَبُّكَ مِنۢ بَيۡتِكَ بِالۡحَقِّ وَإِنۡ كَرِهُوا] یعنی مال غنیمت به د الله او د رسول په حکم تقسیمیږی اګرکه بعض خلك ئے بد ګنړی لکه څنګه چه تهٔ خپل رب د کور نه ویستلے په حق سره اګرکه بعض مؤمنانو هغه وتل بد ګڼړل۔

۳– عکرمهؒ وائی : تقدیر د عبارت داسے دے فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَأَصۡلِحُوا ذَاتَ بَيۡنِكُمۡ فَإِنَّ ذٰلِكَ خَيۡرٌ لَّكُمۡ، كَمَا أَنَّ إِخۡرَاجَ مُحَمَّدٍ ﷺ مِنۡ بَيۡتِهِ بِالۡحَقِّ خَيۡرٌ لَّكُمۡ، وَإِنۡ كَرِهَهُ فَرِيقٌ مِّنۡكُمۡ۔ (بغوی)

د الله تعالیٰ نه یره وکړئ او خپل مینځ کښې جوړ جاړے ساتئ؛ ځکه دا کار ستاسو دپاره غوره دے لکه څنګه چه ویستل د محمد ﷺ د هغه د کور نه په حق سره ستاسو دپاره غوره وو اګرکه ستاسو نه یو یے ډلے بد ګنړلو۔

٤– د آیت بل مطلب دا بیان شویدے چه لکه څنګه چه تاسو د غنیمت د مالونو په تقسیم کښې اختلاف وکړو او د څه اخلاقي خکته والي مظاهره مو وکړه نو الله تعالیٰ هغه خپل رسول ته حواله کړل او هغه په عدل او انصاف سره تقسیم کړل، او آخر کښې پته ولګیده چه د مسلمانانو په همدے کښې مصلحت او فائده وه۔ دغه شان الله تعالیٰ خپل رسول لره د هغه د کور یعني مدینې نه د اسلام او د مسلمانانو د مصلحت دپاره راوویستلو چه په هغې صرف الله تعالیٰ خبر وو، حال دا چه د مسلمانانو په یو یے ډلے دا خبره ډیره ګرانه تیره شوه چه دوی د قافلے د مقابلے دپاره راوتلی دی، او اوس به هغوی ته د قریشو د لښکر سره د جنګ کولو خبره کیږی۔ نو جنګ وشو او الله تعالیٰ مسلمانانو ته فتح او نصرت او د غنیمت مالونه ورکړل نو په آخر کښې ورته فائده ملاؤ شوه۔

(التحریر والتنویر)

٥– لنډ او ښه احتمال دا هم دے چه مبتداء حذف ده [اَیْ حَالُهُمْ فِیْ کَرَاهَةِ تَنْفِیْلِ (اَوْ تَقْسِیْمِ) الْغَنَائِمِ کَحَالِهِمْ فِیْ کَرَاهَةِ الْخُرُوْجِ لِلْحَرْبِ] یعني د دوی حال په تقسیم د غنیمتونو کښې داسے دے لکه حال د دوی په هغه وخت چه ته جنګ دپاره وتلے یعني اوس تقسیم بد ګنړی او هغه وخت کښې ئے وتل بد ګنړل۔ (القاسمیؒ)

پدے کښې قرطبیؒ او ابو حیانؒ وغیره پنځلس توجیهات او ابن عادلؒ شل اقوال نقل کړیدی چه اکثر بعید دی د آیت خوند خرابوی۔

لَکَارِهُوْنَ: سوال دا دے چه جهاد بد ګنړل خو کفر دے نو دوی څنګه قتال بد ګنړلو؟ جواب دا دے چه دا کراهت طبعي دے، ځکه چه د جهاد دپاره کله تیاری نۀ وی، او انسان ورته ذهني طور سره تیار نۀ وی، نو بیا ډیر ګران کار وی، او د دوی مقصد د جهاد نه انکار نۀ وو بلکه جهادونو دپاره خو د دوی ژوند وقف وو۔ او کومو مفسرینو لکه مدارك وغیره چه لیکلی دی چه ددے نه مراد منافقان دی، نو دا خبره کمزورے ده ځکه چه د بدر په غزا کښې منافقان نۀ دی شریك شوی۔

یُجَادِلُوْنَكَ فِی الْحَقِّ: یعني دوی بحث کوی تا سره۔

فِی الْحَقِّ: د حق نه مراد دلته دکافرانو د قتال میدان ته راوتل دی او دا قانون دے چه کله

کافران د قتال میدان ته راشي، نو پدې وخت کښې په مؤمنانو باندې قتال فرض شي، بیا به نۀ روستو کیږي۔ دا د مؤمن د غیرت خلاف ده۔

كَاَنَّمَا يُسَاقُوْنَ : پدې کښې الله تعالیٰ د مسلمانانو همدا ذهني کیفیت بیان کړیدې او دا کیفیت د دوی د ایماني کمزورۍ په وجه نۀ بلکه د هغوی د پریشانۍ او د جنګ دپاره د مادي تیارۍ نۀ کیدو په وجه وو۔ حال دا چه د مشرکانو شمار یو زر ته نژدې وو او په پوره طریقې سره د جنګ تیارۍ کولو سره راغلي وو۔

او پدې کښې ایمان والو ته تعلیم او تربیت ورکولې شي چه کله کافران ستاسو مقابلې ته راووتل نو بیا چه هر څه کیږي، تاسو به نۀ روستو کیږئ او زړونه به نۀ بهیلئ، او دا رنګه قتال به مُرادف د مرګ نۀ ګنړئ ځکه چه د مرګ دپاره خپل وخت مقرر دې او هغه د الله تعالیٰ په لاس کښې دې۔

| وَاِذْ يَعِدُكُمُ اللّٰهُ اِحْدَى الطَّآئِفَتَيْنِ اَنَّهَا لَكُمْ |
|---|
| او کله چه وعده وکړه تاسو سره الله تعالیٰ د یو د دواړو ډلو نه چه دا به ستاسو وي |
| وَتَوَدُّوْنَ اَنَّ غَيْرَ ذَاتِ الشَّوْكَةِ تَكُوْنُ لَكُمْ وَيُرِيْدُ اللّٰهُ |
| او خوښول تاسو چه بې وسلې ډله دې ستاسو دپاره شي او غوښته الله تعالیٰ |
| اَنْ يُّحِقَّ الْحَقَّ بِكَلِمٰتِهٖ وَيَقْطَعَ دَابِرَ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۷﴾ |
| چه ښکاره کړي حق لره په وعدو خپلو سره او پریکړي جرړې د کافرانو۔ |
| لِيُحِقَّ الْحَقَّ وَيُبْطِلَ الْبَاطِلَ وَلَوْ كَرِهَ الْمُجْرِمُوْنَ ﴿۸﴾ |
| دې دپاره چه غالب کړي حق لره او ختم کړي باطل لره اګرکه بد ګنړي مجرمان۔ |

**تفسیر** : کله چه داسې سخته موقعه راشي نو الله تعالیٰ غیبي مددونه رالیږي لکه اول مدد دا وو چه رسول الله ﷺ خوب ولیدو چه الله تعالیٰ مونږ لره په یو د دوه ډلو باندې غلبه راکړیده، د ابوسفیان په قافله یا په نورو مشرکانو۔ دا خوب ئې صحابه کرامؓ ته ووئیلو نو هغوی هم خوشحاله شو، او د هغوی یقین راغې چه ضرور به مونږ ته الله تعالیٰ دغه ډله راکوي، لیکن د دوی ذهن دا وو چه دا به د ابوسفیان قافله وي ځکه چه هغه په آسانۍ سره وهلې کیږي، ځلوېښت کسان ورسره دي۔ لیکن الله تعالیٰ د بلې سختې ډلې اراده

کړې وه ځکه چه په هغې کښې فائده وه دې دپاره چه کافران ذليله شي او حق ښکاره شي۔
دويم مدد روستو ﴿إِذْ تَسْتَغِيثُونَ﴾ کښې راځي چه دعاګانې الله تعالىٰ د نبی کريم ﷺ او د صحابه کرامؓ قبولې کړې، او دريم مدد د ملائکو راليږل وو، او څلورم مدد (إِذْ يُغَشِّيكُمُ) يعني خوب راوستل، او پنځم د آسمان نه باران راوروول دی، او دې نه علاوه د تقسيم د غنيمت هم وائي لکه مخکښې ئې تفصيل وشو۔
يَعِدُكُمُ اللهُ: اَیْ بِرُؤْيَا النَّبِيِّ ﷺ۔ الله تعالىٰ تاسو سره وعده وکړه په خوب د رسول الله ﷺ کښې چه دا خوب ئې په هغه وخت کښې وليدو چه کله د قريشو د راوتلو نه خبر شو لکه د امام بغویؒ د روايت نه معلوميږي۔
الشَّوْكَةِ: دا په اصل کښې حِدَّت (تيزی) شِدَّتْ، (سختي) او قوت ته وائي او ازغي ته هم وائي، بيا ددې نه مراد هر قسم وسله وی۔ دلته دا ټولې معاني صحيح دی۔ يعني تاسو دا خوښوله وه چه غير قوي او تيزه او بې وسلو والا ډله ستاسو شي۔
أَنْ يُحِقَّ الْحَقَّ بِكَلِمَاتِهِ: اَیْ بِأَمْرِهٖ وَعِدَاتِهٖ) (بغوی) د کلمات نه مراد حُکم او وعدې دی۔ يعني الله د مخکښې نه وعده کړې وه چه زهٔ به خپل دين مضبوطوم، او د هغې طريقه دا وه چه د قريشو مشرانو مشرکانو سره مقابله وشي او هغه ختم شي۔
دَابِرَ الْكَافِرِينَ: د قريشو مشرکان د نورو کافرو جرړې او اصول وو نو د دوی ختمول د اسلام د ترقئ دپاره ضروري وو۔ لکه د جهاد په اصولو کښې هم دا ده چه اصل کافر مخکښې ختم کړې شي نو ځانګې به روستو خپله ختميږي پدې وجه الله تعالىٰ قريش کافران مخکښې ختمول۔
لِيُحِقَّ الْحَقَّ: پدې آيت کريمه کښې الله تعالىٰ د قريشو د لښکر سره د جنګيدو حکمت او مصلحت بيان کړيدې چه الله تعالىٰ غوختل چه د باطل ملا ماته کړی او د حق دين خپه هميشه دپاره مضبوطه شي۔
او دا متعلق دې د (لِيَقْطَعَ) پورې يعني د کافرانو جرړې ولې وباسي؟ نو مقصد پکښې دادې چه الله تعالىٰ حق راښکاره کړی۔ وګوره څومره کمو خلکو ته الله تعالىٰ په ډيرو غلبه ورکوی، معلوميږي چه د دوی سره د الله تعالىٰ مدد دې او دوی په حق دين روان دی۔
وَيُبْطِلَ الْبَاطِلَ: اَیْ يُظْهِرَ بُطْلَانَ الْبَاطِلِ۔ يعني خلکو ته د باطل باطلوالې ښکاره کړی۔
بغویؒ معنیٰ کوی: لِيُثْبِتَ الْإِسْلَامَ وَيُنْفِيَ الْكُفْرَ۔ دې دپاره چه الله تعالىٰ اسلام مضبوطه کړی او کفر ختم کړی۔

وَلَوْ كَرِهَ الْمُجْرِمُوْنَ : د مجرمانو نه مراد يهوديان، منافقان او مشركان وو چه دا ټول د مسلمانانو په وهلو خوشحاليدل۔

| |
|---|
| اِذْ تَسْتَغِيْثُوْنَ رَبَّكُمْ فَاسْتَجَابَ لَكُمْ اَنِّيْ مُمِدُّكُمْ |
| كله چه فرياد كولو تاسو رب خپل ته نو قبول ئے كړه دعا ستاسو چه زۀ امداد كوم تاسو سره |
| بِاَلْفٍ مِّنَ الْمَلٰٓئِكَةِ مُرْدِفِيْنَ ﴿۹﴾ وَمَا جَعَلَهُ اللّٰهُ |
| په زرو (۱۰۰۰) تنه د ملائكو سره يو بل پسے راتلونكي. او نۀ دے كړخولے الله تعالىٰ دا |
| اِلَّا بُشْرٰى وَلِتَطْمَئِنَّ بِهٖ قُلُوْبُكُمْ ۚ |
| (ملائك رالیږل) مګر زیرے او دے دپاره چه مضبوط شي پدے سره زړونه ستاسو |
| وَمَا النَّصْرُ اِلَّا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿۱۰﴾ |
| او نۀ دے مدد مګر د الله د طرف نه دے، يقيناً الله غالبه حكمتونو والا دے۔ |
| اِذْ يُغَشِّيْكُمُ النُّعَاسَ اَمَنَةً مِّنْهُ وَيُنَزِّلُ |
| كله چه پټ كړئ الله تعالىٰ تاسو په خوب سره دپاره د امن د طرفه د الله نه او نازل ئے كړو |
| عَلَيْكُمْ مِّنَ السَّمَآءِ مَآءً لِّيُطَهِّرَكُمْ بِهٖ وَيُذْهِبَ عَنْكُمْ |
| په تاسو د آسمان نه اوبه دے دپاره چه پاك كړي تاسو په هغے سره او بوځي ستاسو نه |
| رِجْزَ الشَّيْطٰنِ وَلِيَرْبِطَ عَلٰى قُلُوْبِكُمْ |
| پليتي (وسوسه) د شيطان او دے دپاره چه مضبوطوالے راولي په زړونو ستاسو |
| وَيُثَبِّتَ بِهِ الْاَقْدَامَ ﴿۱۱﴾ |
| او كلك كړي پدے سره قدمونه ستاسو۔ |

**تفسير** : امام مسلمؒ د ابن عباس ﷺ نه روايت كړيدے چه هغه وئيل چه ما ته عمر بن خطاب ﷺ بيان كړيدے چه د غزوۀ بدر په ورځ رسول الله ﷺ وليدل چه د مشركانو شمار يو زر دے او صحابةؓ صرف درے سوه لس او څه دپاسه دي۔نو قبلے ته ئے مخ كړو او لاس ئے پورته كړو او دعا ئے شروع كړه چه اے الله! تا چه ما سره كومه وعده كړے وه هغه نن ما سره

پوره کړه، (اَللّٰهُمَّ أَنْجِزْ لِيْ مَا وَعَدْتَنِيْ) اے الله! ما سره چه دې کومه وعده کړے وه هغه راکړه، [اَللّٰهُمَّ إِنْ تَهْلِكْ هٰذِهِ الْعِصَابَةُ مِنْ اَهْلِ الْإِسْلَامِ لَاتُعْبَدُ فِي الْأَرْضِ!] (مسلم: ٤٦٨٧)

اے الله! که د مسلمانانو دا جماعت هلاك شي نو په زمکه کښې به ستا عبادت څوك کوی؟ رسول الله ﷺ په خورو لاسونو سره همدغسے دعا کوله تردے چه د هغه څادر د هغه د اوګو نه پریوتو نو ابوبکر ﷺ د هغه څادر د هغه اوګو ته بیرته راواپس کړو او وے وئیل چه اے د الله نبی! اوس بس کړه، الله تعالیٰ به تا سره ضرور خپله وعده پوره کوی۔ نو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو انتهیٰ۔ ددے نه دا فائده معلومیږی چه په جهاد کښې به ظاهری سبب او دعاګانے دواړه استعمالولے شی۔

## اشکال او جواب

سوال: آیا رسول الله ﷺ د ابوبکر ﷺ نه هم زیات بی اطمینانه وو (عیاذًا بالله) حال دا چه په غار ثور کښې ابوبکر ﷺ ډیر بی چینه وو او رسول الله ﷺ په اطمینان وو؟ ددے په تطبیق کښې امام خطابیؒ وئیلی دی چه دا ګمان خطاء دے چه ابوبکر ﷺ د نبی کریم ﷺ نه په الله تعالیٰ باندے په اعتماد کښې زیات وو بلکه نبی کریم ﷺ دا کار پدے وجه وکړو چه په خپلو ملګرو ئے شفقت کولو او د هغوی د زړونو د مضبوطوالی دپاره ئے داسے وکړل ځکه چه دا اولنئ غزوه وه، نو رسول الله ﷺ پکښې ډیره عاجزی او دعا وکړه دے دپاره چه د ملګرو زړونه ئے په آرام شی ځکه چه هغوی ته معلومه وه چه د رسول الله ﷺ عاجزی او دعا الله تعالیٰ ته قبوله ده، پدے وجه کله چه ابوبکر ﷺ ورته خبره وکړه نو بند شو۔ او هغه ته پته ولګیده چه دعا قبوله شوه ځکه چه د ابوبکر ﷺ زړه ته اطمینان او قوت ملاؤ شو۔ پدے وجه ئے روستو دا آیت ولوستلو (سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَيُوَلُّوْنَ الدُّبُرَ) (القمر:٤٥)۔

(زر دے چه دا ډله به شکست وخوری او شاګانے به راواړوی)

۲-جواب: ځینی وائی رسول الله ﷺ پدے وخت کښې د خوف په مقام کښې وو او دا د مانځه کامل حالت دے، او د نبی ﷺ په نیز دا ممکن وه چه د الله تعالیٰ د مدد وعده دے پدے ورځ نهٔ وی ځکه چه د مدد دغه وعده د دغه واقعے دپاره معینه نهٔ وه، بلکه هغه مجمله وه۔ او همدا خبره ظاهره ده۔ انتهیٰ ما فی فتح الباری)۔

صاحب المنارؒ وائی: د غار ثور مقام د توکل وو ځکه چه په هغے کښې رسول الله ﷺ ظاهری اسباب ټول پوره تیار کړی وو چه توښه او دوه سورلۍ او بیا په غار کښې پټیدل وو

ددے نه روستو د توکل او د الله تعالیٰ په مدد باندے د اعتماد نه سوئ بل هیڅ پاتې نهٔ وو ځکه چه رسول الله ﷺ د وجه د کمال توکل نه په امن او اطمینان کښې وو او الله تعالیٰ پرے سکون نازل کړے وو، او د ملائکو په ذریعه ئے مضبوط کړو، او ابوبکر ﷺ خو دغه درجے ته نهٔ وو رسیدلے نو هغه په یره کښې وو او (د رسول الله ﷺ په نیولو) غمژن وو، نو د رسول الله ﷺ تسلئ ته محتاج وو۔ او هرچه د بدر ورځ وه نو هلته د خوف مقام وو نهٔ د خالص توکل مقام ځکه چه شرعي توکل دا دے چه بنده خپل رب ته ځان وسپاری او د هغه په کامل اهتمام او انتظام اعتماد وکړی، او دا توکل به هله صحیح وی چه کله ظاهری اسباب تیار کړے شی، او دا خبره یقیني معلومه وه چه په جنګ کښې د مدد او غلبے اسباب د مسلمانانو سره په دغه وخت کښې پوره نهٔ وو، نهٔ مادی اسباب لکه نفری، وسلے، خوراك، اسونه او اوښان۔ بلکه ددے نه صرف کمزوری یو څو څیزونه وو او نهٔ معنوی اسباب وو ځکه چه په اول کښې بعض مسلمانانو جنګ طبعي طور سره بد ګڼړلو او د رسول الله ﷺ سره ئے پدے کښې خبرے وکړے، پدے وجه رسول الله ﷺ ویریدو چه هسے نهٔ زما ملګرو ته د دوی په قتل سره هلاکت ونهٔ رسی ځکه چه ظاهری اسباب هم کمزوری او معنوی هم دغه شان، نو رسول الله ﷺ دعا وکړه چه الله تعالیٰ دوی لره د بعضو په تقصیر باندے راګیر نهٔ کړی لکه څنګه ئے چه په غزوه احد کښې د بعض ملګرو په تقصیر سره سزا ورکړه۔ لکه دا د الله تعالیٰ سنت دی۔ او ابوبکر صدیق ﷺ ته دا ټول حالات نهٔ وو معلوم کوم چه رسول الله ﷺ ته معلوم وو نو پدے وجه هغه مطمئن وو۔ انتهیٰ قول صاحب المنار۔ (تفسیر المنار۹/۵۰۳)

اَنِّیْ مُمِدُّكُمْ : او مسلمانانو ته زیرے ورکړے شو چه د رسول الله ﷺ دعا قبوله شوه او الله تعالیٰ به په یو زر ملائکو سره د مسلمانانو مدد کوی، او دا زیرے د مسلمانانو د زړونو د اطمینان دپاره وو ورنه الله تعالیٰ خو بغیر د کوم ظاهری اسبابو نه د خپلو بندګانو په مدد پوره طریقے سره قادر دے۔

امام بخاری رحمه الله د ابن عباس ﷺ نه روایت کړیدے چه نبی کریم ﷺ د بدر په ورځ وفرمایل : [هٰذَا جِبْرِیْلُ آخِذٌ بِرَأْسِ فَرَسِهٖ، عَلَیْهِ اَدَاةُ الْحَرْبِ] دا جبریل دے، چه د خپل آس سر ئے نیولے دے، او د جنګ وسله ئے اغوستے ده۔ (بخاری باب شهود الملائکة بدرا رقم : ۳۹۹۵)

مُرْدِفِیْنَ : یو بل پسے روستو راتلونکی۔ پدے طریقه رالیږلو کښې فائده دا وی چه پدے سره د مجاهدینو زړه وخت په وخت مضبوطیږی، چه وخت په وخت مددونه راروان دی او

نفری زیاتیږی، او چه په یو ځل راشی د هغې وقعت کم وی۔

وَلِتَطْمَئِنَّ بِهٖ : یعنی الله تعالیٰ داتول کافران د یو ملائك په ذریعه هم هلاکولے شی لیکن زر کسان ئے پدے وجه راولیږل چه د مؤمنانو زړونو ته سکون ملاؤ شی، د هغوی ګنړه وینی او الله تعالیٰ دغه ملائك کافرانو ته وربنکاره کړل دے دپاره چه رعب پرے راشی۔

وَمَا النَّصْرُ : یعنی ملائك که مدد هم کوی نو هغه به د الله تعالیٰ په مدد وی ځکه چه هغوی ته هم الله تعالیٰ مدد ورکوی۔ یا د نصر نه مراد فتح ده یعنی اګر که ظاهری مدد ملائکو وکړو لیکن فتح او غلبه ورکول دا صرف د الله تعالیٰ په اختیار کښې وی۔ او ددے قیدونو تفصیلی فوائد سورة آل عمران کښې تیر شویدی۔

يُغَشِّيْكُمُ النُّعَاسَ : یعنی الله تعالیٰ تاسو پټ کړیٔ په خوب کښې، یا ئے راوستو په تاسو باندے خوب لره۔

ځینی وائی چه دا ئے د جنګ نه په مخکښې شپه کښې راوستو چه پدے سره ئے زړونو ته سکون ملاؤ شو۔ ځکه چه د خوف د وجه نه بنده له خوب نهٔ ورځی نو بیا ئے د ورځے صحت خراب وی نو الله تعالیٰ ورته بنه په سکون کښې کړل۔ (القاسمیؒ)

او ځینی وائی چه دا د جنګ په میدان کښې راغلے وو۔

اَمَنَةً : دا هغه امن دے چه اسباب د خوف باقی وی او زړهٔ مطمئن وی۔ لکه تفصیل ئے په سورة آلعمران کښې ذکر شویدے۔

سیدنا عبد الله بن مسعود ﷛ فرمائی : په قتال کښې خوب راتلل د الله تعالیٰ د طرفنه امن وی او په مانځه کښې د شیطان وسوسه وی۔ (معالم التنزیل)

لِيُطَهِّرَكُمْ : مسلمانانو کښې ځینی بی اودسه، او ځینی په جنابت حالت کښې وو او تنده هم وه، نو شیطان پدے وخت کښې وسوسے واچولے چه تاسو کښې نبی هم موجود دے او تاسو ځان ته په حقه وایئ، او اُوس نه داسے په بد حالت کښې یئ نو تاسو به څنګه په هغوی غلبه وکړیٔ؟ نو الله تعالیٰ باران راولیږلو چه مؤمنانو په هغے غسل او اودسونه وکړل او اُوښان ئے خړوبه کړل او لوښی ئے ډك کړل او دُوړه ئے ختمه کړه او زمکه ئے ورته کلکه کړه چه قدمونه پرے نه خوئیدل او د شیطان وسوسه ترے لاړه او نفسونه ئے خوشحاله شو۔

(معالم التنزیل للبغویؒ)

رِجْزَ الشَّيْطٰنِ : رجز اصل کښې پلیتیٔ ته وائی دلته ترے جنابت او وسوسه مراد ده۔

إِذْ يُوحِي رَبُّكَ إِلَى الْمَلَٰئِكَةِ أَنِّي مَعَكُمْ

کله چه وحی کوله رب ستا ملائکو ته چه بیشکه زهٔ ستاسو سره یم

فَثَبِّتُوا الَّذِينَ آمَنُوا ۚ سَأُلْقِي فِي قُلُوبِ الَّذِينَ كَفَرُوا

نو مضبوط کړئ تاسو ایمان والا، زر دے چه وابه چوم په زړونو د کافرانو کښې

الرُّعْبَ فَاضْرِبُوا فَوْقَ الْأَعْنَاقِ وَاضْرِبُوا مِنْهُمْ كُلَّ بَنَانٍ ﴿١٢﴾

رعب (یرے) لره نو ووهئ دپاسه د څټونو او ووهئ ددوی نه هر بند د ګوتو۔

ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ شَاقُّوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ ۚ

دا کار په سبب ددے دے چه دوی خلاف کړیدے د الله او د رسول د هغه نه

وَمَنْ يُشَاقِقِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَإِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ ﴿١٣﴾

او څوک چه خلاف کوی د الله او د رسول د هغهٔ نو یقیناً الله سخت عذاب والا دے۔

ذَٰلِكُمْ فَذُوقُوهُ وَأَنَّ لِلْكَافِرِينَ عَذَابَ النَّارِ ﴿١٤﴾

دا عذاب ستاسو (دے) پس وڅکئ دا او یقیناً کافرانو لره عذاب د اُور دے۔

**تفسیر** : پدے کښې د ملائکو د راتللو طریقه بیانوی۔ او پدے آیت کریمه کښې الله تعالیٰ یـو بـتـ انعام طرف ته اشاره کړیده، دے دپاره چه مسلمانان پدے باندے د خپل رب شکر ادا کړی۔ هغه دا چه الله تعالیٰ ملائکو ته ووئیل چه زهٔ د مسلمانانو سره یم، پدے وجه تاسو د هغوی په ثابت قدم ساتلو کوشش کښې لګیا شئ، د هغوی د زړونو نه وسوسے وباسئ، د هغوی سره ملګری شئ او د کافرانو سره وجنګیږئ، نزدے ده چه زهٔ به د کافرانو په زړونو کښې رعب واچوم۔ او دوی په هر هغه اندام ووهئ چه د دوی د مرګ سبب جوړ شی۔ علماو لیکلی دی چه دا آیت ښکاره دلیل دے چه ملائکو د بدر په میدان کښې اُوګه په اُوګه جنګ کړے وو۔

أَنِّي مَعَكُمْ : ظاهر د قرآن دا دے چه د مَعَكُمْ نه مراد ملائک دی څکه ملائک هم د الله تعالیٰ مدد ته محتاج دی، او بعض وائی چه دلته (قُولُوا لِلْمُؤْمِنِينَ) پټ دے یعنی مؤمنانو ته ووایئ چه زهٔ ستاسو مددګار یم۔

فَثَبِّتُوا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا : ۱– د مؤمنانو د مضبوطولو یوه طریقه دا ده چه د هغوی سره اوګه په اوګه جنګ وکړئ،

۲– او دویمه طریقه دا ده [بِالْاَقْوَالِ الْمُقَوِّيَةِ لِلْقَلْبِ] داسے خبرے وکړئ چه د مؤمنانو زړونه پرے قوی شی چه هغه دے کافرانو شکست وخوړو او دغه دے ونیولے شو۔

سَاُلْقِيْ : دا کلام الله تعالیٰ ملائکو ته وکړو او مؤمنانو ته ئے په قرآن کښ نازل کړو چه ما ستاسو داسے طریقے سره مدد کړیدے۔

فَاضْرِبُوْا : دا خطاب ملائکو او مؤمنانو دواړو ته دے څکه چه دواړه اُوس یوه ډله جوړه شویده۔

فَوْقَ الْاَعْنَاقِ : فوق په معنیٰ د (علی) دے، یعنی په څټ باندے څکه چه کله په څټ ووهل شی، نو بنده ختم شی۔ یا فوق په خپله معنیٰ دے، نو د څټ دپاسه ئے ووهئ یعنی په سر باندے، چه ژوندی درنه پاتے نشی۔

كُلَّ بَنَانٍ : په بندونو باندے ئے څکه وهل پکار دی چه پدے باندے توره راونهٔ نیسی۔

ذٰلِكَ : اشاره ده رعب او ضرب ته۔ نو د رعب دوه سببونه دی یو په سورة العمران (۱۵۱) آیت کښ تیر شویدے ﴿بِمَا اَشْرَكُوْا بِاللّٰهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهٖ سُلْطَانًا﴾ (یعنی پدے وجه چه دوی د الله سره شریکان جوړ کړیدی) او دویم سبب د الله تعالیٰ او د رسول ﷺ مخالفت دے کوم چه پدے آیت کښ ذکر دے او دغسے په سورة الحشر (٤) آیت کښ هم راغلی دی۔

ذٰلِكُمْ فَذُوْقُوْهُ : دا خطاب مشرکانو ته دے او ذٰلِكَ اشاره ده عذاب ته یعنی الله تعالیٰ د قریشو کافرانو ته په دنیا کښ دا عذاب پدے وجه ورکړو چه دوی د الله تعالیٰ او د هغه د رسول خلاف بغاوت وکړو او په آخرت کښ به جهنم د دوی ځای وی۔

وَاَنَّ لِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابَ النَّارِ : ددے نه مخکښ "وَاعْلَمُوْا" (یو هه شئ) پټ دے۔ دا د کفر نحوستونه دی۔

| يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا لَقِيْتُمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا |
|---|
| اے ایمان والو! کله چه ملاؤ شوئ د هغه کسانو سره چه کافران دی |
| زَحْفًا فَلَا تُوَلُّوْهُمُ الْاَدْبَارَ ﴿۱۵﴾ وَمَنْ يُّوَلِّهِمْ |
| په وخت د جنګ کولو کښ نو مهٔ راړوئ دوی ته شاګانے خپلے۔ او چا چه واړوله دوی ته |

| |
|---|
| يَوْمَئِذٍ دُبُرَهٗۤ اِلَّا مُتَحَرِّفًا لِّقِتَالٍ اَوْ مُتَحَيِّزًا |
| په دغه ورځ شا خپله مګر که چل جوړونکې وي د جنګ دپاره یا یو ځای کیدونکې وي |
| اِلٰى فِئَةٍ فَقَدْ بَآءَ بِغَضَبٍ مِّنَ اللّٰهِ وَمَاْوٰىهُ |
| خپلې ډلې سره نو یقیناً اخته شو په غضب د طرفه د الله تعالیٰ نه او ځای د پناهۍ دده |
| جَهَنَّمُ ؕ وَبِئْسَ الْمَصِیْرُ ﴿۱۶﴾ |
| جهنم دے، او بد دے ځای د ورګرځیدو (دا جهنم)۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښې اول قانون د قتال د متعلقاتو نه هغه قانون د زَحف یا اَلْفِرَار مِنَ الزَّحف دے، یعنی د میدان جنګ نه تښتیدل۔ دا د مسلمان دپاره حرامه ده چه د کافر نه راوتښتی او جنګ پریدی ځکه چه دا بې غیرتي ده چه کافر په میدان کښې ولاړ وي او مؤمن ډِے ترے تښتي۔

ددے قانون تشریح داسے ده چه په میدان جنګ کښې دوه کافران وي او یو مسلمان وي نو دے وخت کښې به مؤمن تیښته نۀ کوی کله چه د مؤمن سره هم وسله وي او کافر سره هم۔ او چه کله مؤمن یو وي او کافران د دوو نه زیات وي، یا د مؤمن سره هیڅ وسله نۀ وي، یا مؤمن سره توپك او مشین وي، او د کافر سره جهاز او ټینك وي نو دے وخت کښې مقابله نۀ کیږي، ځان به پرے نۀ وژني بلکه دے به خپلو ملګرو (معسکر) ته راتښتي، او دا تیښته ناروا نۀ ده بلکه دے ته (مُتَحَيِّزًا اِلٰى فِئَةٍ) وائي کوم چه الله تعالیٰ جائز کړيدے۔

دویم صورت : په حدیث کښې ددے بیان راغلے دے چه فرار من الزحف (د میدان جنګ نه تیښته) دا ده چه مجاهد د میدان جنګ نه وتښتي، او لاړ شي کور کښې کیني او د کافرو د رعب په وجه جهاد پریدی، او که په یوه معرکه کښې مسلمان تیښته وکړي د ځان د بچاؤ دپاره او صبا بله ورځ بیا د کافرو د مقابلے دپاره ملګري پیدا کوي او دوباره حمله کوي نو دا په هیڅ شان حرامه نۀ ده۔ دے ته په حدیث کښې عکارون (دوباره حمله کونکي) وئیل شویدي نۀ فرارون (تښتیدونکي) [لَا، بَلْ اَنْتُمُ الْعَكَّارُوْنَ]

(ابو داود والترمذي وسنده ضعيف لاجل يزيد بن ابي زياد–الباني)

زحف په کناتو باندے خوئیدو او ټلیدلو ته وئیلے شي، بیا استعمالیږي د لښکر والي دپاره ځکه چه لښکره داسے روانه وي لکه چه په کناتو ټلیږي۔ او د زحف نه مراد دلته دا هم دے

چه مسلمانان دولس زره وی او کافران یو لاکهـ وی نو مسلمانان هم ګنړ دی دوی به تیښته نهٔ کوی- حدیث کښې دی: [وَلَنْ يُغْلَبَ اثْنَا عَشَرَ أَلْفًا مِنْ قِلَّةٍ] (الحديث)

(ابوداود: ۲۶۱۳ وابن ماجه: ۲۸۲۷) ابن خزيمة: ۲۵۳۸) باسناد صحيح) ـ

دولس زره کسان به هیڅ کله د کموالی په وجه نهٔ مغلوبه کیږی.

لیثؒ وائی: زحف هغه جماعت ته وائی چه دشمن ته په یو ځل وروخوئیږی- او جمع ئے زحوف راځی- یا دا مصدر دے پدے وجه نهٔ دے جمع شوے- (بغوی)

فَلَا تُوَلُّوهُمُ الْأَدْبَارَ: د شا راړولو یو صورت دا دے چه مسلمانان سره د ګنړ والی نه میدان پریدی، سره ددے نه چه وسائل ورسره پوره وی مګر د رعب په وجه داسے وکړی نو دا ناروا ده- البته کـه کافران ګنړ وی او مسلمانان کم وی، یا ورسره هغه شان د دفاع وسائل نهٔ وی نو تیښته جائز ده- دویم صورت دا دے چه بیخی جهاد پریدی لکه مخکښې بیان شو-

د صحابه کرامو یو ډلے د تیختے دے حرمت لره د غزوهٔ بدر پورے خاص کړیدے- یعنی د بدریانو دپاره د میدان پریخودو سره د تیختے هیڅ شرعی ګنجائش نهٔ وو- لیکن د جمهورو علماؤ رائے دا ده چه دا حکم عام دے او د میدان جنګ پریخودو سره تیخته کول په هر حال او هره زمانه کښې حرام دی- ددے رائے تائید د صحیحینو د هغه روایت نه کیږی چه هغه ابو هریره ﷺ روایت کړیدے چه نبی کریم ﷺ وفرمایل چه د اُوه کبیره ګناهونو نـه بچ شئ، او د هغے نـه یو د میدان جـنګ پریخودو سره تیختـه کول ئے هم خودلی-

(وَالتَّوَلِّي يَوْمَ الزَّحْفِ) (صحيح بخاري: ۲۷۶۶)

إِلَّا مُتَحَرِّفًا لِقِتَالٍ أَوْ مُتَحَيِّزًا إِلَى فِئَةٍ: الله تعالیٰ ددے صرف راتلونکی صورتونه جائز کړیدی، یو دا چه سپاهی د بلے اهمے دستے او فوج مدد کول غواړی، یا د هغه نه مدد غواړی، یا دشمن ته ډهوکه ورکولو دپاره داسے کوی، دے دپاره چه ناڅاپی راواپس شی او په هغه باندے حمله وکړی-

مُتَحَرِّفًا: د حِرفت نـه دے کـاروکسب تـه وائی- یعنی چل جوړونکے وی، څه کار کول غواړی چه په دشمن دوباره حمله وکړی-

مُتَحَيِّزًا: تَحَيُّز نـه مـراد یو ځای کیدل او ملاویدل دی خپلے ډلے سره چه هغه په بل ځای کښې ده، هغوی ته ځان رسوی چه هغوی ځان سره ملګری کوی او بیرته حملے دپاره تیاری کوی- سیدنا عبد الله بن عمر ﷺ وائی چه مونږ په یو ځای کښې دشمن نه راوتښتیدو او په مدینه کښې پټ شو چه مونږ خو لوی جرم کړیدے، بیا مو ووئیل چه رسول الله ﷺ

ژوندے دے راځئ؛ چه هغه ته ورشو، مونږ هغه ته ووئیل چه مونږ خو راتښتیدلی یو، رسول الله ﷺ وفرمایل: نهٔ (تاسو تښتیدونکی نهٔ یئ) بلکه تاسو دوباره حمله کونکی یئ، او زه ستاسو فئه یم. (وسنده ضعیف کما مر)

او په عراق کښې څه ملګرو شکست خوړلے وو نو عمر فاروق رضی الله عنه وفرمایل: چه ما ته به راغلی وے زهٔ د هر مسلمان فئه یم.

کابل ته د امریکایانو جهازونه او ټینکونه ورغلل نو بعض عربو تیښته ونکړه، چه چرته فرار من الزحف کښې واقع نشو او بعضو هوښیارتیا وکړه چه اول کښې خو یو طرفته شو، روستو ئے پرے حملے شروع کړے او همدا کار فقاهت فی الدین وو.

| فَلَمْ تَقْتُلُوْهُمْ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ قَتَلَهُمْ ص |
|---|
| پس نهٔ دی وژلی تاسو دوی لره لیکن الله تعالیٰ وژلی دی دوی لره |
| وَمَا رَمَيْتَ اِذْ رَمَيْتَ |
| او نهٔ دی رسولی تا کانړی سترګو د کافرانو ته کله چه ویشتل تا د موټی نه |
| وَلٰكِنَّ اللّٰهَ رَمٰى ج |
| لیکن الله تعالیٰ ورسول سترګو د هغوی ته (او دا کارئے وکړو) |
| وَلِيُبْلِيَ الْمُؤْمِنِيْنَ مِنْهُ بَلَآءً حَسَنًا ط اِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌ |
| دپاره ددے چه ورکړی مؤمنانو ته د خپل طرف نه انعام خائسته، یقیناً الله آوریدونکے |
| عَلِيْمٌ ﴿١٧﴾ ذٰلِكُمْ وَاَنَّ اللّٰهَ مُوْهِنُ كَيْدِ الْكٰفِرِيْنَ ﴿١٨﴾ |
| پوهه دے. دا کار داسے وشو او یقیناً الله کمزورے کونکے دے چل ول د کافرانو. |

**تفسیر**: په دے آیت کښې الله تعالیٰ د خلکو ایمان په خپل ځان جوړوی چه داسے غیبی مددونه صرف زهٔ کوم. او ورسره دا دلیلونه دی ددے دپاره چه مال غنیمت به د الله تعالیٰ او د رسول په حکم تقسیمیږی. یعنی دا عقیده وساتئ چه دا کافران الله تعالیٰ وژلی دی ځکه چه په غزوهٔ بدر کښې د مسلمانانو شمار او سامانونه د کافرانو په مقابله کښې هیڅ نهٔ وو خو بیا هم الله تعالیٰ فتح ورکړه، د ملائکو په ذریعه ئے مدد وکړو، او د هغوی زړونه ئے مضبوط کړل، او کافران ئے ذلیله او رسوا کړل، او په زړونو کښې ئے ورله رعب واچولو.

وَمَا رَمَيْتَ إِذْ رَمَيْتَ : نبی کریم ﷺ په بدر کښې د دعا کولو نه روستو د خیمې نه رابهر شو او ډك موټې خاوره ئې راواخسته او مشرکانو طرف ته ئې گوزار کړه، نو هغه الله تعالیٰ د دوی مخونو ته ورسوله، ځکه چه یو موټې خاوره د یو لوئې لښکر سترگو ته د انسانی طاقت په ذریعه نشي رسیدلې، هغه د الله تعالیٰ ذات وو چه د هغه په قدرت سره داسې کار وشو۔

محمد بن اسحاق وغیره روایت کړیدې چه د بدر په ورځ نبی کریم ﷺ یو موټې خاوره راواخسته او مشرکانو طرف ته ئې وویشتله او وې وئیل (شَاهَتِ الْوُجُوهُ) چه بد ږ شی ددې کافرانو مخونه، نو د الله تعالیٰ په قدرت سره د کافرانو سترگو او پوزو ته ورسیده۔

دې نه روستو نبی کریم ﷺ صحابه کرامو ته د حملې کولو حکم وکړو، نو د الله تعالیٰ په توفیق سره کافرانو ته ماتې ورکړې شوه۔

وَمَا رَمَيْتَ : یعنی تا ونهٔ رسولې شړې د کافرانو سترگو ته کله چه دې د لاسونو نه گوزار کړې لیکن الله تعالیٰ ورسولې۔ نو اول رمیت ایصال الفعل دې، او دویم رمیت ابتداء الفعل دې۔

وَلَٰكِنَّ اللَّهَ رَمَىٰ : لیکن الله تعالیٰ ستا د لاس په شړو سره کافران ویشتل۔ دلته وقف دې یعنی (لِيَغْلِبُوا) دا ددې دپاره چه دوی مرعوبه او مغلوبه شی۔

وَلِيُبْلِيَ : دا عطف دې په پټ (لِيَغْلِبُوا) باندې۔

﴿ وَلِيُبْلِيَ الْمُؤْمِنِينَ مِنْهُ بَلَاءً حَسَنًا ﴾ ۱- یعنی دې دپاره چه الله تعالیٰ احسان وکړی په ایمان والو باندې د خپل طرفنه ښائسته احسان۔ یعنی چه کافران ووهی نو د مؤمنانو زړونه به پرې یخ شی۔

۲- محمد بن اسحاق د عروه بن الزبیر نه ددې تفسیر دا نقل کړیدې چه الله تعالیٰ په مؤمنانو چه کوم احسان کړې وو د هغې ښکاره کول ئې غوختل چه څنګه هغه د دشمنانو د ډیروالی او د مسلمانانو د کموالی سره سره مسلمانانو ته کامیابی ورکړه، دې دپاره چه د مسلمانانو په زړونو کښې دا خبره په ښه شان سره کینی چه فتح او نصرت په ډیروالی د شمار سره نهٔ ملاویږی بلکه الله تعالیٰ چه چا له غواړی غلبه ورکوی۔ (ابن کثیرؒ)

ذَٰلِكُمْ : پدې کښې الله تعالیٰ بشارت او تخویف ورکوی، یعنی که تاسو دغه شان ثابت قدم وئ نو الله تعالیٰ به تاسو سره همیشه مددونه کوی او کافران به دغه شان ذلیله کوی۔ (ابن کثیرؒ)

ذَٰلِكُمْ : ددې خبر پټ دې ای ذٰلِكُمْ ثَابِتٌ ـ یعنی دا خبره ثابته او حقه ده چه تاسو سره ئې

مدد وکړو او کافران ئې ووهل۔
د کافرانو سره همیشه دا وعده ده چه د دوی چلونه او مکرونه به الله تعالیٰ وخت په وخت شنډوی او دوی به ذلیله کوی۔ او دغه شان الله تعالیٰ وکړل چه محمد رسول الله ﷺ ته ئې په جزیرة العرب باندې او د هغه ملګروته ئې په عجمو هم غلبه ورکړه۔ پدې وجه دا آیت د نبی کریم ﷺ دپاره د یوې معجزې حیثیت لری۔

| اِنۡ تَسۡتَفۡتِحُوۡا فَقَدۡ جَآءَكُمُ الۡفَتۡحُ ۚ وَاِنۡ تَنۡتَهُوۡا فَهُوَ |
|---|
| که فیصله غواړئ تاسو نو یقیناً راغله تاسو ته فیصله او که منع شوئ نو دا به |
| خَيۡرٌ لَّكُمۡ ۚ وَاِنۡ تَعُوۡدُوۡا نَعُدۡ ۚ |
| ډیره غوره وی تاسو له او که راواپس شوئ (جنګ ته) راوبه ګرځو مونږ (مدد د مؤمنانو ته) |
| وَلَنۡ تُغۡنِىَ عَنۡكُمۡ فِئَتُكُمۡ شَيۡـًٔا وَّلَوۡ كَثُرَتۡ ۙ |
| او هیچرې دفع به نکړی تاسو نه ډله ستاسو هیڅ شے اګرکه ډیره وی |
| وَاَنَّ اللّٰهَ مَعَ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ ﴿۱۹﴾ |
| او (پوهه شئ) چه یقیناً الله تعالیٰ د مؤمنانو سره دے (په مدد کولو)۔ |

**تفسیر**: ظاهر دا دے چه دا خطاب کافرانو ته دے۔

## شان نزول

امام احمدؒ، نسائیؒ او حاکمؒ وغیره د عبد الله بن ثعلبه ؓ نه روایت کړیدے چه ابوجهل د بدر په میدان کښې ووئیل چه اے الله! په مونږ کښې چه څوک رحم (خپلولی) پریکونکے او داسے خبره راوړونکے وی چه خلق هغه نهٔ پیژنی [فَاَحِنۡهُ الۡغَدَاةَ] نو هغه صبا ورځ هلاك کړه۔ نو الله تعالیٰ د هغه دعا واوریده، او هغه او د هغهٔ فوج ئې هلاك کړو ځکه چه دهٔ د رسول الله ﷺ او د مکے نورو مسلمانانو سره د صله رحمئ تعلق نهٔ وو کړے، او دهٔ الله تعالیٰ پریخے وو او د بتانو عبادت ئې کړے وو کوم چه په ابراهیمی دین کښې یوه نوے خبره وه۔ پدې آیت کښې د ابوجهل همدے دعا ته الله تعالیٰ اشاره کړیده چه تاسو فیصله کُن دعا کړے وه نو واخلئ د الله تعالیٰ فیصله راغله۔ (دا خبره موجوده کافرانو ته آوروی)۔ (احمد:

۲۳۷۱۰ والحاکم : ۳۲٦٤ حدیث صحیح)

او سُدیّ وائی چه مشرکان کله د مکے نه جنگ ته راروانیدل نو د کعبے غلافونه ئے ونیول او د الله تعالیٰ نه ئے مدد غوښتلو چه اے الله ! د دواړو لښکرونو نه اُوچت لښکر او د دواړو ډلو نه ډیر عزتمند او د دواړو قبیلو نه ډیرے غورے قبیلے سره مدد وکړه نو الله تعالیٰ ورته دلته جواب ورکړو اِنْ تَسْتَفْتِحُوْا الخ۔ (المنان)

فَقَدْ جَآءَ كُمُ الْفَتْحُ : یعنی که تاسو فتح غوښتے وه نو د کافرانو دپاره همدغه فتح وی چه هلاکیږی به، دا تهکمی او د زورنے الفاظ دی۔ یا فتح په معنیٰ د فیصلے او حکم د الله سره دے۔

وَاِنْ تَنْتَهُوْا : دا منع کیدل د قتال او د کفر دواړو نه مراد دی، که صرف د قتال نه منع شوئ نو هم به په دنیا کښې د مسلمانانو د لاسونو نه بچ شئ، او که د کفر نه منع شوئ نو هم ستاسو پکښې خیر دے۔

وَاِنْ تَعُوْدُوْا : اَیْ اِلٰی قِتَالِ الْمُسْلِمِیْنَ۔ نَعُدْ اِلٰی نَصْرِهِمْ۔ یعنی که تاسو د مسلمانانو سره د جنگ دپاره راوګرځیدئ نو مونږ به د هغوی مدد ته راوګرځو۔

وَّلَوْ كَثُرَتْ : یعنی دا مهٔ وایئ چه ډیر فوج به راولو په هغے سره به مسلمانانو ته شکست ورکړو او دین به ورله ختم کړو۔ نو ستاسو ډیروالے به په کار نهٔ راځی ځکه چه الله تعالیٰ د مؤمنانو سره دے۔

مَعَ الْمُؤْمِنِیْنَ : نفس مُقاتلینو سره نهٔ بلکه چا کښې چه څومره د ایمان صفت زیات وی د الله تعالیٰ معیت (ملګرتیا) به ورسره زیاته وی۔

| يَـٰٓأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَلَا تَوَلَّوْا عَنْهُ |
|---|
| اے ایمان والو! تابعداری وکړئ د الله او د رسول د هغهٔ او مهٔ اوړئ د هغهٔ نه |
| وَاَنْتُمْ تَسْمَعُوْنَ ﴿۲۰﴾ وَلَا تَكُوْنُوْا كَالَّذِيْنَ قَالُوْا |
| او حال دا چه تاسو اَورئ (قرآن او سنت)۔ او مهٔ کیږئ په شان د هغه کسانو چه ویلی ئے وو |
| سَمِعْنَا وَهُمْ لَا يَسْمَعُوْنَ ﴿۲۱﴾ اِنَّ شَرَّ الدَّوَآبِّ |
| واوریدل مونږ او حال دا چه دوی نهٔ دی آوریدلی (په زړه سره)۔ یقیناً بد تر د زنده سرو نه |

| عِنۡدَ اللّٰهِ الصُّمُّ الۡبُكۡمُ الَّذِيۡنَ لَا يَعۡقِلُوۡنَ ﴿۲۲﴾ |
|---|
| په نیز د الله تعالیٰ کانړۀ دی (د حق نه) چاړا کان دی هغه کسان چه بے عقله دی۔ |

**تفسیر** : پدے آیتونو کښې قوانین هم دی او په منافقانو او مشرکانو باندے ردونه هم او مؤمنانو ته تنبیهات دی۔

**وَلَا تَوَلَّوۡا عَنۡهُ** : یعنی د رسول الله ﷺ نه مۀ اوړئ او حال دا چه تاسو ددۀ خبرے آورئ یعنی چه انسان خبره واوری نو پکار دا ده چه طاعت ئے وکړی، هسے آوریدل بغیر د طاعت کولو نه هیڅ فائده نۀ لری۔ علم خو د عمل دپاره کولے شی، کله چه د عمل نه خالی شی نو بیا ئے څه فائده ؟۔

او دا آیت دلیل دے چه څوك د قرآن او سنت نه خبر شی او په هغے پوهه شی او بیا د هغے نه د یو چا او بل چا په خبره سره آوړی او د ائمه کرامؒ اجتهادونه رامخکښې کړی او ښکاره کتاب او سنت پریدی نو دا پدے وعید کښې داخل دے۔

**وَلَا تَكُوۡنُوۡا** : دلته منافقان او مشرکان مراد دی چه قرآن کریم خو به ئے آوریدو لیکن گویا که نۀ ئے وو آوریدلے، ځکه چه د زړۀ نه ئے آوریدلے نۀ وو، په هغے کښې به ئے سوچ او فکر نۀ کولو، او د نفاق یا شرك نه توبه ویستلو دپاره ئے د هغے نه نصیحت نۀ وو حاصل کړے او خبره ئے نۀ وه قبوله کړے لکه منافقان د مخکښې نه وائی ﴿ وَيَقُوۡلُوۡنَ طَاعَةٌ ﴾ (النساء :۸۱) زمونږ کار طاعت دے۔ لیکن کله چه وخت راشی بیا تښتی۔

**قَالُوۡا سَمِعۡنَا** : صاحب المنارؒ وائی چه دا هغه شخص ته هم شاملیږی چه آیتونه آوری او بیا وائی چه دا آیت د فلانو کافرانو یا منافقانو په باره کښې نازل دے، او ځان ته ئے نۀ شاملوی اگرکه دۀ کښې به هم دغه مرض وی کوم باندے چه په آیت کښې زورنه راغلی وی۔

**اِنَّ شَرَّ الدَّوَآبِّ** : ددے کافرانو او منافقانو یو بد مثال بیان شویدے چه کوم خلك حقه خبره په توجه سره نۀ آوری او په زړۀ سره د هغے اقرار نکوی، هغوی په زمکه وسیدونکی بد ترین ځناور دی۔ ځکه چه کله دوی د عقل او فهم لرلو باوجود ایمان نۀ راوړی نو د هغه ځناورو نه بد ترین دی چه د هغوی د عقل د نعمت نه محروم ساتلے شویدی۔ لکه چه الله تعالیٰ په سورة الاعراف آیت (۱۷۹) کښې فرمایلی دی : ﴿ اُولٰٓئِكَ كَالۡاَنۡعَامِ بَلۡ هُمۡ اَضَلُّ ﴾ یعنی دوی د چارپیانو په شان دی بلکه د هغوی نه زیات گمراه دی)۔

الدَّوَآبِّ : اول دا انسانان الله تعالیٰ په دوابو (حیواناتو) کښې داخل کړل او بیا ئے د هغوی نه زیات ناکاره کړل نو دا انسانان د مار لړم، خنزیر او سپی نه هم زیات بد ترین دی. یو طرفته انسان اشرف المخلوقات هم دے کله چه ایمان پکښې وی، لیکن بل طرفته د تولو نه ناکاره دے کله چه ایمان پکښې نۀ وی.

الصُّمُّ الْبُكْمُ الَّذِينَ لَا يَعْقِلُونَ : یعنی په غوږ باندے د حق خبره نۀ آوری، او په خوله باندے حق نۀ وائی، او په حق او توحید او د رسول الله ﷺ په تابعداریٔ کښې سوچ نکوی. او همدغه حال د کافرانو او منافقانو دے.

| وَلَوْ عَلِمَ اللهُ فِيهِمْ خَيْرًا لَّأَسْمَعَهُمْ ؕ |
| --- |
| او که معلوم وے الله تعالیٰ ته په دوی کښې خیر (طلب د حق) خامخا آورولے به ئے وے دوی ته |
| وَلَوْ أَسْمَعَهُمْ |
| (یعنی پوهه کړی به ئے وے) او که وائے آوروی دوی ته (او پوهه ئے کړی) |
| لَتَوَلَّوْا وَّهُمْ مُّعْرِضُونَ ﴿۲۳﴾ |
| نو خامخا دوی مخ اړوی او دوی همیشه مخ اړونکی دی. |

**تفسیر** : پدے کښې د کافرانو او منافقانو په افسوس ناک حال او ناکاره والی او بی خیریٔ باندے زیاته رڼا اچولے شی. د آیت مطلب دا دے چه منافقانو کښې دوه مرضونه دی چه د هغے په وجه په مخالفتونو کښې واقع دی، او شر الدواب ترے جوړ شویدی، اول عَدَمُ السَّمَاعِ. یعنی په خبره نۀ پوهیدل. (نه به د قرآن او حدیث خبرے بیانوے مگر هغه به پرے د سرۀ پوهیږی نۀ، او ذهن به ئے پرے نۀ کولاویږی) او که ته ئے یواځے ځان سره کینوے او په خبره باندے ئے په محسوسه طریقه پوهه کړے، نو بیا په دوی کښې بل مرض دے، یعنی تکبر او کبر، وائی چه زۀ دے خبرے ته څنګه تیار شم او دے ته څوك تیاریږی، او چا کښې چه تکبر وی هغه هم حق ته نۀ راځی او خبره نۀ منی. او پدے کښې اشاره ده چه د دوی محل (زړه) د حق قابل نۀ دے، نو ددے مثال د سختے زمکے په شان دے چه کله پرے باران وشی نو اول پرے ګیاه نۀ راخیژی او بیا پکښې لاندے کاڼړی دی که په سر باندے ئے ګیاه وشی نو لاندے کاڼړی ئے منع کوی، جرړے نشی کولے.

حافظ ابن کثیرؒ وائی : [لَافَهْمَ لَهُمْ صَحِيْحٌ وَلَا قَصْدَ لَهُمْ اِلَى الْعَمَلِ الصَّالِحِ صَحِيْحٌ] ددے خلکو اول صحیح پوهه نشته بیا ئے نیك عمل ته صحیح اراده نشته)۔

معنیٰ د آیت دا ده که الله تعالیٰ ته معلوم وے په دوی کښې خیر نو دوی ته به ئے خبره آوروله وے اَیْ لَاَفْهَمَهُمْ ۔ یعنی دوی به ئے په هغے باندے پوهه کړی وے، لیکن دوی کښې هیڅ خیر نشته، نو ځکه الله تعالیٰ دوی پوهه نکړل ځکه چه الله تعالیٰ ته معلومه ده چه که دوی هغه پوهه هم کړی، بیا به هم اوړی د کبر او د عناد او د ضد د وجه نه ځکه چه د دوی کار اعراض او مخ اړول دی۔ (ابن کثیرؒ)

نو دلته الله تعالیٰ ایمان والو ته دعوت ورکوی چه تاسو د منافقانو په شان ناپوهی مهٔ اختیاروئ بلکه په خبره ځان پوهه کړئ، او دارنګه کله چه په خبره پوهه شوئ نو بیا تکبر او ضد مهٔ کوئ۔

ځینی علماء ددے نه داسے تعبیر کوی چه په دوی کښې هیڅ خیر نشته، که په دوی کښې خیر وے نو الله تعالیٰ به دوی ته د مواعظو او نصیحتونو د اوریدو موقع ورکولے، او چونکه په دوی کښې هیڅ خیر نشته پدے وجه که دوی ته د آوریدو موقعه هم ورکړے شوے وے نو د حق نه به ئے اعراض کولے او ایمان به ئے نهٔ راوړے۔ (تیسیر الرحمن والمنان)

| يَـٰٓأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اسْتَجِيْبُوْا لِلّٰهِ وَلِلرَّسُوْلِ اِذَا دَعَاكُمْ لِمَا |
|---|
| اے ایمان والو ! قبول والے وکړئ (د حکم) د الله او د رسول کله چه را اُوبلی تاسو هغه څه ته۔ |
| يُحْيِيْكُمْ ج وَاعْلَمُوْا اَنَّ اللّٰهَ يَحُوْلُ بَيْنَ الْمَرْءِ |
| چه ژوندی کوی تاسو او پوهه شئ چه بیشکه الله تعالیٰ پرده کیږی په مینځ د سړی |
| وَقَلْبِهٖ وَاَنَّهٗٓ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ﴿۲۴﴾ |
| او د زړهٔ د هغه کښې، او یقیناً خاص هغه ته به ورجمع کولے شئ تاسو۔ |

**تفسیر** : پدے کښې بل قانون دے د اِسْتِجَابَةُ اللهِ وَالرَّسُوْلِ ۔ یعنی الله تعالیٰ ایمان والو ته حکم ورکړیدے چه کله رسول الله (ﷺ) تاسو یو شی ته رابلی چه ستاسو دپاره د ژوند سبب وی نو د دوی خبره ومنئ ظاهراً او باطناً او د رسول الله ﷺ اطاعت د الله تعالیٰ اطاعت دے۔

اسْتَجِيْبُوْا : استجابة : هِيَ الْاِجَابَةُ بِعِنَايَةٍ وَاسْتِعْدَادٍ۔ يعنى خبره قبلول په ډير اهتمام او تياریٔ سره۔ او مطلب دا دے چه هرکله تاسو ته معلومه شوه چه ما په تاسو باندے طاعت فرض کړيدے نو اُوس چه تاسو رسول الله ﷺ کوم کار يا خبرے ته رابللی نو هغه په ډير اهتمام او همت او عزيمت او قوت سره قبول کړئ نو دا داسے دے لکه ﴿ خُذُوْا مَا آتَيْنَاكُمْ بِقُوَّةٍ﴾ (المنار)

## انسان په څه سره ژوندے کيږی؟

(لِمَا يُحْيِيْكُمْ) کښں کوم شی ته اشاره ده چه مسلمانانو ته ژوند ورکوی؟ علماؤ ددے ډير مصداقات بيان کړيدی : ۱- چا ددے نه قرآن کريم مراد کړيدے، (قتادةؒ)

۲- او چا اسلام مراد کړيدے۔ (سدیؒ) ۳- او عروه بن الزبيرؓ ددے نه مراد جهاد فی سبيل الله اخستے دے۔ ځکه چه په جهاد سره الله تعالیٰ مسلمانانو ته د ذلت نه روستو عزت ورکړو او د هغه دشمنانو نه ئے نجات ورکړو چه هغوی په مکه کښں د دوی ژوند تنگ کړے وو۔ جهاد فی سبيل الله په هر دور کښں د مسلمانانو دپاره د ژوند په شان پاتے شويدے، او پاتے به وی۔ مسلمانانو چه کله هم ددے نه ځان راخکلے دے، نو ذلت او رسوائی د دوی په نصيب شويده۔ او کله هم چه دوی د جهاد په آواز لبيك وئيلے دے نو فتح او کاميابیٔ د دوی قدمونه ځُکل کړيدی۔ جهاد هغه نيك عمل دے چه که يو مسلمان شهيد کيږی نو هغه ته اَبدی ژوند ملاويږی لکه چه الله تعالیٰ فرمايلی دی : ﴿ وَاِنَّ الدَّارَ الْاٰخِرَةَ لَهِيَ الْحَيَوَانُ ﴾ (عنکبوت : ٦٤) چه په حقيقت کښں د آخرت ژوند هميشه ژوند دے۔ معلومه شوه چه جهاد فی سبيل الله په دنياوی او اُخروی هر اعتبار سره د مسلمانانو دپاره د ژوند په شان دے۔ (قاسمیؒ)

٤- مګر ظاهر دا ده چه لفظ د (مَا) عام دے، هر هغه شے چه رسول الله ﷺ ورته دعوت ورکړيدے نو په هغے سره د زړه ژوند ملاويږی، هغه درته وائی ذکر وکړه، جهاد ته لاړ شه، امر بالمعروف وکړه، پاينځے اُوچتے کړه، رفع اليدين وکړه، نو پدے سره ستا زړه ژوندے کيږی۔ نو هر سنت د زړه د ژوندی کولو ذريعه ده۔

٥- او صاحب المنار وائی چه ددے نه مراد ژوند د علم بالله دے او د هغه د طريقو په خپل مخلوق کښں او د هغه د احکام شرعيه ؤ علم او حکمتونه او فضيلتونه او نيك اعمال چه په هغے باندے فطرتِ انسانی کمال ته رسی په دنيا کښں او هميشه ژوند دپاره تياريږی په

آخرت کی، انتهیٰ۔

او د یو حدیث په بناء ددے آیت نه قاعده جوړه شویده۔

ابوسعید بن الْمُعَلّٰی ﷺ په مانځه ولاړ وو، نبی ﷺ ورته وفرمایل : راشه، هغه مونځ تمام کړو بیا ورغے، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : [اَلَمْ يَقُلِ اللّٰهُ : يَا اَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا اسْتَجِيْبُوْا لِلّٰهِ وَالرَّسُوْلِ اِذَا دَعَاكُمْ لِمَا يُحْيِيْكُمْ] آیا تاسو ته الله تعالیٰ نهٔ دی وئیلی چه اے ایمان والو! د الله او د رسول قبول والے وکړئ کله چه هغه تاسو هغه خبرے ته رابللی چه تاسو ژوندی کوی۔ (نو ما درته آواز وکړو ته ولے رانغلے؟)۔ بیا ئے ورته اعظم السورة د قرآن (لوی شان والا سورت) وخودلو (یعنی سورة الفاتحه) لکه د سورة الفاتحے په فضائلو کښ مونږ دا حدیث ذکر کړیدے۔ (صحیح بخاری: ٤٦٤٧ احمد وغیره)

نو ابوسعیدؓ په نفل مانځه ولاړ دے او دلته د رسول الله ﷺ امر وو چه راشه او دا امر د وجوب وو، نو دا راتلل واجب وو نو دا قانون شو چه کله د نفلو او فرضو یا ضروری او غیر ضروری تعارض راشی نو پدے وخت کښ به غیر ضروری یا نفل د فرضو په مقابله کښ پریخودلے شی۔ نو جُمعه چه ودریده نور نفل او سنت وغیره مونځونه به پریدی۔

## د انسان او د هغهٔ د زړهٔ ترمینځ د الله تعالیٰ د حائل واقع کیدو څه معنیٰ ؟

يَحُوْلُ بَيْنَ الْمَرْءِ وَقَلْبِهٖ : الله تعالیٰ د انسان او د هغه د زړهٔ ترمینځ حائل (پرده) کیږی ددے ډیرے معانی بیان شویدی :

١- د عبد الله بن عباسؓ نه موقوفاً نقل دی چه الله تعالیٰ د انسان په زړهٔ کښ څنګه چه غواړی تصرف کوی، که هدایت ورکول غواړی نو د هغه او د کفر ترمینځ حائل کیږی، او که گمراه کول غواړی نو د هغه او د ایمان ترمینځ حائل کیږی۔ ددے وجه نه نبی کریم ﷺ به په ډیر کثرت سره دعا کوله چه اے د زړونو اړونکیه! زما زړهٔ په خپل دین قائم او ثابت وساته۔ صحابه کرامؓ تپوس وکړو، اے د الله رسوله! مونږ په تا او په دین اسلام ایمان راوړے نو آیا بیا هم ته زمونږ په باره کښ یریږے؟ نبی ﷺ وفرمایل، آؤ، د انسانانو زړونه د الله تعالیٰ د دوو گوتو ترمینځ وی، هغه چه ئے څنګه غواړی اړوی راړوی۔ (مسند احمد رقم: ١٢١٢٨، والترمذی رقم: ٢١١٤، اسناده قوی علی شرط مسلم)۔ (ابن کثیرؒ)

٢- یا دا چه [يُمِيْتُهٗ وَيُقَلِّبُهٗ حَتّٰى لَايَدْرِىْ مَا يَصْنَعُ وَلَايَعْقِلُ شَيْئًا] (مجاهد) یعنی الله تعالیٰ د

بنده زړه وړني او زړه ورله په بل طرف واړوي، تردې چه بیا نۀ پو هیږي چه څه وکړي او هیڅ خبره ئې عقل ته نۀ راځي- خوراك څکاك به پيژني او ژوند به تیروي لیکن پدې به نۀ پو هیږي چه زۀ څه له پیدا یم، زما د ژوند څه مقصد دے؟ او څه کول پکار دي او مونږ کوم طرفته روان یو؟-

او پدې کښې اشاره ده چه څوك د رسول الله ﷺ خلاف کوي نو الله تعالیٰ ورله زړه بندوي-

۳- دریمه معنیٰ دا ده چه پدې کښې د مرګ د راتللو نه مخکښې د طاعت او بندګۍ ترغیب ورکړے شویدے- یعنې الله تعالیٰ چه کله بنده ته مرګ ورکوي نو د نیك عمل دروازه ئې بندیږي، پدې وجه ژوند غنیمت وګڼړئ او د الله او د رسول په اطاعت کښې اخلاص پیدا کړئ-

٤- څلورمه معنیٰ دا ده چه الله تعالیٰ خپلو بندګانو ته ډیر زیات نزدے دے- لکه څنګه چه الله تعالیٰ په سورة ق آیت (١٦) کښې فرمایلي دي: ﴿وَنَحْنُ اَقْرَبُ اِلَيْهِ مِنْ حَبْلِ الْوَرِيْدِ﴾ چه مونږ انسان ته د هغه د شا رګ نه هم زیات نزدے یو)-

مطلب دا د چه الله تعالیٰ د زړونو په پټو خبرو هم پو هیږي، پدې وجه بنده له د خپل الله نه هیڅ کله غافل کیدل نۀ دي پکار- (القاسمي)

٥- د زړه او د بدن ترمینځ د پردے واقع کیدو بل مطلب دا هم دے چه زړه د انسان بادشاه دے او بدن ئې رعیت دے، کله چه د زړه او د بدن ترمینځ پرده نۀ وي نو زړه بدن ته متوجه وي، د هغه بنه تربیت کوي او وخت په وخت ئې د الله تعالیٰ طاعاتو ته او کوم شي کښې چه ددۀ کامیابي ده، هدایت دے، نیك اعمال دي هغې ته ئې متوجه کوي او کله چه الله تعالیٰ د بنده او د هغه د زړه ترمینځ پرده واقع کړه نو بیا به د زړه سوچ خپل بدن ته نۀ وي بلکه بل طرفته به وي نو رعیت به ئې هلاك شي، ایمان او نیك عمل او د آخرت دپاره به هیڅ کار ونکړي، ډیر ژوند به تیر شي او د ځان دپاره به ئې د یوے روپۍ په اندازه خیر نۀ وي جمع کړے- او کله چه بنده ګناهونو کښې همیشه مشغول شي نو د هغې سزا دا ده چه الله تعالیٰ د انسان زړه ددۀ نه بند کړي او د هدایت او د نیك عمل نه ئې واړوي- د (خَتَمَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ) په شان شي- (القاسمي)

| وَاتَّقُوْا فِتْنَةً لَّا تُصِيْبَنَّ الَّذِيْنَ |
| --- |
| او ویریږئ (په جهاد کولو سره) د داسے عذاب نه چه نۀ به رسي هغه کسانو ته |

ظَلَمُوْا مِنْكُمْ خَآصَّةً ج وَاعْلَمُوْآ اَنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ﴿۲۵﴾

چه ظلم ئې کړیدې ستاسو نه یواځې او پو هه شئ چه بیشکه الله سخت عذاب والا دے۔

**تفسیر** : دا آیت د امر بالمعروف او نهی عن المنکر په باره کښې نازل دے۔ الله تعالیٰ مؤمنانو ته حکم کوی چه تاسو خو د کافرو سره جهادونه کوئ لیکن په خپل اجتماعی ژوند کښې به په ګناه خاموش او غلی نهٔ پاتے کیږئ۔ (چه ستاسو په معاشره کښې خلك بی حیائی، زناګانے، غلاګانے، فسادونه کوی، چرسونه او شرابونه څکی او خیانتونه کوی او په مؤمنانو باندے تهمتونه لګوی) نو که مؤمنان ددے مخنیوے ونکړی نو ددے په وجه سره چه کوم عذاب راځی هغه به د نیك او بد ترمینځ فرق نکوی بلکه په ټولو به عمومی راځی۔ ددے آیت دغه شان تفسیر سیدنا ابن عباس رضی الله عنه کړیدے۔

(ابن کثیرؒ، قرطبیؒ والبغویؒ)

په آیت کښې خطاب اګرکه صحابه کرامؓ ته دے، لیکن ددے حکم د هرے زمانے دپاره عام دے۔ امام احمدؒ، او ابوداوُدؒ او ترمذیؒ وغیره د جریر رضی الله عنه نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ وفرمایل : [مَا مِنْ قَوْمٍ يُعْمَلُ فِيْهِمْ بِالْمَعَاصِيْ، هُمْ اَكْثَرُ وَاَعَزُّ مِمَّنْ يَعْمَلُ بِهَا ثُمَّ لَا يُغَيِّرُوْنَهُ اِلَّا يُوْشِكُ اَنْ يَعُمَّهُمُ اللّٰهُ بِعِقَابٍ]

(ابوداود : ۴۳۳۹) وابن ماجه (۴۰۰۹) و احمد (۳۶۴/۴) (وصحيح الجامع (۵۷۴۹) بسند صحيح)

(کله چه د یو قوم بعض خلق ګناهونه کوی او د هغه قوم اکثر او معزز خلق هغوی نهٔ منع کوی نو الله تعالیٰ ټول قوم په عذاب کښې مبتلا کوی)۔

**فِتْنَةً** : فتنه دلته په معنیٰ د عذاب سره دے۔

**خَآصَّةً** : یعنی یواځے به عذاب دغه مجرمانو ته نهٔ رسی بلکه نیکان مؤمنان به هم پکښې راګیریږی کله چه هغه ګناه نهٔ منع کوی۔

پدے آیت کښې په ګناه او منکر باندے راضی او د منکر کونکے دواړه په سزا کښې یو شان کړے شویدی۔

علامه قسطلانیؒ لیکی : په منکر باندے د راضی کیدو علامه دا ده چه د دغه ګناه په وجه چه په دین کښې کوم خلل راځی نو په هغے باندے نهٔ دردمند کیدل او کله چه انسان پدے باندے دومره دردمند شی لکه چه د مال یا د بچو په هلاکیدو څومره دردمند او خفه وی نو بیا به دے په منکر باندے راضی نهٔ وی او که دا حالت ئې نهٔ وی نو دهٔ ته به هم سزا او

مصیبت پدے اعتبار سره رسیږی- انتهیٰ، (القاسمیؒ)

| وَاذْكُرُوْٓا اِذْ اَنْتُمْ قَلِيْلٌ مُّسْتَضْعَفُوْنَ فِي الْاَرْضِ تَخَافُوْنَ |
|---|
| او یاد کړئ کله چه تاسو کم وئ، کمزوری گڼلے شوی وئ په زمکه کښې یریدلئ تاسو |
| اَنْ يَّتَخَطَّفَكُمُ النَّاسُ فَاٰوٰىكُمْ وَاَيَّدَكُمْ |
| چه ویه تختوی تاسو لره خلق نو ځای درکړو تاسو ته او مضبوط ئے کړئ تاسو |
| بِنَصْرِهٖ وَرَزَقَكُمْ مِّنَ الطَّيِّبٰتِ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿٢٦﴾ |
| په مدد خپل سره او درئے کړل تاسو ته د پاکو څیزونو نه دے دپاره چه تاسو شکر وکړئ- |

**تفسیر**: پدے مخکښو احکامو باندے د مؤمنانو د مضبوطولو دپاره الله تعالیٰ دوی ته خپل احسانات یادوی-

په مکه کښې چه کومو خلقو اسلام په اوله کښې قبول کړو هغوی د ډیرو امتحاناتو نه تیریدل، د هغوی شمار کم وو، یریدل چه چرته د اسلام دشمنان په یو حمله کښې دوی ختم نهٔ کړی، ټولو عربو به وخت په وخت اراده کوله چه حمله پرے کوو او ټول ختمو، اقتصادی لارے ئے پرے بندے کړے وے- نو الله تعالیٰ په آرام آرام سره د دوی شمار زیات کړو، دوی ته ئے په مدینه کښې پناه ورکړه، دوی ته ئے قوت ورکړو، او د بدر په میدان کښې ئے د ملائکو په ذریعه د دوی مدد وکړو، او د غنیمت مال ئے د دوی دپاره حلال کړو، او پدے سره ئے د دوی تنگدستی لرے کړه- په آیت کښې د صحابه کرامؓ دغه حالاتو طرف ته اشاره ده دے دپاره چه دوی ددے په یادولو سره د الله تعالیٰ احسان ومنی او د هغے شکر ادا کړی په خوله هم او په عمل سره هم-

۲- قتاده بن دعامه سَدوسیؒ وئیلی دی چه دا خطاب ټولو عربو ته دے، د عربو خلق د ټولو نه ذلیل وو، د ټولو نه زیات وږی وو، د ټولو نه زیات بربنډ وو، او د ټولو نه زیات گمراه وو- قسم په الله، په زمکه کښې د دوی نه زیات ناقص بل قوم نهٔ وو تردے پورے چه اسلام راغلو چه په هغے سره دوی ته الله تعالیٰ په خپل وطن کښې قرارے ورکړو او د دوی روزی ئے فراخه کړه، او دوی ئے د خلقو بادشاهان کړل- اے د عربو خلقو ! دا هر څه تاسو ته د اسلام په وجه ملاؤ شو، پدے وجه تاسو د الله تعالیٰ شکر ادا کړئ، ځکه چه ستاسو رب مُنعِم دے او

شکر خوښوی او خوګ چه شکر ادا کوی الله تعالیٰ هغه ته نور ورکوی، آه۔ (ابن کثیر والقاسمیؒ) اول قول ظاهر دے۔

| |
|---|
| يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَخُونُوا۟ ٱللَّهَ وَٱلرَّسُولَ وَتَخُونُوٓا۟ |
| اے ایمان والو! خیانت مهٔ کویٔ د الله او د رسول سره او خیانت مهٔ کویٔ |
| أَمَـٰنَـٰتِكُمْ وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٢٧﴾ وَٱعْلَمُوٓا۟ أَنَّمَآ أَمْوَٰلُكُمْ |
| په امانتونو خپلو کښې او تاسو پوهیږئ۔ او پوهه شئ چه بیشکه مالونه ستاسو |
| وَأَوْلَـٰدُكُمْ فِتْنَةٌ وَأَنَّ ٱللَّهَ عِندَهُۥٓ أَجْرٌ عَظِيمٌ ﴿٢٨﴾ |
| او اولاد ستاسو امتحان دے او یقیناً الله تعالیٰ د هغه سره اجر دے لوئی۔ |

**تفسیر**: دا بل قانون دے د ترك الخیانة۔ (د خیانت پریخودو)، او خاصکر په جهادونو کښې خیانتونه زیات کیږی پدے وجه ئے دلته راوړیدے ورنه دا قانون عام دے۔

## شان نزول

ددے آیت په شان نزول کښې یو څو اقوال دی: لیکن د سند په اعتبار سره زیات صحیح قول دا دے چه دا آیت د ابولبابه بن عبد المنذر رضی الله عنه په باره کښې نازل شوے وو چه کله رسول الله ﷺ د بنو قریظه ؤ نه ګیره واچوله، او ورته ئے ووئیل چه راکوز شئ، نو هغوی ووئیل چه مونږ ته ابولبابه بن عبد المنذر راولیږئ چه د هغه سره مشوره وکړو (څکه چه ابولبابه د دوی په خوا کښې وسیدو څو دیر ښه مؤمن وو) نو دوی ووئیل چه مونږ به د سعد رضی الله عنه په فیصله کوزیږو لیکن تا نه مشوره اخلو چه محمد رسول الله ﷺ او د هغه ملګری به مونږ سره څه کوی؟۔ نو هغه د خپل څټ په اشاره سره ووئیل چه هغوی به تاسو ذبح کوی۔ ابولبابهؓ وائی چه زما قلم لا خوزیدلے نهٔ وو چه ما ته پته ولګیده چه ما نه د الله او د رسول په حق کښې خیانت وشو۔ (څکه چه دوی څو ما ویرول اُوس به نهٔ راکوزیږی او لاندے به ورته رسول الله ﷺ په تکلیف کښې ناست وی) (د مؤمن طریقه دا وی چه خبره زر رایادوی۔ إِذَا مَسَّهُمْ طَـٰٓئِفٌ مِّنَ ٱلشَّيْطَـٰنِ تَذَكَّرُوا۟)

نو هغه سیده لاړو مسجد نبوی ته او ځان ئے د یوے ستنے پورے وتړلو چه هغے ته روستو اُسْطُوَانَةُ التوبه ووئیل شوه۔ (یعنی د توبے ستن) او دا ئے ووئیل چه تر هغه پورے به ځان

نهٔ کولاووم چه ما رسول الله ﷺ کولاو کړی یا الله تعالیٰ زما په باره کښې توبه نازله کړی، نهه ورځو پورے دغه شان وو (چه صرف مانځه او قضاء حاجت دپاره به ئے راکولاوولو) او کله چه الله تعالیٰ د هغه توبه قبوله کړه نو رسول الله ﷺ په خپل لاس سره هغه راکولاؤ کړو۔ دا عبد الرزاقؒ په مصنف کښې او سعید بن منصورؒ په خپل کتاب السنن کښې روایت کړیدے۔ (ابن کثیرؒ والقاسمیؒ)

دارنګه ځینی مؤمنانو چه به د رسول الله ﷺ نه یوه خبره واوریدله نو کله نا کله به ئے مشرکانو ته هغه بیان کړه چه په هغے کښې به ئے ضرر نهٔ لیدو، او بل طرفته به ئے د مشرکانو سره خپل اهل وعیال وو نو دے دپاره چه د هغوی حفاظت وکړے شی، نو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو چه دا کار مهٔ کوئ دا خیانت دے۔ (البغویؒ والوجیز للواحدیؒ)

هر سبب چه وی خو آیت ورته عام دے۔

لَا تَخُوْنُوا اللّٰهَ : ((خیانت)) لفظ تمامو دروغو اوګناهونو ته شامل دے۔ په فرائضو کښې سُستی او چل ول کول، د الله د حدودو نه تجاوز کول، د رسول الله ﷺ د سنت نه انکار، او هغه پریخوستل د خواهش یا د مشرانو د وجه نه، یا د هغه امر ماتول د وجه د امر د امراؤ نه، او د مسلمانانو راز کافرانو ته وئیل، دا او ددے په شان نور ټول ګناهونه د الله تعالیٰ او د هغه د رسول سره په خیانت کښې داخل دی۔ (القاسمیؒ والمنار) لنډه دا چه هر هغه کار او خبره چه د الله تعالیٰ دین او د رسول الله ﷺ طریقو ته پرے ضرر رسی په خیانت کښې داخلیږی۔

وَتَخُوْنُوْٓا اَمٰنٰتِكُمْ : دا د (لَا) د لاندے دے۔ په امانتونو کښې خیانت دا دے چه یو سړے د غنیمت د مال نه یو شے غلا کړی، یا که یو مسلمان د خپل مال، د اهل او عیال او د خپلو رازونو دهٔ لره امانت دار جوړ کړے وی نو په هغے کښې خیانت وکړی، د هغه مال هړپ کړی، یا د هغه ښځے ته بد نظر وکړی، هغه په بد کارئ راتیزه کړی، یا د هغه رازونه خوارهٔ کړی او خلقو ته ئے بیان کړی۔ دارنګه د ښځے او خاوند ترمینځ رازونه ډیر تاکید والا دی، سیاسی او حربی امورو او مالی وغیره معاملاتو ترددے چه اجتماعی او ادبی کارونو کښې به هم خیانت نشی کولے۔ (القاسمیؒ والمنار)

وَاعْلَمُوْٓا اَنَّمَآ اَمْوَالُكُمْ : پدے کښې الله تعالیٰ ایمان والا د دنیا د مال او د اولاد د فتنے نه یرولی دی، او آخرت ته ئے ترغیب ورکړیدے۔ علامه بغویؒ د بعضو علماؤ نه نقل کړیدی چه دا حکم ئے ورپسے ځکه روستو راوړو چه د ابولبابه ؓ مال او اولاد د یهودو په خوا کښې وو نو کیدے شی چه د هغوی حفاظت ئے ذهن کښې راغلے وی، نو ځکه ئے دغه خبره کړی

وي، آه۔

پدې وجه باندې چه کله الله تعالیٰ د هغه توبه نازله کړه نو هغه ووئیل چه قسم په الله که زۀ پدې مال او کور کښې ووسیږم چه ما نه د الله نافرمانی پکښې شوېده۔ نو خپل مال ئې ټول د الله دپاره صدقه کړو مګر رسول الله ﷺ ورته وفرمایل چه دریمه حصه صدقه کړه۔

او اکثرو انسانانو نه د مال او اولادو په وجه نافرمانی کیږي، د کافر دپاره جاسوسي او ترجماني کوي، دې دپاره چه یو څو ډالرې ورته ملاؤ شي، پدې وجه ئې دوی ته فتنه (ازمینښت) وئیلې دې، یعنی ددې په وجه په انسان باندې ازمیښت کیږي چه ددې په محبت کښې د امانت او اطاعت تقاضې پوره کوي او که نۀ؟ که هغه پوره کوي نو پوهه شه چه هغه پدې امتحان کښې کامیاب دې او که نۀ وي نو ناکام۔ او پدې صورت کښې به همدا مال او اولاد ددۀ دپاره د الله د عذاب سبب جوړیږي۔

| يَـٰٓأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنْ تَتَّقُوا اللّٰهَ يَجْعَلْ لَّكُمْ فُرْقَانًا وَّيُكَفِّرْ |
|---|
| اې ایمان والو ! که ویریدئ د الله نه دربه کړي تاسو ته فتح (رڼړا په زړۀ کښې) او وبه رژوي |
| عَنْكُمْ سَيِّاٰتِكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ، وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ ﴿۲۹﴾ |
| تاسو نه ګناهونو ستاسو او بخنه به وکړي تاسو ته او الله تعالیٰ خاوند د فضل لوئي دې۔ |

**تفسیر** : پدې آیتونو کښې الله تعالیٰ د تقویٰ قانون او د هغې فائدې بیان کړیدی څه وجودي او څه عدمي، وجودي دا دي چه الله تعالیٰ به فرقان درکړي، ګناهونه به مو معاف کړي۔ او روستو راځي (اِنْ اَوْلِيَآؤُهٗٓ اِلَّا الْمُتَّقُوْنَ) د مسجد حرام ولایت په تقویٰ پیدا کیږي۔

عدمي فائدې دا دي چه سړي کښې تقویٰ نۀ وي نو د پیغمبر د وژلو اراده لري۔

﴿وَاِذْ يَمْكُرُ بِكَ الَّذِيْنَ﴾ کښې راځي۔ او د قرآن منکر کیږي ﴿وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ﴾ او ځان ته بنیرې کوي ﴿وَاِذْ قَالُوا اللّٰهُمَّ﴾ ۔او پدې آیتونو کښې د ایمان او د تقویٰ او د الانفال لله والرسول علتونه هم دي۔

اِنْ تَتَّقُوا اللّٰهَ : یعنی که تاسو د مال او اولاد په وجه ګناهونه نۀ کوئ او په خپل ژوند کښې د الله د اوامرو اتباع کوئ او د هغه د نواهیو نه ځان ساتئ نو الله تعالیٰ به د خلقو په زړونو کښې ستاسو هیبت او عزت کینوي، او هیڅ شخص به ستاسو په اهل وعیال او مال او دولت او عزت او ناموس باندې د لاس اُوږدولو جرأت نۀ کوي۔

## د فرقان مصداقات

۱- فراءَ وائي: فرقان فتح او نصرت ته وائي لکه روستو (یوم الفرقان) لفظ راځي، هلته هم دا معنیٰ مراد ده. ۲- نُوْرٌ فِي الْقَلْبِ. په زړه کښې یوه رنړا ده چه هغې ته فِراست هم وائي.

یو حدیث کښې دي: [وَاتَّقِ فِرَاسَةَ الْمُؤْمِنِ فَاِنَّهٗ يَنْظُرُ بِنُوْرِ اللّٰهِ] د مؤمن د فراست نه یره کوه ځکه چه هغه د الله تعالیٰ په نور سره کتل کوي. (الترمذی: ۳۱۲۷ وفی سنده مقال)

۳- [اَلْعِلْمَ وَالْهُدٰى تُفَرِّقُوْنَ بِهَا بَيْنَ الْحَقِّ وَالْبَاطِلِ وَالْهُدٰى وَالضَّلَالِ وَالْحَلَالِ وَالْحَرَامِ وَأَهْلِ السَّعَادَةِ وَأَهْلِ الشَّقَاوَةِ]. داسې هدایت به درکړي چه تاسو به په هغې سره د حق او د باطل او د هدایت او ګمراهۍ او د حلال او حرامو او د نیك بختو او بد بختو ترمینځ فرق کوئ. (السعدی ۳۱۹/۱ والسراج المنیر ۶۴۵/۱)

٤- بعض مفسرین وائي: [ظُهُوْرًا يَنْشُرُ أَمْرَكُمْ] یعنی الله تعالیٰ به تاسو ته نیك شهرت درکړي چه په هغې سره به ستاسو دعوت ټول عالَم کښې عام کړي. (القاسمیٌ)

٥- [اَلْعِصْمَةُ مِنَ الشُّبُهَاتِ] د شبهاتو نه بچاؤ به درکړي چه زړه کښې به مو وسوسې او شبهات نۀ راځي.

٦- سُدیٌ او مجاهدٌ ددې معنیٰ په نجات او مَخرج سره کړیده. چه الله تعالیٰ به درته کامیابي درکړي، او د دنیا او د آخرت د مصیبتونو نه به نجات درکړي. لکه چه الله په سورة طلاق آیت (۲) کښې فرمایلي: ﴿وَمَنْ يَّتَّقِ اللّٰهَ يَجْعَلْ لَّهٗ مَخْرَجًا﴾ چه څوك د الله نه یریږي نو الله به د هغه دپاره لاره کولاوه کړي. (ابن کثیرٌ والتحریر)

سَيِّاٰتِكُمْ: دا واړه ګناهونه او (يَغْفِرْ لَكُمْ) کښې غټ ګناهونه مراد دي. یا دا چه (يُكَفِّرْ) کښې پټوالے د ګناهونو او مغفرت کښې هغه او د هغې اثر ختمول مراد دي. (السراج المنیر)

| وَاِذْ يَمْكُرُ بِكَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِيُثْبِتُوْكَ |
|---|
| او کله چه چل جوړولو ستا په باره کښې هغه کسانو چه کافران دي دې دپاره چه وتړي تا |
| اَوْ يَقْتُلُوْكَ اَوْ يُخْرِجُوْكَ ۚ وَيَمْكُرُوْنَ وَيَمْكُرُ اللّٰهُ ۚ |
| یا مړ کړي تا یا وباسي تا لره، او چلونه جوړوي دوی او تدبیر جوړوي الله تعالیٰ |

وَاللّٰهُ خَيْرُ الْمٰكِرِيْنَ ﴿٣٠﴾

او الله تعالیٰ غوره دے د تدبیر جوړونکو نه۔

**تفسیر**: ددے آیت یو تعلق خو د تقوئ سره دے، نو پدے کښې بیان دے د عدمي فائدے د تقوئ یعنې چه چا کښې تقوئ نهٔ وي نو هغه به د نبي خلاف کوي او د هغه د وژلو کوشش به کوي۔ دوېم دا د (لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ) سره تعلق لري چه د الله تعالیٰ شکر وکړئ چه ستاسو نبي الله تعالیٰ راخلاص کړو د کافرانو نه، او دا د اَلْاَنْفَالُ لِلّٰهِ وَالرَّسُوْلِ دپاره علت هم دے چه په رسول الله ﷺ باندے الله تعالیٰ قرآن نازل کړو او د کافرو نه ئے راخلاص کړو، او بیا ئے قتال پرے وکړو نو پکار ده چه د هغه د حکم مطابق تاسو غنیمت تقسیم کړئ، او دا د ایمان سره هم لګي چه په هغه قوي الله سبحانه صحیح ایمان راوړئ چه د رسول الله ﷺ ئے په سخت وخت کښې مدد کړیدے، تاسو سره به هم دغه شان مدد وکړي، او وګورئ چه په رسول الله ﷺ کښې اعلیٰ درجه تقوئ وه نو د ډیرو سختو حالاتو نه الله تعالیٰ راخلاص کړو۔ نو دا آیت ګویا که د فرقان تشریح شوه۔ او پدے آیت کښې د هجرت واقعه ذکر کیږي، دا خلکو ته هسے قصه ښکاري مګر قرآن کریم لږے لږے اشارات کوي۔

## د هجرت واقعه

محمد بن اسحاقؒ، امام حاکمؒ او بیهقيؒ وغیره د قریشو کافرانو ددے سازش متعلق چه کوم روایتونه په خپلو کتابونو کښې نقل کړیدي د هغے خلاصه دا ده، چه کله د مدینے انصارو اسلام راوړو، او د اسلام رڼړا هر طرفته خوره شوه، نو د قریشو کافرانو په زړونو کښې یرے راخورے شوے۔ نو ټول مَشران د قریشو په ((دار الندوة)) کښې (چه د دوی پارلیمنټ وو) د نبي کریم ﷺ په باره کښې په آخري رائے د متفق کیدو دپاره راجمع شو۔ ابو البختري بن هشام ووئیل چه زما رایه دا ده چه د محمد (ﷺ) لاسونه او خپے وتړئ او په یو کور کښې ئے بند کړئ، صرف یو سورے وساتئ چه په هغے سره تاسو هغه ته خوراك څښاك ورکوئ، تردے پورے چه دهٔ ته مرګ راشي۔ په آیت کښې ((لِيُثْبِتُوْكَ)) سره همدے ته اشاره ده۔ لیکن شیطان (چه د یو نجدي بوډا شکل ئے اختیار کړے وو) هغه ددے رائے صفت ونکړو۔ (او دا ئے ووئیل چه ددهٔ ملګري او خپلوان به راشي او دے به درنه خلاص کړي) نو هشام بن عمرو ووئیل چه زما رائے دا ده چه تاسو محمد (ﷺ) لره د کلي نه

وشړئ، بیا به دا هیڅ نښي کوله۔ په آیت کښې ﴿اَوْ یُخْرِجُوْكَ﴾ سره دې ته اشاره ده۔ نجدي بوډا پدې رائې باندې اعتراض وکړو، (چه بل ځای کښې به ځانله ملګري پیدا کړي او بیا به په تاسو حمله وکړي لکه همدا کار په همدوی وشو) نو ابوجهل (فکر کښې ناست وو آخر کښې ئې) ووئیل، زما رایه دا ده چه تاسو د هر خاندان نه یو ځوان راواخلئ او دوی به په شریکه په یو ځای په تورو سره حمله وکړي او دا به قتل کړي۔ بني هاشم د ټولو قریشو سره جنګ نشي کولې او که دیت (سل اوښان) طلب کوي نو مونږ ټول به په شریکه دیت ورکړو۔ پدې طریقه به د محمد نه نجات مونده کړو۔ په آیت کښې ﴿اَوْ یَقْتُلُوْكَ﴾ سره دې ته اشاره ده۔ بوډا نجدي ددې رائې تائید وکړو۔ نو ټول د رسول الله ﷺ په قتل کولو متفق شو او ددې قتل دپاره ئې پنځلس کسان مقرر کړل۔

جبریل علیه السلام رسول الله ﷺ ته ددې سازش اطلاع ورکړه او وې وئیل چه نن شپه په خپله بستره مه ځمله، او الله تعالیٰ تا ته د هجرت اجازه درکړه، نبي ﷺ علي رضی الله عنه ته په خپله بستره باندې د اُوده کیدو حکم وکړو او وې وئیل چه زما څادر واچوه، دوی تا ته هیڅ ضرر نشي درکولې۔ بیا نبي ﷺ یو موټې خاوره راواخسته او د کافرانو په سرونو اچولو سره او د سورة یسٓ لوستلو سره د هغه ځای نه ووتلو او دشمن نهٔ شو لیدلې، او الله تعالیٰ د دوی دا سازش ناکام کړو۔ (په خاورو اچولو کښې دې ته اشاره وه چه ستاسو کوشش ناکام شو)

پدې موقعه ابوجهل په خپل تکبر کښې ووئیل چه محمد (ﷺ) به وئیل چه زما خبره ومنئ، الله به داسې باغونه درکړي لکه د اُردن د باغونو په شان، او که زما نهٔ منئ نو اُور به درله بل شي، او په هغې کښې به سوزئ او که تاسو زما خبره ونهٔ منله، نو تاسو به ذبح کړم او حال دا چه اُوس دې خپله ختمیږي (مطلب ئې دا وو چه ددهٔ خبره دروغژنه ده)

او پدې موقعه کښې رسول الله ﷺ سیده د ابوبکر صدیق رضی الله عنه کور ته ورغلو او د کور نه دواړه په کړکۍ طرف باندې ووتل او سیده غار ثور ته ورسیدل چه هلته ئې درې شپې وکړې، دلته مشرکانو سیدنا عليؓ ته ووئیل چه محمد (ﷺ) څه شو؟ هغه ووئیل: ما ته پته نشته، هغه ئې ووهه، بیا ام هانئ ته ورغلل هغه ئې هم ووهله لیکن هغې هم انکار وکړو، بیا دوی د هغه د قتل دپاره سل اوښان انعام مقرر کړو مګر الله پدې ټولو صورتونو کښې د خپل رسول او د هغه د ملګري حفاظت وکړو۔ الی آخر القصه)

لِیُثْبِتُوْكَ: اثبات تړلو او جیل ته اچولو او بندولو ته وئیلې شي۔

وَیَمْکُرُوْنَ: یعنې دوی د نبي د وژلو دپاره چلونه جوړول او الله تعالیٰ د خپل نبي او د

هغه د ملګرې د بچ کولو مکر جوړولو دے دپاره چه دوئ ته د دوی د مکر سزا ورکړی او په خپل مکر کښې ئے ناکام کړی۔

| |
|---|
| وَاِذَا تُتْلٰی عَلَیْهِمْ اٰیٰتُنَا قَالُوْا قَدْ سَمِعْنَا |
| او کله چه لوستلے شی په دوی باندے آیتونه زمونږ وائی دوی یقیناً واوریدل مونږ |
| لَوْ نَشَآءُ لَقُلْنَا مِثْلَ هٰذَآ اِنْ هٰذَآ اِلَّآ اَسَاطِیْرُ |
| که وغواړو مونږ خامخا وبه وایو په شان ددے کتاب، نه دے دا (قرآن) مګر قصے دی |
| الْاَوَّلِیْنَ ﴿۳۱﴾ وَاِذْ قَالُوا اللّٰهُمَّ اِنْ کَانَ هٰذَا هُوَ الْحَقَّ مِنْ عِنْدِكَ |
| د پخوانو۔ او کله چه ووئیل دوی، اے الله! که وی دا (قرآن) حق د طرفه ستا نه |
| فَاَمْطِرْ عَلَیْنَا حِجَارَةً مِّنَ السَّمَآءِ اَوِ ائْتِنَا بِعَذَابٍ اَلِیْمٍ ﴿۳۲﴾ |
| نو را اُووروه په مونږ باندے کاڼړی د آسمان نه یا راوله مونږ ته عذاب دردناك۔ |

**تفسیر**: دا آیت د نضر بن حارث په باره کښې نازل شوے وو چه د رسول الله ﷺ د بعثت نه مخکښې فارس (ایران) ته تلے وو او د هغه ځای نه ئے د رستم او اسفندیار په واقعاتو مشتمل یو کتاب راوړے وو۔ کله چه به رسول الله ﷺ د مجلس نه پاڅیدو نو دا ملعون به هلته کیناستو او د هغه کتاب نه به ئے واقعات بیانول او وئیل به ئے چه ووایئ چه د چا خبره ډیره زړهٔ راخکونکے ده۔ دا شخص په غزوهٔ بدر کښې د مقداد بن اسود ﷛ په لاسونو قیدی شو، او بیا د رسول الله ﷺ په حکم سره د هغه څټ ووهلے شو۔

په آیت کښې د جمعے صیغه په دے وجه استعمال شویده چه د قریشو کافرانو ټولو به په زبان قال او زبان حال سره همدا وئیل څنګه چه به نضر بن حارث وئیل۔ چه که مونږ غواړو نو داسے قرآن راوړے شو۔ دا د دوی باطل غرور او د دروغو بهانه وه، څکه چه قرآن خو دوی ته څو ځل چیلنج کړی وو او هیچا د هغے جواب نهٔ دے راوړے۔ او دوی ډیر کوشش د مقابلے کولو لیکن مقابله ئے نشوه کولے۔

اَسَاطِیْرُ: جمع د اُسْطُوْرَةٌ ده لیکلے شوے قصے او خبرے ته وائی۔ او دلته ترے مراد دروغژنه قصه ده، څکه چه قرآن کښې قصے شته لیکن دوی د هغے تکذیب کولو۔ او اسطوره هغه قصے ته هم وائی چه هیڅ فائده پکښې نهٔ وی، نو د دوی مقصد پدے سره د

قرآن کریم سپکاوے او خپل ځان ددے قابل کنټرل وو چه مونږ ګنے ددے مقابله کولے شو۔

وَاِذْ قَالُوا اللّٰهُمَّ : د دوی د تقویٰ د نشتوالی د وجه نه دوی داسے غلطه دعاء وکړه۔ او دا علت دے ددے خبرے چه دوی سره قتال پکار دے ځکه چه دوی کښې دغه شان غلط صفات دی نو دوی باندے رحم مهٔ کوئ۔

د قریشو کافرانو په خپل کبر او غرور او د سلام او نبی کریم ﷺ په دشمنئ کښې په کلی توګه سره د عقل نه ړاندهٔ شوی وو۔ پدے وجه دوی د الله تعالیٰ نه دعا وکړه چه اے الله! که دا قرآن واقعی ستا رالیږلے شوے کتاب وی، نو په مونږ د کاڼړو باران وکړه او مونږ هلاک کړه، یا په بل کوم عذاب کښې مونږ اخته کړه۔ امام بخاریؒ د انس ؓ نه روایت کړیدے چه دا خبره ابوجهل کړے وه۔ او د عطاؒ، مجاهدؒ او سعید بن جبیرؒ قول دے چه نضر بن حارث دا خبره هم کړے وه، او د قریشو ټولو کافرانو په ژبان حال سره همدا خبره کړے وه۔ که د هغوی سره روغ عقل وے نو وئیلی به ئے وے چه اے الله! که دا قرآن واقعی ستا کتاب وی نو مونږ د هدایت په لاره روان کړه او پدے باندے د ایمان توفیق راکړه، او که غلط وی نو مونږ ترے وساته۔

لیکن دلته د دوی مقصد جحود او انکار وو او مطلب دا وو چه [هٰذَا لَيْسَ بِحَقٍّ فَلَا نَسْتَوْجِبُ عِقَابًا] دا حق نهٔ دے نو ځکه ددے په انکار باندے مونږ ته سزا نهٔ راکړے کیږی که دا حق وے او مونږ نهٔ منلے نو په مونږ به عذاب راغلے وے۔

| وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَاَنْتَ فِيْهِمْ ۚ وَمَا كَانَ |
| --- |
| او نهٔ دے الله تعالیٰ چه عذاب ورکړی دوی ته حال دا چه ته په دوی کښې ئے، او نهٔ دے |
| اللّٰهُ مُعَذِّبَهُمْ وَهُمْ يَسْتَغْفِرُوْنَ ﴿۳۳﴾ وَمَا لَهُمْ |
| الله تعالیٰ عذاب ورکونکے دوی ته پداسے حال کښې چه دوی بخښنه غواړی، او څه عذر دے دوی لره |
| اَلَّا يُعَذِّبَهُمُ اللّٰهُ وَهُمْ يَصُدُّوْنَ عَنِ الْمَسْجِدِ |
| چه عذاب به نهٔ ورکوی دوی ته الله تعالیٰ حال دا چه دوی منع کول کوی د مسجد |
| الْحَرَامِ وَمَا كَانُوْٓا اَوْلِيَآءَهٗ ۚ اِنْ اَوْلِيَآؤُهٗٓ |
| حرام نه او نهٔ دی دوی دوستان ددے (الله، یا بیت الله)، نهٔ دی اختیار مند ددے (بیت الله) |

إِلَّا الْمُتَّقُونَ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٣٤﴾

مګر متقیان خلق لیکن اکثر خلق نهٔ پو هیږي۔

**تفسیر** : اُوس الله ددې وجه بیانوي چه دوی عذاب غواړي لیکن الله ورله عذاب نهٔ ورکوي دوه وجې دي۔ یو وجود نبي کریم ﷺ د دوی ترمینځ، او بل د دوی استغفار۔ نو الله تعالیٰ د قریشو کافرانو دعا پدې وجه قبوله نکړه چه رسول الله ﷺ د هغوی ترمینځ موجود وو۔ کله چه هغه د مسلمانانو سره هجرت وکړو او مدینې منورې ته لاړو نو د بدر په میدان کښې الله تعالیٰ د قریشو ټول صنادید (مشران) په خپل عذاب کښې راګیر کړل۔

امام ترمذيؒ د ابو موسیٰ اشعريؓ نه روایت کړیدې چه رسول الله ﷺ وفرمایل چه الله تعالیٰ زما د امت دپاره په ما دوه امانه نازل کړیدي : ﴿ وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَأَنتَ فِيهِمْ وَمَا كَانَ اللَّهُ مُعَذِّبَهُمْ وَهُمْ يَسْتَغْفِرُونَ ﴾ (چه ترڅو پورې تهٔ په دوی کښې ئې، نو الله به دوی ته عذاب نهٔ ورکوي او چه ترڅو پورې دوی د الله نه بخننه طلب کوي نو الله به دوی ته عذاب نهٔ ورکوي)۔ کله چه زهٔ د دنیا نه لاړ شم نو د دوی دپاره دویمه ذریعه د امان استغفار به تر قیامته پورې باقي پاتې وي۔ (الترمذی : ۳۰۸۲) واسناده ضعیف، اسماعیل بن مهاجر یضعف فی الحدیث ومعنی الحدیث ثابت من الآیة وروی ابن جریر ۹/۲۳۵ عن ابن عباس موقوفا واسناده حسن قاله مقبل بن هادی الوادعی فی کتابه صحیح اسباب النزول ص (۱۱۷) واخرجه ابن ابی حاتم ۳/۲٤۱) ۔

او پدې کښې رد دې په هغه چا چه رسول الله ﷺ په هر ځای کښې حاضر ناظر ګڼري، بیا عذابونه ولې راځي حال دا چه په مختلفو علاقو کښې عذابونه راغلي او راځي۔

وَأَنتَ فِيهِمْ : ددې نه حافظ ابن قیمؒ دا فائده اخستې ده او فرمایلي ئې دي :

[وَإِذَا كَانَ وُجُودُ النَّبِيِّ ﷺ مَانِعًا فَكَيْفَ بِمَحَبَّتِهِ فِي قَلْبِ الْمُؤْمِنِ]

هرکله چه د رسول الله ﷺ وجود مانع دې د عذاب د کافرانو نه نو د دغه نبي محبت چه د چا په زړه کښې راشي نو دا به څنګه د عذاب نه مانع نهٔ ګرځي)

وَهُمْ يَسْتَغْفِرُونَ : او پدې کښې دعوت دې مشرکانو ته چه راشئ د الله تعالیٰ نه بخننه وغواړئ چه عذابونه درنه واوړي۔ سوال دا دې چه مشرکان که د شرک سره استغفار وغواړي نو څه فائده به ورکړي ؟

۱-جواب دا دې چه قتادةؒ وئیلي دي چه دا بناء دې په تعلیق باندې [أَيْ إِنِ اسْتَغْفَرُوا وَآمَنُوا] یعنې که دوی بخنه د ګناهونو وغوښته او ایمان ئې راوړو۔ (بغوي وابن کثیرؒ)

۲- جواب دا دے چه پدے موجوده کافرانو کښې الله تعالیٰ ته څه کسان معلوم وو چه دوی به روستو ایمان راوړی نو ځکه ئے فی الحال تولو ته سزا ورنکړه ځکه چه یستغفرون د مضارع صیغے ده. لکه ابوسفیان، سهیل بن عمرو، خالد بن الولید او عکرمه بن ابی جهل ایمان راوړو. (رضی الله عنهم).

وَمَا لَهُمْ اَلَّا يُعَذِّبَهُمُ اللّٰهُ: د قریشو کافرانو چه کوم گناهونه او جرمونه کول د هغے تقاضا خو دا وه چه دوی ته الله تعالیٰ فوراً عذاب ورکړے وے، لیکن لکه څنگه چه مخکښې بیان شو چه د دوی تر مینځ رسول الله ﷺ موجود وو پدے وجه د الله تعالیٰ د عذاب نه بچ وو. کله چه رسول الله ﷺ او د هغه نه روستو هغه کمزوری مسلمانان د مکے نه ووتل کوم چه په توبه او استغفار کښې مشغول وو. نو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو چه پدے کښې دوی ته د عذابْ دهمکی ورکړے شوه. نو الله خپل رسول ته د مکے د فتح کولو اجازت ورکړو او د مسلمانانو په لاسونو د قریشو په کافرانو هغه عذاب نازل شو کوم طرف ته چه پدے آیت کښې اشاره ده. یعنی اُوس خو نۀ د دوی استغفار شته او نۀ د نبی ﷺ وجود د دوی تر مینځ شته، نو دوی د عذاب خامخا مستحق دی.

اَلَّا يُعَذِّبَهُمْ: أَیْ بَعْدَ هِجْرَةِ الرَّسُوْلِ وَالْمُؤْمِنِيْنَ مِنْهُمْ. یعنی د دوی د عذاب نه د بچ کیدو سبب ختم شو، چه رسول الله ﷺ او مؤمنانو ترے هجرت وکړو او دوی د ځان نه هغه سبب ختم کړو.

وَهُمْ يَصُدُّوْنَ: یعنی د عذاب سبب اُوس موجود شته او مانع نشته نو الله تعالیٰ به ضرور عذاب ورکوی. د صد عن المسجد الحرام مصداق دا وو چه دوی ورته نبی کریم ﷺ او مؤمنان نۀ پریخودل او په هجرت ئے مجبوره کول.

وَمَا كَانُوْٓا اَوْلِيَآءَهٗ: پدے کښې د قریشو مشرکانو ددے باطل گمان رد دے چه د بیت الله والیان (واکدار) مونږ یو، مونږ چه چا له غواړو، حرم طرف ته راتللو نه به ئے منع کوو، او چه چا له غواړو اجازت به ورکوو. الله تعالیٰ وفرمایل چه ددے والیان او دوستان متقیان دی، ځکه چه مشرك خو په کښې غیر الله ته آوازونه کوی، هغه خو نجس دی او پدے کښې دا بشارت او زیرے هم دے چه مکه به فتح کیږی او د کافرانو په ځای به مسلمانان د بیت الله والیان جوړیږی.

او پدے کښې د تقویٰ بله فائده دا ذکر ده چه د الله تعالیٰ ولایت (دوستی) او د مسجد حرام اهلیت په تقویٰ سره حاصلیږی.

| وَمَا كَانَ صَلَاتُهُمْ عِنْدَ الْبَيْتِ إِلَّا مُكَآءً وَّ تَصْدِيَةً ؕ |
| --- |
| او نهٔ وو مونځ د دوی د بیت الله په خوا کښې مگر شپیلی او لاسونه پړقول |
| فَذُوقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُونَ ﴿۳۵﴾ |
| پس وڅکئ عذاب په وجه ددے چه تاسو کفر کوو۔ |

**تفسیر** : دا په مشرکانو بل رد دے او دا یا عطف دے په ﴿وَيَصُدُّونَ عَنْ سَبِيْلِ اللهِ﴾ باندے نو پدے کښې دا خبره ثابتول دی چه دوی څکه د قتال لائق دی چه دوی ته الله تعالیٰ مسجد حرام ورکړے دے او خالص عبادت پکښې نهٔ کوی بلکه شپیلی وهی۔ یا عطف دے په ﴿وَمَا كَانُوْا أَوْلِيَاءَهُ﴾ باندے نو پدے کښې رد دے چه دوی د مسجد حرام اهل چرته گرځیدے شی۔ (القاسمی)

د مکے مشرکان به د بیت الله په خوا کښې راجمع شو او شپیلی او تالیانے به ئے وهلے (یعنی لاسونه پړقول) دے دپاره چه مسلمانان د خشوع او خضوع سره مونځ ونکړی۔ زهریؒ وائی چه شپیلی او لاسونو تهقولو سره به ئے د مسلمانانو پورے توقے کولے۔ او مجاهدؒ وائی چه کله به رسول الله ﷺ په مانځه کښې شروع شو نو مشرکانو به شپیلی او لاسونه تهقول شروع کړل۔

حافظ ابن القیمؒ په خپل کتاب «اغاثة اللهفان» کښې لیکلی دی چه لاسونه پړقولو او شپیلی وهلو سره د الله تعالیٰ نزدیکت حاصلونکی او مونځ کونکی، ذکر کونکی او د قرآن تلاوت کونکی په تشویش کښې اخته کونکی ددے مشرکانو سره مشابه دی۔

ځینی علماء وائی چه مشرکانو به د طواف په وخت کښې شپیلی او تالیانے وهلے او دا به ئے هم عبادت او نیکی گڼرله لکه د نن زمانے بعض جاهلان صوفیان په مسجدونو او آستانو کښې گډیږی او ډولونه وهی او وائی چه دا زمونږ مونځ او عبادت دے او پدے باندے مونږ الله تعالیٰ راضی کوو۔ (احسن البیان)

شیخ الاسلام ابن تیمیةؒ لیکلی دی چه لاسونه تهقول او ډولونه او تماشے او باجے وغیره وهل د الله تعالیٰ د دین حصه او د هغه د قربت (نزدیکت) ذریعه هیچرے نشی کیدے۔ د دین اسلام ددے خبرو سره هیڅ تعلق نشته۔ نهٔ نبی کریم ﷺ دا خبرے مشروع گرځولے دی، نهٔ خلفاءِ اربعهؓ او نهٔ یو امام او نهٔ هیڅ کله د دوی نه یو تن په یو دور کښې داسے کړی

وو۔

بیا وائي : څوك چه د دین د حقائقو او د زړونو د احوالو او د هغې د معارفو او ذوقونو نه خبردار وي نو هغه ته دا معلومه ده چه ټنګ ټکور او لاسونه پړقول زړه ته هیڅ فائده او مصلحت نهٔ راکاړي مګر ددې په ضمن کښې دومره فساد راولي چه هغه د فائدې نه ډیر زیات دې، نو دا د روح دپاره داسې دې لکه شراب د بدن دپاره بلکه د هغې نه هم زیات ضرر ورکوي، آه۔ (راجع تفسیر القاسمي)

افسوس دې چه د امت اسلامیه یو لوئې شمیر پدې ګناهونو کښې اخته دې، او ګمان کوي چه دوي د رقص (ګډا) او غناء (ټنګ ټکور) په ذریعه د الله قربت او نزدیکت حاصلوي۔ ((مَا اَشْبَهَ اللَّيْلَةَ بِالْبَارِحَةِ))۔ یقیناً دا خلق د مکې مشرکانو نه کم نهٔ دي۔ (ابن کثیر والقاسمی)

اِلَّا مُكَآءً وَّ تَصْدِيَةً : دا تشبیه یا په بطلان کښې ده یعني د دوي مونځ داسې باطل دې لکه شپیلې او لاسونه ټقول چه دواړو کښې هیڅ فائده نشته او باطل دي۔ دا معنیٰ بعیده ده ځکه چه مشرکانو مونځونه نهٔ کول او نهٔ ئې مونځ پیژندلو بلکه ابو طالب په یوه موقعه کښې د رسول الله ﷺ او د علی بن ابی طالب د مانځه نه تعجب کولو چه هغه دواړه ئې په یو خوږ کښې لیدلي وو۔ (ابن عاشور)

دویم دا تشبیه په عدم وجود کښې ده یعني دوي د بیت الله په خوا کښې مونځونه نکوي بلکه د هغې په ځای فضول کارونه او د مؤمنانو پورې توقې کوي۔

ځینې وائي : د مانځه نه مراد دلته طواف دې لکه رسول الله ﷺ هم طواف ته مونځ وئیلې دې او مشرکانو به په طواف کښې شپیلې وهل او په الټه طرف به ئې طواف کولو۔ (البحر المحیط ٥/٣١٥)

فَذُوْقُوا الْعَذَابَ : پدې کښې اشاره ده چه دا عمل چه د بیت الله احترام پرې خرابیدو دا کفر دې ځکه چه دا د الله د شعائرو سپکاوې او د هغې پورې مسخرې وې، او دغه شان د رسول الله ﷺ او د مسلمانانو د مونځونو پورې خندنې وې او دا کفر دې۔ او دوي ته ددې سزا په بدر کښې د قتل او قید په ذریعه ورسیده۔ (القاسمی والتحریر)

| اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ لِيَصُدُّوْا |
| --- |
| یقیناً هغه کسان چه کفر ئې کړیدې خرج کوي مالونه خپلو دپاره ددې چه خلق منع کړي |

| عَنْ سَبِيْلِ اللهِ ۚ فَسَيُنْفِقُوْنَهَا ثُمَّ تَكُوْنُ عَلَيْهِمْ حَسْرَةً |
|---|
| د لارې د الله نه نو زر دې چه خرچ به کړي دوي هغې لره بيا به شي په دوي باندې افسوس |
| ثُمَّ يُغْلَبُوْنَ ۥ۵ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اِلٰى جَهَنَّمَ يُحْشَرُوْنَ ﴿۳۶﴾ |
| بيا به كمزوري كړې شي او هغه كسان چه كافران دي جهنم ته به ورجمع كړې شي۔ |
| لِيَمِيْزَ اللّٰهُ الْخَبِيْثَ مِنَ الطَّيِّبِ وَيَجْعَلَ الْخَبِيْثَ بَعْضَهٗ |
| دې دپاره چه جدا كړي الله تعالىٰ پليت لره د پاك نه او وګرځوي پليتان بعض |
| عَلٰى بَعْضٍ فَيَرْكُمَهٗ جَمِيْعًا فَيَجْعَلَهٗ فِيْ جَهَنَّمَ ۚ |
| په بعضو باندې پس جمع به كړي هغوي په يو ځاى نو وابه ئې چوي په جهنم كښې، |
| اُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿۳۷﴾ |
| دغه كسان خاص دوي تاوان والا دي۔ |

**تفسیر:** پدې كښې دغه كافرانو ته سخت تخويف دې چه كه تاسو هر څومره د اسلام په خلاف كوشش وكړئ نو په دنيا كښې ستاسو مغلوبيت او په آخرت كښې جهنم ستاسو ځاى دې۔ او دا د الله تعالىٰ وعده ده اول د مكې كافرانو سره، او بيا د هرې زمانې كافرانو سره پدې شرط چه مؤمنان په دعوت او جهاد باندې صحيح روان وي۔

## شان نزول

محمد بن اسحاقؒ د زُهريؒ نه روايت كړيدې چه كله د قريشو څه كسان د بدر د ميدان نه وتختيدل او مكې ته ورسيدل او د ابوسفيان قافله هم ورسيدله، نو د كومو خلقو چه خپلوان وژلې شوي وو، هغوي د ابوسفيان او نورو هغه خلقو سره خبره وكړه د كومو د تجارت مال چه د شام نه راغلې وو چه د محمد (ﷺ) سره دوباره د جنګ د تيارئ دپاره د مال په ذريعه مدد وكړي۔ نو دغه تاجرانو ددې غرض دپاره مال راجمع كړو۔ ددې په باره كښې دا آيت نازل شو، او دوي ته د دوي د انجام خبر وركړې شو۔ نو همدغه شان وشوه چه په بعض جنګونو كښې د كافرانو بوكه درنه كيدو باوجود هم الله تعالىٰ آخر كښې مسلمانان غالبه كړل او د قريشو كافران په دنيا كښې ذليل او رسوا شو او قتل شو، او په آخرت كښې د

دوی ځای به جهنم وی. د ضحاكؒ رائے ده چه د قریشو کومو دولسو مشرکانو چه د بدر په میدان کښې د کافرانو لښکر ته نمبر په نمبر د اوښانو غوښه او خوراك ورکړے وو د هغوی په باره کښې دا آیت نازل شوے وو. (بغویؒ وابن کثیرؒ)

بهر حال د آیت حکم عام دے، او د اسلام او کفر په جنګ کښې هر شخص چه د خپل مال په ذریعه د کافرانو مدد وکړی نو هغه به پدے آیت کښې د ذکرشوی دنیاوی او اُخروی عذاب مستحق وی.

لِيَصُدُّوا : یعنی دومره وختونه او مالونه لګوی او ددے دپاره جمعیات، مدارس او سکولونه جوړوی، ډاکټران ئے خوارهٔ کړی وی دے دپاره چه د الله تعالیٰ دین په خلکو کښې عام نشی او دوی خپل غلط دین ته خلك راجذب کړی، او په صحیح دین کښې ورله شبهات پیدا کړی، مګر الله تعالیٰ به د دوی خواری ضائع کوی، او خپل دین به غالبه کوی. نو پدے کښې کافرانو ته دعوت دے چه ستاسو خواری ضائع کیدونکے ده، او دنیا او آخرت مو تباه شو راشئ د الله تعالیٰ دین ته غاړه کیدئ. (السعدیؒ)

لِيَمِيزَ اللَّهُ : ددے آیت تعلق د مخکنی آیت سره دے، او معنیٰ دا ده چه ټول کافران به جهنم ته راجمع کړے شی دے دپاره چه الله تعالیٰ کافران د مؤمنانو نه جدا کړی.

یا ددے معنیٰ دا ده چه کوم کافران خپل مال د اسلام په خلاف کاروائی کښې خرچ کوی نو دا به د هغوی دپاره په دنیا او آخرت کښې د افسوسونو سبب جوړیږی، او مسلمانان چه کوم مال د نبی کریم ﷺ د مدد دپاره خرچ کوی نو الله تعالیٰ به د قیامت په ورځ د جزاء په اعتبار سره دا د مشرکانو د هغه مال نه جدا کړی کوم چه دوی د نبی کریم ﷺ په دشمنئ او د هغه په خلاف جنګ باندے صرف کړے وو. او په آخرت کښې به الله تعالیٰ تمام کافران په جهنم کښې داسے راجمع کوی چه د ګنړے په وجه به په یو بل باندے سوارهٔ وی.

لِيَمِيزَ اللَّهُ : یعنی الله ئے جهنم ته ولے په یو ځای راجمع کوی؟ ددے وجه دا ده چه الله تعالیٰ پدے سره کافران (پلیت) د مؤمنانو (پاکو) نه جدا کړی. دارنګه د کافرانو پلیت مال د مؤمنانو د پاك مال نه جدا کوی. د یو جهنم او د بل جنت نتیجه ده.

| قُلْ لِلَّذِينَ كَفَرُوا إِنْ يَنْتَهُوا |
|---|
| ووایه ! هغه کسانو ته چه کافران دی که منع شو دوی (د کفر او شرك نه) |

يُغْفَرْ لَهُمْ مَّا قَدْ سَلَفَ ۚ وَإِنْ يَعُودُوا

وبه بخلے شی دوی ته هغه گناهونه چه تیر شویدی او که واپس شی دوی (جنگ ته)

فَقَدْ مَضَتْ سُنَّتُ الْأَوَّلِينَ ﴿۳۸﴾

نو یقیناً تیره شویده طریقه د مخکنو خلقو۔

**تفسیر**: پدے آیت کښې ترغیب دے کافرانو ته سره د تهدید (دهمکی) نه۔

اِنْ يَّنْتَهُوْا : الله تعالیٰ د خپلو بندگانو په حق کښې ځومره رؤف او رحیم دے چه دوی کښې کفر او عناد موجود دے او بیا ئے هم الله تعالیٰ حقے لارے طرفته رابلی۔

پدے آیتِ کریمه کښې الله تعالیٰ ابوسفیان او د هغه ملگروته بالخصوص او ټولو کافرانو ته بالعموم وئیلی دی چه که دوی د کفر او د نبی کریم ﷺ سره د جنگ کولو نه منع شی نو الله به د دوی تیر شوی گناهونه معاف کوی لکه چه په مسند احمدؒ کښې دی چه اسلام تیر شوی گناهونه ختموی۔ او توبه هم مخکنی گناهونه ختموی۔ او که دوی د نبی کریم ﷺ سره دوباره جنگ کوی نو دا د الله تعالیٰ سنت او طریقه پاتے شویده چه هغه د خپلو رسولانو مدد کوی او د هغوی دشمنان ذلیله کیږی لکه عادیانو او ثمودیانو ته وگوره او لکه څنگه چه د بدر په میدان کښې د قریشو کافرانو انجام شو۔

فَقَدْ مَضَتْ سُنَّتُ الْأَوَّلِينَ : مضی په معنیٰ د جریان سره دے ای مَضَتْ (جَرَتْ) سُنَّةُ اللّٰهِ فِی الْأَوَّلِیْنَ)۔ یعنی د الله تعالیٰ طریقه روانه ده چه دشمنان هلاکوی او د دوستانو مدد کوی۔

وَقَٰتِلُوهُمْ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ كُلُّهُ لِلَّهِ ۚ

او جنگ کوئ د دوی سره تردے چه پاتے نشی هیڅ شرك او شی دین ټول د الله تعالیٰ،

فَإِنِ انْتَهَوْا فَإِنَّ اللَّهَ بِمَا يَعْمَلُونَ

پس که منع شول دوی نو یقیناً الله تعالیٰ په هغه عملونو چه دوی ئے کوی

بَصِيرٌ ﴿۳۹﴾ وَإِنْ تَوَلَّوْا فَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ

لیدونکے دے۔ او که واوړیدل دوی نو پوهه شئ چه بیشکه الله تعالیٰ

مَوْلٰـكُمْ ؕ نِعْمَ الْمَوْلٰى وَنِعْمَ النَّصِيْرُ ﴿۴۰﴾

دوست دے ستاسو، ښه دوست دے او ښه مددګار دے۔

**تفسیر** : یعنی الله تعالیٰ به کافران ذلیله کوی ستاسو په لاسونو نو اے مسلمانانو ! تاسو د کافرانو او مشرکانو سره جنګ کوئ تردے پورے چه شرک ختم شی، یا د کافرانو د طرف نه د مسلمانانو د ازمیښت او امتحان دَور ختم شی، او د یو الله تعالیٰ عبادت عام شی۔ د هغه نه سوئ د هیڅا عبادت ونکړے شی، او که مشرکان د کفر او ګناهونو نه په ظاهری توګه منع شی نو تاسو هم د جنګ کولو نه منع شئ، د دوی باطنی اعمال الله تعالیٰ ته معلوم دی، هغه به ورسره حساب کوی او د هغے مطابق به ورته بدله ورکوی لکه چه الله تعالیٰ په سورة توبه آیت (۵) کښې فرمایلی دی :

﴿ فَاِنْ تَابُوْا وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتَوُا الزَّكٰوةَ فَخَلُّوْا سَبِيْلَهُمْ ﴾

چه (که دوی توبه وباسی او مونځونه قائم کړی او زکاة ورکړی نو دوی پریدئ)۔

د صحیحینو روایت دے چه نبی کریم ﷺ وفرمایل : ((ما ته د خلقو سره د قتال حکم شویدے تردے پورے چه دوی لا اله الا الله ووائی، کله چه دوی دا کلمه ووئیله نو د دوی وینه او مال محفوظ شو سوئ د هغه نه چه په دوی کوم شرعی حق وی، او د قیامت په ورځ به الله د دوی سره حساب کوی))۔ او د صحیح بخاریؒ یو بل روایت دے چه کله اسامه بن زید ؓ یو سړے د لا اله الا الله وئیلو نه روستو قتل کړو، نو نبی ﷺ ووئیل چه د قیامت په ورځ به ته په کلمه د لا اله الا الله څه کوے؟ نو اسامه ووئیل اے د الله رسوله ! هغه صرف د خپل ځان بچ کولو دپاره داسے کړی وو، نو نبی کریم ﷺ وفرمایل چه تا د هغه سینه څیرلو سره ولے نهٔ کتله او بار بار به ئے وئیل چه د قیامت په ورځ به د لا اله الا الله سره څه کوے؟ اسامه وائی چه ما ارمان وکړو چه کاش زهٔ نن په اسلام کښې داخل شوے وے۔ (القاسمیؒ)

الدِّيْنُ كُلُّهٗ : ددے نه معلومیږی چه کله بعض دین د غیر الله دپاره وی بیا به هم قتال جاری وی (بشرط الاستطاعة) لکه ابوبکر صدیق ؓ د هغه چا سره هم قتال وکړو چه نور دین ئے منلو صرف د زکاة نه منکر شو۔

فَاِنِ انْتَهَوْا : یعنی که کفارو او مشرکانو ایمان رانهٔ وړو او د کفر او ګناهونو نه منع نهٔ شو نو تاسو پدے یقین سره ژوندی وسیږئ چه ستاسو حامی او مددګار الله تعالیٰ دے، او د چا

مددگار چه الله تعالیٰ شی نو هغه څوك ختمولے شی ؟!۔

| وَاعْلَمُوْٓا اَنَّمَا غَنِمْتُمْ مِّنْ شَيْءٍ فَاَنَّ لِلّٰهِ |
|---|
| او پوهه شئ یقیناً هغه چه حاصل کړئ تاسو مال غنیمت د څه شی نو یقیناً الله لره |
| خُمُسَهٗ وَلِلرَّسُوْلِ وَلِذِی الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنِ |
| پنځمه برخه د هغې ده او رسول لره او خپلوانو (د رسول) لره او یتیمانانو او غریبانو |
| وَابْنِ السَّبِيْلِ ۙ اِنْ كُنْتُمْ اٰمَنْتُمْ بِاللّٰهِ وَمَآ |
| او مسافرو لره، که ایمان راوړے وی تاسو په الله تعالیٰ او په هغه (مدد) |
| اَنْزَلْنَا عَلٰى عَبْدِنَا يَوْمَ الْفُرْقَانِ يَوْمَ |
| چه رالیږلے وو مونږ په بنده خپل په ورځ د فیصلې (ورځ د بدر) په هغه ورځ |
| الْتَقَى الْجَمْعٰنِ ۗ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿٤١﴾ |
| چه مخامخ شوے دوه ډلے، او الله تعالیٰ په هر شی قادر دے۔ |

**تفسیر** : دا د سورت د ابتداء سره متعلق دے او تفصیل د تقسیم د غنائمو دے او د هغې علتونه هم ورسره بیانوی۔

فَاَنَّ لِلّٰهِ خُمُسَهٗ : د الله لفظ د تبرك او تعظیم او تشریف دپاره ذکر شویدے، یا پدے وجه چه د هر شی اصل مالك الله دے او حکم به هم د هغه چلیږی۔ او د الله او د رسول د حصے نه مراد هم دغه یوه حصه ده، یعنی د غنیمت ټول مال به پنځه حصے کولے شی، څلور حصے به په جنګ کښې شریك کیدونکو مجاهدینو باندے په عدل او انصاف سره تقسیمولے شی۔ د پیدل مجاهد دپاره به یوه حصه او د اس سور (شاهسوار) دپاره به درے حصے، یوه حصه د هغه دپاره او دوه حصے د هغه د اس دپاره۔ رسول الله ﷺ د خیبر د غزا مال په دے طریقه تقسیم کړے وو۔ او پنځمه حصه چه هغې ته په عربۍ کښې خُمُس وائی هغه به الله او رسول الله ﷺ او پدے آیت کښې ذکر شوی خلقو دپاره وی۔

ځینی وائی چه هغه به پنځه حصے کړے شی، یوه حصه د رسول الله ﷺ او د هغه نه روستو به د مسلمانانو په عامو مصلحتونو کښې خرچ کولے شی۔ او دویمه حصه د رسول الله ﷺ د خپلوانو، بیا د یتیمانانو او مسکینانو او د مسافرو ده۔ او ځینی وائی چه دغه

خمس به شپږ حصے کړے شي يو ه به پکښ د الله دپاره وي او بيت المال کښ به کيخودے شي او هغه به هم بيرته د ضرورت مطابق دغه مذکوره خلکو ته په وخت د ضرورت کښ ورکولے شي۔

يا دا چه ټول خمس اول د رسول الله ﷺ حق وو چه هغه به خپل ځان او خپل اهل وعيال دپاره د نفقے په طور اخستو او بيا د جهاد دپاره به ئے سامان پرے اخستو او په هغے به ئے کونډے او يتيمانان هم پالل او د هغه د وفات نه روستو به دا خمس بيت المال ته واپس کولے شي چه دا د ټولو مسلمانانو شريك دے۔

حافظ ابن القيم رحمه الله په «زاد المعاد» کښ ليکلي دي چه نبي کريم ﷺ به د جنګ نه روستو د غنيمت د ټولو مالونو د راجمع کولو حکم کولو، بيا به چه کوم مجاهد د کوم کافر نه څه شے اخستے وو هغه به ئے هغه ته ورکولو، د هغے نه روستو به ئے پنځمه حصه جدا کوله۔ او خپلو خپلوانو، يتيمانانو او مسکينانو او ضرورت مندو مسافرو باندے د خرچ کولو نه روستو چه به څه پاتے شو نو هغه به ئے د اسلام او مسلمانانو په عامو مصالحو (فائدو) کښ خرچ کولو۔ د باقي مال څه حصه به ئے هغه ښځو او ماشومانو او غلامانو ته ورکوله چه د هغوي به د غنيمت په مال کښ هيڅ حصه نۀ کيدله۔ دے نه روستو به ئے باقي مال په دغه جنګ کښ د شريك کيدونکو مجاهدينو مسلمانانو ترمينځ په عدل او انصاف سره برابر تقسيمولو۔ انتهیٰ۔

د «ذو القربى» نه مراد بني هاشم او بني مطلب دي۔ او راجح دا ده چه دا حکم تر قيامته پورے باقي دے۔

په «يتامى» کښ (د راجحے رائے مطابق) مالدار او غريبان ټول داخل دي۔ او د «مساکين» نه مراد هغه حاجت مند خلق دي چه د خپل ضرورت پوره کولو دپاره مال نۀ لري۔

د نبي کريم ﷺ د وفات نه روستو د هغۀ او د هغۀ د خپلوانو حصه به سيدنا صديق اکبرؓ او عمر فاروقؓ د جهاد په تياريانو باندے خرچ کوله، د ابوبکرؓ، عليؓ او قتادةؒ وغيرهم همدا رائے وه۔ امام مالكؒ او سلف صالحينؒ کښ د اکثرو خلقو رائے ده چه د غنيمت په مال کښ به د نبي کريم ﷺ پنځمه حصه د وخت امام د تصرف لاندے وي، او هغه به ئے د اسلام او د مسلمانانو په عامو مصالحو باندے خرچ کوي۔ شيخ الاسلام ابن تيميةؒ همدے رائے ته ترجيح ورکړيده۔ نسائيؒ د عباده بن صامت ﷺ نه روايت کړيدے چه رسول الله ﷺ وفرمايل: [إِلَّا الْخُمُسَ وَالْخُمُسُ مَرْدُوْدٌ عَلَيْكُمْ] (د غنيمت د مال نه پنځمه حصه زما دپاره

ده او هغه به هم په تاسو مسلمانانو خرچ کیږي))۔ (القاسمی وابن کثیر)

اِنْ كُنْتُمْ اٰمَنْتُمْ : یعني که ستاسو ایمان په الله تعالیٰ وي او په هغه آیتونو او ملائکو او په ښکاره مدد چه مونږ د بدر په ورځ په خپل بنده محمد (ﷺ) باندې نازل کړې وو نو که دا منئ نو بیا چه د غنیمتونو د تقسیم په سلسله کښې مونږ کوم حکم نازل کړیدې د هغې اتباع کوئ۔

وَمَآ اَنْزَلْنَا : د (ما) نه مراد مدد دې نو پدې کښې اشاره ده چه په بدر کښې کوم غنیمت راغلې نو دا خو د الله په مدد راغې۔ او پدې کښې عام قانون هم دې چه تا ته مال چا درکړیدې؟ الله درکړیدې نو اوس د هغه په نوم خیرات او زکاة هم ورکړه۔

يَوْمَ الْفُرْقَانِ : د بدر ورځې ته یوم الفرقان ځکه وائي چه د حق او د باطل ترمینځ د فیصلې ورځ وه۔

| اِذْ اَنْتُمْ بِالْعُدْوَةِ الدُّنْيَا وَهُمْ بِالْعُدْوَةِ الْقُصْوٰى وَالرَّكْبُ |
| --- |
| کله چه وئ تاسو په غاړه نیزدې باندې او دوی وو په غاړه لرې کښې او قافله د سوداګرو |
| اَسْفَلَ مِنْكُمْ ؕ وَلَوْ تَوَاعَدْتُّمْ لَاخْتَلَفْتُمْ |
| لاندې وه ستاسو نه، او که وعده کړې وې تاسو نو خامخا به اختلاف کړې وې تاسو |
| فِي الْمِيْعٰدِ ۙ وَلٰكِنْ لِّيَقْضِيَ اللّٰهُ |
| په وخت مقرر کښې لیکن (الله تاسو یې وعدې راجمع کړئ) دې دپاره چه پوره کړي الله |
| اَمْرًا كَانَ مَفْعُوْلًا ۙ لِّيَهْلِكَ مَنْ هَلَكَ عَنْ بَيِّنَةٍ |
| هغه کار چه مقرر شوې وو دې دپاره چه مړ شي هغه څوک چه مړ شو پس د دلیل نه |
| وَّيَحْيٰى مَنْ حَيَّ عَنْ بَيِّنَةٍ ؕ وَاِنَّ اللّٰهَ لَسَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ﴿٤٢﴾ |
| او ژوندې پاتې شي هغه څوک چه ژوندې وو پس د دلیل نه او یقیناً الله خامخا آوریدونکې پوهه دې |

**تفسیر** : پدې کښې د بدر د میدان تصویر پیش کوي چه هلته د الله تعالیٰ د قدرت لوئې نخې راښکاره شوې او مسلمانانو سره د هغوی د کموالي او بې سامانئ او په ظاهر کښې د جنګ ناموافق حالاتو باوجود الله تعالیٰ ښکاره مدد وکړو۔ مفسرینو لیکلي دي چه مشرکان کوم ځاي وسیدل هلته اوبه وې، زمکه یو حده پورې مناسبه وه چه په هغې کښې

خپے نهٔ خوښیدلے، او چرته چه مسلمانان پرانهٔ وو نو هلته اُوبه نهٔ وے او زمکه نامناسب وه، زمکه د شګلنے کیدو په وجه سره په هغے خپه خوښیدله او مزل پکښې مشکل وو او د ابوسفیان قافله د دشمن شا ته وه۔ دارنګه یو لوی فوج د هغے حفاظت کولو، او مسلمانان راوتلی وو د یو تجارتی قافلے د تعاقب (رالاندے کولو) دپاره او د الله په مرضی سره د یو لوئی لښکر سره مقابله وشوه۔ ددے ناموافقو حالاتو باوجود الله تعالیٰ مسلمانانو ته فتح ورکړه، دے دپاره چه الله څه غوختل چه د هغه دین غالبه شی، د هغه کلمه پورته شی او دے دپاره چه اُوس دے نه روستو د اسلام د نهٔ قبلولو هیڅ حجت (دلیل) د هیچا سره باقی پاتے نهٔ شی۔ څوك چه په کفر هلاکیږی نو د هلاك کیدو نه مخکښې هغه ته معلومه شی چه دا په قصد سره د استکبار لاره اختیاروی او په کفر باندے مری، او چه څوك اسلام راوړل غواړی نو هغه پدے یقین سره دا دین قبول کړی چه همدا حق دین دے۔ او په همدے اختیارولو کښې د دنیا او آخرت خیر دے۔

وَلَوْتَوَاعَدْتُّمْ : یعنی که ستاسو یو بل سره وعده د جنګ وے نو تاسو دواړه ډلے به په وعده کښې خلاف شوی وے، وجه دا ده چه په جنګ کښې هره ډله د بلے نه یره کوی او د وعده خلافئ دپاره یوه بهانه جوړوی۔

وَلٰكِنْ : اَیْ لٰکِنِ التَّقٰی بِکُمْ مِنْ غَیْرِ وَعْدٍ لِیَقْضِیَ اللّٰهُ ۔ لیکن الله تاسو یو بل سره ملاؤ کړئ په غیر د وعدے نه دے دپاره چه الله پوره کړی یو کار چه هغه د الله په تقدیر او قضاء کښې پوره کړے شویدے۔ څکه چه الله په تقدیر کښې لیکلی وو چه ابوجهل او د هغه بعض ملګری به په بدر کښې مرداروم نو که وعده شوے وے بیا به په هغے کښې خلاف راغلے وے نو هغه کار به نهٔ وے پوره شوے نو الله ورله اسباب وکتل۔

لِیَهْلِكَ : ددے جنګ او بې وعدے ملاویدو حکمة بیانوی۔ د هلاکت نه مراد دلته کفر دے۔ څکه کافر هلاك دے۔ اَیْ لِیَکْفُرَ مَنْ کَفَرَ بَعْدَ اِقَامَةِ حُجَّةٍ ۔ یعنی دے دپاره چه څوك کفر کول غواړی هغه کفر وکړی پس د حجت قائمیدو نه۔ یعنی که ددے نه روستو هم څوك کفر کوی نو هغه باندے به دلیل قائم وی، نو که کفر کوی هغه به لوی ضدی کافر وی، څکه چه پته ورته ولګیده چه محمد رسول الله (ﷺ) حق دے او معجزات ئے ښکاره شو او ملائك ئے مدد له راغلل او لږ کسان په ډیرو غالبه شو، معلومیږی چه ددهٔ سره شا ته د الله طاقت ولاړ دے، نو الله تعالیٰ فرمائی پریده چه ددے نه روستو ضدیان راښکاره شی۔

وَّ یَحْیٰی مَنْ حَیَّ عَنْۢ بَیِّنَةٍ : دویم مطلب دا دے : یعنی څوك چه په کلمه د توحید

ژوندے شویدے نو هغه به نور ژوندے شي په لیدلو د معجزاتو سره یعنی مؤمنان به ووائي چه زمونږ سره څومره لږے تورے او لږه نفری وه لیکن الله په ډیرو غلبه راکړه معلومه شوه چه دا نبي حق دے، یعنی بصیرت به ئے نور هم زیات شي۔

| |
|---|
| اِذْ يُرِيْكَهُمُ اللّٰهُ فِيْ مَنَامِكَ قَلِيْلًا ۭ وَلَوْ اَرٰىكَهُمْ |
| کله چه وخودل تا ته دوی لره الله تعالیٰ په خوب سنا کښې لږ او که خودلی ئې وے تا ته دوی |
| كَثِيْرًا لَّفَشِلْتُمْ وَلَتَنَازَعْتُمْ |
| ډیر خامخا کمزوری شوی به وے تاسو او خامخا اختلاف به کړے وے تاسو |
| فِي الْاَمْرِ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ سَلَّمَ ۭ اِنَّهٗ |
| په باره د جنګ کښې لیکن الله تعالیٰ بچ کړئ تاسو (د کمزورتیا او اختلاف نه) یقیناً الله |
| عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ﴿٤٣﴾ وَاِذْ يُرِيْكُمُوْهُمْ |
| پوهه دے په هغه خبرو چه په سینو کښې دی۔ او کله چه وخودل الله تعالیٰ تاسو ته دوی |
| اِذِ الْتَقَيْتُمْ فِيْٓ اَعْيُنِكُمْ قَلِيْلًا وَّيُقَلِّلُكُمْ |
| کله چه مخامخ شوئ، په سترګو ستاسو کښې لږ او لږ ئې ښکاره کړئ تاسو |
| فِيْٓ اَعْيُنِهِمْ لِيَقْضِيَ اللّٰهُ اَمْرًا كَانَ مَفْعُوْلًا ۭ |
| په سترګو د هغوی کښې، دے دپاره چه پوره کړی الله تعالیٰ هغه کار چه وو مقرر شوے، |
| وَاِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ الْاُمُوْرُ ﴿٤٤﴾ |
| او خاص الله تعالیٰ ته ورګرځولے شي ټولو کارونه۔ |

**تفسیر** : رسول الله ﷺ دوه خوبونه لیدلی وو یو د جنګ نه مخکښې او بل چه کله غزوه شروع کیدله ددے نه لږ مخکښې۔ امام مجاهدؒ وائي چه الله تعالیٰ نبي کریم ﷺ ته په خوب کښې وخودل چه د کافرانو شمیر کم دے۔ (دوی ډیر وو لیکن الله تعالیٰ ورته کم ښکاره کړل څکه چه په حقیقت کښې کم وو څکه چه مغلوبه کیدونکي وو)

نبي کریم ﷺ چه صحابه کرامؓ ته کله ددے اطلاع ورکړه نو د هغوی همت پورته شو او یو قسم اطمینان ئې حاصل شو۔ که د دشمن شمار زیات په نظر راغلے وے نو د

مسلمانانو همت به خکته شوے وے، او خپل مینځ کښې به ئے اختلاف کولے، چا به وئیلے چه جنګ کول پکار دی، او چا به وئیل چه مونږ د دومره لوی فوج مقابله نشو کولے، اسباب نشته او نفری کمه ده- لیکن الله تعالیٰ په خپل تائید او حکمت سره دوی د همت خکته کیدو او د اختلاف دوارو نه محفوظ وساتل- او کله چه دواړه فوجونه یو بل ته مخامخ شو او لا جنګ شروع شوے نۀ وو نو الله داسے دا وکړل چه د مسلمانانو ظاهری سترګو ته ئے د کافرانو شمارکم کړو، دے دپاره چه دوی ته زیات تقویت حاصل شی، عبد الله بن مسعود ﷛ وائی: ما خپل خوا ته یو ملګری ته ووئیل : [أَتُرَاهُمْ سَبْعِينَ؟] آیا دوی به درته اویا کسان ښکاری ؟ نو هغه ووئیل : [لَا، بَلْ هُمْ مِائَةٌ] نۀ بلکه سل کسان دی-

(ابن ابی حاتم وابن جریر وابن کثیر) واسناده صحیح قاله الحافظ فی المطالب العالیة (٤/ ٢١٠)

(زر کسان ئے ورته د اویا یا سلو کسانو په اندازه ښکاره کړل) او د کافرانو په سترګو کښې ئے مسلمانان کم ښکاره کړل دے دپاره چه په جنګ باندے کافران ښه راتیز شی- کافرانو ووئیل چه دا خو ډیر لږ خلك دی، دوی د زرو کسانو مقابله چرته کولے شی، خو کیدے شی چه د دوی به شا ته کمین وی نو په اس باندے ئے سرے کیر چاپیره وګرځولو، هیڅ کمین ئے ونۀ لیدل نو یقین ئے راغے چه مونږه مسلمانان اُوس ختمولے شو-

او کله چه جنګ ونختو نو الله تعالیٰ ناخاپی د مسلمانانو شمار د کافرانو په سترګو کښې دو چنده ښکاره کړو، دے دپاره چه په دوی باندے هیبت او یره راشی او د الله د عذاب په مینځ کښې راګیر شی لکه چه سورة آلعمران آیت (١٣) کښې الله فرمایلی دی : ﴿يَرَوْنَهُم مِّثْلَيْهِمْ رَأْيَ الْعَيْنِ﴾ چه (کافرانو په خپلو ظاهری سترګو سره مسلمانانو لره د خپل ځان نه دو چنده لیدل)- او دا ټول هرڅه د الله د طرف نه پیدے وجه وشو، دے دپاره چه د الله دین غالب شی، د هغه مؤمنان بندګان په دنیا کښې د فاتح په حیثیت راوځی، او د الله تعالیٰ دشمنان ذلیل او رسوا شی، د هغوی غرور مات شی، او د کفر او شرك چراغ همیشه دپاره مړ شی- نو هر کله چه دومره مهربانه رب دے نو اُوس په هغه یقین ولرئ، لهذا دا د ایمان دلائل هم شو او د پنځمے حصے غنیمت ورکولو دلائل هم شو-

او کله چه جنګ شروع شو نو الله د مسلمانانو په سترګو کښې کافران هم زیات ښکاره کړل دے دپاره چه د الله شکر وکړی چه دومره ډیر کسان مونږ ته الله تعالیٰ راځملول-

وَلَتَنَازَعْتُمْ : تنازع خبرو رابنکلو ته وائی لکه تفصیل ئے ذکر شو-

فِي الْأَمْرِ : اَیْ اَمْرِ الْقِتَالِ- یعنی د جنګ په کار کښې به مو اختلاف کړے وے-

وَلٰكِنَّ اللّٰهَ سَلَّمَ : أَیْ سَلَّمَكُمْ مِنَ الْفَشَلِ وَالتَّنَازُعِ ۔ یعنی الله تعالیٰ تاسو د بزدلئ او تنازع (جګړو) نه بیچ وساتلئ۔ او په تاسو کښې ئې د خوب په سبب بهادری پیدا کړه۔

لِيَقْضِيَ اللّٰهُ أَمْرًا كَانَ مَفْعُولًا : سیدنا زبیر بن العوام ﷛ د دے معنیٰ کوی : دے دپاره چه الله د دوی ترمینځ جنګ واقع کړی دے دپاره چه انتقام واخلی د هغه چا نه چه الله ترے اراده د انتقام لری او انعام وکړی په هغه چا چه اراده لری د پوره کولو د نعمت په هغه باندے د خپلو دوستانو نه۔ (ابن کثیر)

دا دلالت کوی د الله تعالیٰ په کامل مشیئت باندے چه کومه اراده هغه کړی وی نو د هغے دپاره ضرور اسباب پیدا کوی او په هغے کښې تخلف نه راځی۔

| |
|---|
| يٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ اٰمَنُوٓا إِذَا لَقِيتُمْ فِئَةً فَاثْبُتُوا |
| اے ایمان والو ! کله چه مخامخ شوئ تاسو د یوے ډلے د کافرانو سره نو کلك شئ |
| وَاذْكُرُوا اللّٰهَ كَثِيرًا لَّعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴿٤٥﴾ وَأَطِيعُوا اللّٰهَ |
| او یادوئ الله تعالیٰ لره ډیر دے دپاره چه تاسو کامیاب شئ۔ او تابعداری کوئ د الله |
| وَرَسُولَهُ وَلَا تَنَازَعُوا فَتَفْشَلُوا |
| او د رسول د هغهٔ او جګړے مهٔ کوئ (په خپل مینځ کښې) نو کمزوری به شئ |
| وَتَذْهَبَ رِيحُكُمْ وَاصْبِرُوا إِنَّ اللّٰهَ مَعَ الصّٰبِرِينَ ﴿٤٦﴾ |
| او لاړه به شی دبدبه ستاسو او صبر کوئ یقیناً الله تعالیٰ ملګرے د صبرناکو دے۔ |

## جنګی اهم قوانین

**تفسیر** : پدے لاندینی درے آیتونو کښې الله تعالیٰ مسلمانانو ته د یو څو اهمو جنګی قوانینو تعلیمات ورکړیدی چه څه ایجابی او څه عدمی دی، دا کول پکار دی او دا نهٔ دی کول پکار، دے دپاره چه کافرانو او مشرکانو سره په جنګ کښې دوی ته فتح او کامیابی او د الله تعالیٰ مدد حاصل شی :

کله چه د جنګ په میدان کښې مسلمانان د کافرانو سره مخامخ شی نو د صبر او استقامت نه به کار اخلی، او د دشمن مخے ته به د سختے ګټے په شان ودریږی، ځکه چه بزدلی او تختیدل او د دشمن مخے ته جزع فزع کول د بنکاره شکست سبب وی۔

په صحیحینو کښې د عبد الله بن ابی اوفی ﷺ نه روایت دے چه رسول الله ﷺ د یو جنګ په موقعه مسلمانانو ته خطاب وکړو وے فرمایل: [أَيُّهَا النَّاسُ ! لَا تَتَمَنَّوْا لِقَاءَ الْعَدُوِّ وَسَلُوا اللَّهَ الْعَافِيَةَ، فَإِذَا لَقِيتُمُوهُمْ فَاصْبِرُوا وَاعْلَمُوا أَنَّ الْجَنَّةَ تَحْتَ ظِلَالِ السُّيُوفِ]

(بخاری: ۲۹۶۶) مسلم: (۴۶٤۰)

((اے خلقو ! د دشمن د ملاقات ارمان مه کوئ، او د الله نه عافیت غواړئ، دارنګه کله چه دشمنانو سره ملاؤ شوئ نو د صبر نه کار اخلئ او پوهه شئ چه جنت د تورو د سورو لاندے دے)).

۲- وَاذْكُرُوا اللَّهَ: په میدان جنګ کښې او د جنګ په حالت کښې الله تعالیٰ ډیر یادول او د هغه د یاد نه هیڅ کله نۀ غافل کیدل. ځکه چه د الله تعالیٰ د ذکر په برکت سره د الله رحمت نازلیږی، مصیبتونه پورته کیږی، زړونه مضبوطیږی، او فتح او کامیابی د مسلمانانو قدمونو ته راځی. او الله تعالیٰ په سورة رعد آیت (۲۸) کښې فرمایلی دی: ﴿أَلَا بِذِكْرِ اللَّهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوبُ﴾ چه (د الله په یاد سره زړونو ته سکون ملاویږی). او مجاهد ته د جنګ په میدان کښې د ټولو نه زیات د زړۀ اطمینان ته ډیر ضرورت وی.

او دا ذکر به په پټه سره وی ځکه چه صحابه کرامؓ فرمائی: مونږ به په درے وختونو کښې په جهر سره ذکر بد ګڼړلو یو د جنازے په وخت، د قتال په وخت او د عام ذکر اذکار کولو په وخت.

۳- وَأَطِيعُوا اللَّهَ: په هر حال کښې به د اسلامی لښکر نظر په الله او د هغه د رسول په اطاعت وی چه ددے لازمی نتیجه به دا وی چه مجاهدین به د خپل قائد اطاعت ضروری ګڼړی، نو پدے سره به الله تعالیٰ مدد رالیږی او که اطاعت د الله او رسول پریخودے شی نو د الله مدد ختمیږی.

٤- وَلَا تَنَازَعُوا: په مسلمانانو کښې دے اختلاف رانشی ورنه د مسلمانانو قوت به تس نس شی او دشمن به غالبه شی. تنازع دے ته وائی چه مجاهدین د یو بل خپے وهی او اختلافات جوړوی، او که واړه واړه ګروپونه د حملے دپاره لیږی او زړونه د ټولو یو وی نو دا تفرقه او تنازع نۀ ده.

فَتَفْشَلُوا: یعنی ددے په سبب به په تاسو کښې بزدلی راشی.

وَتَذْهَبَ رِيحُكُمْ: ۞ قتادۃ او ابن زید وائی: ددے نه مراد یا باد صبا دے چه د صبا په وخت به د مدد یو هواء رالوزی نو هغه به درنه الله ختمه کړی لکه رسول الله ﷺ فرمائی:

[نُصِرۡتُ بِالصَّبَا] بخاری ومسلم: رقم: (۹۰۰) ما سره د باد صبا په وجه مدد شویدے۔ دا د رسول الله ﷺ معجزه وه۔ (بغوی) ❁ مګر ظاهر دا ده چه دلته د ریح نه مراد (اَلنُّصۡرَةُ وَالۡقُوَّةُ وَالۡجُرۡأَةُ) مدد او طاقت او بهادری ختمیدل دی۔ (مجاهد، سُدی)

لکه د یو کاری د تاثر نه چه هوا ووځی بیا کارے نشی چلیدے۔ ❁ یا د ریح نه مراد رعب دے یعنی د مسلمانانو په کافرانو باندے یو رعب وی هغه به ختم شی۔

| وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ خَرَجُوا مِن دِيَارِهِم بَطَرًا |
|---|
| او مه کیږئ په شان د هغه کسانو چه وتلی وو د کورونو خپلو نه په تکبر |
| وَرِئَاءَ النَّاسِ وَيَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ ۚ وَاللَّهُ بِمَا |
| او په ځان خودنه سره خلقو ته او منع کوی خلق د لارے د الله نه او الله په هغه عملونو |
| يَعۡمَلُونَ مُحِيطٌ ﴿٤٧﴾ |
| چه دوی ئے کوی راګیرونکے دے۔ |

**تفسیر**: ۵– مجاهد چه کله قتال ته ځی نو ریاکاری پکښ پیدا کیدے شی، کله داسے حال ښکاره کوی چه زهٔ جنګ ته روان یم، نو الله فرمائی چه د مجاهدینو مقصد دے صرف د الله تعالیٰ رضا وی، بل دنیاوی کوم مقصد مثلاً ریاکاری، یا د بهادرئ خودل وغیره نهٔ وی، ورنه د الله تائید به نهٔ حاصلیږی۔ لکه چه ابوجهل او نورو د قریشو کافرانو وکړه چه د بدر میدان ته د دوی د رارسیدو نه مخکښ ابوسفیان قاصد راولیږلو او دوی ته ئے ووئیل چه اُوس واپس شئ، ځکه زمونږ قافله د مسلمانانو د مقابلے نه رابهر شویده۔ نو دوی انکار وکړو او وے وئیل چه مونږ به بدر پورے ضرور ځو، هلته به پړاؤ اچوو، ښه غوښے به خورو، او شراب به څکو، او د ګډا او خوشحالئ محفلونه به جوړوو دے دپاره چه د عربو خلقو ته زمونږ د شان او شوکت پته ولګی او همیشه دپاره زمونږ رعب د هغوی په زړونو کښ کینی۔ نو دوی همدغسے وکړل او نتیجه دا راووتله چه د مسلمانانو او د ملائکو د لاسونو نه دوی ته د مرګ تریخ جام وڅکلے شو، او د دوی میندو او خویندو په دوی ژړا ګانے وکړے۔ نو په دے آیت کښ ابوجهل او د هغه ملګرو طرف ته اشاره ده۔

بَطَرًا: زجاج وائی: اَلطُّغۡيَانُ فِى النِّعۡمَةِ وَتَرۡكُ شُكۡرِهَا۔ یعنی په نعمت کښ سرکشی کول

او د هغې شکر نه کول، دا ئې لغوی معنیٰ ده۔

علماء وائی : [فَإِنَّ النِّعْمَةَ إِذَا تَفَاخَرَ بِهَا الرَّجُلُ وَأَنْفَقَ ذٰلِكَ فِيْ عِصْيَانِ الرَّبِّ فَذٰلِكَ هُوَ الْبَطَرُ]۔ یو بنده ته الله تعالیٰ یو نعمت ورکړو او هغه پرې فخر شروع کړو او هغه ئې د خپل رب په نافرمانئ کښې ولګولو دې ته بطر وائی۔ او پدې کښې بیا د تکبر معنیٰ هم وی لکه حدیث کښې د تکبر په تعریف کښې راغلی دی (بَطَرُ الْحَقِّ) حق له دیکه ورکول دی۔

وَرِئَاءَ النَّاسِ : ریاء إِبْطَانُ الْمَعْصِيَةِ (وَالْقَبِيْحِ) وَإِظْهَارُ الطَّاعَةِ (وَالْجَمِيْلِ) ګناه او قبیح کار پټ ساتل او طاعت او ښائسته کار ښکاره کول دی۔ (زجاج- بغوی) لکه مشرکینو عربو ته خپله بهادری او د دشمن نه بدله اخستل ښکاره کول، او مقصد ئې پدې کښې صد عن سبیل الله وو۔ لکه دا د ټولو کافرو طریقه ده چه فساد او شر او شیطان توب په دنیا کښې عام کول غواړی۔ کله چه قریش میدان ته راغلل نو رسول الله ﷺ داسې دعا وکړه : [اَللّٰهُمَّ هٰذِهٖ قُرَيْشٌ قَدْ أَقْبَلَتْ بِخُيَلَائِهَا وَفَخْرِهَا تُحَادِلُكَ وَتُكَذِّبُ رَسُوْلَكَ، اَللّٰهُمَّ فَنَصْرَكَ الَّذِيْ وَعَدْتَّنِيْ]

اې الله ! دا قریش دی چه په خپل تکبر او فخر سره رامخامخ شو، چه تا سره جګړه کوی او ستا د رسول تکذیب کوی نو اې الله ! ما سره هغه مدد وکړه چه تا ما سره د هغې وعده کړیده۔ (بغوی) وقریب ورد فی مسلم :٤٦٨٧) نو مؤمنان به تکبر نه کوی او د الله تعالیٰ د دین د ترقئ د خاطره او د هغه د رضا د حاصلولو دپاره به جهاد ته وځی۔

| وَإِذْ زَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ أَعْمَالَهُمْ وَقَالَ لَا |
|---|
| او کله چه ښائسته ښکاره کړل دوی ته شیطان عملونه د دوی او وې وئیل نشته |
| غَالِبَ لَكُمُ الْيَوْمَ مِنَ النَّاسِ وَإِنِّيْ جَارٌ لَّكُمْ ۚ فَلَمَّا |
| هیڅوک غلبه کونکې په تاسو نن ورځ د خلقو نه او یقیناً زۀ امدادی یم ستاسو نو هر کله |
| تَرَآءَتِ الْفِئَتٰنِ نَكَصَ عَلٰى عَقِبَيْهِ وَقَالَ إِنِّيْ بَرِيْٓءٌ مِّنْكُمْ |
| چه یو بل ولیدل دواړو ډلو نو واوړیدو په پوندو خپلو او وې وئیل یقیناً زۀ جدا یم ستاسو نه |
| إِنِّيْٓ أَرٰى مَا لَا تَرَوْنَ إِنِّيْٓ أَخَافُ اللّٰهَ ۚ وَاللّٰهُ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ﴿٤٨﴾ |
| یقیناً وینم زۀ هغه شې چه تاسو ئې نه وینئ، یقیناً زۀ یریږم د الله نه او الله سخت عذاب والا دے۔ |

**تفسیر** : شیطان د قریشو مشرکانو په زړۀ او دماغو کښې دا خبره کینوله چه ستاسو

اراده ډیره ښه ده، څکه چه پدې طریقه د محمد او د هغه د ملګرو ملا ماتیږي او یقین وکړئ چه نن به تاسو غالبه کیږئ او محمد او د هغه ملګرو ته به په تیخته سره ځای هم نۀ ملاویږي، او زۀ ستاسو مُعِین او مددګار یم، قریش کله چه یو ځای ته راورسیدل نو په زړونو کښې ئې دا سوچ راغلو چه دلته بنو بکر او بنو مدلج قبیله وسیږي، او دوی زمونږ خلاف دي (څکه چه دوی پورې ئې مخکښې د یو قتل قرض وو) که مونږ د محمد (ﷺ) سره جنګ شروع کړو نو دوی به راباندې راشي نو د جرندې د دوه پلونو ترمینځ به راګیر شو نو شیطان ورته د سُراقه بن مالك بن جُعُشُم په شکل راغلو چه دا د بنو مدلجو سردار وو ورته ئې ووئیل چه زمونږ او ستاسو اختلاف شته هغې سره به روستو ګورو، خو اُوس د محمد (ﷺ) سره زمونږ شریکه دشمني ده، نو زۀ ستاسو ملګرې یم او زما قوم روستو راروان دې هغه به پرې د شا نه حمله کوي هیڅ فکر مۀ کوئ، نو قریش ئې په دې کار باندې ښه راتیز کړل. (الله تعالیٰ دوی د مرګ ځای ته رارَسول- دوی سره شیطان د هغه په شکل راروان وو لکه دا د شیطان د ګمراه کولو طریقه ده چه کله د انسان شکل اختیاروي)

لیکن کله چه دواړه فوجونه د یو بل مخامخ شو او شیطان ملائك د مسلمانانو د مدد دپاره د آسمان نه راکوزیدو کښې ولیدل نو په شا وتختیدو او وې وئیل چه زۀ ستاسو د لوظ د حفاظت نه براءت ښکاره کوم، زۀ خو ملائك وینم چه د آسمان نه راکوزیږي چه هغه تاسو نۀ وینئ، او زۀ یریږم چه الله تعالیٰ به پدې عذاب کښې ما هم ګرفتار کړي. (یعني ملائك به راپسې راشي او ما به قتل کړي).

ابلیس د حارث بن هشام په نوم باندې یو مشرك له لاس ورکړې وو، نو د هغه نه ئې لاس راښکلو هغه ورته ووئیل [أَيْنَ يَا سُرَاقَةُ !؟] کوم خوا روان شوې اې سراقه ! ؟ آیا تا نۀ وو وئیلي چه زۀ تاسو له پناهي درکوم؟. نو حارث بن هشام د هغه پورې ونختو چه نښې تلې نو ابلیس هغه له په سینه کښې داسې ګوزار ورکړو چه هغه بیهوشه راپریوتو، نو دۀ ته ووئیل شو چه خوار شې اې سراقه ! آیا پدې سخت حالت کښې تۀ مونږ پریدې او زمونږ نه جدا کیږې؟ هغه ووئیل : زۀ تاسو نه بیزاره یم، زۀ هغه څه وینم چه تاسو ئې نۀ وینئ.

بیا دا د الله تعالیٰ دشمن لاړو ځان ئې غائب کړو او په دریاب کښې ئې ځان غوپه کړو. (روستو زمانه کښې چا سراقه ته ووئیل چه آیا تۀ بدر ته راغلې وې ؟ هغه ووئیل زۀ خبر هم نۀ یم).

د سُراقه په تیخته لیدلو سره ابوجهل ویریدو چه چرته د قریشو په لښکر کښې افراتفري

واقع نشي پدې وجه فوراً مخکښ شو او وې وئیل چه سراقه د محمد او د هغه د ملګرو سره ملاؤ شوې وو پدې وجه مونږ له دهوکه راکولو دپاره تیخته کوي۔ (دا بعینهٖ فرعوني خبره وه) بیا ئې ووئیل په لات او عزیٰ مې قسم دې! مونږ به محمد او د هغه ملګري په پرو ترو او ځان سره به ئې بوځو، پدې وجه دوي مهٔ وژنئ بلکه دوي ژوندي راونیسئ۔

وَاِذْ زَيَّنَ : دا تزیین په طریقه د وسوسه هم وو لکه حسن بصريؒ او اصمؒ وئیلي دي چه شیطان بغیر د انسان د شکل اختیارولو نه د کافرانو په زړونو کښ وسوسه اچولې وه۔ مګر ظاهر دا ده چه دواړه کارونه ئې کړي وو، د هر انسان سره خپل خپل شیطان وسوسه هم اچولې وه او بیا د سراقه په شکل ابلیس هم راغلے وو۔

جَارٌلَّكُمْ : یعني زهٔ ستاسو ګاونډي (یعني مددګار) یم، یا پناهي درکونکے یم۔

اِنِّيْٓ اَخَافُ اللّٰهَ : **سوال** : آیا شیطان د الله نه په یره کولو سره مسلمان شو ؟

**جواب** دا دې چه دا خوف طبعي دې چه انسان د ظاهري اسبابو نه یریږي چه دنیا کښ به رابانديې د فلاني کار کولو په وجه عذاب راشي، او دا یره مطلوب نهٔ ده، بلکه شرعي یره مطلوب ده او هغه دا چه انسان داسې یره وکړي چه بیا د الله تعالیٰ نافرماني پریږدي۔

مفسرین وائي : ابلیس ددې نه یریدو چه هغه معلوم وخت چه الله تعالیٰ ورسره وعده کړې وه چه دې به پکښ مري هغه چرته د بدر ورځ نهٔ وي۔

قتادهؒ وائي : كَذَبَ عَدُوُّ اللّٰهِ وَمَا بِهٖ مَخَافَةُ اللّٰهِ ۔ د الله دشمن دروغ وئیلي وو چه زهٔ د الله نه یریږم او د الله نه ئې هیڅ یره نهٔ وه لیکن هغه پدې پوهه وو چه زما ددې خلکو د مقابلې طاقت نشته، او دا د الله د دشمن عادت دې چه انسان په سخت وخت کښ پریږدي۔ (ابن کثیر)

ظاهر دا ده چه دا ئې حقیقةً وئیلي وو چه زهٔ د الله نه یریږم۔ یعني د خپل مرګ نه یریدو۔

| اِذْ يَقُوْلُ الْمُنٰفِقُوْنَ وَالَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ |
|---|
| کله چه ووئیل منافقانو او هغه کسانو چه په زړونو د هغوي کښ مرض دې، |
| غَرَّ هٰٓؤُلَآءِ دِيْنُهُمْ ؕ وَمَنْ يَّتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ |
| دهوکه کړیدي دې کسانو (مؤمنانو) لره دین د دوي، او څوک چه ځان سپاري په الله |
| فَاِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿٤٩﴾ |
| نو یقیناً الله زورور حکمتونو والا دې۔ |

**تفسير**: په مکه کښې څه کسانو په شك سره ايمان راوړے وو خو خپلوانو د هجرت نه منع کړي وو، نو کله چه مشرکان بدر ته راوتل نو دوی ئے هم ځان سره په زوره راوستل نو دوی چه کله د مسلمانانو کموالے وکتلو نو شك ئے زيات شو، او مرتد شو او دا ئے ووئيل چه دا خلك خو دين په دهوکه کښې اچولی دی (چه د دومره لوی لښکر مقابله کوی او په دوی ځانونه وژنی) نو دوی ټول ووژل شو چه نومونه ئے دا دی: (قَيْس بن الوليد بن المغيره المخزومي، ابوقيس بن الفاكه بن المغيرة المخزومي، حارث بن زَمْعَة بن الاسود بن المطلب، على بن أُمَية بن خَلَف الجمحي، اَلْعَاص بن مُنَبِّه بن الحَجَاج) (البغوی)

د ابن عباس ﷺ نه روايت شويدے چه کله دواړه فوجونه يو بل ته نزدے شو او دواړو ته الله تعالیٰ هريو په نظر کښې کم وخودل نو مشرکانو ووئيل چه دے مسلمانانو لره خپل دين په دهوکه کښې اچولی دی، پدے وجه د دومره کم شمار کيدو باوجود پدے کچه خيال کښې مبتلا شويدی چه دوی مونږ ته شکست راکوی۔

يوه بله رائے دا ده چه کله مسلمانان د مدينے نه بدر طرف ته راروان شو نو د هغوی شمير ډير کم وو او د هغوی سره هيڅ د جنګ سامان هم نهٔ وو، نو منافقان او يهوديان د دوی سره د جنګ کيدو نه خبر شو نو دغه خبره ئے وکړه چه اُوس به ئے ټول ختم کړی۔ مګر مشهوره دا ده چه دا د مکے منافقان مراد دی۔

مَّرَضٌ: يعنی شك دے۔ يعنی منافقان هم دی او شکيان هم۔ يا (وَالَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ) دا عطف تفسير دے د منافقانو دپاره۔

غَرَّ هٰٓؤُلَآءِ: دهوکه د دوی داسے وه چه دوی سره الله وعدے د مدد کړيدی او هغه به ورسره پوره نشی ځکه چه دومره کم چرته د زرو کسانو مقابله کولے شی۔ مطلب ئے دا وو چه د الله وعدے غلطے دی۔ (العياذ بالله)

وَمَنْ يَّتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ: الله تعالیٰ د دوی جواب ورکړو چه څوك په الله بهروسه کوی، په هغه باندے هيڅوك غالب نشی راتلے، او نهٔ هغه لره څوك ذليله او رسوا کولے شی۔

| وَلَوْ تَرٰٓى اِذْ يَتَوَفَّى الَّذِيْنَ كَفَرُوا ۙ الْمَلٰٓئِكَةُ |
|---|
| او که چرته وينے تهٔ هغه وخت چه ساه اخلی د هغه کسانو نه چه کافران دی ملائك |

| يَضْرِبُوْنَ وُجُوْهَهُمْ وَأَدْبَارَهُمْ ج وَذُوْقُوْا |
|---|
| (نو ناشنا حالت به وينې) وهي به مخونه د دوی او شاګانې د دوی او (ورته وائي به) وڅکئ |
| عَذَابَ الْحَرِيْقِ ﴿۵۰﴾ ذٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتْ |
| عذاب د اُور سوزونکی۔ دا سزا په سبب د هغې عملونو ده چه مخکښې کړيدی |
| أَيْدِيْكُمْ وَأَنَّ اللهَ لَيْسَ بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيْدِ ﴿۵۱﴾ |
| لاسونو ستاسو او يقيناً نهٔ دے الله تعالىٰ هيڅ ظلم کونکے په بندګانو۔ |

**تفسير**: ۱– ددے کسانو نه مراد دغه قريش کافران دي چه د بدر په ميدان کښې د مسلمانانو په لاسونو وژل کيدل نو الله ورته ملائك د مرګ راواستول او په وخت د مرګ کښې ئے دغه سزا ورکره چه مخونه او شاګانې (کناتی) ئے ورله د اُور په چابکونو وهل (سعيد بن جبيرؒ ومجاهدؒ) او په هر جهاد کښې داسے کار کيږی چه دلته د مجاهد په لاس ووهل شي او بيا چه کله ملائك ترے روح اخلي نو هغه ئے هم پرے دپاسه ووهي۔

۲– د عبد الله بن عباسؓ نه نقل دي چه ددے نه مراد د قريشو هغه کافران دي چه په بدر ميدان کښې د مسلمانانو په خلاف صفونو کښې ودريدلي وو نو کله چه به مشرکان مسلمانانو ته رامخکښې شو، ملائکو به د هغوی مخونه په تورو ووهل، او کله چه به ئے شا راواړوله نو ملائکو به د شاتنه ووهل۔ او د توفی نه مراد قتل دے۔ او د مخونو او شاګانو نه مراد ټول بدنونه دي۔ (بغویؒ)

۳– او څينی مفسرينو وئيلي دي چه دلته د کافرانو نه مراد هغه دي چه په ميدان کښې وژلی شوی نهٔ وو، او په تيښته مکې ته رسيدلو کښې کامياب شوی وو۔ يعنی کله چه د دوی مرګ راغلو نو ملائکو د دوی په مخونو او شاګانو کوړے راووړلے۔

٤– او يوه رائے دا ده چه داسے به د قيامت په ورځ وی کله چه به کافران جهنم طرف ته راخکلے شي۔ (بغویؒ) دا او اول قول ظاهر دے۔

حافظ ابن کثيرؒ وائي چه اګرکه ددے آيت تعلق د بدر د واقعے سره دے ليکن دا حکم ټولو کافرانو ته شامل دے، لکه چه الله په سورة الانعام آيت (۹۳) کښې فرمائيلي دي: ﴿وَالْمَلٰٓئِكَةُ بَاسِطُوْٓا اَيْدِيْهِمْ﴾ ملائك به د خپل رب په حکم سره دوی وهي)۔ او الله تعالىٰ به دوی ته وائي چه دا ستاسو د عملونو نتيجه ده۔

وَلَوْ تَرٰٓى : دا خطاب هر مخاطب ته دے۔ او ددے جواب پټ دے۔ [لَرَاَیْتَ اَمْرًا هَائِلًا] یعنی که ته دا حال لیدلے وے چه دوی سره څه کیږی، نو تا به ضرور یو یره ونکے حالت لیدلے وے، په تا به ورسره هیبت راغلے وے۔

| |
|---|
| كَدَاْبِ اٰلِ فِرْعَوْنَ وَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ |
| حال د دوی په شان د حال د فرعونیانو دے او د هغه کسانو چه مخکښې دی د دوی نه |
| كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ فَاَخَذَهُمُ اللّٰهُ بِذُنُوْبِهِمْ اِنَّ |
| کفرئے کړے وو په آیتونو د الله، نو راونیول دوی لره الله په سبب د ګناهونو د دوی یقیناً |
| اللّٰهَ قَوِیٌّ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ﴿۵۲﴾ ذٰلِكَ بِاَنَّ |
| الله تعالیٰ قوت والا سخت عذاب ورکونکے دے۔ دا عذاب پدے وجه دے چه یقیناً |
| اللّٰهَ لَمْ يَكُ مُغَيِّرًا نِّعْمَةً اَنْعَمَهَا عَلٰى قَوْمٍ حَتّٰى |
| الله تعالیٰ نۀ دے بدلونکے نعمت لره چه کړے وی هغه په یو قوم باندے تردے |
| يُغَيِّرُوْا مَا بِاَنْفُسِهِمْ وَاَنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ﴿۵۳﴾ |
| چه بدل کړی دوی هغه څه چه په زړونو د دوی کښې دی او یقیناً الله آوریدونکے پوهه دے |

**تفسیر** : الله تعالیٰ د بدر په غزا کښې د شریك کیدونکو کافرانو بد انجام بیانولو نه روستو اُوس دلته دا بیانوی چه د کافرو قومونو سره الله تعالیٰ همیشه او په هر دور کښې همدا سلوك کړیدے، لکه څنګه چه ددے کافرانو انجام بد شو، دغه شان د دوی نه مخکښې د فرعونیانو او د نورو کافرانو انجام بد شوے وو۔

كَدَاْبِ : اَیْ حَالُهُمْ كَحَالِ آلِ فِرْعَوْنَ فِي الضَّرْبِ وَالْعَذَابِ۔

یعنی د دوی حال د فرعونیانو په شان دے په وهلو او عذاب کښې۔

ذٰلِكَ : هغه عذاب ته اشاره ده چه په هغے کښې الله تعالیٰ کافران او مشرکان قومونه مبتلا کړیدی او د هغے سبب ئے بیان کړیدے چه الله تعالیٰ د یو قوم نه خپل نعمتونه په هغه وخت اخلی چه کله د دوی دینی حالت خراب شی، عقیده ئے خرابه شی او په قول او عمل هر اعتبار سره ددے نعمتونو حقدار نۀ شی لکه چه الله تعالیٰ په سورة رعد آیت (۱۱) کښې فرمایلی دی : ﴿اِنَّ اللّٰهَ لَا يُغَيِّرُ مَا بِقَوْمٍ حَتّٰى يُغَيِّرُوْا مَا بِاَنْفُسِهِمْ﴾ چه الله تعالیٰ د یو

قوم حالت تر هغه وخت پورې نهٔ بدلوي چه ترڅو پورې هغوي خپله خپل حالت بدل نکړي) يعنې کله چه يو قوم په گناه کښې اخته کيږي نو الله تعالیٰ د هغوي نه خپل نعمتونه اخلي۔

او دا دفع د وَهَم هم ده چه دا خلك په مزو کښې وو، او الله تعالیٰ په عذابونو کښې گرفتار کړل دا ولې ؟ نو الله دا وَهم ختموي چه د الله قانون دا دې چه هغه چا ته نعمت ورکړي نو بيا ترې زر بلا وجه نهٔ اخلي بلکه دا انسانان په خپل ځان باندې خپله دا د نعمت حالت بدل کړي، هغه دا چه ناشکري شروع کړي نو الله تعالیٰ د ناشکرئ سره د نعمت اخستل او مصيبت راتلل ليکلي دي۔

| كَدَأْبِ اٰلِ فِرْعَوْنَ وَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ط |
|---|
| حال د دوي په شان د حال د فرعونيانو دې او د هغه کسانو چه مخکښې وو د دوي نه |
| كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِ رَبِّهِمْ فَاَهْلَكْنٰهُمْ |
| دروغژن ئې گنړلي وو آيتونه د رب خپل نو هلاك کړل مونږ دوي لره |
| بِذُنُوْبِهِمْ وَاَغْرَقْنَآ اٰلَ فِرْعَوْنَ وَكُلٌّ كَانُوْا ظٰلِمِيْنَ ﴿۵۴﴾ |
| په سبب د گناهونو د دوي او غرق کړل مونږ فرعونيان او دا ټول وو ظالمان۔ |

**تفسير :** ځينې مفسرين دا د مخکښې آيت تفصيل گرځوي مگر ظاهر دا ده چه دواړو کښې فرق دې، مخکښې تشبيه په ضرب او عذاب کښې ده او دلته تشبيه په تغيير (بدلولو) د نعمت کښې ده۔ يا تشبيه په تکذيب کښې ده۔

يعنې لکه څنگه چه فرعونيان او د هغوي نه مخکنو کافرانو د خپل رب د آيتونو تکذيب وکړو او د هغه ورکړې شوي نعمتونه ئې غلط استعمال کړل او گناهونه ئې شروع کړل نو الله د هغوي نه هغه نعمتونه راخکل او هغوي ئې هلاك کړل او فرعونيان ئې په درياب کښې ډوب کړل۔

| اِنَّ شَرَّ الدَّوَآبِّ عِنْدَ اللّٰهِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا |
|---|
| يقيناً بد ترين د ژندہ سرو نه په نيز د الله تعالیٰ هغه کسان دي چه کفر ئې کړيدې |

| فَهُمۡ لَا يُؤۡمِنُونَ ﴿٥٥﴾ ٱلَّذِينَ عَٰهَدتَّ مِنۡهُمۡ ثُمَّ يَنقُضُونَ |
|---|
| نو دوی ایمان نهٔ راوړی۔ هغه کسان دی چه لوظ کړے تا د دوی سره بیا ماتوی دوی |
| عَهۡدَهُمۡ فِي كُلِّ مَرَّةٖ وَهُمۡ لَا يَتَّقُونَ ﴿٥٦﴾ |
| لوظ خپل په هر ځل کښې او دوی ځان نهٔ ساتی (د ګناهونو نه) |

**تفسیر** : پدے دوه آیتونو کښې الله تعالیٰ د کافرانو په قتال باندے تیزی ورکوی په ذکر کولو د بدو صفاتو د هغوی سره۔

شَرَّ الدَّوَآبِّ : دواب انسانان او حیوانانو تولو ته وائی، مګر اکثر استعمال ئے د حیواناتو دپاره کیږی نو د (شَرُّ النَّاسِ) په ځای ئے شَرُّ الدَّوَآب ووئیل، پدے کښې اشاره ده چه ددے خلکو د انسانیت سره هیڅ تعلق نشته بلکه د کفر په وجه د ځناورو نه هم ناکاره دی۔

كَفَرُوا : دا ئے بد صفت دے۔

فَهُمۡ لَا يُؤۡمِنُونَ : د ایمان اراده هم نهٔ لری نودوی د مار او لړم نه هم زیات ناکاره دی، آیا د مار او لړم وژل پکار نهٔ دی؟!۔

ثُمَّ يَنقُضُونَ عَهۡدَهُمۡ : یعنی دوی همیشه وعده ماتونکی دی۔ د مشرکانو سره وعده وه چه مونږ سره جنګ مهٔ کوئ، مونږ به ئے تاسو سره نهٔ کوو لیکن هغوی به جنګ کولو، دارنګه په صلح حدیبیه کښې د مشرکانو سره وعده وشوه لیکن هغوی وعده ماته کړه، د بنو قریظه، د بنو نضیرو او بنو قینقاعو سره وعدے وشوے هغوی ماتے کړے۔

وَهُمۡ لَا يَتَّقُونَ: یعنی د وعدے د ماتولو نه ځان نهٔ ساتی۔ او د هغے د عواقبو نه نهٔ یریږی۔

| فَإِمَّا تَثۡقَفَنَّهُمۡ فِي ٱلۡحَرۡبِ فَشَرِّدۡ بِهِم مَّنۡ |
|---|
| پس که چرته مونده کړے ته دوی په جنګ کښې نو وتروه په سبب د دوی هغه څوک |
| خَلۡفَهُمۡ لَعَلَّهُمۡ يَذَّكَّرُونَ ﴿٥٧﴾ |
| چه روستو دی د دوی نه، دے دپاره چه دوی (یعنی روستو خلق) نصیحت قبول کړی۔ |
| وَإِمَّا تَخَافَنَّ مِن قَوۡمٍ خِيَانَةٗ فَٱنۢبِذۡ إِلَيۡهِمۡ |
| او که چرته یریږے ته د یو قوم نه د لوظ ماتولو نو وغورزوه دوی ته (د لوظ ختمول) |

عَلٰی سَوَآءٍ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا یُحِبُّ الْخَآئِنِیْنَ ﴿۵۸﴾

په برابرئ- (یعنی چه دواړه برابر شی)- یقیناً الله مینه نهٔ کوی د خیانتګرو سره-

**تفسیر** : د دغه مخکنو بدو صفاتو په وجه اُوس د هغوی په جنګ باندے تیزی ده-

فَشَرِّدْبِهِمْ : تشرید تره ولو او یره ولو ته وائی او (مَنْ خَلْفَهُمْ) نه مراد اولاد او د دوی تابعدار دی-

یعنی دوی ته په جنګ کښ داسے وهل ورکړه چه د هغے په وجه ددوی نه روستو د دوی په ملګرو او د دوی په نسلونو کښ یره خوره شی تردے چه هغوی ستا طرفته پدے یره سره مخ راوانهٔ ړوی چه هسے نهٔ چه زمونږ به هم هغه حشر شی کوم چه د دوی د مشرانو شوے وو-

یا ددے نه مراد دا دے چه که دوی په جنګ کښ ونیولے شی نو دوی ته ډیر سخت عذاب ورکړے شی، دے دپاره چه د نورو دپاره د عبرت نخه جوړ شی چه آینده کښ وعده خلافی ونکړی-

د سعید بن جبیرؒ او مجاهدؒ نه روایت شویدے چه دا آیتونه د مدینے د یهودیانو خاصکر د بنو قریظه په باره کښ نازل شوی وو- او چونکه په تیر شوو آیتونو کښ د اسلامی دعوت دشمنانو (یعنی د قریشو کافرانو) ذکر وو پدے وجه دلته ضمناً بنو قریظه ذکر شو- او الله تعالیٰ دوی بدترین ځناور وګرځول، او د هغوی په باره کښ ئے خبر ورکړو چه دوی هیڅ کله هم ایمان نهٔ راوړی- همدا وجه ده چه کله د دوی د قلعه ګانو محاصره کیدو نه روستو دوی ونیول شو نو صحابه کرامؓ د دوی نه یو یو ته ووئیل چه اسلام قبول کړه، دے دپاره چه قتل نکړے شے، لیکن هغوی قتل کیدل د اسلام په راوړو باندے غوره کړل- (لکه زمونږ په کتاب «سیرتِ رسول» کښ د زبیر بن باطا قصه وګوره)

د دوی دریم خاص صفت دا وو چه دوی کله هم د رسول الله ﷺ سره معاهده کړے نو په هغے باندے قائم نهٔ دی پاتے شوی- یو ځل ئے معاهده وکړه چه دوی به د رسول الله ﷺ خلاف جنګ نهٔ کوی، او نهٔ به د چا د دوی په خلاف مدد کوی، نو په دے باندے قائم پاتے نهٔ شو، او د قریشو ئے د وسلے په ذریعه مدد وکړو- او کله چه د دوی دے لوظ ماتی معلومات وشو نو د خپلے غلطئ اقرار ئے وکړو او عذر ئے پیش کړو او دوباره ئے لوظ تازه کړو، لیکن بیا ئے د غزوهٔ احزاب په موقعه بے لوظی وکړه او د دوی یو سردار کعب بن الاشرف مکے ته

لاړو او د قریشو کافرانو ئے د مسلمانانو په خلاف د جنګ دپاره تیار کړل.

**لَعَلَّهُمْ يَذَّكَّرُونَ**: دے دپاره چه روستني خلك نصیحت او عبرت واخلي. لکه صحابه کرامؓ داسے جنګونه وکړل چه ډیره موده پورے کافران د مؤمنانو مسلمانانو نه یریدل او تر اُوسه پورے د کافرانو هغه جنګونه یاد دي پدے وجه د مسلمانانو نه یره کوي.

پدے کښې اشاره ده چه د دوی سره د سختئ حکم کول او د دوی وینه تویه کول د دوی د تربیت دپاره دي، او دے دپاره چه د دوی په شان کافران د دوی نه عبرت واخلي، او پدے کښې د جنګ مینه او د دوی د غنیمتونو طمع مقصد نهٔ ده. او د جنګ په باره کښې دا ارشاد د تولو قانډینو ترمینځ پدے زمانه کښې هم اتفاقي دے، لیکن د هغوی پدے سره انتقام اخستل او سینه یخول او بندګان ذلیله کول و د هغوی د غنیمتونو او زمکونه فائدے اخستل مقصد وي، نهٔ نصیحت او تربیت کول. (المنار ۱۰/۴۴)

**وَإِمَّا تَخَافَنَّ مِنْ قَوْمٍ خِيَانَةً**:

دا د جنګ د قوانینو او اصولو نه یو بل اَهم قانون دے چه دیته د نقض العهد نه د یرے قانون وائي. **صورت** ئے دا دے چه د یو قوم سره معاهده شویده چه زمونږ او ستاسو به جنګ نهٔ وي (د څه مصلحت په بنا باندے) نو مسلمانان غواړي چه د نورو کافرانو سره جنګونه کوي مګر زړه کښې ئے دا خطره ده چه دا کافران راته په عین موقعه کښې وعده ماته نکړي او د دوی نه څه نا څه نښے د وعده خلافئ ښکاره کیږي، نو ددے علاج دا دے چه دوی ته به دا اطلاع ورکړے شي چه آینده زمونږ او ستاسو مینځ کښې هیڅ معاهده نشته دے دپاره چه دواړه فریقین خپل ځانونه د یو بل نه په حفاظت کښې ساتي او هیڅ یو فریق په ناخبرئ او غلطئ کښې ونهٔ وهلے شي. نو که خبر ورکړے شو او بیا پرے مسلمانان حمله وکړي نو دا به وعده ماتول نهٔ وي، دا صورت په هغه وخت کښې دے چه د دشمن نه لا خیانت ښکاره شوے نهٔ دے، لیکن خطره د خیانت وي او که خیانت ترے ښکاره شو مثلاً ځیني مسلمانانو ته ئے تکلیف ورکړو، نو بیا د خبر ورکولو نه بغیر هم پرے حمله جائز ده لکه څنګه چه رسول الله ﷺ په بنو نضیرو باندے حمله کړے وه. او دغه شان فتح د مکه هم پدے طریقه وشوه، چه قریشو د خزاعه قبیلے یو تن قتل کړو کوم چه د رسول الله ﷺ حلفاء وو نو په هغے سره دوی د خپلے بے لوظئ اعلان وکړو، نو رسول الله ﷺ د مسلمانانو فوج واخستو او د هغوی د ذلیله کولو دپاره روان شو او قریشو کافرانو ته د دوی د راتللو معلومات په هغه وخت وشو چه کله دوی (مرّ الظهران) ته ورسیدل کوم چه د مکے نه په

یو څو میله فاصله باندې پروت دے۔
فَانۡۢبِذۡ اِلَیۡهِمۡ : اَیۡ عَهۡدَهُمۡ۔ یعنی گوزار کړه هغوی ته وعده د هغوی۔
عَلٰی سَوَآءٍ : اَیۡ عَلٰی حَالٍ تَسۡتَوِیۡ اَنۡتَ وَهُمۡ فِی الۡعِلۡمِ بِهٖ ۔په داسې حال کښې چه ته او هغوی په هغې باندې په پوهه کښې برابریئ۔ یعنی دواړه پوهه شی چه لوظ مات دے۔
لَا یُحِبُّ الۡخَآئِنِیۡنَ : دا لوظ ماتول که د مسلمانانو د طرفه وی، نو دا هم خیانت دے چه الله تعالیٰ ئې نهٔ خوښوی۔ د سیدنا معاویه رضی الله عنه د رومیانو سره معاهده وه، کله چه د معاهدې موده ختمیدو ته نزدې شوه، نو سیدنا معاویه رضی الله عنه د روم زمکې ته فوجونه ورنزدې کول شروع کړل، مقصد ئې دا وو چه د مودې په ختمیدو به سمدست په رومیانو حمله وکړی، نو پدې کښې یو صحابی عمرو بن عبسه رضی الله عنه په اس باندې سور راغې او نعرې وهلې [اَللّٰهُ اَکۡبَرُ، اَللّٰهُ اَکۡبَرُ وَفَاءٌ لَا غَدۡرٌ]۔ دا خو وفاداری نهٔ ده بلکه غدر دے،
ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه آوریدلی دی [مَنۡ کَانَ بَیۡنَهٗ وَبَیۡنَ قَوۡمٍ عَهۡدٌ فَلَا یَحُلَّنَّ عُقۡدَةً وَلَا یَشُدُّهَا حَتّٰی یَنۡقَضِیَ اَمَدُهَا اَوۡ یَنۡبِذُ اِلَیۡهِمۡ عَلٰی سَوَاءٍ]
د چا چه د یو قوم سره صلح وی نو هغه به هیڅ غوټه نهٔ کولاوه وی او نهٔ به ئې مضبوطوی تردې چه موده ختمه شی یا هغوی ته د لوظ ماتولو خبر ورکړی)۔ سیدنا معاویه رضی الله عنه ته چه دا خبر ورسیدو نو هغه فوجونه راواپس کړل۔

(مسند احمد: ۱۷۰۵۶، والطیالسی (۱۲۵۱) وهو حدیث صحیح بشاهده)

| وَلَا یَحۡسَبَنَّ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا سَبَقُوۡا ؕ |
| --- |
| او گمان دې نکوی هغه کسان چه کافران دی چه مخکښې به شی (خلاص به شی) دوی |
| اِنَّهُمۡ لَا یُعۡجِزُوۡنَ ﴿۵۹﴾ وَاَعِدُّوۡا لَهُمۡ |
| (د الله د عذاب نه) یقیناً دوی نهٔ شی عاجز کولې الله لره۔او تیار کړئ د دوی د مقابلې دپاره |
| مَّا اسۡتَطَعۡتُمۡ مِّنۡ قُوَّةٍ وَّمِنۡ رِّبَاطِ الۡخَیۡلِ تُرۡهِبُوۡنَ |
| څومره چه طاقت لرئ تاسو د قوتونو نه او د ساتنې د اسونو نه چه یره وئ تاسو |
| بِهٖ عَدُوَّ اللّٰهِ وَعَدُوَّکُمۡ وَاٰخَرِیۡنَ مِنۡ دُوۡنِهِمۡ |
| په هغې سره دشمن د الله او دشمنان ستاسو او نور کسان سیوئ د هغوی نه (یعنی منافقان) |

| لَا تَعْلَمُوْنَهُمْ اَللّٰهُ يَعْلَمُهُمْ ؕ وَمَا تُنْفِقُوْا |
|---|
| چه نهٔ پیژنئ تاسو هغوی لره، الله تعالیٰ پیژنی هغوی لره، او هغه چه خرچ کوئ تاسو |
| مِنْ شَيْءٍ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ يُوَفَّ اِلَيْكُمْ وَاَنْتُمْ لَا تُظْلَمُوْنَ ﴿۶۰﴾ |
| څه شے په لاره د الله کښې نو پوره به درکړے شی تاسو ته او په تاسو به ظلم نشی کیدے۔ |

**تفسیر**: پدے آیت کښې الله تعالیٰ کافرانو ته د هغوی د مغلوبه کیدو تخویف ورکوی۔

سَبَقُوْا: (اَیْ اَنْ یَّسْبِقُوْا) یعنی چه دوی به د الله نه مخکښې شی۔ د الله نه د مخکښې کیدو مطلب دا دے چه دوی د الله نه منډه کړی او چرته ترے پټ شی او الله پرے خبردار نهٔ وی۔

او پدے کښې د قریشو هغه کافران هم مراد دی چه د بدر د میدان نه په تیخته سره ځان بچ کولو کښې کامیاب شوی وو چه دوی دے هیچرے دا گمان نهٔ کوی چه دوی به د الله تعالیٰ د رانیولو نه بهر شی، د الله د رانیولو نه څوک وتلے شی، هغه لره څوک عاجز کولے شی؟۔

وَاَعِدُّوْا لَهُمْ : اُوس ایمان والو ته وائی چه کافران خو د الله نه خلاصیدے نشی مگر تاسو به داسے نهٔ وایئ چه بس کافران به الله تعالیٰ وهی او تاسو به بیغمه ناست یئ نهٔ بلکه د دوی د مقابلے دپاره به تیاری کوئ۔

د قریش کافران چه د بدر په معرکه کښې د ماتے خوړلو نه روستو کله مکے ته ورسیدل نو د دوی په زړونو کښې د مسلمانانو خلاف اُور بَل شوے وو۔ هلته رسیدو سره سمدست دوی د رسول الله ﷺ سره د دوباره جنگ کولو تیاری شروع کړه دے دپاره چه د مسلمانانو نه د خپلو مقتولینو انتقام واخلی۔ پدے وجه الله تعالیٰ د موقعے په مناسبت سره مسلمانانو ته تنبیه ورکړه چه د دشمنانو سره د مقابلے دپاره مسلمانانو له په هر حال او هره زمانه کښې پوره جنگی تیاری کول پکار دی۔

## د جنگی تیاریٔ اهمیت

پدے کښې یو قسم باریکه اشاره دے ته هم ده چه په جنگ بدر کښې مسلمانانو څه جنگی تیاری نهٔ وه کړے، هغه خو د الله خاص انعام وو چه د رسول الله ﷺ د دعاگانو په نتیجه کښې او د دین اسلام په دنیا کښې باقی ساتلو دپاره مسلمانانو ته فتح ورکړه۔ لیکن داسے په هر وخت او هر حال کښې نشی کیدے۔ د فتح او نصرت حاصلولو دپاره د الله تعالیٰ د تائید نه روستو اَهم شے د زمانے د تقاضے مطابق فوجی طاقت، اسلحه، تینکونه او د

جنګ جدید ترین اسباب تیارول دي.

الله تعالیٰ پدې آیتِ کریمه کښې مسلمانانو ته صریح حکم کړیدے چه دوی د دین د دشمنانو د مقابلې کولو دپاره پوره جنګي تیاري وکړي، او پدې باره کښې هیڅ کله هم غافل نهٔ شي. او ددې لوئي حکمت ئې دا وخودلو چه کله د اسلام دشمنانو ته معلومه شي چه مسلمانان پوره طریقې سره تیار دي، او که د جنګ نمبر راغلو نو دوی به مونږ ختم کړي، نو په هغوی به رعب راځي او په مسلمانانو باندې به د لاس راُوړدولو نه منع کیږي، او چونکه جنګي تیاري او د جدید ترینې وسلې صنعت (جوړول) بغیر د ډیر مال نه په وجود کښې نشي راتلې، پدې وجه الله تعالیٰ ددې لارې د اخراجاتو نه په انفاق في سبیل الله سره تعبیر وکړو او وې وئیل چه څوك د الله په لاره کښې خرچ کوی نو الله تعالیٰ به د هغې پوره پوره بدله ورکوی.

امام مسلمؒ، ابوداوُدؒ او ابن ماجهؒ د عقبه بن عامر ﷛ نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ په منبر باندې دا آیت ولوستلو او وې فرمایل: [أَلَا إِنَّ الْقُوَّةَ الرَّمْيُ، أَلَا إِنَّ الْقُوَّةَ الرَّمْيُ، أَلَا إِنَّ الْقُوَّةَ الرَّمْيُ] (اصل طاقت تیر اندازي (غشي ویشتل) دي، اصل طاقت تیر اندازي ده، اصل طاقت تیز اندازي ده). دا د هغه زمانې تیاري وه. (مسلم: ٥٠٥٥)

امام احمدؒ او اصحاب السنن د عقبه بن عامر ﷛ نه یو بل حدیث روایت کړیدے چه په هغې کښې رسول الله ﷺ وفرمایل: [اِرْمُوْا، وَارْكَبُوْا وَأَنْ تَرْمُوْا خَيْرٌ مِنْ أَنْ تَرْكَبُوْا]
((غشي ولئ او سورلي کوئ، او غشي ویشتل په اس باندې د سوریدو نه غوره دي)).
(مسند احمد: ٤/١٤٤) ترمذی: ١٦٣٧) حدیث حسن بطرقه وشواهده – شعیب)

رسول الله ﷺ پدې حدیث کښې د ((ویشتلو)) الفاظ استعمال کړیدي، چه په هره زمانه کښې په هر هغه وسله صادقیږي چه هغه دشمن طرف ته د سلګونو میلونو په مسافت ویشتلې کیږي او د دشمنانو په صفونو او د هغوی په ښارونو کښې تباهي راولي. پدې وجه مسلمانانو له ددې آیتِ کریمه او د ذکر شوی احادیثو د مخه په جنګي تیاریٔ پوره توجه ورکول پکار دي.

نن صبا مسلمان د ذلت او مغلوبیت ښکار دې، نو ددې سبب لکه چه د ایمان او عمل کمي ده نو دغه شان دا سبب هم دې چه دوی د وسلې په جوړولو او په جنګي تیاریانو کښې د دنیا د نورو قومونو په مقابله کښې ډیر روستو پاتې شویدي. هر مسلمان ملك د وسلو دپاره د فقیریٔ کنډول راخستې دې او د نورو قومونو پسې منډې وهي، او هغه قومونه دوی ته

صرف په دفاعي وسله ورکولو باندے راضي کيږي، ځکه چه د [اَلْكُفْرُ مِلَّةٌ وَاحِدَةٌ] مطابق هغوی هيڅ کله نهٔ غواړي چه مسلمان پدے پوزيشن کښې راشي چه دوی د الله او د رسول په هغه دشمنانو حمله وکړے شي چه هغوی په ډيرو ممالکو کښې په مسلمانانو د ژوند موده تنګه کړيده۔ فالی الله المشتکیٰ۔

علماء وائي : کوم خلك چه د جنګي تيارئ نه بغير جنګ ته وړاندے کيږي، دا د خودکشئ مرادف ده او د جهاد او د ځان شرمول دي، او د اسلام او د جهاد نوم بدنامول دي ځکه چه جهاد د الله تعالیٰ د کلمے او د دين د پورته کولو دپاره کيږي، او هغه بغير د مناسبے تيارئ نه نشي کيدے، په جهاد کښې د زخميانو دارودرمل، هسپتال او خوراکي موادو او د مختلفو وسلو د امداد او د پټيدو ځايونو ته ضرورت راځي۔ او د اِعداد (تيارئ) نه بغير کار شروع کول داسے دي لکه د خلافت د تيارئ نه بغير د خلافت کارونه شروع کول۔

مَّا اسْتَطَعْتُمْ : دا قيد په قرآن کريم کښې يو د تقوئ په باره کښې ذکر شويدے، او دويم پدے مقام کښې، چه ټول وس او طاقت به د کافرو په خلاف د وسلو تيارولو دپاره لګوئ۔

مِّنْ قُوَّةٍ : مفسر بيضاوي ليکي چه ددے نه ټول اسباب د جنګ مراد دي، پدے کښې غشي ويشتل، د توريے چلولو چل، د ټوپك، داشکے، راکټ لانچر، توپونو، ټينکونو، جهازونو چلونه زده کول دا ټول پکښې داخليږي، رسول الله ﷺ فرمائي : [مَنْ تَرَكَ الرَّمْيَ بَعْدَ مَا عَلِمَهُ رَغْبَةً عَنْهُ، فَإِنَّهَا نِعْمَةٌ كَفَرَهَا] چا چه د ويشتلو چل زده کړو او بيا ئے د هغے په پريخودو سره د هغے نه اعراض وکړونو دا يو نعمت وو چه دهٔ ئے ناشکري وکړه۔

(ابوداود :٢٥١٥ وصحيح الجامع : ٦١٤٢)

علامه سعديؒ وائي : [كُلُّ مَا تَقْدِرُوْنَ عَلَيْهِ مِنَ الْقُوَّةِ الْعَقْلِيَّةِ وَالْبَدَنِيَّةِ وَأَنْوَاعِ الْأَسْلِحَةِ] هر هغه شے چه تاسو په هغے باندے قادريږئ چه هغه عقلي او بدني قوت دے او قسماقسم وسلے دي۔ نو پدے کښې ټول اقسام او علوم د کاريګرئ داخليږي لکه ميزائيل، ټينکونه، بمونه او جنګي جهازونه او د بحري جنګ دپاره آبدوزونه وغيره تيارول۔ دارنګه د دفاع آلات، خندقونه ويستل، او قلعه ګانے جوړول او هغه رايه او سياست هم پکښې داخل دے چه په هغے باندے مسلمانان د کافرانو دشمنانو د شر نه بچ کيږي، او د ويشتلو طريقے، بهادري او تدبير او د لامبو او اسونو چلولو طريقے هم، او هغه علوم چه په هغے سره د دغه څيزونو کارخانے جوړولے شي۔ (السعدي ١/٣٢٤) والمنار ١٠/٥٤)

وَّمِنْ رِّبَاطِ الْخَيْلِ : يعني د تړلو او ساتلو د آسونو د غزا دپاره۔ دا په هغه زمانه کښې

خصوصي او په هره زمانه کښې د جهاد ښه ذریعه ده۔ د رباط الخیل نه مراد دا هم دے چه د دشمن په مقابله کښې اسونه په سرحداتو باندے ودرول او تړل۔ نو پدے کښې به اشاره وی چه د مسلمانانو دپاره همیشه داسے لښکر او فوج پکار دے چه د دفاع دپاره تیار وی۔ او دا دواړه (یعنی اسباب تیارول او فوجونه تربیت کول) هغه دوه څیزونه دی چه تولو جنګی دولتونو پدے باندے زور لګولے دے۔ (المنار)

تُرۡهِبُوۡنَ : یعنی کافرانو دپاره جنګی قوت تیار کړئ چه هغه د جنګ تول سامانونه دی او کوم شی ته چه فوج محتاج وی، او د سرحداتو د بند ساتلو پروګرامونه چه په هغے سره تاسو د الله تعالیٰ دشمنان ویروئ، او ستاسو هغه دشمنان چه همیشه ستاسو په ضرر کښې لګیا دی څکه چه دا خلك د مسلمانانو د وسلے نه یریږی۔

ترهبون : ارهاب : اَلۡاِیۡقَاعُ فِی الرَّهۡبَةِ۔ خوك په یره کښې واقع کولو ته وئیلے شی۔ (المنار) نو کوم مسلمانانو سره چه دغه جنګی پروګرامونه نهٔ وی، کافران پرے په آسانه او جلتی سره زر حمله وکړی او هغه ملك ترے ونیسی۔

﴿ وَ آخَرِیۡنَ مِنۡ دُوۡنِهِمۡ ﴾ یعنی ددے بنکاره کافرانو نه سوئ نور کسان دی چه تاسو ته نهٔ دی معلوم۔ اَیۡ اِذَا وَجَدُوۡا ضُعۡفَکُمۡ قَاتَلُوۡکُمۡ۔ یعنی کله چه دوی ستاسو ضعف مونده کړی نو جنګ درسره کوی۔ پدے وجه اسباب مخکښې نه تیار کړئ چه دا خلك هم درنه سر پورته نکړی۔ ددے نه مراد هغه منافقان دی چه په مدینه کښې موجود وو لکه چه الله تعالیٰ په سورة توبه آیت (۱۰۱) کښې فرمایلی دی : ﴿ وَمِنۡ اَهۡلِ الۡمَدِیۡنَةِ مَرَدُوۡا عَلَی النِّفَاقِ لَا تَعۡلَمُهُمۡ نَحۡنُ نَعۡلَمُهُمۡ ﴾ چه په مدینے والو کښې څه داسے خلق دی چه په نفاق کښې انتهاء ته رسیدلی دی، ته هغوی نهٔ پیژنے، زهٔ ئے پیژنم)۔ دا آخری سورت دے او پدے کښې الله خپل نبی او صحابه کرامو ته وائی چه تاسو ته منافقان نهٔ دی معلوم، نو دا دلیل دے په نفی د علم غیب باندے سوئ د الله تعالیٰ نه۔

| وَاِنۡ جَنَحُوۡا لِلسَّلۡمِ فَاجۡنَحۡ لَهَا وَتَوَکَّلۡ |
|---|
| او که مائل شی دوی صلحے ته نو مائل شه تهٔ (هم) هغے ته او څان سپاره |
| عَلَی اللّٰهِ اِنَّهٗ هُوَ السَّمِیۡعُ الۡعَلِیۡمُ ﴿۶۱﴾ |
| په الله تعالیٰ یقیناً هغه ښهٔ آوریدونکے ښهٔ پو هه دے۔ |

**تفسیر**: د جنګي قوانینو نه یو بل قانون بیانوي چه هغه قانون د صلحې دے۔
د ماقبل سره ئے مناسبت دا دے چه کله مسلمانان پوره جنګي تیاری وکړي نو د هغے فائده به دا وي چه دشمن به مرعوب کیدو سره صلح پیش پیش کوي، نو فرمائي: که داسے موقعه راشي نو د جنګي صلاحیت باوجود د مسلمانانو ته د صلح دپاره د تیاریدو نصیحت شویدے۔ ځکه چه کیدے شي چه پدے طریقه هغوي په ایمان راوړو کښ سوچ وکړي او د اسلام په کړيځ کښ راداخل شي۔ او مسلمان به د صلح کولو سره په الله تعالیٰ بهروسه کوي دے دپاره چه د کافرانو د مکر او فریب نه الله مسلمانانو لره محفوظ وساتي۔

## د صلح شرطونه

علماءِ کرامو د کافرانو سره د صلح د جواز شرطونه لګولي دي، یو دا چه دا صلح به دائمي طور سره نۀ وي، بلکه څه وخت پورے به وي ځکه چه دائمي صلح د جهاد پریخودو سره مرادف ده، بیا کافران په مسلمانانو کښ کار کوي او هغوي ته موقعه ملاویږي۔
دویم شرط دا دے چه د مسلمانانو حاکم به پدے صلح کښ مصلحت ویني لکه د مسلمانانو طاقت راجمع کول، او دعوت عام کول وغیره۔ او که د کافر فائده وه نو بیا به صلح نۀ کوي۔
دریم شرط دا دے چه د صلح اول دعوت به مسلمانان نۀ ورکوي بلکه د کافرو د طرفنه به دعوت وي ځکه پدے سره بیا مسلمانان کمزوري ښکاره کیږي۔
څلورم شرط ځینی علماؤ دا لګولے دے چه مسلمانان به کمزوري وي، که مسلمانان قوي او غالب وي نو صلح کول جائز نۀ دي، او دوي د سورة محمد آیت (۳۵) ته دلیل نیولے دے، الله تعالیٰ فرمائي: ﴿فَلَا تَهِنُوْا وَتَدْعُوْٓا اِلَى السَّلْمِ وَاَنْتُمُ الْاَعْلَوْنَ وَاللّٰهُ مَعَكُمْ﴾ (پس تاسو کمزورتیا مۀ کوئ چه د صلح غوښتنه کوئ حال دا چه تاسو اُوچت او غالبه یئ، او الله ستاسو سره دے)۔ لیکن راجح اولنئ رایه معلومیږي لکه چه مخکښ بیان شو۔ پداسے صورت کښ به د سورت محمد آیت پدے باندے محمولولے شي چه مسلمانانو ته د غالب ګمان مطابق د کافرانو نه د خیانت یره وي۔ یا دا چه اول دعوت به مسلمانان نۀ ورکوي والله اعلم۔
او د مال په بدله کښ هم صلح کول جائز دي لکه مسلمانان ووائي چه مونږ ته به دومره دومره مالونه راکوئ نو هله به صلح کوو نو هم جائز ده۔

| |
|---|
| وَاِنْ يُّرِيْدُوْٓا اَنْ يَّخْدَعُوْكَ فَاِنَّ حَسْبَكَ اللّٰهُ ؕ هُوَ الَّذِىْٓ |
| او كه غواړي دوى چه دهوكه دركړي تا لره نو يقيناً كافي دے تا لره الله، الله هغه ذات دے |
| اَيَّدَكَ بِنَصْرِهٖ وَبِالْمُؤْمِنِيْنَ ﴿٦٢﴾ وَاَلَّفَ |
| چه مضبوط كړے ئے ته په مدد خپل سره او په ايمان والو سره. او مينه ئے راوسته |
| بَيْنَ قُلُوْبِهِمْ ؕ لَوْ اَنْفَقْتَ مَا فِى الْاَرْضِ |
| په مينځ د زړونو د دوى كښې، كه چرے خرچ كړے وے تا هغه څه چه په زمكه كښې دى |
| جَمِيْعًا مَّآ اَلَّفْتَ بَيْنَ قُلُوْبِهِمْ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ اَلَّفَ |
| ټول، مينه به نۀ وے راوستے تا په مينځ د زړونو د دوى كښې ليكن الله تعالىٰ مينه راوسته |
| بَيْنَهُمْ ؕ اِنَّهٗ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿٦٣﴾ يٰٓاَيُّهَا النَّبِىُّ حَسْبُكَ |
| په مينځ د دوى كښې يقيناً هغه زورور حكمتونو والا دے. اے نبي! پوره دے تا لره |
| اللّٰهُ وَمَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿٦٤﴾ |
| الله تعالىٰ او هغه چا لره چه تابعدار دى ستا د مؤمنانو نه. |

**تفسير** : يعني كه كافران د صلح په ذريعه مسلمانانو ته دهوكه وركول غواړي، او په پټه پرے حمله كولو اراده لري، نو د دوى نه يره مۀ كوه ځكه د الله وعده ده چه الله به د مسلمانانو دپاره كافي وي لكه څنګه چه الله تعالىٰ د بدر په ميدان كښې د ملائكو په ذريعه مدد كړے وو.

وَاِنْ يُّرِيْدُوْٓا : ددے شرط جزا پټه ده. [فَلَا تَخَفْهُمْ] يعني د دوى نه مۀ يريږه.

هُوَ الَّذِىْٓ : پدے كښې د كفايت وجه بيانوى چه الله ستا ځكه كافي دے چه الله هغه ذات دے چه ستا غيبي نصرت ئے هم كړيدے په ملائكو او د زړونو په مضبوطوالي سره او په كافرانو باندے رعب اچولو سره، او ظاهري مدد ئے د مؤمنانو په وجه وكړو نو دغه شان به بيا هم درسره مدد وكړي.

وَاَلَّفَ بَيْنَ قُلُوْبِهِمْ : پدے كښې الله تعالىٰ خپل احسان بيانوى او ترغيب وركوى چه تۀ هم د مسلمانانو ترمينځ د محبت او الفت پيدا كولو كوشش وكړه او دا په جهاد كښې

انتهائی کار آمد شے دے، چه کله د مؤمنانو خپل مینځ کښې مینه محبت وی نو د الله مددونه او غلبه به راځی۔ او اوس د کافرانو دا طریقه ده چه د مسلمانانو مجاهدینو په ګروپونو کښې داسے خلك راننباسی چه هغوی د مجاهدینو په یو بل باندے، دارنګه په علماء او مشرانو باندے بد ګمانی پیدا کړی، او اکثر تکفیر والا په غیر شعوری طور سره د کافرانو آلهٔ کار جوړیږی ځکه چه دوی د مؤمنانو اُلفتونه ختموی۔

نو مؤمن به د ملګرو ترمینځ د یو بل سره اُلفت پیدا کوی او درګزر به کوی او داسے کارونه او خبرے به مینځ ته نهٔ راولی چه هغه الفت او محبت ختموی۔

وَلٰكِنَّ اللّٰهَ اَلَّفَ بَيْنَهُمْ : یعنی الله تعالیٰ د صحابه کرامو د یو بل سره مینه پیدا کړیده چه دا په مال سره نهٔ پیدا کیږی، نو دا په څه سره پیدا شویده؟ (۱) بِالْاِسْلَامِ وَالْاِيْمَانِ۔ (۲) وَبِرَحْمَتِهٖ۔ په اسلام او ایمان سره، او دارنګه د الله په خصوصی رحمت سره د دوی ترمینځ محبت پیدا شو۔ لکه څنګه چه د اسلام نه مخکښې د عربو حال وو چه که هر مادی قوت خرچ شوے وے نو د هغوی ترمینځ به الفت او محبت پیدا شوے نهٔ وے، دا خو الله تعالیٰ د خپل دین په ذریعه او په خپل توفیق سره د دوی د زړونو ترمینځ جوړخت راوستو۔

په صحیحینو کښې د عبد الله بن زید بن عاصم ﷺ نه روایت شویدے چه رسول الله ﷺ کله د غزوهٔ حنین د غنیمت د مالونو د تقسیم په وخت هغوی ته تقریر وکړو نو وے فرمایل چه [أَلَمْ أَجِدْكُمْ ضُلَّالًا فَهَدَاكُمُ اللّٰهُ بِيْ؟، وَعَالَةً فَأَغْنَاكُمُ اللّٰهُ بِيْ، وَكُنْتُمْ مُتَفَرِّقِيْنَ فَأَلَّفَكُمُ اللّٰهُ بِيْ؟] آیا تاسو ګمراه نهٔ وئ نو الله تعالیٰ زما په وجه تاسو ته هدایت وکړو؟ او آیا تاسو محتاج نهٔ وئ نو الله زما په وجه تاسو مالداره کړئ؟، او آیا تاسو په ډلو تقسیم نهٔ وئ نو الله تعالیٰ زما په ذریعه ستاسو ترمینځ الفت پیدا کړو؟ د رسول الله ﷺ د هرے خبرے په جواب کښې به انصارو وئیل: الله او د هغه رسول زیات احسان کونکی دی۔

(بخاری: ۴۳۳۰) مسلم: (۲۴۹۳)

د عربو د یو بل سره جنګونه او حسدونه او تنافس او په معمولی خبره جذباتی کیدل د پخوانه عادت راروان وو، د دوی ترمینځ مینه پیدا کیدل د عادت نه بهر خبره وه مګر الله زړونه بدلوی رابدلوی، د رسول الله ﷺ په وجه ئے د ټولو زړونه د یو تن د زړه په شان کړل۔ زیاتی تشریح ئے په سورة آلعمران کښې ذکر شویده۔

يَاأَيُّهَا النَّبِيُّ:

ربط

په مخکښې آیت کښې الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ ته زیرے ورکړے وو چه که د صلح د

معاهدې نه روستو دشمنان تاسو ته دهوکه درکوي، نو الله تعالیٰ به ستاسو دپاره کافي وي، پدې آیت کښې دا زیرې د ټولو کارونو او د ټولو حالاتو دپاره عام کړې شویدې.

حافظ ابن القیم رحمه الله د ((زاد المعاد)) په مقدمه کښې ددې آیت تفسیر دا بیان کړیدې چه یو اځې الله تعالیٰ ستا دپاره او ستا د تابعدارو مؤمنانو دپاره کافي دې. اُوس د الله نه سوئ تا ته د هیڅ ضرورت نشته.

(یعني وَمَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ عطف دې په (كَ) ضمیر باندې او عطف په ضمیر مجرور باندې بغیر د اعادې د حرف جر نه په مذهب مختار سره جائز دې یا دا چه واو په معنیٰ د (مَعَ) دې. او حَسْبُكَ په معنیٰ د يَكْفِيْكَ سره دې. لکه عرب وائي: (حَسْبُكَ وَزَيْدًا دِرْهَمٌ) ستا او د زید یوه روپۍ کافي ده. او دا دواړه صحیح تقدیرونه دي.

بیا ئې لیکلي دي چه بعض خلقو ددې آیت په تفسیر کښې ډیره خطائي کړیده او وئیلي ئې دي چه الله او مؤمنان ستا دپاره کافي دي، دا معنیٰ سراسر غلطه ده ځکه چه د توکل، تقویٰ او عبادت په شان کفایت (کافي کیدل) هم د الله پورې خاص دي. د بل چا دپاره نهٔ استعمالیږي، او هرچه د تائید خبره ده، نو الله د خپل نبي تائید کله خپله کوي او کله ئې د مؤمنانو په ذریعه سره کوي.

پدې وجه په آیت (۶۲) کښې الله وفرمایل: ﴿فَإِنَّ حَسْبَكَ اللهُ﴾ یعني ستا دپاره صرف الله تعالیٰ کافي دې. دې نه روستو ئې وفرمایل: ﴿هُوَ الَّذِيْ أَيَّدَكَ بِنَصْرِهِ وَبِالْمُؤْمِنِيْنَ﴾ یعني الله ستا تائید خپله هم کړې او د مؤمنانو په ذریعه سره ئې هم کړې.

او همدا وجه ده چه د الله د توحید او توکل والو بندګانو صرف الله خپل ځان دپاره کافي منلې دې. نو الله په سورة آل عمران آیت (۱۷۳) کښې د هغوی صفت کړې او فرمایلي ئې دي.

﴿اَلَّذِيْنَ قَالَ لَهُمُ النَّاسُ إِنَّ النَّاسَ قَدْ جَمَعُوْا لَكُمْ فَاخْشَوْهُمْ فَزَادَهُمْ إِيْمَانًا وَقَالُوْا حَسْبُنَا اللهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ﴾

هغه خلق چه هغوی ته خلقو ووئیل چه کافرانو ستاسو د مقابلې دپاره لښکر راجمع کړیدې، تاسو د هغوی نه ویریږئ نو دې خبرې د هغوی ایمان زیات کړو، او وې وئیل چه زمونږ الله کافي دې او هغه ډیر ښه کارساز دې).

د الله دې نیکانو بندګانو (حَسْبُنَا اللهُ وَرَسُوْلُهٗ) یعني الله او د هغه رسول مونږ دپاره کافي دي) ونهٔ وئیل، بلکه دا ئې ووئیل چه صرف الله زمونږ دپاره کافي دې، آه. (ذکره القاسمیؒ)

يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ حَرِّضِ الْمُؤْمِنِيْنَ عَلَى الْقِتَالِ اِنْ يَّكُنْ مِّنْكُمْ عِشْرُوْنَ

اے نبی! تیزی ورکړه ایمان والو ته په جنګ کولو باندے، که وی ستاسو نه شل کسان

صٰبِرُوْنَ يَغْلِبُوْا مِائَتَيْنِ وَاِنْ يَّكُنْ مِّنْكُمْ مِّائَةٌ يَّغْلِبُوْٓا

صبرناك نو غالبه کیږی به په دوه سوو او که وی ستاسو نه سل کسان نو غالبه کیږی به

اَلْفًا مِّنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَفْقَهُوْنَ ﴿٦٥﴾ اَلْـٰٔنَ

په زرو کسانو د کافرانو نه پدے وجه چه دوی داسے قوم دے چه نهٔ پو هیږی۔ اُوس

خَفَّفَ اللّٰهُ عَنْكُمْ وَعَلِمَ اَنَّ فِيْكُمْ ضَعْفًا

آسانی راوسته الله تعالیٰ په تاسو او هغه پو هه وو چه یقیناً په تاسو کښې کمزورتیا ده

فَاِنْ يَّكُنْ مِّنْكُمْ مِّائَةٌ صَابِرَةٌ يَّغْلِبُوْا مِائَتَيْنِ وَاِنْ يَّكُنْ مِّنْكُمْ

نو که وی ستاسو نه سل کسان صبرناك غالبه کیږی به په دوه سوو او که وی ستاسو نه

اَلْفٌ يَّغْلِبُوْٓا اَلْفَيْنِ بِاِذْنِ اللّٰهِ ۭ وَاللّٰهُ مَعَ الصّٰبِرِيْنَ ﴿٦٦﴾

زر، غالبه کیږی به په دوه زره کسانو په مدد د الله تعالیٰ او الله تعالیٰ ملګرے د صبرناکو دے۔

**تفسیر**: الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ ته حکم وکړو چه مؤمنان د دشمنانو په خلاف په جنګ باندے راپورته کړی۔ او پدے باندے رسول الله ﷺ دومره زیات عمل کړیدے چه په ترغیباتو او ترهیباتو بیانولو سره ئے په جهاد باندے د تولو څیزونو نه زیاته تیزی ورکړیده، د احادیثو په کتابونو کښې کتاب الجهاد د تولو نه اُوږد وی۔

امام مسلمؒ د انس بن مالك ؓ نه روایت کړے چه د بدر په میدان کښې کله چه نبی ﷺ ولیدل چه قریش کافران د مکے نه په پوره طاقت راخستو سره راغلی دی، نو نبی ﷺ د اسلام مجاهدین مخاطب کولو سره وفرمایل چه راپاڅیږئ هغه جنت طرف ته چه د هغے فراخی آسمانونه او زمکه راګیرونکے ده۔ الحدیث۔ او رسول الله ﷺ دا هم فرمایلی دی چه یو مجاهد جهاد ته ووتلو او دلته یو تن په مانځه ودریدو او روژه شو نو ترڅو چه مجاهد نهٔ وی راغلے تر هغه وخته پورے دے په همدے حال وی نو هم د مجاهد ثواب او درجے ته نشی رسیدلے۔ (مسلم: ٤٩٧٧)

مجاهد چه د کور نه وځي د ثواب میتړیے کولاؤ شو، که هغه په حالت د خوب کښ وي او که ویښ وي، په معرکه کښ حاضر وي، او که په معسکر کښ وي، په ټولو حالتونو کښ ئے اجر روان دے۔

حَرِّضِ الْمُؤْمِنِيْنَ : دا امر اول نبي کریم ﷺ بیا د هغه هر تابعدار ته دے چه په جهاد باندے به خلك راتیزوي او ترغیب او ترهیب به بیانوي، کوم خلك چه دا ترغیب نۀ ورکوي بلکه اُلټه د جهاد بدي بیانوي، لکه صوفیه خلك ددے بد بد مثالونه ورکوي او بیا دا وائي چه په جهاد باندے کوم خاي کښ د دین ترقي راغلے ده، او کله وائي د کافر د وژلو نه خو د هغه مسلمانول بهتر دي چه جنت ته لاړ شي۔ دا ټول د الله او د رسول نه ځان مخکښ کول دي۔

اِنْ يَّكُنْ مِّنْكُمْ : دا مسلمانانو ته زیرے او د الله د طرفنه وعده وه چه که ستاسو نه شل مجاهدینو د صبر او ثابت قدمئ نه کار واخستو نو په دوه سوو باندے او یو سل به په یو زر کافرانو باندے غالبه کیږي۔

دا آیت د غزوهٔ بدر په موقعه کښ نازل شوے وو او مسلمانانو ته حکم شوے وو چه د لسو کافرانو په مقابله کښ به یو مسلمان کلك ودریږي او تختي به نۀ۔ دغه وخت کښ مؤمنان کم دي مګر ایمانونه ئے مضبوط دي نو الله ورسره وعده وکړه چه تاسو کم به غالبه کوم۔ امام بخاري رحمه الله د ابن عباس ؓ نه روایت کړیدے چه کله دا آیت نازل شو نو د لسو په مقابله کښ یو او د دوه سوو په مقابله کښ د شلو دپاره مضبوطیدل واجب شو او تختیدل حرام شو۔ دے نه روستو آیت (٦٦) (اَلْئٰنَ خَفَّفَ اللّٰهُ عَنْكُمْ) نازل شو چه د هغې په ذریعه الله تعالیٰ د مسلمانانو دپاره پدے حکم کښ تخفیف وکړو، او د دوه سوو په مقابله کښ یو سل او د دوه زرو په مقابله کښ د یو زر کسانو مضبوطیدل واجب شو او تختیدل حرام شو۔ بعض علماؤ لیکلي دي چه اولنے آیت د دویم آیت په ذریعه منسوخ شو۔ او بعضو لیکلي دي چه د دویم آیت په ذریعه مخکنے حکم منسوخ شوے نۀ دے بلکه الله تعالیٰ پدے کښ تخفیف کړیدے۔ د متقدمینو په نیز دے ته نسخ وائي او متأخرین ورته تخصیص وائي۔

## سوال وجواب

سوال : هر کله چه دا ذکر شوه چه شل کسان به د دوه سوو مقابله کوي نو خپله معلومه شوه چه سل به د زرو مقابله کوي او کله چه دا ذکر شوه چه سل به د دوه سوو مقابله کوي

نو خپله معلومه شوه چه زر به د دوه زرو مقابله کوی نو بیا ئے دا روستو عدد ولے مکرر کړو؟ جواب: پدے تکرار کښ مقصد زیات اطمینان ورکول دی ایمان والو ته، او دارنګه دے دپاره چه دلیل شی چه د قلت او کثرت حالت یو شان دے۔ حافظ په فتح الباری کښ ددے راز دا نقل کړیدے چه پدے کښ زیرے دے ددے خبرے چه د مسلمانانو فوجونه به د عشراتو او مئاتو نه زرګونو ته تجاوز کوی۔ (القاسمیؒ)

قَوْمٌ لَّا يَفْقَهُوْنَ : ١-أَیْ لَا یَعْلَمُوْنَ مَا یُقَاتِلُوْنَ عَلَیْهِ۔ یعنی پدے نۀ پوهیږی چه دوی جنګ په څه خبره کوی۔ او دا قانون دے چه یو تن ته د جنګ مقصد معلوم نۀ وی نو هغه زر تښتی۔ ٢- یُقَاتِلُوْنَ عَلٰی غَیْرِ دِیْنٍ وَّبَصِیْرَةٍ فَلَا یَثْبُتُوْنَ۔ (خازن)

یعنی د دین او بصیرت نه په غیر جنګ کوی نو دوی به تاسو ته نشی ټینګیدے، تښتی به۔ او دا تجربه ده چه کافرانو کښ لوی کمانډوز نه هم د مجاهدینو په خلاف جنګ هیر شی، رانده کانړه شی، ګډوډ فائرونه کوی۔

٣- یا مطلب دا دے چه دا ناپوهه خلک دے چه د بغی او عدوان او د شیطان د وسوسو په وجه جنګ کوی نو دوی باندے غلبه او د دوی شرمول پکار دی۔ (ابو السعودؒ)

اَلْئٰنَ خَفَّفَ اللّٰهُ عَنْكُمْ : یعنی څه زمانه روستو چه مؤمنان ډیر شو او کمزوری پکښ راغله نو الله تعالیٰ پدے حکم کښ آسانی راولیږله۔

مفسر خازنؒ د ابن شُبْرُمَةؒ نه نقل کړیدی چه دا حکم د امر بالمعروف او نهی عن المنکر هم دے چه په یو ځای کښ څه خلک ګناه کوی، او شا ته وریسے طاقت نشته نو تۀ به د هغوی مقابله خامخا کوے او د ګناه نه به ئے منع کوے او که ډیر کسان وو چه ستا د وس نه بهر وو یا وریسے روستو طاقت راروان وو نو بیا تۀ مکلف نۀ ئے۔ (لباب التاویل ٢/٣٢٦)

| مَا كَانَ لِنَبِیٍّ اَنْ یَّكُوْنَ لَهٗۤ اَسْرٰی حَتّٰی یُثْخِنَ |
|---|
| نۀ دی مناسب نبی لره چه شی دے هغه لره قیدیان تردے چه ډیره وینه توئی کړی |
| فِی الْاَرْضِ ؕ تُرِیْدُوْنَ عَرَضَ الدُّنْیَا ۖۗ وَاللّٰهُ یُرِیْدُ الْاٰخِرَةَ ؕ وَاللّٰهُ عَزِیْزٌ |
| په زمکه کښ، غواړئ تاسو سامان د دنیا او الله غواړی آخرت (تاسو لره) او الله زورور |
| حَكِیْمٌ ﴿٦٧﴾ لَوْلَا كِتٰبٌ مِّنَ اللّٰهِ سَبَقَ |
| حکمتونو والا دے۔ کچرته نۀ وے حکم د الله چه مخکښ شویدے |

لَمَسَّكُمْ فِيمَا أَخَذْتُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿٦٨﴾

خامخا رسیدلے به وو تاسو ته په سبب د هغې مال چه اخستې دې تاسو، عذاب لوئې۔

**تفسیر**: کله چه په بدر کښې د قریشو اویا (۷۰) کافران قتل شو او نور اویا (۷۰) کسان قیدیان شو، کله چه دوی مدینې ته راوستې شو نو سوال دا پیدا شو چه ددې قیدیانو سره څنګه سلوك وکړې شي؟۔

امام مسلمؒ او امام احمدؒ د انس ﷺ نه روایت کړیدې چه نبی کریم ﷺ د صحابه کرامؓ سره مشوره وکړه نو عمر بن خطاب ﷺ مشوره ورکړه چه دوی دې قتل شي۔ (الله ته ځان ورښکاره کوو چه اې الله! زمونږ ستا د دشمنانو سره هیڅ تعلق نشته او عبد الله بن رواحه ﷺ وفرمایل: په اُور باندې ئې سیزو) ابوبکر ﷺ مشوره ورکړه چه یا رسول الله! دا زمونږ خپلوان دي، دوی نه به مال (فدیه) واخلو، او بیا به ئې پریدو، مال به ئې د اسلام دپاره تائید شي او دوی ته به الله تعالیٰ د ایمان توفیق ورکړي، (ابوبکر ﷺ کښې د رقت (نرمۍ) ماده زیاته وه) نو رسول الله ﷺ د ابوبکر ﷺ په رائې باندې عمل وکړو او فدیه اخستو سره ئې قیدیان آزاد کړل۔ (رسول الله ﷺ په امت باندې شفقت کونکے وو پدې وجه ئې دا رایه غوره کړه)۔ (مسلم: ٤٦٨٧)

رسول الله ﷺ کور ته ننوتو واپس راووتو او پدې مشوره باندې ئې د یوې تبصرې په طور ووئیل چه الله تعالیٰ بعض زړونه په کافرانو باندې د کاڼو نه هم زیات سخت کړي، نو د عمرؓ مثال د نوح او موسیٰ علیهما السلام په شان دې چه هغوی خپلو قومونو ته ښیرې کړې وې او د ابوبکرؓ مثال داسې دې لکه د ابراهیم او عیسیٰ علیهما السلام چه نرم وو۔

بیا د دوی نه فدیه اخستل شروع شو چه د هغې مقدار ئې په یو یو تن باندې څلویښت اُوقیه کیخودو (او یو اوقیه څلویښت درهمه ده) ابوداودؒ د ابن عباس ﷺ نه روایت کړیدې چه رسول الله ﷺ د بدر د قیدیانو نه څلور سوه فی نفر فدیه اخستې وه۔

پدې جنګ کښې سیدنا عباسؓ هم قیدي شوې وو (مشرکانو ځان سره په زوره راوستلے وو) صحابه کرامؓ ووئیل چه دا زمونږ خورئې دې، دهٔ ته به فدیه معاف کړو، رسول الله ﷺ وفرمایل: یو درهم به هم ورته نهٔ پریدئ۔ هغه دوه عذرونه وکړل چه ما نه ئې څنګه اخلئ، زه خو یو مسلمان یم، او دویم دا چه زهٔ غریب یم، ما سره هیڅ نشته۔ رسول الله ﷺ ورته معجزهٔ ووئیل: چه کله تهٔ د کور نه راوتې تا سرهٔ زر راواخستل او ښځې ته دې ووئیل چه دا

وساته که زهٔ راغلم خو صحیح ده او که زهٔ مړ شوم نو په بچو ئے تقسیم کړه۔ هغه ووئیل: دد ے خبر ے نه زمونږ نه سوئ هیڅوك خبر نهٔ دی، معلومیږی چه تا ته الله تعالیٰ خبر درکړیدے نو ایمان ئے نور هم زیات شو۔ او د هغه نه هم فدیه واخستے شوه او هغه د خپل وریرونو نوفل او عقیل فدیه هم ورکړه۔

## شان نزول

امام مسلمؒ په کتاب الجهاد کښ د ابن عباس ﷺ نه هم دغه شان یو حدیث روایت کړیدے چه د هغے په آخر کښ راځی چه رسول الله ﷺ او ابوبکر ﷺ ناست وو، ژړل ئے چه پدے کښ عمر ﷺ راغلو او وجه ئے وتپوسله نو نبی ﷺ وفرمایل چه د بدر د قیدیانو نه د فدیه اخستو په وجه سره مسلمانانو ته د الله عذاب ددے ونے نه هم زیات رانژدے شوے وو، او یوے ونے ته ئے اشاره وکړه۔ لیکن الله پرے عذاب نازل نکړو ځکه چه لا حکم شرعی نازل نهٔ وو۔ دے نه روستو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو چه پدے کښ د قیدیانو نه فدیه اخستو ته ئے ښه ونهٔ وئیل او ووئیل شو چه د غزوهٔ بدر د قیدیانو قتل کیدل د فدیه اخستو سره د هغوی پریخودلو نه زیات غوره وو۔ ځکه چه دا اولنے جنګ وو چه په دے کښ د کافرانو نه ښه وینه ویستل پکار وو او د الله تعالیٰ په خپل دین باندے غیرت ډیر خوښ دے۔ (صحیح مسلم: ٤٦٨٧) البغویؒ وابن کثیرؒ وغیرهما)

او آینده دپاره نصیحت وکړے شو چه پکار دی چه کله مسلمانان په کافرانو غالب شی نو هغه دِ ے ښه قتل کړی دے دپاره چه کفر ذلیله شی او د اسلام او د مسلمانانو رعب او دبدبه د کافرانو په زړونو کښ کینی۔ دے نه روستو هم که د جنګ په میدان کښ څه خلق باقی پاتے شی نو هغه دِ ے قیدیان کړے شی۔

او د قیدیانو سره به پنځه قسمه معاملات کیږی (١) اول دا چه قتل کړے شی۔ (٢) یا د خپل مسلمان په بدله کښ تبادله وکړے شی۔ (٣) فدیه اخستو سره پریخودل۔ (٤) د هغوی نه غلامان جوړول۔ (٥) هغوی احساناً پریخودل بغیر د فدیه اخستو نه، چه د مسلمانانو اخلاق خلکو ته ښکاره شی او هغوی اسلام ته مائل شی، او د اسلام وقعت د خلکو په زړونو کښ کینی۔

کله چه دا قیدیان مدینے ته راوستے شو نو رسول الله ﷺ د دوی سره د احسان کولو حکم وکړو نو صحابه کرامو پدے باندے په ډیره کامله طریقه عمل وکړو چه دوی به خپله وچه ډوډئ خوړله او قیدیانو ته به ئے تازه ډوډئ ورکوله، چه ددے په وجه ډیر قیدیان متأثره

شو، او ځینو به وئیل چه مونږ ته به ددې حالت نه شرم راتللو چه په دوی کښې ډیر قیدیانو ته الله تعالیٰ د ایمان توفیق ورکړو۔

حَتّٰی یُثْخِنَ : یعنی اول نه قیدیان نیول مناسب نهٔ دی، یو خو پدې سره د کافرانو ډیروالے راځی، او چه ډیر پکښې مړه شی نو یو په دوی باندې رعب راځی، او دویم پدې کښې د الله دپاره غیرت دے، بلکه اول نه د کافرانو وژل او د هغوی وینه تویه ول پکار دی، که بیا روستو قیدیان نیسی نو خیر دے۔

تُرِیْدُوْنَ عَرَضَ الدُّنْیَا : ځینی مفسرین وائی چه د بدر په میدان کښې صحابه کرامؓ کافرانو لره پدې امید هم قیدیان کړی وو چه دوی نه په مال اخستو سره دوی آزاد کړی او پدې طریقه به د مسلمانانو په مالی بد حالئ کښې کمے راشی۔ دے طرف ته پدے آیت کښې اشاره ده چه تاسو د دنیاوی فائدو د خاطره داسے وکړل، حال دا چه الله ستاسو دپاره د آخرت خیر غواړی۔

تُرِیْدُوْنَ : کښې خطاب ئے صحابه کرامؓ ته وکړو نهٔ رسول الله ﷺ ته، دپاره د تعظیم د شان د رسول الله ﷺ، ځکه چه هغه دا اراده بیخی نهٔ وه کړے۔

بیا دلته دا خبره زده کړه! چه یوه د دنیا اراده ده او بل ئے محبت دے، محبت ناروا دے او د حلال مال د پیدا کولو اراده لرل جائز کار دے۔

## د کتاب من الله مصداق

کِتٰبٌ مِّنَ اللهِ سَبَقَ : ددے دوه مصداقه دی (۱) یو دا چه الله مخکښې نه دا فیصله کړیده : [اَنْ لَّا یُعَذِّبَ قَبْلَ الْاَمْرِ] چه امر ئې چا ته نهٔ وی کړے او هغه ئے پوهه کړے نهٔ وی نو عذاب نهٔ ورکوی۔ ﴿وَمَا کُنَّا مُعَذِّبِیْنَ حَتّٰی نَبْعَثَ رَسُوْلًا﴾ او دلته الله تعالیٰ د مخکښې نه دوی نهٔ وو پوهه کړی، نو ځکه ئے عذاب ورنکړو۔

(۲) دویم پدے کښې [تَحْلِیْلُ الْغَنَائِمِ لِهٰذِهِ الْاُمَّةِ] ته اشاره ده یعنی الله تعالیٰ په لوح محفوظ (تقدیر) کښې او په پخوانو کتابونو کښې دا لیکل کړی وو چه ددے امت دپاره به غنیمتونه حلالوی، نو که دا حکم نهٔ وے نو تاسو ته به ئے عذاب درکړے وے ځکه چه حرام شے به مو اخستے وے او بې احتیاطی به مو کړے وے، او هرکله چه الله تعالیٰ ددے څیزونو ددے امت دپاره د حلالولو اراده کړے وه، نو تاسو چه څه واخستل د الله تعالیٰ د ارادے مطابق کار مو وکړو نو عذاب درباندے نشته۔

او پدے کښې یو قسم زورنه ده چه ددے وخت مناسب داسے فیصله نهٔ وه پکار، مګر ځینې اهل علم وائی چه د ابوبکر صدیق رضی الله عنه مشوره په اعتبار د عاقبت سره ښه وه پدے وجه روستو همدا قانون جوړ شو، لیکن صرف عارضي او وقتي طور سره مناسب نهٔ وه۔

| فَكُلُوا مِمَّا غَنِمْتُمْ حَلٰلًا طَيِّبًا وَّاتَّقُوا |
| --- |
| پس خورئ د هغے مال نه چه غنیمت حاصل کړے تاسو حلال پاك او ویریږئ |
| اللهَ ۔ إِنَّ اللهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿٦٩﴾ |
| د الله تعالیٰ نه، یقیناً الله تعالیٰ بخونکے رحم کونکے دے۔ |

**تفسیر**: ددے آیت په ذریعه الله تعالیٰ د مسلمانانو دپاره د غنیمت مال حلال کړو، ددے تائید په صحیحینو کښې د جابر بن عبد الله رضی الله عنه نه د نقل شوی حدیث نه هم کیږی چه په هغے کښې نبی ﷺ فرمایلی دی چه [وَأُحِلَّتْ لِيَ الْغَنَائِمُ وَلَمْ تَحِلَّ لِأَحَدٍ قَبْلِيْ] (زما دپاره د غنیمت مال حلال کړے شویدے، زما نه مخکښې د هیچا دپاره نهٔ دے حلال شوے)۔ ددے آیت د نازلیدو نه روستو صحابه کرامو رضی الله عنهم ته اطمینان وشو او د فدیې په توګه ئې چه کوم مال د قیدیانو نه اخستے وو هغه ئې استعمال کړو۔ (بخاری: ۳۳۵، مسلم: ۱۱۹۱)

حافظ عماد الدین ابن کثیر رحمه الله وائی چه د جمهورو علماؤ په نیز د قیدیانو په باره کښې په هر دور کښې دا حکم جاری دے چه د وخت امام (بادشاه) ته اختیار دے،

۱–د حالاتو د تقاضے مطابق که غواړی نو قتل کولے شی لکه څنګه چه د بنو قریظه مقاتلین (جنګیان) قتل کړے شو۔

۲– او که غواړی نو فدیه اخستو سره ئې پریدی لکه چه د بدر د قیدیانو سره وکړے شو۔

۳– او که مسلمانان د قیدیانو په بدله کښې راخلاصوی لکه چه یوه وینځه او د هغے لور چه سلمه بن الاکوع رضی الله عنه قید کړی وو د څه مسلمانانو قیدیانو په بدله کښې آزاد کړے شو۔ ٤– او که د چا نه غلام جوړوی۔ دا ټول کارونه جائز دی۔

حَلٰلًا طَيِّبًا : د غنیمت مال په ټولو مالونو کښې انتهائی حلال او مزیدار دے اګرکه کافر به دا په خیانت او سود او غلا سره پیدا کړے وی لیکن کله چه ترے مسلمان ونیولو نو هغه بیخی پاك شو، څکه چه مال اصلی مالك ته راواپس شو۔

يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِّمَنْ فِيْٓ اَيْدِيْكُمْ مِّنَ الْاَسْرٰٓى اِنْ يَّعْلَمِ

اے نبی! ووایه هغه چا ته چه ستاسو په لاسونو کښې دی د قیدیانو نه که معلوم وی

اللّٰهُ فِيْ قُلُوْبِكُمْ خَيْرًا يُّؤْتِكُمْ خَيْرًا مِّمَّآ

الله تعالیٰ ته په زړونو ستاسو کښې خیر (ایمان) نو دربه کړی تاسو ته غوره د هغې (مال) نه

اُخِذَ مِنْكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ؕ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ

چه اخستے شویدے ستاسو نه او بخنه به وکړی تاسو ته او الله تعالیٰ بخنه کونکے

رَّحِيْمٌ ﴿۷۰﴾ وَاِنْ يُّرِيْدُوْا خِيَانَتَكَ فَقَدْ خَانُوا اللّٰهَ

رحم کونکے دے۔ او که غواړی دوی خیانت کول تا سره نو یقیناً خیانت کړیدے دوی د الله سره

مِنْ قَبْلُ فَاَمْكَنَ مِنْهُمْ ؕ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ﴿۷۱﴾

مخکښې ددے نه (په شرک) پس قادر کړو الله تا لره په دوی باندے او الله پوهه حکمتونو والا دے

**تفسیر:** شان نزول

د حاکم او بیهقیؒ وغیره د روایتونو مطابق دا آیت د سیدنا عباس بن عبد المطلب ؓ او د هغه د ملګرو په باره کښې نازل شوے وو۔ د بدر په جنګ کښې ابوالیُسر کعب بن عمرو ؓ دا قید کړو او رسول الله ﷺ ته ئے راوستو، نو نبی ﷺ عباس ؓ ته د فدیې ورکولو وینا وکړه لکه واقعه مخکښې ذکر شوه، چه هغه ته ئے ووئیل چه ته د ظاهری حالاتو مطابق زمونږ په خلاف راوتے ئے، نو هغه فدیه ورکړه او دا آیت نازل شو۔

او دلته ورته ووئیل شو چه که تاسو اُوس خپل تکلیف ښکاره کوئ چه زمونږ سره مال نشته، نو فی الحال مال ورکړئ که الله ته ستاسو د زړونو صدق او اسلام معلوم وی، نو الله به ددے بدله درکړی او تیر شوی ګناهونه به هم درته معاف کړی۔ نو دوی سره دوه وعدے وشوے، دنیا کښې بدله او د ګناهونو معاف کیدل۔

اِنْ يَّعْلَمِ اللّٰهُ: دا شك په نسبت سره مخاطب ته دے، نۀ په نسبت سره الله ته، الله ته خو به یو طرف خامخا معلوم وی یا به ستاسو زړونو کښې خیر وی یا به شر وی لیکن مونږ ته معلومات نشته چه د دوی زړونو کښې به څه وی نو ځکه ئے په طریقه د شك استعمال کړو۔

ابن سعدؒ او حاکمؒ د ابوموسیٰ اشعری ﷛ نه روایت کړیدے چه علاء حضرمی ﷛ د بحرین نه اتیا (۸۰) زره رقم راولیږلو، ددے نه مخکښې ددے نه زیات مال رسول الله ﷺ ته نهٔ وو راغلے۔ نبی ﷺ په خلقو کښې تقسیمول شروع کړل۔

عباس ﷛ راغلو او وے وئیل چه ما د جنګ بدر نه روستو خپله او د خپلو وریرونو فدیه ورکړے وه، پدے وجه ما ته ددے مال نه راکړه۔ (ما سره وعده شوېده) نبی ﷺ هغه ته ډیر مال ورکړو تردے پورے چه د بوج سره نهٔ شو پورته کیدلے۔ نو رسول الله ﷺ مُسکے شو۔ عباس ﷛ په تللو کښې ووئیل چه د الله د دوه وعدو نه یوه پوره شوه، او دویمه معلومه نهٔ ده چه آخرت کښې به څه وی۔ دا روایت امام بخاریؒ هم د تعلیق په صیغے سره ذکر کړیدے۔ (بخاری: ٤٢١)

**وَاِنْ يُّرِيْدُوْا خِيَانَتَكَ**: رسول الله ﷺ ته وئیلے کیږی چه که دا مشرکان په فدیه ورکولو سره ځان خلاص کړی او په ظاهره کښې اسلام اعلان کړی، او تا ته د دهوکے ورکولو اراده لری، او مکے ته په رسیدو کښې خپل کفر ته واپس شی نو تهٔ د دوی پرواه مهٔ کوه، او یریږه تریے مهٔ۔ دوی خو مخکښې هم کفر او شرك کولو سره د الله تعالیٰ سره خیانت کړے وو نو الله تعالیٰ دوی ستا قیدیان جوړ کړل، که بیا ئے داسے وکړل نو دوباره به د دوی انجام همدغه شان وی، او دوی به د کفر د ذلت سره سره د قید او بند د ذلت سره هم مخامخ کیږی۔

**فَاَمْكَنَ**: [اَیْ فَاَمْكَنَكَ وَالْمُؤْمِنِيْنَ مِنْهُمْ] یعنی تهٔ او مؤمنان ئے په دوی قادر کړئ چه ومو نیول نو بیا به موقعه راولی دوی به پکښې ګیر شی۔ پدے کښې دغه قیدیانو ته دهمکی ده۔

| اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَهَاجَرُوْا وَجٰهَدُوْا بِاَمْوَالِهِمْ |
|---|
| یقیناً هغه کسان چه ایمان ئے راوړے او هجرت ئے کړے او جهاد ئے کړے په مالونو خپلو |
| وَاَنْفُسِهِمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَالَّذِيْنَ اٰوَوْا وَّنَصَرُوْٓا |
| او ځانونو خپلو په لاره د الله کښې او هغه کسان چه ځای ئے ورکړیدے او امداد ئے کړیدے |
| اُولٰٓئِكَ بَعْضُهُمْ اَوْلِيَآءُ بَعْضٍ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا |
| دا کسان بعض د دوی نه دوستان د بعضو دی، او هغه کسان چه ایمان ئے راوړیدے |

وَلَمۡ یُهَاجِرُوۡا مَا لَكُمۡ مِّنۡ وَّلَایَتِهِمۡ مِّنۡ شَیۡءٍ حَتّٰی

او هجرت ئې نهٔ دے کړے نشته تاسو لره د دوستانې د دوی نه هیڅ حق ترڅو چې

یُهَاجِرُوۡا وَاِنِ اسۡتَنۡصَرُوۡكُمۡ فِی الدِّیۡنِ فَعَلَیۡكُمُ

چې هجرت وکړي دوی او که دوی مدد طلب کوي تاسو نه په باره د دین کښې نو لازم دي په تاسو

النَّصۡرُ اِلَّا عَلٰی قَوۡمٍۭ بَیۡنَكُمۡ

باندې مدد کول د دوی سره مګر په مقابله د هغه قوم کښې چې په مینځ ستاسو

وَبَیۡنَهُمۡ مِّیۡثَاقٌ وَاللّٰهُ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ بَصِیۡرٌ ﴿۷۲﴾

او په مینځ د دوی کښې لوظ وي (د امن) او الله تعالیٰ په هغه عملونو چې تاسو ئې کوئ لیدونکے دے۔

**تفسیر** : په آخر د سورت کښې د مؤمنانو انواع او اقسام بیانوي ځکه چې پدې سورت کښې ایماني جانب هم کافي حد پورې ذکر دے۔ او دا د هغه دور د مسلمانانو سره هم متعلق دي چې د دیني مراتبو په اعتبار سره الله تعالیٰ دوی په درې تقسیمونو کښې تقسیم کړیدي، یو خو هغه چې هغوي د الله په لاره کښې د خپل نفس او مال په ذریعه جهاد وکړو. او دویم د مدینې انصار چې هغوي رسول الله ﷺ او مهاجرینو ته پناه ورکړه، ددې دواړو قسمونو مسلمانانو د الله په نظر کښې ډیر اُوچت مقام دے. د دوی په باره کښې الله تعالیٰ وئیلي دي چې دا خلق په مدد او دوستۍ او میراث کښې د یو بل حقدار دي. روستو زمانه کښې د ﴿ وَاُولُوا الۡاَرۡحَامِ بَعۡضُهُمۡ اَوۡلٰی بِبَعۡضٍ ﴾ په ذریعه د میراث حکم منسوخ شو.

او دریم هغه مسلمانان دي چې هغوي د کافرانو سره په مکه کښې وسیدل خوښ کړل او هجرت ئې ونکړو، دا خلق د الله په نظر کښې ناقص الایمان خلق وو، د دوی او د اولې او دویمې درجې مسلمانانو ترمینځ هیڅ دوستي او میراث الله تعالیٰ ثابت نهٔ کړو ترڅو چې په هجرت کولو سره مدینې ته رانشي. آو که دا خلق د هغه کافرانو په خلاف د خپل دین د حفاظت دپاره مدد طلب کړي او د مسلمانانو او کافرانو ترمینځ د مخکښې نه هیڅ معاهده نهٔ وي نو د هغوي مدد کول ضروري دي.

وَهَاجَرُوۡا : دا ورسره ځکه وائي چې جهاد پوره طریقې سره د هجرت نه بغیر نهٔ کیږي.

بَعْضُهُمْ أَوْلِيَآءُ بَعْضٍ : یو ولایت (دوستی) دا ده چه یو بل سره به محبت ساتی۔ او دویم د ولایت نه مراد میراث ورل او د یو بل دیت ورکول دی۔ او تردیے چه انصارو خپل مالونه د مهاجرینو سره نیمائی کړی وو، او ځینو پکښې د خپلو بعض ښځو د طلاق اراده وکړه، دیے دپاره چه مهاجر ورسره نکاح وکړی۔ او رسول الله ﷺ چه کله مدینے ته هجرت وکړو نو د مهاجرینو او انصارو ترمینځ ئے مواخات (دوستی او ورورولی) مقرر کړه ځکه چه عربو کښې قبائلی نظام وو چه هغه ختم شی او دا اعلان شی چه زمونږ د قبیلے سره کار نشته بلکه د عقیدے سره کار دیے۔

وَلَمْ يُهَاجِرُوا : یعنی مدینے ته ئے هجرت نۀ دیے کړیے۔

مِنْ وَلَايَتِهِمْ مِنْ شَيْءٍ : د ولایت نه مراد دا دیے چه میراث به نۀ ورکوی، په غنیمت او په خُمس کښې د دوی هیڅ برخه نشته، مگر که په کوم قتال کښې حاضر شوی وی۔ (ابن کثیر) خور لور به نۀ ورکوی ځکه چه نکاح د غیر مهاجر سره صحیح نۀ وه۔ لکه ام هانیء رضی الله عنها رسول الله ﷺ ته ځان په نکاح وړاندیے کړو هغه په نکاح وانخستـه ځکه چه هجرت ئے نۀ وو کړیے۔

(الترمذی وابن ابی حاتم والطبرانی والحاکم وصححه ولکنه ضعیف الاسناد بابی صالح باذان)

او دغه شان غیر مهاجر به جُمعے ته هم نۀ مخکښې کیږی، لکه یو روایت کښې دی : [وَلَا يَؤُمُّ أَعْرَابِيٌّ مُهَاجِرًا] (ابن ماجه بسند ضعیف بعلی بن زید بن جدعان وضعیف الجامع : ٦٣٨٦)۔ (یعنی اعرابی به مهاجر ته امامت نۀ کوی)۔ دا روایتونه ضعیف دی پدیے وجه اول مصداق غوره دیے۔ او په عموم د نفی د ولایت کښې دا هم داخلیدیے شی۔

دا په هغه وخت کښې چه جهاد فرض عین وی او سریے هجرت ونکړی، دا شخص کافر نۀ دیے لیکن گناهگار مسلمان دیے۔ پدیے وجه که د کافرانو په مقابله کښې دا مسلمان مدد طلب کوی، یا یو حکم شرعی تپوسی او مسئله معلوموی، نو د هغه سره به مدد کولے شی او جواب به ورکولے شی۔

إِلَّا عَلَىٰ قَوْمٍ : یعنی که د دغه غیر مهاجر (گناهگار) د داسے قوم سره جنگ راغلو چه ستاسو او د هغوی ترمینځ وعده وه، نو بیا به د وعدے پابندی کولے شی، او د دغه غیر مهاجر مدد به نۀ کوی۔ دلته د وعدے دومره پابندی خودلے شویده چه د دغه مؤمن مدد به نکوی کله چه پدیے سره د کافر سره د وعدے ماتیدو خطره وی۔

| وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا بَعْضُهُمْ اَوْلِيَآءُ بَعْضٍ اِلَّا تَفْعَلُوْهُ |
| --- |
| او هغه کسان چه کافران دي بعض د بعض دوستان د بعضو دي کچرته ونکړئ تاسو دا امداد |
| تَكُنْ فِتْنَةٌ فِي الْاَرْضِ وَفَسَادٌ كَبِيْرٌ ﴿۷۳﴾ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا |
| نو شي به فتنه په زمکه کښې او فساد لوئې. او هغه کسان چه ايمان ئې راوړيدے |
| وَهَاجَرُوْا وَجٰهَدُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَالَّذِيْنَ |
| او هجرت ئې کړيدے او جهاد ئې کړيدے په لاره د الله کښې او هغه کسان |
| اٰوَوْا وَّنَصَرُوْٓا اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُؤْمِنُوْنَ حَقًّا |
| چه ځاي ئې ورکړيدے او امداد ئې کړيدے دغه کسان هم دوي مؤمنان دي په رشتيا، |
| لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّرِزْقٌ كَرِيْمٌ ﴿۷۴﴾ |
| دوي لره بخنه ده او رزق دے عزتمند. |

**تفسیر**: يعنې د کافرانو خپل مينځ کښې دوستي ده نو مطلب دا دے چه [فَلَا يَحِلُّ لَكُمْ مُوَالَاتُهُمْ وَيَنْبَغِيْ لَكُمْ اَنْ تُوَالُوا الْمُؤْمِنِيْنَ] ستاسو دپاره د هغوي سره دوستي ساتل حرام دي اګرکه هغه نزدے خپلوان ولے نهٔ وي، ځکه د کافر دوست کافر وي.

دويمه فائده دا ده چه کافران د يو بل سره دوستي لري او د يو بل مدد کوي، نو مؤمنانو له پکار دي چه د خپل مؤمن سره دوستي ولري او د هغه سره يو ځاي شي.

ددے آيت نه علماؤ دليل نيولے دے چه مسلمان او کافر د يو بل وارث نشي کيدے. بخاريؒ او مسلمؒ د اُسامه بن زيدؓ نه روايت کړيدے چه [لَايَرِثُ الْمُسْلِمُ الْكَافِرَ وَلَا الْكَافِرُ الْمُسْلِمَ] مسلم د کافر او کافر د مسلم وارث نهٔ کيږي. (بخاري: ۶۷۶۴) مسلم (۴۲۲۵) او ابوداودؒ د اسامه بن زيدؓ نه روايت کړيدے چه رسول الله ﷺ وفرمايل: [لَايَتَوَارَثُ اَهْلُ مِلَّتَيْنِ] (د دوه دينونو والا خپل مينځ کښې وارث نهٔ کيږي). (ابوداود: ۲۹۱۱ بسند صحيح)

اِلَّا تَفْعَلُوْهُ: دا متعلق دے د (فَعَلَيْكُمُ النَّصْرُ) سره يعنې د مؤمنانو سره مدد وکړئ که د دوي سره مدد نهٔ کوئ. يا د کافرانو سره تعلق نهٔ پريکوئ او د الله تعالیٰ د حکم مطابق مسلمانان خپل مينځ کښې يو بل دوستان نهٔ نيسي نو ډيره لويه فتنه او د فساد دروازه به کولاوه شي. فتنه کفر او شرک دے او فساد کبير ضعف الاسلام دے. يعنې کوم مسلمان

چه کمزوری وی هغه به د کافرانو سره ملاؤ شي او کیدے شي چه مرتد شي، او که مرتد نهٔ هم شي نو په عقیده او عمل او عاداتو او اطوارو کښې به د کافرانو نه اثر قبول کړي.
مفسرین لیکي : ددے آیت د تقاضا مطابق که مسلمانان خپل مینځ کښې متحد نهٔ شي نو کافران به د دوی په خلاف سازش جوړ کړي او په دوی به حمله وکړي او د دوی په علاقو به قبضه وکړي. ددے برعکس که خپل مینځ کښې متحد وسیږی نو د دوی قوت به زیاتیږی او د نورو مذاهبو خلق به په اسلام کښې داخلیږی، او د فتنے او فساد ډیرے دروازے به خپله بندیږی.
وَالَّذِيْنَ : پدے کښې د دغه مهاجرینو او انصارو اُوچت مقام او مرتبه او فضیلت بیانیږی کوم چه په آیت (۷۲) کښې ذکر شو.

| وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْۢ بَعْدُ وَهَاجَرُوْا |
|---|
| او هغه کسان چه ایمان ئے راوړیدے روستو د هغوی نه او هجرت ئے کړیدے |
| وَجٰهَدُوْا مَعَكُمْ فَاُولٰٓئِكَ مِنْكُمْ |
| او جهاد ئے کړیدے په ملګرتیا ستاسو کښې نو دغه کسان ستاسو نه دی، |
| وَاُولُوا الْاَرْحَامِ بَعْضُهُمْ اَوْلٰى بِبَعْضٍ |
| او نسبي خپلوان بعض د دوی ډیر لائق دی (د میراث) په بعضو سره |
| فِيْ كِتٰبِ اللّٰهِ ۗ اِنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ﴿۷۵﴾ |
| په حکم د الله تعالیٰ کښې، یقیناً الله تعالیٰ په هر شي پوهه دے. |

**تفسیر** : ۱ - ددے نه مراد کشران صحابه کرامؓ او تابعینؒ دی. یعنی کوم خلك چه د مدینے د هجرت نه روستو مسلمانان شو، او هجرت کولو سره مدینے ته راغلل او د مسلمانانو سره ملګری شو، جهاد ئے وکړو، نو دوی هم د مخکنو مهاجرینو او انصارو په شان د مناصرت (مدد) او موالات (دوستئ) مستحق دی. دوی هم حقیقي مؤمنان دی او په آخرت کښې به په دوی هم الله تعالیٰ د عفو او مغفرت څادر اچوی او د جنت نعمتونه به ورکوی.
مِنْۢ بَعْدُ : روستو ستاسو نه. او سورة التوبه (۱۰۰) کښې راغلي دي : ﴿ وَالَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُمْ

بِإِحْسَانٍ﴾ الله تعالىٰ د هغه کسانو نه هم راضي دے چه د صحابه کرامو تابعداري ئے کړیده په نیکئ کښ- او حدیث کښ دي هغه شخص به اُور ته نۀ داخلیږي چه زۀ ئے لیدلے یم، یا ئے هغه څوك لیدلے چه هغه زۀ لیدلے یم- ددے حدیث سند ضعیف دے، او صحیح حدیث کښ داسے الفاظ دي : [طُوْبىٰ لِمَنْ رَآنِيْ وَآمَنَ بِيْ وَلِمَنْ رَأىٰ مَنْ رَآنِيْ] (صحيح الجامع : ۳۹۲۶)- خوشحالي ده هغه چا لره چه زۀ ئے لیدلے یم او په ما ئے ایمان راوړے او هغه چا لره هم چه زما صحابي ئے لیدلے وي-

۲- دويم دا چه ددے نه مراد تر قیامته پورے ټول مؤمنان دي-

وَجٰهَدُوْا مَعَكُمْ : یعني ستاسو په شان جهاد ئے کړیدے-

فَأُولٰٓئِكَ مِنْكُمْ : یعني دوي به ستاسو نه حساب وي نو الله به ستاسو نه راضي وي او تاسو به جنتیان یئ نو دوي نه به هم راضي وي او دوي به هم جنتیان وي- نو ټول رښتیني مؤمنان به په قیامت کښ د صحابه کرامو سره په صفونو کښ ولاړ وي-

وَأُولُوا الْأَرْحَامِ : دا آیت د ډیرے زمانے نه روستو نازل شو تر صلح حدیبیه پورے د عقد حِلف (عَقْدِ مُوَاخَات) په قانون باندے به عمل کیدو، دوي به د یو بل نه میراث وړلو، لیکن کله چه دا جملـه نازله شوه نو اُوس به صرف رشته داران د یو بل نه میراث وړي، نۀ نور خلك-

الْأَرْحَامِ : دد ینه مراد هغه ټول خپلوان دي چه د رحِم په ذریعه قائم وي، برابره ده ذوي الفروض وي کـه عصبات او که ذوي الارحام- نو پدے باب کښ د قرآن اصطلاح د فقهاؤ د اصطلاح نه جدا ده-

ابن عباسؓ، مجاهدؒ، عکرمهؒ او حسنؒ وغیره وئیلي دي چه دا آیت د معاهدے، حِلف او اخوّت او دوستئ په ذریعه د میراث اخستو حکم دپاره ناسخ دے- ددے آیت نه روستو د میراث حکم صرف د خپلولئ د آبائي نسب او سخراني رشتو په ذریعه باقي پاتے شو، او معاهده او حِلف صرف په خپل مینځ کښ د تعاون او د یو بل مدد او د معاهدے مطابق نورو کارونو او احکامو دپاره جاري او ساري پاتے دے-

ابوداوٗدؒ د ابن عباسؓ نه روایت کړیدے چه مخکښ به خلقو د حِلف او معاهدے په ذریعه بغیر د څه خانداني خپلولئ نه د یو بل وارث جوړیدل نو د سورة انفال دے آیت هغه حکم منسوخ کړو- آه- (ابوداود : ۲۹۲۳ اسناده صحيح) او ووئیل شو چه خپلوان د یو بل زیات حقدار د میراث دي- او تر اُوسه پورے دا حکم نۀ منسوخ کیدو څکه چه مقصد پدے سره

قبائلي نظام ختمول وو، او هغه تقريباً ختم شو، مؤمنان د يو بل ورونه وروته شو نو اُوس ميراث بيرته خپلو حقدارو ته د رسولو حکم وکړے شو. مثلاً ستا پلار مړ شو د تولو نه پرے ته ډير دردمند ئے او ميراث به ئے بل څوك وړي نو دا د الله د حکمة خلاف وه پدے وجه ئے اُوس دا حکم منسوخ کړو.

د «كِتٰبِ اللّٰهِ» نه مراد د الله تعالىٰ حکم يا لوح محفوظ يا قرآن کريم دے.

إِنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ : يعنى مخکښ ئے د علم تقاضا دا وه چه عقد حِلف والا به هم ميراث وړي او اُوس ئے د علم تقاضا دا ده چه صرف د مړي رشته داران به ميراث وړي. وبالله التوفيق.

## امتيازات او خصوصيات د سورة الانفال

١- پدے کښ د غنيمت د تقسيم دپاره کثرة العلل ذکر دي.

٢- قواعد الجهاد والقتال، تقريباً (١٣) قواعد د غلبے د جهاد او د اسلام د شائع کيدو دپاره ذکر شويدي، او صاحب المنار ددے نه اوه ويشت (٢٧) قواعد راويستلي دي او هغه ئے په آخر کښ راجمع کړيدي.

٣- د بدر د غزا تصوير پکښ ذکر دے.

٤- تفصيل د غنائم او اسارىٰ (قيديانو) پکښ ذکر دے.

٥- احکام د صلح او انواع د مؤمنانو پکښ ذکر دي.

ختم شو تفسير د سورة الانفال

برحمة الله وحسن توفيقه يوم الثلثاء بعد الظهر فى شدة الحر. شوال ١٧/ ١٤٣٥ هـ الموافق: ٢٠١٤/اگست١٣)

او ددے نظر ثاني په اسريت کالام کښ په (١٤٣٦) هجري شوال: ٢٥.

موافق: ٢٠١٥/١٤ اگست کښ په حجره د ورور محترم خير الرحمن حفظه الله وعافاه کښ وشو.

# فهرست تفسیر حکمة القرآن جلد (۵)

دفتر تمام گشت و بپایان رسید عمر ما همچنان در اول وصف تو مانده ایم

بدست ابوزهیر

السلام علیکم

محترمو وروڼو ما په

خپلو دعاګانو کښې یاد

ساتئ

ستاسو ورور

ابو عبدالرحمن